محقق جدید ایڈیشن

# معارف القرآن

جلد ۸

پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمۃ اللہ علیہ

مع

## آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امداد العلوم وجامعه اسلامیه چارسده

**خصوصیات مع تسهیلات واضافات**

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی
عثمانی مدظله ③ تکی په تکی او روانه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه
لیکل ⑤ په حاشیه کښې د ذیر تفسیر شوه آیاتونو تفسیر ⑥ د عربی او فارسی د اشعارو په
پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل


فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پیښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتی اعظم پاکستان

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

## د ملاویدو پتې :- د فیصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روغانیول جلال آباد
- مکتبه رحیمی خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- صداقت کتب خانه قندهار وکابل
- علمی کتب خانه ګردیز
- مکتبه علمیه اکوړه ختک
- دینی کتب خانه تیمرګره
- شیخ الهند کتب خانه خوست
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- مکتبه فریدیه خوست
- دیوبند کتب خانه خوست
- جدید رشیدیه کتب خانه کابل
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- مکتبه نعمانیه غزنی
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوٰی کتب خانه جلال آباد

# فهرست مضامين

| صفحه | مضمون | شميره |
| --- | --- | --- |

## پاره نمبر [۱۹]

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## پاره نمبر [۲۰]

.......

وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا

او وائي | هغه کسان | چې امید نهٔ لري | دملاقات زمونږ | ولې نهٔ رالیږلې کیږي | مونږ ته

اوکوم خلق چې مونږ سره دملاقات امید نه ساتی |هغوئ اووئیل چې په مونږ باندې

الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ نَرٰى رَبَّنَا ؕ لَقَدِ اسْتَكْبَرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ

فرښتې | یا ولې نهٔ وینو مونږ | رب زمونږ | په تحقیق سره ډیر تکبر اوکړو دوئ | په زړونو خپلو کښې

فرشتې ولې نه نازلیږی|یا مونږ خپل رب لیدلې وې | دوئ خپل ځان ډیر لوئې ګنړلې دې

وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيْرًا ﴿۲۱﴾ يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ

او دحد نه واوړیدل | په اوړیدو| لویو سره | په کومه ورځ | چې اووینی دوئ | فرښتې |

اود حدنه ډیر لرې تلی دی | په کومه ورځ چې دوئ فرشتې اووینی| نو هغه ورځ به

لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا

نهٔ به وی خوشحالی | په دغه ورځ | دپاره دمجرمانو | اووائي به هغوئ | پناه غواړو |

دمجرمانو دپاره دخوشحالئ ورځ نه وی | او دابه وائی چې پناه غواړو پناه |

مَّحْجُوْرًا ﴿۲۲﴾

پناه ټینګه په الله پورې |

## آسان ترجمه قرآن

اوکوم خلق چه دا امید هم نه لری چه هغه (یو وخت) مونږ سره یوځائې شی هغوی داسې وائی چه: په مونږ باندې ملائک ولې نازلې نه کړې شوې؟ یا بیا داسې ولې نه کیږی چه مونږ خپله خپل رب اُوینو؟ حقیقت دا دې چه دوی په خپلو زړونو کښې خپل ځان ډیر لوئې ګنړلې دې . او هغوی ډیره سرکشی اختیار کړې ده. کومه ورځ چه هغوی ته ملائک په نظر راځلل. هغه ورځ به د مجرمانو دپاره هیڅ د خوشحالئ موقع نه وی. بلکه دوی به داسې وائی چه اې الله ! مونږ ته داسې پناه را کړه چه دوی زمونږ نه لرې شی.

## خلاصه تفسير

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا﴾[اوکوم خلق چه مونږته دمخامخ کیدو نه ویره نه کوی ] ځکه چه هغوی دقیامت او په دې کښې د پیښئ او حساب نه منکر دی ﴿لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ﴾ [ هغوی درسالت نه دانکار دپاره [ داسې وائی چه مونږته فرښتې ولې نه راځي ] چه که فرښتې راشی او مونږ ته ووائی چه دارسول دې﴿اَوْ نَرٰى رَبَّنَا﴾ [یامونږه خپل رب لره اووینو] او هغه مونږ ته اووائی چه دارسول دې نومونږ به ئې تصدیق وکړو ددې په جواب کښې الله تعالی اوفرمائیل چه ﴿لَقَدِ اسْتَكْبَرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ﴾[دا خلق په خپلو زړو نو کښې ځانونه ډیر لوئ ګنړی ] چه خپل ځانونه ددې قابل ګنړی چه فرښتې راشی ددوی سره خبرې وکړی یا په خپله دالله تعالی سره ئې خبرې وشی [ او] خاصکر دالله تعالی په دنیا کښې دلیدو او دده سره دخبرو کولو په فرمائش کښې خو﴿وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيْرًا﴾[ داخلق دحد] دانسانیت [ نه ډیرلرې وتلی دی ] ځکه چه دملائکو او

دانسانانو خو په خيني څيزونو کښې شرکت هم دې چه دواړه دالله تعالى مخلوق دى ليکن په انسان اوپه الله تعالى کښې خوهيڅ مشارکت اومشابهت نشته او داخلق دالله تعالى دليدو کله قابل دى مگر فرښتې به دوى ته يوه ورځ ور اوينو ورښايو مگرځنګه چه دوى غواړى داسې نه بلکه ددوى دپاره به عذاب او مصيبت او پريشاني راوړى ﴿يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ﴾ [ چنانچه په کومه ورځ چه داخلق فرښتولره اووينى ] او دغه ورځ دقيامت ده ﴿لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ﴾ [ په دغه ورځ به مجرمانو ] يعنى کافرانو [دپاره هيڅ دخوشحالۍ خبره] په نصيب کښې [ نه وى او] فرښتې چه هرکله دعذاب دسامان سره راتلونکې اووينى نو ويرې نه به ﴿وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا﴾ [اووائى پناه ] غواړو [پناه].

## معارف او مسائل

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا﴾ : د رجاء ، معنى دا ده چه د يو پسنديده او غوره څيز اميد لرلې شى او کله په معنى د ويرې هم راځى ځنګه چه ابن الانبارى په ، کتاب الاضداد ، کښې ليکلې دى دلته هم د ويرې دغه معنى زياته واضحه ده يعنى دغه خلق چه زمونږ په وړاندې د پيشۍ نه نه ويريږى په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه د ناړامه او جاهلانه سوالونو او فرمائشونو زړورتيا هغه څوک کولې شى چه د آخرت نه بيخى منکر وى ځکه چه د آخرت منونکى باندې د دې فکر داسې غالب وى چه هغه داسې سوالونو او فرمائشونو ته اوزګاريدې نشى نن هم چه نوى تعليميافته خلق د نوې تعليم د اثر لاندې د اسلام او د دې د احکامو په باره کښې چه شبهې راپورته کوى او په دې بحثونو کښې لګيا وى دا هم د دې نښه ده چه په زړه کښې د آخرت رشتنې يقين نۀ لرى که داسې وې نو په زړه کښې به ئې داسې بيکاره سوالونه نۀ راپورته کيدل.

﴿وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا﴾ د ، حجر ، لفظى معنى محفوظ ځاى ده ..﴿مَّحْجُوْرًا﴾ ، د دې تاکيد دې . د دې محاورې استعمال په عربو کښې به هغه وخت وو چه د يو راغلى مصيبت نه د خلاصى په غم کښې به وو او وئيل به ئې چه پناه دې وى مونږ لره پناه دې وى مونږ لره دغه شان کله به چه کافران عذاب راوړونکې فريشتې د قيامت په ورځ اووينى نو د دنيا د عادت په جوړ به دغسې وائى د حضرت ابن عباس ﷺ نه د دې لفظ ،﴿حراما محرما﴾ ،معنى منقول ده مطلب ئې داد چه دغه خلق به چه د قيامت په ورځ عذاب راوړونکې فرشتې اووينى هغوئ نه به د معافۍ يا جنت ته د بوتلو خواست اوکړى يا به دغسې آواز ښکاره کړى نو فرشتې به ورته په جواب کښې ﴿حِجْرًا مَّحْجُوْرًا﴾ [ جنت په کافرانو باندې حرام او بند دې ] وائى [ مظهرى ][1]

| | | |
|---|---|---|
| مِنْ عَمَلٍ | اِلٰى مَا عَمِلُوْا | وَقَدِمْنَآ |
| دعمل نه | هغې ته چې کړى دى هغوئ | او راوړاند به شو مونږ |
| اومونږ به ددوئ دعملونو طرفته توجه اوکړو [ نوهغه به ورله داسې کړو | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَيْرٌ | يَوْمَئِذٍ | اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ | مَّنْثُوْرًا | هَبَآءً | فَجَعَلْنٰهُ |
| بهتره وى | په دغه ورځ | ملګرى د جنت به | الوزولې شوى | دوړه | پس اوبه ګرزوو مونږ هغه |
| چې هغه به الوتونکى خاورې اوګرځوو[چه هيڅ حيثيت به يې نه وى] دجنت خاوندان به په دغه ورځ | | | | | |

[1] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية ج:۷ص:۴۰

مُّسْتَقَرًّا وَّاَحْسَنُ مَقِيْلًا ۝ وَيَوْمَ تَشَقَّقُ

په لحاظ دځائي دقرار سره | او ډير ښه به وي | په لحاظ دارام دغرمي | او په دغه ورځ | به اوچوي |

په ښو ځايونو او ښائسته خواب ګاهونو کښې په آرام وي | او په ورځو کښې به يوه ورځ

السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلٰٓئِكَةُ تَنْزِيْلًا ۝ اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذِ

اسمان | په وريځ سره | او نازلي به کړی شی | فرښتې | په نازلولو سره | بادشاهی به | په دغه ورځ

اسمان اوچوی | او ډيرې فرښتې [به قطارونو کښې] راکوزيږی | په دغه ورځ به

الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ ط وَكَانَ يَوْمًا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ عَسِيْرًا ۝ وَيَوْمَ

حقه | رحمن لره وی | او وی به | دغه ورځ | په کافرانو باند | ډيره سخته | او په دغه ورځ به

رښتينې بادشاهی درحمان وی | او دغه به په کافرانو ډيره سخته ورځ وی | او په دغه ورځ

يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلٰى يَدَيْهِ يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِي

چکونه لګوی | ظالم سړې | په دواړو لاسونو خپلو باندې | او وائی به | اے کاش چې وې زه |

به ظالم خپل لاسونه [ګوتې] چيچی | دا به وائی چې ائې کاش زه د پيغمبر په نيغه لار

اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلًا ۝ يٰوَيْلَتٰى لَيْتَنِيْ لَمْ اَتَّخِذْ

چې نيولې وې ما | درسول سره | لاره | اے افسوس | افسوس دې ما لره | چې نه وې نيولې ما

روان شوی وې | هائې زما بده نصيبه افسوس چې فلانې بنده مې ملګرې کړې نه وې

فُلَانًا خَلِيْلًا ۝ لَقَدْ اَضَلَّنِيْ عَنِ الذِّكْرِ بَعْدَ اِذْ جَآءَنِيْ ط

فلانې سړې | دوست | خامخا هغه بې لارې کړم زه | دذکر نه | روستو دهغې نه کله | چې راغې ماته

دغه ملګری خو زه د هغې نه پس ګمراه کړم | چې نصيحت راته [کور ته] راغلې وو | او

وَكَانَ الشَّيْطٰنُ لِلْاِنْسَانِ خَذُوْلًا ۝ وَقَالَ الرَّسُوْلُ

اودې شيطان | دپاره دانسان | [ډير بې وفا] يوازې پريښودونکې | او او به وائې رسول |

شيطان [دهميشه نه] دانسان رسواکونکې دې | او پيغمبر ﷺ به اووائې

يٰرَبِّ اِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوْا هٰذَا الْقُرْاٰنَ مَهْجُوْرًا ۝

اے ربه زما | بې شکه چې | قوم زما | نيولې وو | دا | قرآن | [يوه توته] پريښودې شوې |

چې ائې زما ربه ! زما قوم دا قرآن پاک پريښودې وو [او عمل ئې پرې نه وو کړې]

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِيْنَ ط وَكَفٰى

او دارنګې | جوړ کړی دی مونږ | دپاره دهر نبی | دشمنان | دمجرمانو نه | او کافی دې

او دغه شان مونږ دهر پيغمبر دپاره د ګناهګارانو نه دښمنان جوړ کړی دی | او ستا رب

بِرَبِّكَ هَادِيًا وَّنَصِيْرًا ۝

رب ستا | دپاره دلار ښودلو | او دپاره دامداد کولو |

لاره خودونکې او مددګار کافي دې |

## آسان ترجمه قرآن

اوهغوی (په دنیا کښې) چه کوم عمل کړي دي، مونږ به د هغې فیصلې دپاره راځو نوهغه به په فضا کښې د خور شوی ګردوغبار (په شان بې قیمته) کړو هغه ورځ به جنتیان خلق وی چه د هغوی مستقر به هم بهترین وی. اود آرام ځائې به ئې هم ښه وی او په کومه ورځ چه آسمان هلیدو سره یو وریځ ته لار ورکړی، او فرښتې به نازلې کړې شی په نازلولو سره، هغه ورځ به بادشاهی په صحیح معنو کښې د رحمٰن ذات دپاره وی، او هغه ورځ به په کافرانو باندې ډیره سخته وی او په کومه ورځ باندې چه کافر انسان خپلو لاسونو باندې چکونه لګوی، او وائی به چه: کاش ما د پیغمبر سره لار نیولې وې افسوس دې په ما! کاش چه ما فلانې سړې دوست نه وې نیولې. ماته د نصیحت کتاب راغلې وو، خو هغه (دوست) زه د هغې نه ګمراه کړم، او شیطان خو دې داسې چه موقع راتلو باندې انسان بې اسرې پریږدی. او رسول الله (ص) به وائی چه یا ربه! زما قوم دا قرآن کریم بالکل پریخودلې وو. او مونږ هم دغه شان مجرمان خلق د هر نبی دشمنان کړی دی. او ستا رب د هدایت کولو او مدد کولو دپاره کافی دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ﴾ [ او مونږ به ] په دغه ورځ [ ددوی] یعنی د کفارو [دي ] نیکو کارونو ته کوم چه دوی ] په دنیا کښې [کړی وو متوجه شو ﴿فَجَعَلْنٰهُ﴾ پس دغولره به ] په ښکاره [داسې] بې کاره [ کړو ﴿هَبَآءً مَّنْثُوْرًا﴾ لکه الوتونکې ګرد] چه په هیڅ کارنه راځی دغه شان به ددی کفارو دعملونو هیڅ ثواب نه وی البته ﴿اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا﴾[ جنتیان به په دغه ورځ په ښه ځائې داوسیدو کښې هم وی ﴿وَّاَحْسَنُ مَقِيْلًا﴾ او په ښه ځائې دارام کښې به هم وی ] مراد د[مستقرومقیل] نه جنت دې یعنی جنت به ددوی دپاره ځائې داوسیدو او ځائې دارام وی اوښه والې خود هغې ظاهره خبره ده ﴿وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ﴾[ او په کومه ورځ چه اسمان ډیوې وریځې دپاسه خیرې شی او] ددغې وریځې سره داسمان نه ﴿وَنُزِّلَ الْمَلٰٓئِكَةُ تَنْزِيْلًا﴾[فرښتې ] زمکې ته [ ډیر نازلې کړې شی ] اودغه وخت الله تعالی دحساب کتاب دپاره تجلی اوفرمائی او﴿اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذِ ٱلْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ﴾[ په دغه ورځ به حقیقی حکومت د] حضرت [رحمان دپاره ] خاص [ وی] یعنی په حساب کتاب جزا او سزا کښې به دهیچا دخل نه وی لکه په دنیا کښې چه لږ ډیرظاهری تصرف نوروته هم حاصل دې﴿وَكَانَ يَوْمًا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ عَسِيْرًا﴾ [او هغه] ورځ [به په کافرانو لویه سخته ورځ وی] ځکه چه ددوی دحساب انجام جهنم دې﴿وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلٰى يَدَيْهِ﴾ [ او په کومه ورځ به چه ظالمان ] یعنی کافران دډیرافسوس نه [خپل لاسونه چیچی خوری] او ﴿يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلًا﴾ [ وائی به چه څه به ښه وې چه زۀ درسول سره ] ددین [ په لارې روان شوې وې ﴿يٰوَيْلَتٰى لَيْتَنِيْ﴾ هائې زما کم بختیٔ] چه داسې مې نه وې کړی او﴿لَمْ اَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيْلًا﴾ [ څه به ښه وې چه ما فلانی سړی لره دوست نه وې جوړ کړې دغه ] کم بخت﴿لَقَدْ اَضَلَّنِيْ عَنِ الذِّكْرِ بَعْدَ اِذْ جَآءَنِيْ﴾ [ خو ماله دراغلې نصیحت نه ګمراه کړلو] او بې لارې ئې کړم﴿وَكَانَ الشَّيْطٰنُ لِلْاِنْسَانِ خَذُوْلًا﴾ [ اوشیطان خو انسان ته ] په عین وخت [ دامداد نه کولو جواب ورکوی ] چنانچه ددغې کافر ددې افسوس په وخت کښې هغه هیڅ همدردی ونه کړه اګر چه په همدردیٔ کولو ئې هم څه نه کیدل صرف په دنیا کښې ددۀ دوکه کول وو [ او] په دغه ورځ

به ﴿وَقَالَ الرَّسُولُ﴾ [ رسول] ﷺ الله تعالى ته دكافرانونه دشكايت په طور [ ووائي ﴿يَٰرَبِّ إِنَّ قَوْمِي ٱتَّخَذُواْ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ مَهْجُورًا﴾ چه اے زما ربه زما ] دې [ قوم دې قرآن لره ] كوم چه عمل پرې واجب وو [بالكل نظر اندازكړ وو] او عمل خو پرېږده دسره كتل ئې ورته هم نه مطلب دادې چه په خپله كفار به هم دخپلې ګمراهۍ اقرار اوكړي او رسول ﷺ به هم شهادت وكړي لكه دا قول دالله تعالى (٢)[وجئنابك على هؤلاء شهيدا] او دجرم دثبوت نور هم دا دوه عادتي صورتونه دي او اقرار اوشهادت او دواړو په اجتماع سره به دا ثبوت نور هم زيات مؤكدشي او سزا وار به شي ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ ٱلْمُجْرِمِينَ﴾[مونږه دغه شان دهرنبي دپاره مجرمانو خلقو لره دښمنان [جوړ وو ] يعنى داخلق كوم چه دقرآن نه انكار كوى ستا مخالفت كوى داڅه نوې خبره نه ده چه غم ئې وشي [ او] چاته چه هدايت كول منظور وى دهغوى﴿وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ هَادِيًا وَنَصِيرًا﴾ [دهدايت كولو او] كوم چه دهدايت نه محروم دى دهغوى په مقابله كښې ستا [ دمدد كولو دپاره ستارب كافى دې]

## معارف او مسائل

﴿خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَأَحْسَنُ مَقِيلًا﴾ ،مستقر ،د مستقلې ډيرې ځاى ته وئيلې شى او ،مقيل ، د ،قيلوله ، نه مشتق دې د غرمې د آرام كولو ځاى ته وئيلې شى دلته جنت ته ، مقيل ، شائد په دې وجه فرمائيلې شوې دې چه د يو حديث له مخې به چه كله الله تعالى د قيامت په ورځ د مخلوقاتو د حساب نه د نيمې ورځې [غرمې ] په وخت فارغ شى نو دغه وخت به [ چه عموما خلق د غرمې آرام كول غواړى ] جنتيان به جنت ته او جهنميان جهنم ته بوتلې شى [ قرطبى](٣)

﴿وَيَوْمَ تَشَقَّقُ ٱلسَّمَآءُ بِٱلْغَمَٰمِ﴾ ، اىْ عن الغمام ، [ قرطبى ](٤) معنى ئې دا ده چه آسمان به څيرى شى هغې نه به يوه نرې وريځ راښكته شى چه فرشتې به پكښې وى دا وريځ به د تمبو په شكل كښې د آسمان نه راكوځيږى پكښې به د الله تعالى تجلى وى ګير چاپيره به ئې فرشتې وى دا به د حساب شروع كيدو ورځ وى دغه وخت به د آسمان څيرې كيدل صرف د دې د پرانيستو په ډول وى دا به هغه څيرې كيدل نۀ وى كوم چه د ړومبئ شپلئ په وخت د دې د ورانولو او ختمولو د پاره شوى وو بلكه دا دويم ځل څيرې كيدل به د دويمې شپيلئ وهلو نه پس وى كله به چه زمكه او آسمانونه دوباره سم دم شوې وى [بيان القرآن](٥).

﴿يَٰوَيْلَتَىٰ لَيْتَنِى لَمْ أَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيلًا﴾ دا آيت په يو خاص واقعه كښې نازل شوې دې خو حكم ئې عام دې واقعه داسې وه چه د مكې د مشركانو د سردارانو د يو سردار عقبه ابن ابى معيط دا عادت وو چه كله به د يو سفر نه واپس شو نو د ښار عزتمندو خلقو ته به ئې د طعام بلنه وركوله او اكثر به ئې رسول الله ﷺ سره هم ملاقات كولو يو ځل چه د خپل عادت مطابق ده د معززو خلقو ښار دعوت اوكړو اورسول كريم ﷺ هم را اوبللو كله چې ئې رسول الله ﷺ ته خوراكه مخې ته كيښوه

(٢) ترجمه: او تا به په دې خلقو باندې دګواهۍ كولو دپاره راولو.
(٣) تفسير القرطبي ج:١٣٧ص:٢٣ و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث ٣٦٣
(٤) تفسير القرطبي ج:١٣ص:٢٣
(٥) بيان القرآن ج:٨ ص:٤٧

هغوی ﷺ ورته اوفرمائيل چه زۀ تر هغې پورې دا نۀ شم خوړې تر څو چه د الله تعالی د يو والی په دې شان سره ګواهی ورنکړې چه په عبادت کښې د هغۀ هيڅوک شريک نشی کيدې او د دې چه زه د الله تعالی رسول يم عقبه دغه کلمه اولوستله او هغوی ﷺ د شرط په جوړ طعام او خوړو- د عقبه يو مضبوط دوست ابیّ بن خلف هم وو هغه چه د عقبه په مسلمانيدو خبر شو نو ډير په قهر شو عقبه ورته د دې په عذر کښې اووئيل چه زما يو معزز [عزتمن] ميلمه محمد ﷺ زما ډيرې ته راغلې وو که هم داسې بې خوراک کولو تلې وې نو سخت شرميدلې به وم څکه مې دغه کلمه وئيلې وه ابیّ بن خلف اووئيل چه داسې خبرې دې نۀ منم ترڅو چه هلته ورنشې او په مخ [مبارک] ورته تو نکړې دغه کم بخت او بدقسمته دې بې ادبۍ کولو ته تيار شو او هم دغسې ئې اوکړل الله تعالی په دنيا کښې هم دغه دواړه ذليله کړل چه د بدر په غزا کښې اووژلې شو [بغوی] (٦) او د آخرت د عذاب بيان ئې په دې آيت کښې کړې شوې دې چه دغه عذاب کله خپلې مخې ته د قيامت په ورځ او وينی نو د خپيمانۍ او افسوس له کبله به خپل لاسونه چيچی او وائی به چه کاش ، ابیّ بن خلف مې دوست نۀ وې جوړ کړې [مظهری و قرطبی] (٧)

**د غلط کارو او بې دينه دوستانو دوستی به د قيامت په ورځ د ارمان او خپيمانۍ باعث وی::** په تفسير مظهری کښې راغلې دی چه دا آيتونه اګرچه خاص د عقبه په واقعه کښې نازل شوې وو خو څنګه چه د دې الفاظ عام دی دغسې ئې حکم هم عام دې او غالبا دې ته د اشارې کولو په غرض د دوست د نوم په ځای ، فلانا ، لفظ راوړې شو. په دې آيت کښې دا ښودلې شويدی چه کوم دوستان خپل منځ کښې په ګناه او نافرمانۍ کښې سره رايو ځای کيږی او شريعت نه خلاف څيزونو کښې يوبل سره امداد کوی (٨) د هغې ټولو دا حکم دې چه د قيامت په ورځ به د دغې مضبوط دوست په دوستۍ به ژړا کوی چنانچه مسند احمد ترمذی او ابوداؤد وغيره د حضرت ابی سعيد خدری ؓ نه روايت کړې دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿لاتصاحب الامؤمنا ولا يأكل مالك الاتقى﴾ [مظهری] (٩) څوک غير مسلم خپل ملګری مۀ جوړه وه او ستا مال دې په دوستۍ کښې صرف متقی خوری ] يعنی غير متقی سره دوستی مۀ کوه – او د ابی هريره ؓ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ المرء على دين خليله فلينظر من يخالل ﴾ [بخاری] (١٠) د هر انسان عادت دا وی چه د خپل دوست په دين او طريقه روان وی څکه د دوست جوړولونه اول په دې ښۀ غور کوی چه څوک دوست جوړوی؟- حضرت ابن عباس ؓ فرمائيلې دی چه رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو چه د مجلس په دوستانو کښې څوک زيات غوره دی ؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل ﴿من ذكركم بالله رؤيته وزاده فی علمكم منطقه وذكركم بالآخرة عمله [قرطبی]﴾ (١١) هغه څوک چه په ليدو سره ئې خدای را ياد يږی

---

(٦) تفسير البغوي تحت هذه الآية ج:٦ ص:٨٠، ٨١

(٧) تفسير القرطبي ج:١٣ص:٢٦

(٨) تفسير المظهري تحت هذه الآية ج:٧ص:٢٤

(٩) جامع الترمذي ، ابواب الزهد باب ماجاء في صحبة المؤمن ج:٢ ص:٦٥ و سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب من يؤمر ان يجالس ج:٢ص:٣١٦ ، مسند احمد ، مسند ابی سعيد رضي الله عنه رقم الحديث: ١١٦٤٦

(١٠) ماوجدت في صحيح البخاري ،لكن رواه في جامع الترمذي ، ابواب الزهد بابُ ج:٢ ص:٦٣ و مسند احمد ، مسند ابی هريرة رضي الله عنه رقم الحديث : ٨٢٤٩

(١١) تفسير القرطبي ج:١٣ص:٢٧ و مجمع الزوائد رقم الحديث : ١٧٦٨٦

او ورسره په خبرو کولو ستا علم زیاتیږي او د هغه عمل ته په کتو درته آخرت رایادیږي.
﴿وَقَالَ الرَّسُوْلُ يٰرَبِّ اِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوْا هٰذَا الْقُرْاٰنَ مَهْجُوْرًا۝﴾ وائی به رسول الله ﷺ اې زما پروردیګاره زما قوم دا کتاب پرېښې دې ] د رسول الله ﷺ دا شکایت به د الله تعالی په دربار کښې د قیامت په ورځ وی او که په دې دنیا کښې یې څه وخت کړې وو ؟ په دې باره کښې د تفسیر د امامانو قولونه مختلف دی دې پسې آیت ته چه اوګورو نو معلومیږی چه دا شکایت ئې په دنیا کښې څه وخت کړې وو چه د تسلئ کولو په غرض ورته په ورپسې آیت کښې فرمائیلي شوی دی چې ﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِيْنَ﴾ [ یعنی که ستاسو د شمن قرآن نه منی نو تاسو پرې صبر کوئ ځکه چه د الله تعالی همیشه د پاره دا طریقه پاتې شوې ده چه د هر پیغمبر څه مجرمان خلق دشمنان وو او پیغمبرانو ﷺ به پرې صبر کولو ] -

**عملاً قرآن کریم پرېښول هم لویه ګناه ده** :ښکاری دا چه د قرآن کریم د پرېښو نه مراد دې نه انکار کول دی چه هم د کافرانو کار دې خو په بعض روایتونو کښې دا هم راغلې دی چه کوم مسلمان په قرآن کریم باندې ایمان لری خو تلاوت ئې د سره نه کوی او په دې باندې په پابندئ سره عمل نه کوی هغه هم په دې حکم کښې داخل دې چنانچه د حضرت انس ﷺ په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلې دی - ﴿من تعلم القرآن وعلق مصحفه لم يتعاهده ولم ينظر فيه جاء يوم القيامة متعلقا به يقول لرب العالمين ان عبدك هذا اتخذني مهجورا فاقض بيني وبينه ذكره الثعلبي [قرطبي]﴾[١٢] [ یعنی د چا چه قرآن لوستل زده دی بیائې هم په کور کښې بندې آویزان کړې وی د دې د تلاوت پابندی نه کوی نه ئې په احکامو کښې غور کوی د قیامت په ورځ به قرآن کریم د هغه په غاړه کښې پرېوتې راځی او د الله تعالی په دربار کښې به شکایت کوی چه ستا دې بنده زه پرېښې وم اوس ته زما او د ده تر منځه معامله فیصله کړئ -

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَفَرُوْا | وَقَالَ الَّذِيْنَ | | | | |
| چې دحق نه ئې انکار اوکړو | اووائی هغه کسان | | | | |
| اودا کافران وائی چې | ........ | | | | |
| كَذٰلِكَ | جُمْلَةً وَّاحِدَةً | الْقُرْاٰنُ | عَلَيْهِ | | لَوْلَا نُزِّلَ |
| درانګې لړ لړ نازل شو | په یو ځل | دا قرآن | په | په ده باند | ولې نازل نه کړې شو |
| داځکه ........ | | قرآن پاک په یو ځل ولې نازل نشو | | | په دې سړی باندې[تول] |
| وَرَتَّلْنٰهُ | فُؤَادَكَ | بِهٖ | | | لِنُثَبِّتَ |
| او لړ لړ په آرام سره لوستلې دې مونږه دا قران | زړه ستا | په دې سره | | | دپاره ددې چې مونږه محکم کړو |
| اومونږ داکتاب | | | زړه مضبوط کړو | چې ددې په ذریعه مونږ ستا | [الولږ راغلو] |
| | | | | | تَرْتِيْلًا۝ |
| | | | | | په آرام آرام لوستلو سره |
| | | | | | په آرام سره لولوا |

[١٢]) تفسير القرطبي ج:١٣ص:٢٧ و روح المعاني تحت هذه الآية ج: ١٤ ص:٨٦

## آسان ترجمه قرآن

او دا کافر خلق وائی چه : په دهٔ پاندې ټول قرآن يو کرت ولې نه نازليږی؟(اې پيغمبره!) مونږ داسې په دې وجه کړی دی چه د دې په ذريعه ستا زړه مضبوط اوساتو او مونږ دا په تا پاندې په مزه مزه لوستلې دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ [اوكافران خلق داسې وائی چه ﴿لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْاٰنُ جُمْلَةً وَّاحِدَةً﴾ په دهٔ] پيغمبر [قرآن په يو وار ولې نازل نه کړې شو] مقصود ددې اعتراض نه دادې چه که دادالله تعالی کلام دې نو په دمه دمه دنازلولو ئې څه ضرورت وو په دې لړو لړو نازليدو خود اشبهه کيږی چه محمد ﷺ په خپله سوچ کوی لږلږ جوړوی وړاند ددې اعتراض جواب دې چه ﴿كَذٰلِكَ﴾[ دغسې ] لږ لږ [ په دې وجه ] مونږ نازل کړې [ دې ﴿لِنُثَبِّتَ بِهٖ فُؤَادَكَ﴾ چه مونږ ددهٔ په ذريعه ستازړه لره قوی کړو او] په دې وجه﴿وَرَتَّلْنٰهُ تَرْتِيْلًا﴾ [ مونږ دهٔ لره په دمه نازل کړې دې ] چنانچه د درويشتو کالو په زمانه کښې زورو پوره شو

## معارف او مسائل

دا هم هغه سلسله د کفارو او مشرکانو د اعتراضونو او جوابونو ده چه د اول سر د سورت نه راروانه ده د دې اعتراض په جواب کښې په مزه مزه د قران کريم د نازلولو يو حکمت دا بيان شوې دې چه مقصود پکښې ستاسو زړهٔ [مبارک] مضبوط لرل دی په مزه مزه د قرآن کريم په نازليدو سره د رسول الله ﷺ د زړهٔ مبارک مضبوطيدل د څو وجهو نه دی اول دا چه ياد لرل ئې ورته آسان شو که دومره لوئ کتاب په يو ځائ باندې په يو ځل نازل کړې شوې وې نو دا آسانی به درته نهٔ وه حاصله شوې په دې شان آسانئ سره ياد پاتې کيدو کښې به ئې پريشانی نهٔ پاتې کيده.
دويمه وجه ئې دا ده چه کله به کفارو په هغوئ ﷺ باندې څه اعتراض اوکړو يا به ئې ورسره څه نامناسبه حرکت اوکړو نو دغه وخت به د هغوئ د تسلئ د پاره آيت نازليدو که پوره [ سالم ] قرآن کريم په يو ځل نازل شوې وې او د راتلونکو تسليانو بيان پکښې هم شوې وی نو هغې پسې به دقرآن کريم د لټولو ضرورت وو او هغې ته د ذهن مخه کيدل هم عادتا ضروری نهٔ وو - دريمه دا چه په هره موقعه باندې د قرآن کريم څه برخه نازليدل د دې ثبوت او تازه ګواهی وه چه الله تعالی هغوئ سره دې چنانچه دا د هغوئ ﷺ د زړهٔ د مضبوطوالی لويه اډانړه ده په مزه مزه د قرآن کريم په نازلولو سره يواځې د هغوئ ﷺ زړهٔ مضبوط نهٔ وو بلکه د دې نور بې شماره حکمتونه هم وو لکه د هغې ځنې په سورت بنی اسرائيل : ﴿وَقُرْاٰنًا فَرَقْنٰهُ لِتَقْرَاَهٗ عَلَى النَّاسِ عَلٰى مُكْثٍ﴾(۱۳) کښې د څه بيان تير شوې دې [ بيان القرآن ](۱۴)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا يَأْتُوْنَكَ | بِمَثَلٍ | اِلَّا | جِئْنٰكَ | بِالْحَقِّ |
| اونه راوړی دوئ تاته | يوه نوی خبره | مګر | درکوو مونږ تاته | حق جواب |
| اوداخلق چې ستانه څنګه عجيبه سوال کوی | ........ | | | نومونږ به |

۱۳) ترجمه:- او مونږ ځائې په ځائې قرآن پاک کښې فصل (جدا والې) ساتلې دې چې تاسو دا د خلقو په وړاندې په رو رو انداز کښې لولئ.
۱۴) بيان القرآن ج:۸ ص:۴۸، ۴۹

| |
|---|
| وَاَحْسَنَ تَفْسِيْرًا۝ؕ اَلَّذِيْنَ يُحْشَرُوْنَ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ |
| اوښه بيان \| هغه خلق \| چې جمع کولې کيږي به \| په مخونو خپلو باند \| |
| هم تاته د هغې سم ښه او تفصيلي جواب ښايو \| دا هغه خلق دي چې پړمخ به دوزخ ته جمع کړې شي |
| اِلٰى جَهَنَّمَ ۙ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضَلُّ سَبِيْلًا۝ ۧ |
| دوزخ ته \| دغه کسان چې دي \| بد دي \| په لحاظ دخائې سره \| او ډير بې لارې دي \| په لحاظ دلارې سره |
| ددوئ خائې ډير خراب دې ...................\| اود لارې نه ډير بې لارې روان دی \| |
| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنَا مَعَهٗٓ اَخَاهُ |
| او خامخا ورکړو مونږ \| موسی ته \| کتاب \| او مقرر کړو مونږ \| دهغه سره \| رور دهغه \| |
| او مونږ حضرت موسی عليه السلام ته کتاب [تورات] ورکړې وو \| او دهغه سره مو دهغه رور |
| هٰرُوْنَ وَزِيْرًا۝ۚۖ فَقُلْنَا اذْهَبَآ اِلَى الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا |
| هارون \| يو مددګار [وزير] \| نو اووئيل مونږه \| چې لاړ شئ دواړه \| هغه قوم ته \| چې دروغ ئې ګڼړلي دي |
| هارون مددګار جوړکړې وو \| نو مونږ ورته اووئيل چې تاسو دواړه هغه خلقو ته ورشئ |
| بِاٰيٰتِنَا ؕ فَدَمَّرْنٰهُمْ تَدْمِيْرًا۝ؕ |
| ايتونه زمونږ \| نو هلاك كړل مونږ هغوئ \| په هلاکولو سره \| |
| چې زمونږ خبرې ئې دروغژنې ګڼړلې دي \| بيا مونږ داکافران هلاک کړل په هلاکولو سره \| |

## آسان ترجمه قرآن

**او کله چه دا خلق تا ته څه نوې خبره راوړي، مونږ تا ته (د هغې) صحيح صحيح جواب نور زيات وضاحت سره درکوو کوم خلق چه ګيرولو سره پړمخې د دوزخ طرف ته بوتللې شي. هغوی په بدترين مقام باندې دي، او دهغوی لاره د بدترينې ګمراهۍ لاره ده. بيشکه مونږ موسٰی عليه السلام ته کتاب ورکړې وو، او هغوی سره مو د هغوی ورور هارون عليه السلام د مددګار په طور مقرر کړې وو. پس مونږ وئيلې وو چه: تاسو دواړه هغه خلقو ته ورشئ چا چه زمونږ د نخښو تکذيب کړې دې آخر نتيجه دا شوه چه مونږ هغوی تباه کولو سره نيست او نابود کړل.**

## خلاصه تفسير

﴿وَلَا يَاْتُوْنَكَ بِمَثَلٍ اِلَّا جِئْنٰكَ بِالْحَقِّ﴾ [ او داخلق چه هرڅنګه عجيبه سوال تاته پيش کړی مګر مونږ] دهغې [ٹيك جواب ﴿وَاَحْسَنَ تَفْسِيْرًا۝ؕ﴾ او وضاحت ښه زيات تاته عنايت کوو] چه ته مخالفينو ته جواب ورکړې شې په ظاهره بيان دهغې قوی کول دزړۀ دې چه ذکر ئې ددې نه په وړاندې آيت کښې شوې دې چه په دمه دمه نازلولو کښې يو حکمت ستادلجمعي او تقويت دزړۀ دې چه هرکله دکفارو دطرف نه څه اعتراض راشئ نو هغه وخت دالله تعالی دطرف نه جواب نازلولې شی ﴿اَلَّذِيْنَ يُحْشَرُوْنَ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ اِلٰى جَهَنَّمَ ۙ﴾ [دا هغه خلق دی چه پړمخې به جهنم ته بوتلې شي ] يعنی په راښکو دوسره ﴿اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا﴾ [ داخلق دخائ په اعتبار سره هم بد تردی ﴿وَّاَضَلُّ سَبِيْلًا۝﴾ او په طريقه کښې هم ډير ګمراه دی ] تردې ځائ پورې درسالت نه په انکار دعذاب

وعدې او په قرآن داعتراضونو جواب وو اوس وړاند ددې په تائيد کښې دتيرې زمانې خنې واقعات نقل شوی دی چه په دې کښې رسالت نه دانکارکوونکو انجام او عبرتناک حالات ذکر دی او په دې کښې دنبی کريم ﷺ دپاره تسلي او دزړه دتقويت سامان دې چه دتيرو انبياؤ الله تعالی څنګه مدد فرمائيلي دې او په دښمنانو ئې غالب کړی دی دغه ستا دپاره هم کيدونکې دې په دې کښې ئې اولنۍ قصه دحضرت موسی ذکر کړه چه ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ﴾ [ او په تحقيق مونږ موسی ] ته کتاب ] يعني تورات [ ورکړې ووا ] ددې کتاب دملاويدو نه وړاندې ﴿وَجَعَلْنَا مَعَهُ أَخَاهُ هَارُونَ وَزِيرًا﴾ [ مونږ ددۀ سره ددۀ وررور هاورن ] [ لره ] ددۀ [مددګار جوړ کړې وو ﴿فَقُلْنَا اذْهَبَا إِلَى الْقَوْمِ الَّذِينَ﴾ بيا مونږ ] دواړو ته حکم وکړو چه [ دواړه تنه هغو خلقو ته ] دهدايت کولو دپاره [ لاړ شئ ﴿كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا﴾ چاچه زمونږ ] دتوحيد [دليلونه دروغژن کړی دی ] مراد ددې نه فرعون او ددۀ قوم دې چنانچه دا دواړه حضرات هلته ورسيدل او هغوی ئې پوهه کړل مګر هغوی اونه منله ﴿فَدَمَّرْنَاهُمْ تَدْمِيرًا﴾ [ پس مونږ هغو لره ] په خپل قهر سره [ بالکل برباد کړل ] يعني په درياب کښې غرق کړې شول

## معارف او مسائل

﴿الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا﴾ په دې کښې د فرعونيانو په باره کښې دا فرمائي چه هغوی زمونږه آيتونه په دروغه اوبلل هرکله چه دغې وخت پورې تورات په حضرت موسی عليه السلام باندې نازل شوې نۀ وو خکه دلته د آيتونو نه مطلب يا خو د توحيد عقلي دليلونه دی چه د هر انسان په پوهه کښې د هغۀ د عقل مطابق راتلې شی په دې کښې غور نۀ کولو ته په دروغه بلل اوفرمائيل يا د هغې روايتونو نه انکار کول ئې په دروغه بلل اوفرمائيل کوم چه د پيغمبرانو ﷺ نه نقل در نقل په هر يو قدم کښې راروان وو لکه قرآن کريم کښې فرمائی ﴿وَلَقَدْ جَاءَكُمْ يُوسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنَاتِ﴾ (۱۰) په دې کښې دا ښودلې شې چه د پخوانو پيغمبرانو ﷺ تعليم دې خلقو ته په نقل در نقل سره رارسيدلې دې [ بيان القرآن ] (۱۱)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | وَقَوْمَ نُوحٍ | لَّمَّا |
| [ او دغسې قوم دنوح عليه السلام ] کله چې [ | | | | |
| [او مونږ د نوح قوم هم هلاک کړو | | | | |
| كَذَّبُوا | الرُّسُلَ | أَغْرَقْنَاهُمْ | وَجَعَلْنَاهُمْ | لِلنَّاسِ |
| دروغ اوګڼل هغوئ [ رسولان [ نو ډوب کړل مونږ هغوئ [ او جوړ کړل مونږه هغوئ [ دپاره دخلقو [ | | | | |
| څه وخت چې هغوئ پيغمبران درغژن اوګڼل [ نومونږ ډوب کړل [ او دخلقو دپاره مود [عبرت] | | | | |
| آيَةً | وَأَعْتَدْنَا | لِلظَّالِمِينَ | عَذَابًا أَلِيمًا | وَعَادًا |
| يوه نښه دعبرت [اوتيار کړې دې مونږه [دپاره دظالمانو [عذاب دردناک [[او هلاک کړل مونږه] عاديان | | | | |
| نښه اوګرځوله [ او مونږ ظالمانو دپاره دردناک عذاب تيار کړې دې [ اودغه شان مو عاد | | | | |

(۱۰) ترجمه:-اوددې نه وړاندې يوسف تاسو ته دليلونه راوړی دی.
(۱۱) بيان القرآن ج:۸ ص:۵۰

وَّثَمُوْدَا وَاَصْحٰبَ الرَّسِّ وَقُرُوْنًا بَيْنَ ذٰلِكَ كَثِيْرًا۝ وَكُلًّا

او ثموديان | او كوهي والا | او [نور] قومونه | په منځ ددې كښې | ډير | او هر يو چې وو

او ثمود او د كوهي خلق او ددوئ ترمينځه نور ډير قومونه [تباه كړل] | او مونږ هر يو ته

ضَرَبْنَا لَهُ الْاَمْثَالَ ز وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيْرًا۝

بيان كړل مونږه | هغه ته | مثالونه [دتباه شوؤ خلقو] | او هريو | تباه كړو مونږه | په تباه كولو سره

عجيبه مثالونه بيان كړل | او [بيا] هريو مو [د انكار په وجه] بالكل برباد كړل

وَلَقَدْ اَتَوْا عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِيْٓ اُمْطِرَتْ مَطَرَ السَّوْءِ ط

او په تحقيق سره تير شوي دي هغوئ | په هغه كلي باندې | چې ورولې شوې وۀ پر | باران بد

او دا خلق د هغې كلي په زمكه تګ راتګ كوي چې [د كانړو] خراب باران پرې شوې وو

اَفَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرَوْنَهَا ج بَلْ كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ نُشُوْرًا۝

ايا نۀ وۀ هغوئ | چې ليدلې ئې وې دغه كلې | بلكه دي هغوئ | چې اميد نۀ لري | ددوباره ژوند

نو ايا دا خلق دغې كلي ته نه ګوري | [نا] بلكه دا خلق د دوباره ژوندي كيدو اميد نه ساتي

وَاِذَا رَاَوْكَ اِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ اِلَّا هُزُوًا ط اَهٰذَا الَّذِيْ

او هر كله چې | اووينې دا خلق تا | نو نۀ نيسي دوئ تا | مګر | په توقو سره | ايا دا هغه سړې دې

او هر كله چې دا خلق تا ته اوګوري | نو تا پورې توقې كوي | چې ايا دا هغه سړې دې چې

بَعَثَ اللّٰهُ رَسُوْلًا۝ اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا

چه راليږلې دې الله | په حيثيت د رسول | قريبه وه چې ده | ګمراهه كړي وې مونږه | د خدايانو زمونږ نه

الله ﷻ پيغمبر راليږلې دې | دې سړي خو به مونږ دخپلو معبودانو نه اړولي وو

لَوْلَآ اَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا ط وَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ حِيْنَ يَرَوْنَ

كه چرې صبر نۀ وې كړې مونږ | په هغې باندې | او زر به معلوم شي دوئ ته | كله چې اووينې

كه مونږ پرې كلك ولاړ نه وې | او هر كله چې دوئ عذاب اووينې | نو دوئ ته به معلومه

الْعَذَابَ مَنْ اَضَلُّ سَبِيْلًا۝ اَرَءَيْتَ مَنِ

عذاب | چې څوك ډير ورك كونكې دې | لارې لره | ايا تا غور كړې دې | په حال دهغه چا

شي | چې څوك دلارې نه بې لارې وو | ........... ايا تا هغه سړې ليدلې دې | اكوم چې

اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ ط اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ

چې نيولې ئې دې | خدائې خپل | خواهشاتو خپلو لره | ايا پس تۀ به شې | په هغه باندې

دخپل خواهش نه خپل معبود ﷻ جوړ كړې دې | نو ايا ته دهغه ذمه واري اخستې شې ؟

وَكِيْلًا۝ لا اَمْ تَحْسَبُ اَنَّ اَكْثَرَهُمْ

ساتونكې | چې منع ئې كړې دخواهشاتو نه | يا ګمان كوې تۀ | چې بيشكه ډير خلق ددوئ

ايا ستا دا خيال دې چې په دوئ كښې زيات كسان [سمعه خبره] اوري

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَسْمَعُوْنَ | اَوْ يَعْقِلُوْنَ ؕ | اِنْ هُمْ | اِلَّا | كَالْاَنْعَامِ | بَلْ هُمْ | |
| [ګنی] اوری خبره | یا دعقل نه کار اخلی | نه دی دوئ | مګر دی | پشان دخناور | بلکه دوئ | |
| یا پوهیږی | دوئ خو د څاروؤ په شان دی | | | بلکه دڅاروؤ نه هم | | |
| اَضَلُّ | سَبِيْلًا ؏ | | | | | |
| زیات ورک کونکی دی | نیغې لارې لره | | | | | |
| زیات بې لارې دی | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او د نوح علیه السلام قوم چه کله د پیغمبرانو تکذیب اوکړو نو مونږ هغوی غرق کړل، او هغوئ مو دخلقو د عبرت سامان جوړ کړو. او مونږ د ظالمانو دپاره یو دردناک عذاب تیار کړې دې هم دغه شان مونږ عاد او ثمود او اصحاب الرس لره او د هغوی ترمینځه ډیر نسلونه تباه کړل. په هغوی کښې د هرسړی د پوهې دپاره مونږ مثالونه ورکړل، او (چه کله هغوی او نه منله نو) ټول مو تباه کړل په تباه کولو سره او دا (کفارمکه) په هغه کلی باندې تیریږی چه په هغې باندې بدې طریقې سره (د کاڼړو) باران کړې شوې وو آیا دوی هغه کلی ته نه ګوری؟ (بیا هم دوی عبرت نه حاصلوی) بلکه د هغوی په زړه کښې د دویم ژوند امید پیدا نه هو او (اې پیغمبره!) چه کله دا خلق تا وینی نو د دوئ هیڅ کار د دې نه علاوه نه وی چه دوی په تا پورې ټوقې کوی چه آیا دا هغه صاحب دې کوم چه الله پاک پیغمبر رالیږلې دې؟ که مونږ د خپلو خدایانو (په عقیدت) باندې په مضبوطیا کلک نه وې نو دهٔ زمونږ په ګمراه کولو کښې هیڅ کمې نه وو پریخودلې. (کوم خلق چه دا خبرې کوی) چه کله هغوی ته عذاب په سترګو سره ښکاره شی نو بیا به هغوی ته پته اولګی چه څوک د لارې نه بالکل اوړیدلې دې؟ او وایه چه کوم انسان خپل خدائې خپل نفسانی خواهش جوړ کړې وی، نو (اې پیغمبره!) آیا ته د هغه ذمه داری اخستلې شې؟ یا ستا خیال دا دې چه په دوی کښې اکثر خلق اوری یا پوهیږی؟ نه! د هغوی مثال خو بس د څاروو په شان دې، بلکه دوی د هغې نه زیات ګمراهان دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَوْمَ نُوْحٍ﴾ [ اوقوم دنوح] عليه السلام [لره هم ] ددهٔ په زمانه کښې ﴿لَّمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ اَغْرَقْنٰهُمْ﴾ [ مونږ هلاك كړی دی ] دكومو چه دهلاكت او سبب دهلاكت بيان دادې چه [ هركله هغوی پيغمبرانو لره دروغژن كړل نو مونږ هغوی لره] په طوفان سره [ غرق كړل ﴿وَجَعَلْنٰهُمْ لِلنَّاسِ اٰيَةً ؕ﴾ اومونږ دغولره [دخلقود] عبرت د[پاره نښه جوړه كړه ] داخوئ ددنيا سزا شوه [ او] په اخرت كښې ﴿وَاَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ عَذَابًا اَلِيْمًا ۚ﴾ [ مونږ د] دغو [ ظالمانو دپاره دردناك سزا تياره كړې ده ﴿وَّعَادًا وَّثَمُوْدَا وَاَصْحٰبَ الرَّسِّ وَقُرُوْنًا بَيْنَ ذٰلِكَ كَثِيْرًا ۝﴾ اومونږ عاديانو اوثموديانو او خاوندانو دكوهی او ددوی په مينځ مينځ كښې ډيرو امتونو لره هلاك كړل ﴿وَكُلًّا ضَرَبْنَا لَهُ الْاَمْثَالَ ؗ﴾ اومونږه ] په ذكر شوو امتونو كښې [ دهريو د] هدايت د[پاره عجيبه عجيبه ] يعنی اثرناك او بليغ [ مضامين بيان كړل او] چه وئ نه منل نو ﴿وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيْرًا ۝﴾ [ مونږ تولو لره بالكل برباد كړل او دا] كفار دملك دشام په سفر كښې ﴿وَلَقَدْ اَتَوْا عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِيْۤ اُمْطِرَتْ مَطَرَ السَّوْءِ ؕ﴾ [ په دغه كلی تير شوی دی په

کوم چه بل قسم له گتې وروليې شوې وې ] مراد ترې نه کلي دقوم دلوط عليه السلام دي ﴿اَفَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرَوْنَهَا﴾ [ پس آيا دې خلقو دغو لره نه دی ليدلی ] بياهم عبرت نه اخلی چه کفر او دروغژن کول پريږدی دکوم په وجه چه قوم دلوط عليه السلام سزا موندلې وه پس خبره داده چه دعبرت نه اخستو وجه دانه ده چه گوند دغه کلي دوی نه وينی ﴿بَلْ﴾ [بلکه ] اصل وجه ددې چه ﴿كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ نُشُوْرًا﴾ [داخلق دبياژوندی کيدو يقين نه لری ] يعنی داخرت نه منکر دی په دې وجه کفر موجب دسزا نه گنړی او په دې وجه دهغو هلاکت لره دکفر وبال نه گنړی بلکه اتفاقی کارونه ئې گنړي دا وجه دعبرت دنه اخستوده ﴿وَاِذَا رَاَوْكَ اِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ اِلَّا هُزُوًا﴾ [ اوکله چه داخلق تالره وينی نو بس تاسره مسخرې شروع کړی ] او[ وائی چه ﴿اَهٰذَا الَّذِیْ بَعَثَ اللّٰهُ رَسُوْلًا﴾ آيادا] بزرگ [دې کوم لره چه الله تعالی رسول جوړ کړې راليږلې دې] يعنی داسې غريب سړې رسول نه دې پکار که رسالت څه شې وې نو څوك رئيس مالداريکار وو پس دارسول نه دې البته ﴿اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا﴾ [ ددې سړی] دجادو بيانئ خو داحال دې چه دهٔ [ خو به مونږ دخپلو معبودانو نه اړولی وو ﴿لَوْلَآ اَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا﴾ که مونږ په دوی باند ] په مضبوطئ سره [قائم نه وې ] يعنی مونږ خو په هدايت باند يو او دهٔ خو مونږ لره دگمراه کولو کوشش کولو الله تعالی ددوی درد دپاره فرمائی چه داظالمان اوس خو خپل ځان لره په هدايت او زمونږ پيغمبر ته گمراه وائی [او] دمرگ نه پس ﴿وَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ﴾ [ زر به دوی ته معلومه شی ﴿حِيْنَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ مَنْ اَضَلُّ سَبِيْلًا﴾ هرکله چه عذاب ووينی چه کوم سړې گمراه وو] آيا دغه خلق په خپله يا پيغمبر؟ نعوذ بالله. په دې کښې ددوی دعبثو اعتراضونو جواب طرف ته هم اشاره ده چه په نبوت اومالدارئ کښې څه جوړ نشته دنه مالداريدو په سبب دنبوت نه انکار دجهالت اوگمراهئ نه سوا هيڅ نشته مگر په دنيا کښې چه څه غواړی خيالات دپخوی مگر په قيامت کښې به دهر څه حقيقت ښکاره شی ﴿اَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ﴾ [ اے پيغمبره ته دهغه سړی حالت هم وينې کوم چه خپل خدائې خپل خواهش نفسانی لره جوړ کړې دی ﴿اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ وَكِيْلًا﴾ پس آيا ته دده نگرانی کولې شی ﴿اَمْ تَحْسَبُ اَنَّ اَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُوْنَ اَوْ يَعْقِلُوْنَ﴾ يا ته خيال کوې چه په دوی کښې اکثر اوري اوپوهيږی ] مطلب دادې چه تاسو ددوی په هدايت نه موندومه غمژن کيږی ځکه چه تاسو په دوی مسلط نهٔ ئې چه خامخا به دوی په لاره کوې اومه ددوی نه دهدايت توقع ساتئ ځکه چه نه دوی حقه خبره اوري او نه ئې عقل شته چه غورپرې وکړی ﴿اِنْ هُمْ اِلَّا كَالْاَنْعَامِ﴾ [ دوی خو محض دځار وو په شان دی ] چه نه دوی خبره اوري اونه پرې پوهيږی ﴿بَلْ هُمْ اَضَلُّ سَبِيْلًا﴾ [بلکه داخو دځاروو نه هم بې لارې دی ] ځکه چه ځاروی ددين داحکامو مکلف نه دی نو دهغوی نه پوهيدل بد نه دی او دوی مکلف دی بيا هم نه پوهيږی بيا داچه که هغوی ددين دضرور تونو معتقد نه دی نو منکر خو هم نه دی او دوی خومنکر دی او په [ ارءيت الخ] کښې ددوی دگمراهئ منشاء هم بيان کړه چه په څه شبهه او دليل سره دوی ته اشتباه نه ده شوې بلکه سبب ئې دخواهشاتو تابعداری ده

## معارف او مسائل

د نوح عليه السلام د قوم په باره کښې دا فرمائيل چه هغوئ رسولانو [گنړو] لره دروغژن اوبلل حالانکه په دغې زمانه کښې هم دغه يو رسول [ حضرت نوح عليه السلام] وو د دې مطلب دا دې چه يو رسول لره

دروغژن بلل تولو رسولانو لره دروغژن بلل څکه دي چه د دين اصول د ټولو شريک [او يوشي] دي .

﴿وَأَصْحَٰبَ ٱلرَّسِّ﴾ رس، په لغت کښې کچه کوهی ته وئيلې شي . په قرآن کريم او په صحيح حديث کښې د دې خلقو تفصيلی حالات نۀ دی بيان شوي په دې باره کښې اسرائيلی روايتونه مختلف دی غوره روايت پکښې دا دې چه د ثمود قوم نه پاتې شوې خلق وو چه په يو کوهی باندې آباد وو [کذا في القاموس والدر عن ابن عباس ﷺ] په دوئ باندې کوم قسم عذاب راغلې وو نۀ په قرآنی نص کښې ددې څه بيان راغلې دې او نۀ په يو صحيح حديث کښې ئې څه بيان شته [بيان القرآن] ([۱۷])

**د شريعت نه خلاف خواهشاتو تابعداری کول يو قسم بت پرستی ده** :: ﴿أَرَءَيْتَ مَنِ ٱتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ﴾ په دې آيت کښې فرمائی چه چا د اسلامی شريعت نه خلاف د خپلو خواهشاتو تابعداری اوکړه ګويا کښې هغۀ خپل خواهشات معبودان جوړ کړل چنانچه حضرت ابن عباس ﷺ فرمائيلی دی چه د شريعت نه خلاف نفسانی خواهشات هم يو بت دې چه عبادت ئې کولې شی بيا ئې په دليل کښې دا آيت پيش کړو [قرطبی ] ([۱۸])

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ تَرَ | إِلَىٰ رَبِّكَ | كَيْفَ | مَدَّ | |
| آيا نه ګورې تۀ | رب خپل ته | چې څرنګې ئې | اخور کړې دې | |
| آيا ته دخپل رب [کارونو] ته نه ګورې | چې هغه څنګه سيورې | | | |
| ٱلظِّلَّ | وَلَوْ شَآءَ | لَجَعَلَهُۥ | سَاكِنًا | ثُمَّ |
| سورې | او که غوښتلې هغه | نو ګرزولې به ئې وو دغه سورې | ولاړ په يو ځائې | بيا |
| راخور کړې دې [که هغه غوښتلې نو دغه سيورې به ئې په ځائې ايسار کړې وې] | بيا | | | |
| جَعَلْنَا ٱلشَّمْسَ | عَلَيْهِ | دَلِيلًا | ثُمَّ قَبَضْنَٰهُ | |
| جوړ کړو موږه نمر | په هغې باند | دليل [چې معلوميږی] | بيا راغونډوؤ موږ دا سورې | |
| موږ نمر په دغه سيورې باندې يوه نښه مقرر کړه | بيا دا سيورې | | | |
| إِلَيْنَا | قَبْضًا | يَسِيرًا | وَهُوَ ٱلَّذِى | جَعَلَ |
| ځان خپل ته | په راغونډولو | آسانو سره | او هغه [الله] هغه ذات دې | چې جوړه ئې کړه |
| موږ خپل طرفته راټولوو | ...... او الله ﷻ هغه ذات دې چې ستاسو دپاره ئې شپه د پردې | | | |
| لَكُمُ | ٱلَّيْلَ | لِبَاسًا | وَٱلنَّوْمَ | سُبَاتًا |
| ستاسو دپاره | شپه | جامه | او خوب | ذريعه دآرام |
| وَجَعَلَ ٱلنَّهَارَ | نُشُورًا | | | |
| او جوړه ئې کړه ورځ | وخت دپاسيدو | | | |
| خيز او خوب دآرام ذريعه او ورځ د ګرځيدو دپاره جوړه کړې ده | | | | |

[۱۷] ) بيان القرآن ج:۸ ص:۵۰
[۱۸] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:۱۳ص:۳۵

وَهُوَ الَّذِیْٓ اَرْسَلَ الرِّیٰحَ بُشْرًا بَیْنَ یَدَیْ رَحْمَتِهٖ ۚ وَاَنْزَلْنَا
او الله هغه ذات دې | چې رالیږي هواګانې | زیرې | وړاندې | درحمت خپل نه | او نازلوؤ مونږه
او الله هغه ذات دې چې هواګانې دخپل رحمت [یعنی باران] نه وړاندې دزیرې په طور رالیږي

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوْرًا ۙ لِّنُحْیِۦَ بِهٖ بَلْدَةً
داسمان نه | اوبه | پاکې | دپاره ددې چې ژوندې کړو مونږه | په دې اوبو سره | ښار
او مونږه آسمان نه پاکیزه اوبه راوروو ............... | چې ددې په ذریعه یو مړه شوې [اوچه بنجره] زمکه

مَّیْتًا وَّنُسْقِیَهٗ مِمَّا خَلَقْنَآ اَنْعَامًا وَّاَنَاسِیَّ
مړ | او چې اوڅکوؤ مونږ دا اوبه | په هغوئ باندې | چې پیدا کړې دی مونږه | څناور | او انسانان
بیا راژوندئ کړو | او دخپل پیدا کړې مخلوق نه ډیر څاروي او بنیادم پرې خړوب

كَثِیْرًا ۝ وَلَقَدْ صَرَّفْنٰهُ بَیْنَهُمْ لِیَذَّكَّرُوْا ۫
ډیر | او باربار کوؤ مونږ دا کار | په منځ ددوئ کښې | دپاره ددې چې سبق حاصل کړي |
کړو | او مونږه دا [اوبه] په دوئ کښې په مختلفو طریقو سره تقسیموو ادې دپاره چه دوئ غور اوکړي

فَاَبٰٓی اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا ۝
نو انکار اوکړو [دصحیح لارې اختیارولونه] | زیاتو خلقو | مګر وې نه کړو انکار دکفر او ناشکرئ نه
خو بیا هم زیات خلق د ناشکرئ کولو نه بغیر نه پاتې کیږي |

وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا فِیْ كُلِّ قَرْیَةٍ نَّذِیْرًا ۫ۖ فَلَا تُطِعِ
او که غوښتلې مونږ | نو لیږلې به وې مونږ | په هر کلي کښې | یو یرونکې | نو مه منه خبره |
او که مونږ غوښتلې نو په هر یو کلي کښې به مو یو یرونکې لیږلې وو | نو ته دکافرانو

الْكٰفِرِیْنَ وَجَاهِدْهُمْ بِهٖ جِهَادًا كَبِیْرًا ۝ وَهُوَ
دکافرانو | او جهاد کوه ددوئ سره | په ذریعه ددې قران | جهاد | لوئ | او هغه
خلقو خبرې هیچرې مه منه | او دقرآن پاک په ذریعه هغوئ سره ښه کلکه مقابله اوکړه

الَّذِیْ مَرَجَ الْبَحْرَیْنِ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَّهٰذَا
هغه ذات دې | چې روان کړي ئې دي | دوه دریابونه | دا یو | خوږ | مزیدار دې | او دا بل
او الله هغه ذات دې | چې دوه دریابونه ئې یو ځائې روان کړي دي | چې یو خوږ دې تنده وژني

مِلْحٌ اُجَاجٌ ۚ وَجَعَلَ بَیْنَهُمَا بَرْزَخًا وَّحِجْرًا
تریو او تریخ دې | او جوړه کړې ئې ده | په منځ ددواړو کښې | پرده | او بند |
او یو مالګین دې | چې د دواړو ترمینځه ئې یوه پرده او یو مضبوط بند پیدا کړې دې

مَّحْجُوْرًا ۝ وَهُوَ الَّذِیْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا
منع کونکې یو بل لره دګډوډیدو نه | او هغه هغه ذات دې | چې پیدا ئې کړو داوبو نه | انسان |
او الله ﷻ هغه ذات دې | چې داوبو [دڅاڅکي] نه ئې انسان پیدا کړو | بیا ئې

فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّصِهْرًا ۗ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيْرًا ﴿٥٤﴾

پس جوړ ئې کړو هغه | نسب والا | او سخر ګنئ والا | او دې رب ستا | قدرت والا |

هغه دخپلې کورنئ اوسخرګنئ خاوند کړو | اوستارب [په هره خبره] قادر دې

وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُهُمْ

او عبادت کوي دا خلق | بې دالله نه | دهغه څیزونو | چې نفع نهٔ شي رسولې هغوئ ته |

او دوئ دالله ﷻ نه سوا د هغه چا عبادت کوي | چې نه ورته نفع رسولې شي

وَلَا يَضُرُّهُمْ ۗ وَكَانَ الْكَافِرُ عَلٰى رَبِّهٖ

اونهٔ ضرر رسولې شي هغوئ ته | او دې کافر | په مقابله | درب خپل کښې |

اونه زیان | اوکافرانو هسې هم دخپل رب قدرتونو ته شاکړې ده

ظَهِيْرًا ﴿٥٥﴾ وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ﴿٥٦﴾ قُلْ

مدد ګار [دهر باغی] | اونهٔ ئې لیږلې مونږ ته | مګر | زیرې ورکونکې | او یرونکې | ورته اووایه

اومونږ خو ته خوشخبری رسوونکې اوویرونکې لیږلې ئې | ته ورته اووایه

مَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ اِلَّا مَنْ شَآءَ اَنْ يَّتَّخِذَ

نهٔ غواړم زهٔ ستاسو نه | په دې کار باندې | څه اجر | مګر دا | چې څوك غواړی | چې اونیسی |

زه تاسو نه په دې تبلیغ څه اجر نه غواړم | مګر صرف هغه چې څوک غواړی | هغه دې خپل

اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا ﴿٥٧﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِيْ لَا يَمُوْتُ

طرف درب خپل ته | لاره | او توکل اوکړه | په هغه ژوندی الله باندې | چې نهٔ مری |

رب ته نیغه لارا اونیسی | اوته په هغې ژوندی [الله ﷻ] باندې باور کوه | چې هیڅرې نه مری

وَسَبِّحْ بِحَمْدِهٖ ۗ وَكَفٰى بِهٖ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِيْرًا ﴿٥٨﴾

او تسبیح وایه | دحمد دهغه سره | او کافی دې هغه | په ګناهونو دبندګانو خپلو باند | بنهٔ خبردار |

دهغه په تعریف کښې تسبیح لوله | او هغه دخپلو بندګانو دګناهونو نه بنه خبر دې

اَلَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا

هغه الله | چې پیدا ئې کړل | آسمانونه | او زمکه | او هغه چې په منځ ددې دواړو کښې دی

[الله] هغه ذات دې چې آسمانونه اوزمکه او د دې په مینځ کښې چه څه دی هغه ئې په

فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ۚ اَلرَّحْمٰنُ فَسْئَلْ بِهٖ

په شپږو ورځو کښې | بیا برابرشو په عرش باندې | رحمان | پس تپوس اوکړه | ددهٔ دشان |

شپږو ورځو کښې پیدا کړل | بیا هغه په عرش باندې قائم شو | اوهم هغه رحمان دې | نودهغه په حق

خَبِيْرًا ﴿٥٩﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اسْجُدُوْا لِلرَّحْمٰنِ قَالُوْا

دپوهه سړی نه | او کله چې | اووئیلې شي | دوئ ته | چې سجده اوکړئ | دې رحمان ته | نو وائی |

دچا پوهه نه پوښتنه اوکړه | اوهرکله چې دوئ ته اووئیلې شي چې تاسو رحمان ته سجده اوکړئ | نودوئ وائی

وَمَا الرَّحْمٰنُ ۚ اَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ

اوڅه دي رحمان | آیا مونږ به سجده کوؤ | هغه ته | چې ته حکم کوې مونږ ته | او زیات کړل دې حکم دوئ لره

چې رحمان څوک دې ؟! آیا مونږ هغه چاته سجده اوکړو | چادپاره چه ته مونږ ته د سجدې حکم راکوې

نُفُوْرًا ۩ تَبٰرَكَ الَّذِيْ جَعَلَ فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا

په لحاظ دنفرت سره | ډیر برکت والا دې | هغه ذات | چې جوړ ئې کړل | په آسمان کښې | برجونه |

اودوئ په نفرت کښې زیاتوی | نود برکت خاوند دې هغه ذات | چې آسمانونو کښې ئې ستوری جوړ کړل

وَّجَعَلَ فِيْهَا سِرٰجًا وَّقَمَرًا مُّنِيْرًا ۞ وَهُوَ الَّذِيْ

او پیدا ئې کړه | په هغې کښې ډیوه [نمر] | او سپوږمۍ | روښانه | او هغه | هغه ذات دې |

او په هغې کښې ئې یوه ډیوه [نمر] اوروښانه سپوږمۍ جوړه کړه | اوهم هغه ذات دې

جَعَلَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ اَرَادَ

چې وې گرزول | شپه | او ورځ | یو بل پسې راتلو نکې | دپاره دهغه چا | چې اراده لری |

چې شپه او ورځ ئې په یوبل پسې ناڅبان گرځولی دی | [دانخښې] دهغه چا دپاره دی

اَنْ يَّذَّكَّرَ اَوْ اَرَادَ شُكُوْرًا ۞

چې نصیحت واخلی | یا اراده لری | دشکر ایستلو |

چې نصیحت حاصلول غواړی |

## آسان ترجمه قرآن

آیا تا دخپل رب (قدرت) نه دې لیدلې چه څنګه سورې خورَوی؟ او که هغه غوښتلې نو په یو ځائې به ئې اودرولې وې. بیا مونږ نمر د هغه دپاره رهنما جوړ کړې دې. بیا مونږ په لږه لږه هغه خپل طرف ته راټولوو. اوهم هغه دې چه ستاسو دپاره ئې شپه جامه جوړه کړه، او خوب ئې آرام اوګرځولو، او ورځ ئې ددوبارہ پاسیدو ذریعه جوړه کړه. او هم هغه دې چا چه دَخپل رحمت (یعنی باران) نه مخکښې هواګانې راولیږلې چه (د باران) د زیری سره راځی، او مونږ د آسمان نه پاکې اوبه راوَرولې دی، چه مونږ د دې په ذریعه مړې زمکې ته ژوند ورکړو، او په خپل مخلوق کښې ډیر څاروی او انسانان په دې سره خړوب کړو. او مونږ د خلقو د فائدې دپاره هغه (اوبه) اړولی راړولی دی، چه هغوی سبق حاصل کړی. خو اکثرخلق د ناشکرئ نه سوا د هرې خبرې نه انکاری دی او که مونږ غوښتلې نو په هره آبادئ کښې به مو یو یو خبرونکې (پیغمبر) رالیږلې وې. لهٰذا (اې پیغمبره!) ته د دې کافرانو وینا مهٔ منه او د قرآن کریم په ذریعه د دوئ خلاف په پوره طاقت سره جدوجهد کوه. او هم هغه ذات دې چا چه دوه دریابونه داسې یو ځائې کړی دی چه یو خوږ دې چه په هغې سره سکون ملاویږی، او یو مالګین دې، سخت تریخ. او د دې دواړو ترمینځه ئې یو پرده او داسې بندیز حائل کړې دې چه (په دواړو کښې) یو ئې هم نه شی عبور کولې او هم هغه دې چه د اوبو نه ئې انسان جوړ کړو بیا ئې هغه ته د نسب او سخر ګنئ رشتې ورکړې، او ستا رب د لوئې قدرت والا دې. او هم دا خلق دی چه الله پاک لره پریښودلو سره دهغه څیزونو عبادت کوی

کوم چه نه هغوی ته فائده رسولې شي، او نه نقصان. او کافر انسان د خپل رب مخالفت ته ملا تړلې ده او (اې پيغمبره!) مونږ ته د بل څه کار دپاره نه، بلکه دې دپاره ليږلې ئې چه ته خلقو ته زيرې ورکړې، او خبردار ئې کړې اووايه چه: زه په دې کار باندې ستاسو نه څه مزدوري نه غواړم، هاؤ! کوم سړي چه غواړي چه خپل رب ته د رسيدلو لاره اختيار کړي (نو هم دا زما اجرت دې). او ته په هغه ذات باندې اعتماد ساته چه ژوندې دې، چاته چه به کله هم مرګ نه راځي، او هم د هغه د حمد سره تسبيح کوه، هغه د خپلو بندګانو د ګناهونو د خبر لرلو دپاره کافي دې هغه ذات چا چه په شپږو ورځو کښې آسمانونه او زمکه جوړ کړل، بيا هغه په عرش باندې استواء اوفرمائيله هغه رحمٰن ذات دې، په دې وجه د هغه شان په باره کښې د يو علم والا نه تپوس اوکړه. او کله چه دې خلقو ته اووئيلې شي چه رحمٰن ته سجده اوکړئ نو دوي وائي چه: رحمٰن څه ته وائي؟ آيا ته چه څوک يادوې مونږ دې هغه ته سجدې کوو؟ او زياتوي دا خبره د هغوي نفرت. ډير لوئې شان دې دهغه چا چه په آسمان کښې ئې برجونه جوړ کړل او په هغې کښې ئې يو روښانه ډيوه او نُور خورونکې سپوږمۍ پيدا کړه. او هم هغه ذات دې چا چه شپه او ورځ داسې جوړه کړې ده چه هغه په يو بل پسې شاته راځي، (خو دا ټولې خبرې) د هغه چا دپاره (فائده مند دي) چه د نصيحت حاصلولو اراده لري يا شکر کول غواړي.

## خلاصه تفسير

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ﴾ [ اے مخاطبه آياته ] د [خپل پروردګار] دې قدرت [ته نه ګورې چه هغه ] هر کله چه نمر دافق نه راخيژي دغه وخت ﴿كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ﴾ دولاړو څيزونو [ سوري لره څنګه ] ترلرې پورې [ خورکړې دې ] څکه چه دنمرختو په وخت کښې دهرشي سورې اوږد وي ﴿وَلَوْ شَاءَ لَجَعَلَهُ سَاكِنًا﴾ [اوکه هغه غوښتلې نو دا به ئې په يو حالت باند ولاړ ساتلو ] يعني دنمر په راوچتيدو به نه کميدلو داسې چه ددومره لرې پورې به ئې دنمر پلوشې نه راپرېښودې څکه چه دنمردپلوشو دزمکې حصوته رسيدل په اراده دحق سره دی نه چه په جبری طور مګر مونږ په خپل حکمت سره دا په يو حالت نه دې ساتلې بلکه مونږ اوږديدونکې جوړ کړو ﴿ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيلًا﴾ [ بيا مونږ نمر لره ] يعني دده افق ته نزدې کيدو او بيا دافق نه اوچتيدولره [ په دې ] دسوری په اوږديدو او لنډيدو [ باندې] يوه ظاهری [ نښه مقررکړه ] مطلب دادې چه اګر چه درنړا او سورې او ددې دکميدو او زياتيدو اصل علت دالله تعالی په اراده او مشيت باند دی نمر يا بل شي حقيقي موثرنه دې مګر الله تعالی په دنيا کښې دپيداکيدونکو څيزونو دپاره څه ظاهری اسباب جوړ کړی دی او داسبابو سره ئې ددوی دمسبباتو داسې رابطه قائمه کړه چه دسبب په تغير سره په مسبب کښې تغير راځي [ بيا ] ددې ظاهری تعلق په وجه ﴿ثُمَّ قَبَضْنَاهُ إِلَيْنَا قَبْضًا يَسِيرًا﴾ [ مونږدې ] سوری [لره خپل طرف په رو رو راونغښتلو] يعنی څومره چه دغه نمر راپورته شودغه سورې زائل او ورك شو او چونكه ددغه سورى وركيدل محض په قدرت الهی سره بې دشرکت دغير نه دې او دعامو خلقو دنظر نه دپناه کيدو باوجود په علم الهی کښې غائب نه دې په دې وجه ئې دا اوفرمائيل چه خپل طرف ته راغونډ کړو ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاسًا﴾ [ او هغه ] الله تعالی [داسې دې چاچه ستاسو دپاره شپې لره دپردې شي ﴿وَالنَّوْمَ سُبَاتًا﴾ او خوب لره دراحت شي جوړ کړو ﴿وَجَعَلَ النَّهَارَ نُشُورًا﴾ او ورځې لره ئې ] په دې

اعتبار سره چه اوده کیدل مشابه دمرګ دی اود ورځې وخت دپورته کیدو دې ګویا [ دژوندی کیدو وخت جوړ کړو ﴿وَهُوَ الَّذِیْٓ اَرْسَلَ الرِّیٰحَ﴾ او هغه ] الله تعالى [ داسې دې چه دخپل باران درحمت نه وړاند هواګانو لره رالیږی ﴿بُشْرًۢا بَیْنَ یَدَیْ رَحْمَتِهٖ﴾ چه هغه ] دباران دامید وركولو دپاره [ خوشخبری وركوی ﴿وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوْرًا﴾ اومونږ داسمان نه اوبه ور وو كومې چه دپاك صاف كولو شې دې ﴿لِّنُحْیِ۠یَ بِهٖ بَلْدَةً مَّیْتًا﴾ چه ددې په ذريعه په مړه مزكه كښې روح واچوو ﴿وَّنُسْقِیَهٗ مِمَّا خَلَقْنَآ اَنْعَامًا وَّاَنَاسِیَّ كَثِیْرًا﴾ او په خپل مخلوقات كښې ډيرو څاروو او ډيرو بنيادمو لره سيراب كړو ﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنٰهُ بَیْنَهُمْ﴾ او مونږدغو ] اوبو [لره ] په قدرت دمصلحت [ ددې خلقو په مينځ كښې تقسيموو ﴿لِیَذَّكَّرُوْا﴾ددې دپاره چه خلق غور وكړی ] چه داتصرفات كول ديولوئ قادر دی چه هغه مستحق دعبادت دې [ پس ] پكار وو چه غور ئې كړې وې او دهغه حق ئې ادا كولې ليكن ﴿فَاَبٰۤی اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا﴾ [ اكثر خلق بغير دناشكرئ نه دی پاتې شوی ] چه په دې كښې د ټولونه زيات كفر اوشرك دې ليكن ته ددوی او خاصكر داكثرو خلقو ناشكری چه وويني يا واوري نو په تبليغ كښې دكوشش كولو نه همت مه بائله چه زه به يوازې داټول ځنګه سرته ورسوم بلكه ته يوازې خپل كاركوه ځكه چه تالره يوازې دنبی جوړولو نه په خپله زمونږ مقصود دادې چه ستا اجر اوقرب زيات شی ﴿وَلَوْ شِئْنَا﴾[ اوكه مونږ غوښتلې نو] تانه علاوه په دې زمانه كښې ﴿لَبَعَثْنَا فِیْ كُلِّ قَرْیَةٍ نَّذِیْرًا﴾ [ په هركلی كښې به يويو پيغمبر ليږلې وو اويوازې به مو تاته ټول كارنه حواله كولو ليكن چونكه ستا اجر زياتول مقصود دی په دې وجه مونږ داسې ونه كړل نو په دې طور سره دومره كارتاته سپارل دالله تعالى نعمت دې [ پس] ددې نعمت په شكر كښې ﴿فَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِیْنَ﴾[ ته دكافرانو دخوشحالۍ كارمه كوه ] يعنی كافران به په دې سره خوشحاله وی چه تبليغ نه وی ياكم وی او ددوی ازادئ ته څه ونه ونيلې شی ﴿وَجَاهِدْهُمْ بِهٖ جِهَادًا كَبِیْرًا﴾ [ او په قرآن ] كښې چه كوم دليلونه دحق ذكر دی لكه په دې مقام چه دليلونه دتوحيد ارشاد شوی دی په دې [ سره ددوی په زور شور سره مقابله كوه] يعنی عام اومكمل دعوت او تبليغ كوه يعنی ټولو ته وايه او باربار وايه اوهمت قوی ساته لكه چه تراوسه تاكولو په دې قائم اوسه وړاندې بيان دې د دليلونو دتوحيد ﴿وَهُوَ الَّذِیْ مَرَجَ الْبَحْرَیْنِ﴾[ او هغه داسې دې چاچه دوه دريابونه ] صورتا [ملاؤ كړل ﴿هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ﴾ چه په دې كښې ] د[ يو] اوبه [خوږې سكون وركوونكې دې ﴿وَّهٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ﴾ او] د [يو] اوبه [ تروې ترخې دی او] سره ددې چه په صورت كښې يوځائ دی په حقيقت كښې ﴿وَجَعَلَ بَیْنَهُمَا بَرْزَخًا﴾[ددوی په مينځ كښې ] په خپل قدرت سره [يوه پرده او] دحقيقی يو ځائ كيدونه ﴿وَّحِجْرًا مَّحْجُوْرًا﴾[ يوقوی مانع كيښودو] كوم چه په خپله پټ غيرمحسوس دې مګر اثرئ په دواړو اوبو كښې په خوند كښې ليدې اومحسوس كيدې شی مراد ددې دوؤ دريابونونه هغه موقعې دی كوم ځائ چه دخوږو اوبو ولې اونهرونه بهيږی اوسمندرته غورزيږی هلته سره ددې چه دپاسه نه ددواړو سطح يوه معلوميږی ليكن دالله تعالى په قدرت سره په دې كښې يو داسې حد فاصل وی چه كه ددغه پيوست شوی ځائ ديوطرف نه اوبه واخلې نو خوږې وی او دبل طرف نه كوم چه دې اولنی طرف ته بالكل نژدې وی اوبه واخلې نو تروې وی په دنيا كښې چه چرته په كوم ځائ كښې دخوږو اوبو نهرونه سمندرته غورزيږی هلته داليدې شی چه ترميلونو پورې خوږې اوتروې اوبه جداجدا روانې وی ښی طرف ته خوږې اوكينږ[چپه]طرف ته تروې ترخې بيا لاندې باندې خوږې

او ترخې اوبه جدا جدا موندې شي حضرت مولانا شبیراحمد عثماني رحمه الله ددې آیت لاندې لیکلي دي چه په بیان القرآن کښې ددوه معتبر بنګالي عالمانوشهادت نقل دې چه دارکان نه ترچا ټګام پورې ددریاب شان دادې چه ددې دواړه جانبه بالکل جداجدا قسم دوه دریابونه په نظر راځي چه دیواوبه سپینې دي او دبل تورې په تورو کښې دسمندر په شان طغیانی او چپې طوفاني راځي او سپینې بالکل په ارام وي کشتئ په سپینو کښې چلیږي او دواړو په مینځ کښې یو لیکه شان برابر تللې ده کوم چه ددواړو دپیوست کیدو ځائ دې خلق وائي چه سپینې اوبه خوږې دي او تورې ترخې دي اه. اوماته دباریسال څښې طالبانو بیان کړې دې چه په باریسال کښې دوه ولې دي کومې چه دیو دریاب نه راوتلې دي د یوې اوبه بالکل ترخې دي او دیوې ډیرې خوږې او خوندناکې دي دلته په ګجرات کښې راقم الحروف چه کوم ځائ نن صبا مقیم دې ډابیل سملك ضلع سورت ] سمندر دهلته نه تقریبا دلس دولس میله په فاصله باندې دې ددغه ځائ په ولو کښې برابر مدو جزر جوار باټا [پورته کښته] کیږي ډیرو ثقه خلقو بیان کړې دې چه ددریاب اوچتیدو په وخت کښې چه کله دسمندر اوبه په ولو کښې راشي نو دخوږو اوبو دپاسه ترخې اوبه ډیرې په زور سره ورو خیژي لیکن دغه وخت هم دواړه اوبه نه یو ځائ کیږي دپاسه ترخې اوبه وي لاند خوږې چه کله دریاب ښکته شي نو دپاسه ترخې اوبه لاند وغور زیږي او خوږې اوبه هم په خپل حال خوږې پاتې شي والله اعلم.

ددې شواهدو په کتوسره دایت مطلب بالکل واضح دې یعني د الله تعالی قدرت ته وګورئ چه دخوږو او ترخو اوبو دواړه دریابونه چرته ناچرته دملاویدو باوجود هم څنګه دیو بل نه جدا وي ﴿وَهُوَ الَّذِىْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا﴾ (۱۹) [ او هغه داسې ذات دې چاچه داوبو نه ] یعنی نطفې نه [ بني آدم لره پیداکړو ﴿فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّصِهْرًا﴾ بیائ ده لره خاندان والا او سخرګنئ والا جوړکړو ] چنانچه پلارنیکه شرعي اومورنیا وغیره عرفي خاندان دې دکوموسره چه دپیدائش سره تعلقات کیږي بیا دوادۀ نه پس دسخرګنئ رشتې پیداشي داهم دقدرت دلیل دې چه نطفه څه شې وو بیائ ترې نه څه جوړکړل چه هغه دومره ځرمن اووینې والا شوه اونعمت هم دې چه په دې تعلقاتویاندې دیوبل سره داوسیدو او امداد تعمیر قائم دې [ او] اے مخاطبه ﴿وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيْرًا﴾ [ ستا پروردګار لوې قدرت والا دې او] سره ددې چه الله تعالی په خپل ذات او صفاتو کښې داسې کامل دې لکه چه بیان ئ وشو اوداکمالات مقتضي دي چه عبادت ئ وشي مګر [ دا] مشرکان [خلق] داسې [ الله تعالی لره پریږدي ﴿وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ او دهغو څیزونو عبادت کوي ] کوم چه په عبادت کولو باند ﴿مَا لَا يَنْفَعُهُمْ﴾ [ نه دوی ته څه نفع رسولې شي اونه ] دعبادت نه کولو په صورت ﴿وَلَا يَضُرُّهُمْ﴾ [ دوی ته څه ضرررسولې شي ﴿وَكَانَ الْكَافِرُ عَلٰى رَبِّهٖ ظَهِيْرًا﴾ اوکافر خو دخپل رب مخالف دې چه هغه پریږدي او دنورو عبادت کوي او چه دکفارو مخالفت درته معلوم شونو ته ددوی په ایمان نه راوړو مه غمژن کیږه څکه چه ﴿وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ﴾ [ مونږتالره صرف ددې دپاره لیږلې دې چه] ایمان راوړونکوته دجنت ﴿اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا﴾ [خوشخبري واوروې او] کافران ددوزخ نه [ویروې] ددوی په ایمان نه راوړو کښې ستاڅه نقصان دې بیاته غم ولې کوې اونه دا چه تاته ددوی مخالفت معلوم شي فکر کوی چه هرکله دوی دالله تعالی مخالف دي نو زۀ چه کوم دالله تعالی طرف ته دعوت کوم دا دعوت به داخلق

۱۹ ) تفسیر عثماني تحت هذه الآیة ج: ۲ص:۲۱۱

خیر خواهی کله وکنړي بلکه په خودعرضئ به يې راواړوی هلهوګوری به ورته نه نو ددوی ددې ګمان اصلاح به څنګه وشی چه مانع رفع شی پس که تاته ددوی دا خیال په څه قرینه یا په زبانی خبرو اترو سره معلوم وی نو ﴿قُلْ﴾ [ ته ] په جواب کښې دومره [اووایه ] اوبې فکره شه ﴿مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ﴾ [ چه زه خو ستاسو نه په دې ] تبلیغ [ څه معاوضه ] مالی یاد مرتبې [نه غوارم ﴿إِلَّا مَن شَآءَ أَن يَتَّخِذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا﴾ البته کوم سړې چه دا وغواړې چه خپل رب طرف ته ] درسیدو [ لاراختیار کړی ] نو البته زه دې لره خامخا غواړم خواه که تاسو دې ته معاوضه وایئ اوکه نه [ او] نه ددې کفارو په مخالفت معلومیدو سره ددوی دضرر رسولو فکر کوه بلکه په تبلیغ کښې ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱلْحَىِّ ٱلَّذِى لَا يَمُوتُ﴾ [ په هغه ژوندی چه نه مر کیږی توکل ساته او] په اطمنان سره ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِهِۦ﴾ [ دهغه په تسبیح او ثناء کښې لګیا وسه او] نه دمخالفت په معلومیدو سره د ژر عذاب په دې خیال ارزو کوه چه ددوی ضرر نورو ته ونه رسیږی څکه چه [هغه] خدایئ ﴿وَكَفَىٰ بِهِۦ بِذُنُوبِ عِبَادِهِۦ خَبِيرًا﴾ [ دخپلو بندګانو دګناهونو نه ] په [ کافی ] طور سره [ خبرداردې ] هغه چه کله مناسب وګنړی سزا به ورکړی پس په دې جملوکښې يې دنبی کریم ﷺ نه غم او فکر اوویره لرې کړی دی وړاند بیا دتوحیدبیان دې [ هغه ] الله تعالی ﴿ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا﴾ [ داسې دې چاچه اسمانونه اومزکه اوڅه چه ددوی په مینځ کښې دی ﴿فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ﴾ ټول په ] مقدارد [شپږو ورځو کښې پیدا کړل بیاپه عرش ] کوم چه مشابه دې دحکومت دتخت سره داسې [ قائم] او جلوه فرما [ شو] کوم چه دهغه دشان سره لائق دی چه بیان يې دسوره اعراف د اوومې رکوع دشروع په ایت کښې تیرشوې دې ﴿ٱلرَّحْمَٰنُ فَسْـَٔلْ بِهِۦ خَبِيرًا﴾ [هغه لویئ مهربان دې پس دهغه دشان چاپوه نه تپوس کول پکاردی ] چه هغه څنګه دې کافران مشرکان څه پوهیږی او ددې صحیح معرفت دنشتوالی په وجه شرك کوی لکه چه الله تعالی فرمائی [وماقدروالله حق قدره]([٢٠]) ﴿وَإِذَا﴾ [اوکله چه ﴿قِيلَ لَهُمُ ٱسْجُدُوا۟ لِلرَّحْمَٰنِ﴾ دې ] کافرانو [ته ووئیلې شی چه رحمن ته سجده وکړئ نو] په وجه دجهل او عناد ﴿قَالُوا۟ وَمَا ٱلرَّحْمَٰنُ﴾ [وائی چه رحمن څه شې دې ] چه مونږ ته دهغه په وړاندسجدې کولو دپاره وایئ ﴿أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا﴾ [ آیامونږ هغه ته سجده وکړو دکوم چه ته مونږ ته دسجدې کولو وایئ ﴿وَزَادَهُمْ نُفُورًا﴾ او په دې سره دوی نور زیات نفرت شروع کړی ] لفظ درحمان په دوی کښې ډیرکم مشهور وومګر داسې نه چه پیژندوئ نه مګر داسلامی تعلیم سره چه يې کوم مخالفت زیات شوې وو نو په محاورو او بول چال کښې به يې هم مخالفت لره استعمالولو په قرآن کښې چه دا لفظ ډیرراغلې نو هغو ددې هم مخالفت شروع کړو ﴿تَبَارَكَ ٱلَّذِى جَعَلَ فِى ٱلسَّمَآءِ بُرُوجًا﴾ [ هغه ذات ډیر لویئ عالی شان دې چاچه په اسمان کښې لویئ لویئ ستوری جوړ کړل او] په دغه ستورو کښې يې دوه لویئ نورانی اوفائده بخښ ستوری جوړ کړل یعنی ﴿وَجَعَلَ فِيهَا سِرَٰجًا﴾ [ هغه په ] اسمان [کښې یوه ډیوه ] یعنی نمر ﴿وَقَمَرًا مُّنِيرًا﴾ [ اونورانی سپوږمئ جوړ کړه ] شایدنمرته يې چراغ په وجه دتیزئ ووئیل ﴿وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ خِلْفَةً﴾ [ اوهغه داسې دې چاچه شپه او ورځ په یو بل پسې تلونکې راتلونکې جوړ کړل ] او داټول هرڅه کوم دلیلونه دتوحیداو دالله تعالی دنعمتونو ذکر چه وشو ﴿لِّمَنْ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ﴾ [ دهغه سړی ] دپوهیدو [دپاره] دی [ کوم چه

[٢٠]) ترجمه:- او دې خلقو د الله تعالی هغه شان عظمت او نه کړو څنګه چې پکار وو.

پوهیدل غواړي ﴿أَوۡ أَرَادَ شُكُورٗا﴾ یا شکر کول غواړي ] چه په دې کښې دځان پوهوونکې دپاره دلیلونه دي او دشکر کوونکې په نظر کښې انعامات دي ورنه :

اگر صدباب حکمت پیش نادان    بخوانی ایدش بازیچه درگوش

که دحکمت سل بابونه دکم عقل په وړاند دده دپوهولو دپاره ولولې خو هغه ترې نه هیڅ فائده نه شي اخستې هغه ته لوبې ښکاري

**معارف او مسائل**

**د الله تعالى په مخلوقاتو کښې د اسبابو او مسبباتو جوړ او د دې ټولو د الله تعالى د قدرت تابع کیدل:** دلته بیان شوؤ ړومبو آیتونو کښې د الله تعالى د کامل قدرت او په بندګانو باندې د هغه د انعاماتو او احسانونو بیان دې چه په دې سره د الله تعالى توحید او د هغه د عبادت حقدار کیدل او په دې کښې ورسره هیڅ نه شریکیدل ثابتیږي چنانچه فرمائي:

﴿أَلَمۡ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ كَيۡفَ مَدَّ ٱلظِّلَّ﴾ نمر [ غارمه ] او سورې [دواړه] داسې نعمتونه دي چه د انسان ژوند او کارو بار پرې اړه لري هر وخت [غارمه ] او هر وخت سورې هم انسان د پاره مصیبت جوړیږي د انسان صحت ورسره خرابیږي داسې نور زرګونه کارونه ئې هم ورسره خرابیږي الله تعالى دا دواړه نعمتونه په خپل کامل قدرت سره پیدا کړل او انسانانو د پاره ئې د آرام او سکون باعث جوړ کړل خو الله تعالى په خپل کامل حکمت سره د دې دنیا ټولو څیزونو ته خپل منځ کښې داسې تړون ورکړې دې چه د هغې د شتهٔ والي په بنا دغه څیزونه شته کیږي او د نیشتوالي په وجه ئې نیشت کیږي په زیاتو او مضبوطو سببونو باندې بنا شوي مسببات هم زیات او مضبوط وي او په لږو او کمزورو سببونو باندې بنا شوي مسببات هم لږ او کمزوري وي د غلې ،وښو او زرغنې و غیره راټکولو سبب ئې زمکې ، هوا او اوبو لره جوړ کړي دي د رڼړا سببونه ئې نمر او سپوږمۍ جوړ کړي دي د باران سببونه ئې وریځې او هواګانې جوړې کړیدي په دې سببونو او په دې باندې اړه لرونکو اثرونو کښې الله تعالى داسې یو مضبوط تړون قائم کړې دې چه د زرګونو کلونو راسې چلیږي چه یو ذره فرق هم پکښې نهٔ دې راغلې که نمر او د دې حرکت باندې او د دې نه پیدا کیدونکو څیزونو شپه ورځ غارمه او سورې باندې نظر واچوئ نو دا یو داسې مضبوط نظام دې چه په بې شمیره کالونو کښې هم پکښې یو سیکنډ هومره فرق نهٔ دې راغلې د نمر او سپوږمۍ په مشینرۍ کښې هیڅ کمزوري نهٔ راځي د دې د سمولو او مرمت کولو ضرورت نهٔ پیښیږي د دنیا د پیدا کیدو نه تر اوسه پورې څه چه تر قیامته پورې هیڅ فرق پکښې نهٔ راغلې دې او نهٔ راتلونکې دې په خپل مقرر رفتار باندې دواړه روان دي په حساب لګولو سره د زرګونو کلونو نه پس هم د څیزونو وخت ښودلې کیدې شي.

څومره چه د سبب او مسبب دا مضبوط نظام د الله تعالى د کامل قدرت یوه عجیبه ننداره ده او د بې شمیره کلونو راسې په یو شان جاري ده چه د الله تعالى د کامل قدرت او د هغهٔ د رسیدونکې حکمت قطعي دلیل دې هومره ترې خلق بې پروا وي د دې په خیال کښې هم دا ظاهري اسباب خائ شوي دي هم دې لره د ټولو څیزونو او تاثیرونو خالقان او مالکان ګڼړي د مسبب الاسباب اصلي قوت چه د دې سببونو پیدا کونکې دې هغه هم د دې سببونو په پردو کښې پټ کړې شو څکه خو پیغمبرانو ﷺ او آسماني کتابونو انسان لره بیا بیا په دې خبرداره کړې دې چه لږ شان نظر دې لوړ او تیز کړه د اسبابو د پردې شاته هم اوګوره چه څوک دې نظام لره چلوي ؟ چه حقیقت

ته لاره بیا مومی د دغه سلسلې دغه ارشادات دي چه په تیرو شوؤ آیتونو کښې راغلل په آیت ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ﴾ ، سره یې غافل انسان په دې باندې خبرداره کړې دې چه ته روزانه وینې چه د صبا په وخت د هر څیز سوري لوئیدیز اړخ ته اوږد وی بیا په مزه مزه رالنډیږی تر دې پورې چه د نیمې ورځې په وخت بیخی نیشت یا د نیشت برابر شی بیا دې نه پس ختیز اړخ ته د سوری اوږدیدل په مزه مزه شروع شی هر انسان د دې نمر [غارمو] او سوری نه هره ورځ فائده حاصله وی او د هغوی سترګې وینی ګوری چه دا ټول هرڅه د نمر د راختو پورته کیدو او بیا ډوبیدو ته په ور روانیدو لازمی نتیجې دی خو او دې ګوری چه د نمر ککوړې[ټکی] چا پیدا کړو ؟ بیا د خاص نظام لاندې د دې د پاتې لرلو کار چا اوکړو ؟ دا کار د سر د سترګو نهٔ دې بلکه دې د پاره د زړه د نظر او بصیرت ضرورت دې.

په دې آیت کښې انسان ته دا بصیرت ورکول مقصود دی چه ستاسو په نظر کښې د سورو اوږدیدل او کمیدل اګر چه نمر سره تړون لری خو په دې باندې هم غور اوکړئ چه په دې شان سره نمر چا پیدا کړو ؟ او د یو خاص نظام لاندې د دې حرکت چا جاری او لرلو د کوم ذات کامل قدرت چه دا ټول هر څه کوی هم هغه په حقیقت کښې د دې نعمتونو [ غارمو او سورو] ورکونکی دې که هغه غوښتلې نو دا غارمه او سوري به ئې په یو حالت باندې لرلې وو خو الله تعالی د انسانی ضرورتونو او فائدو په خاطر داسې او نهٔ کړل څنګه چه د ، ﴿وَلَوْ شَاءَ لَجَعَلَهُ سَاكِنًا﴾ ، مطلب هم دا دې- په حقیقت باندې د ځان د خبرولو د پاره د سوری راټولیدل او کمیدل ئې په دې شان سره بیان کړې دی

﴿قَبَضْنَاهُ إِلَيْنَا قَبْضًا يَسِيرًا﴾ ، یعنی [ سوري مو خپل اړخ ته راټول کړو ] ښکاره خبره ده چه الله تعالی جسم ، جسمانیت ، اړخ او طرف سره هیڅ تړون نهٔ لری لهذا د سوری ځان ته د راغونډولو مطلب دا دې چه دا ټول هر څه خالص د الله تعالی په کامل قدرت سره کیږی .

**په شپه کښې د خوب او ورځ کښې د کار تخصیصونه هم په لوئ حکمت باندې بنا دی:** ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاسًا وَالنَّوْمَ سُبَاتًا وَجَعَلَ النَّهَارَ نُشُورًا﴾ په دې آیت کښې شپې ته ئې لباس اوفرمائیل مطلب دا دې چه څنګه په جامې سره بدن پټیږی دغه شان شپه هم د قدرتی پردې یو څادر دې چه په پوره مخلوق باندې اچولې شی ﴿ سُبَاتًا ﴾، د ،سبت ، نه مشتق دې چه اصل معنی ئې پرې کول دی ،سبات، هغه څیز دې چه بل څیز پریکولې شی الله تعالی خوب لره دا شان جوړ کړې دې چه د ټولې ورځې د محنتونو ستومانی او کمزوری په دې سره پریکیږی فکرونه او خیالونه د دماغو نه پرې [لرې] شی او دې ته آرام حاصل شی ځکه د سبات لازمی ترجمه راحت [آرام ] کولې شی د آیت معنی دا شوه چه مونږه شپې لره یو پټوونکې څیز جوړ کړو بیا ئې په دې کښې په انسان او ټولو سا لرونکو څیزونو باندې ئې خوب غالب کړو چه د آرام او راحت سامان او سبب دی.

دلته څو څیزونه د غور کولو جوګه دی اول دا چه خوب خو آرام څه چه د آرام روح دې خو انسانی فطرت دا دې چه په رڼا کښې ورته خوب راتلل مشکل شی که اودهٔ شی نو زر رابیداریږی په دې بناباندې الله تعالی دخوب په مناسبت سره شپه تیارهٔ هم جوړه کړه اویخه هم په دې شان شپه پخپله یونعمت دې اوخوب بل نعمت دې اودریم نعمت دادې چه د ټولې دنیا د انسانانو ، څناورو خوب ئې هم په یو وخت د شپې په سا لرونکو خلقو غالب اوګرځولو که داسې نهٔ وې نو د څنې خلقو د خوب په وخت به د نورو خلقو شور یا کار روزګار کول او ګرځیدل راګرځیدل به او د خوب

کونکو خوب به ئې خرابولو دا شان انسان په هر کار کښې يو بل ته محتاج وی که ويښ بنده په يو کار کښې اودهٔ بنده ته محتاج وې نو کار به ئې هم داسې ناشونې [مانده] پاتې شوې وو که هغه راويښ شوې وې نو د محتاج بنده د خوب وخت به وو ځکه به د هيچا کار سر ته نهٔ رسيدو -
که دا مقصدونه د بين الاقوامی معاهدو په بنياد پوره کول وې چه ګنی د ټولو خلقو د خوب د پاره يو وخت ټاکلې شوې نو اول خو کروړونه انسانان د دې پابند کول ډير ګران وو بيا په دې باندې د عمل کولو د پاره به په زرګونو محکمې پرانستل راتلل چه نتيجې به ئې خرابې راوتې. الله تعالی په خپل کامل قدرت سره د خوب يو جبری وخت مقرر کړې دې چه هر سا لرونکې په کښې اودهٔ کيږی که څوک د څه ضرورت په خاطر په کښې رابيداريدل غواړی نو دی د پاره په مشکله انتظام کولې شی ، ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ﴾
دغسې په ﴿وَجَعَلَ النَّهَارَ نُشُوْرًا﴾ کښې ئې ورځې ته ، نشور ، [يعنی ژوند] اوفرمائيلو ځکه چه د دې مقابل ، خوب ، يو قسم مرګ دې او د دغسې ژوند وخت ئې هم د انسانانو د پاره په جبری ډول او ګرځولو که داسې نهٔ وې نو څه دکانونه او کارخانې به د ورځې بندې او د شپې پرانستې وې او څه به د شپې بندې او د ورځې به پرانستې وې په دې شان به په دواړو کښې کارو باری مشکلات راپيښيدل -
څنګه چه الله تعالی شپه د خوب د پاره مخصوصه کړه او لوئ انعام ئې په مونږه اوکړو دا شان د ژوند شريک ضروریاتو د پاره ئې هم شريک وختونه مقرر کړل مثلاً د صبا او ماښام په وخت خوراک او څکاک کول يو شريک قسم کار دې ټول انسانان په دغې وختونو کښې هم د دې فکر کوی په دې شان هر چا ته د ضروریاتو برابرول آسانيږی ، د خوراک څکاک هوټلونه په دغه وخت د دغې ضرورت د څيزونو نه ډک ښکاری په هر کور کښې خلق هم په دې شغل کښې وی دا مقرر کول هم يو لوئ نعمت دې چه د الله تعالی حکمت بالغه په فطری ډول د انسان په طبيعت کښې ايښې دی -
﴿وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوْرًا﴾ په عربی ژبه کښې ،طهور ، د مبالغې صيغه ده د ،طهور ، معنی هغه پاک څيز دې چه بل څيز پرې هم پاکولې شی دا خاص صفت الله تعالی اوبو ته ورکړې دې چه پخپله هم پاکې دی او حقيقی او معنوی پليتی پرې لرې کولې شی ، د انسان په استعمال کښې راتلونکې عموما آسمانی اوبهٔ دی چه کله د باران په صورت کښې نازليږی کله د ږلئ او واورې په صورت کښې ، بيا دغه اوبه د غرونو د رګونو په ذريعه د قدرتی نلکو په شکل په ټوله زمکه کښې خوريږی چه کله د چينو په شکل کښې د زمکې نه پخپله راوځی ، کله د کوهی په کنستو سره راوښکلې شی دا ټولې پخپله هم پاکې او نورو څيزونو لره هم پاکونکې دی د قرآن کريم او سنت نصونه په دې باندې ګويا دی او د امت اجماع هم په دې باندې قائمه ده - کله چه دا اوبه په ډيره اندازه کښې وی لکه د تالاب او نهر اوبه شوې ، که په دې کښې څه پليتی پريوځی بيا هم نهٔ پليتيږی په دې باندې هم د ټولو علماؤ اتفاق دې خو شرط دا دې چه په اوبو کښې د پليتئ اثر نهٔ ښکاره کيږی او خوند ،رنګ او بوئی ئې بدل نشی کله چه لږو اوبو کښې پليتی او غورځيږی نو د دې په حکم کښې د مجتهدينو امامانو ﷺ اختلاف دې دغه شان د اوبو د ډيروالی او لږ والی په اندازې ټاکلو کښې هم قولونه مختلف دی په تفسير مظهری او قرطبی کښې دلته د اوبو

تولې مسئلې په تفصیل سره لیکلې شوې دی[۲۱] کومې چه د فقهې په کتابونو کښې هم بیان شوې دی ځکه ئې دلته د نقل کولو ضرورت نشته .

﴿وَنُسْقِيَهُۥ مِمَّا خَلَقْنَآ أَنْعَٰمًا وَأَنَاسِىَّ كَثِيرًا﴾ أَنَاسِيّ ، د ، انسی ، جمع ده ځنې علماء رحمهم الله ورته د انسان جمع وائی آیت کښې دا ښائی چه آسمانی اوبو سره الله تعالی زمکه هم خوړوب کوی ځناور هم او نور ډیر انسانان هم ، دلته دا خبره د غور کولو جوګه ده چه ځنګه تول ځناور په اوبو سره خړوب کیږی دغسې تول انسانان هم په اوبو سره خړوب کیږی بیا دلته چه ډیر انسانان پرې خړوبیدل بیان شو هغې نه لازمی طور دا معلومیږی چه ځنی انسانان ګنی په اوبو سره نۀ خړوبیږی څه ؟ - جواب ئې دا دې چه دلته د ډیرو خلقونه مراد هغه ځنګلی خلق دی چه نیغ په نیغه د باران په اوبو باندې خړوبیږی متمدن د ښارونو او نورو آبادو انسانان عموما د کوهیانو او نهرونو و غیره په اوبو خړوبیږی چه هم د باران بالواسطه اوبۀ دی-

﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَٰهُ بَيْنَهُمْ﴾ مطلب د آیت دا دې چه مونږه د باران اوبه بدلوؤ اوګرځوؤ راګرځوؤ ئې ، کله په یو ښار کښې کله په بل ښار کښې . حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائیلې دی چه کله خلق دا وائی چه ، په دې کال کښې بارانونه زیات او په دې کال کښې بارانونه کم دی ، نو دا د حقیقت په اعتبار سره صحیح نۀ دی بلکه د باران اوبه خو هر کال د الله تعالی د اړخه په یو شان نازلیږی البته د الله تعالی په حکم سره دا طریقه جاری وی چه کله د دې مقدار په یوه آبادئ کښې کم کړې شی او په بله کښې زیات شي چنانچه کله د اوبو کمې عذاب جوړ کړې شی او کله د دې زیات والې عذاب جوړ کړې شی[۲۲] په دې بنا الله تعالی خپل دې رحمت [ د اوبو ] نه عذاب هغې خلقو د پاره جوړ کړی چه نا شکری او نا فرمانی کوی -

**په قرآن سره یعنې د قرآن په بلنې خورولو سره جهاد کول لوئ جهاد دی:** ﴿وَجَٰهِدْهُم بِهِۦ جِهَادًا كَبِيرًا﴾ دا آیت مکی دې دا په هغه موقع نازل شوې دې چه تر دغې وخته پورې کفارو سره د جنګ کولو حکم نۀوو راغلې لهذا د ،به ، په قید لګولو سره ضمیر قرآن کریم ته راجع کړې شو مطلب ئې دا دې چه د قرآن کریم په ذریعه جهاد داسې کوئ چه د دې د حکمونو تبلیغ کوئ د خلقو مخه ورته راګرځوئ که د ژبې په ذریعه وی او که د قلم ، یا په نورو ذریعو سره وی دې تولو ته ئې ، جهاد کبیر ،او فرمائیل ﴿وَهُوَ ٱلَّذِى مَرَجَ ٱلْبَحْرَيْنِ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَحِجْرًا مَّحْجُورًا﴾ د ،مرج ، معنی آزاد پریښول دی ځکه ، مرج ، هغې ورشو [ د څرن ځای ] ته وئیلې شی چه څاروی پکښې په آزادئ سره ګرځی راګرځی او څریږی د ،﴿عَذْبٌ﴾، معنی خوږې اوبه د ﴿فُرَاتٌ﴾ معنی ښه خوندور او زړۀ پرې ورتلونکې، د ﴿مِلْحٌ﴾ معنی نمکین او د ﴿أُجَاجٌ﴾ معنی تیزې او ترخې الله تعالی په خپل حکمت بالغه او فضل سره دنیا کښې دوه قسمه دریابونه پیدا کړی دی یو د تولې دنیا نه راچاپیره چه سمندر ورته وئیلې شی تول دنیا د دې ځلورمه برخه ده چه دا ترې راچاپیره دې دا سمندر سخت مالګین تریخ او بد مزه دې د زمکې په آبادو برخو کښې د آسمانی اوبو چینې ، ولې، نهرونه او لوئ لوئ دریابونه دی دا تول خواږه زړه ورته کیدونکې او ښه خوند ناکې دی انسان ته د څکلو ، تندې ماتولو او د روزانه استعمال د پاره د داسې خوږو اوبو

[۲۱] ) تفسیر المظهري ج:۷ص:۳۲ تا ۴۱ و تفسیر القرطبي ج:۱۳ص: ۴۱ تا ۵۶
[۲۲] ) تفسیر القرطبي ج:۱۳ص:۵۷ و تفسیر ابن کثیر ج: ٦ ص:۱۱٦

ضرورت وی چه الله تعالی د زمکې په آبادو برخو کښې په مختلفو صورتونو کښې انسان ته برابر کړې دی خو د سمندر اوبه که خوړې وې نو د خوړو اوبو خاصیت دا دې چه زر سخا کیږی خصوصا د سمندر خوړې اوبه خو به ډیرې زر څکه سخاکیدې چه د خوشکئ په نسبت دې کښې مخلوق ډیر زیات شته دې د هغې په مړ کیدو سره به ئې اوبه نورې هم زر سخاکیدې که دا اوبه خوږې وې او د ټولې دنیا اوبه او په دې کښې قسما قسم ګندونه په آخر کښې هم دې ته راپریوځی نو دا به په دریې څلورو ورځو کښې سخاکیدې او د بد بوینې له کبله به د اوچې آبادئ خلق ترپوزې راغلی وو په دې وجه د الله تعالی حکمت د سمندر اوبه دومره زیاتې نمکینې [مالګینې] او زیاتې ترخې او تیزې جوړې کړې چه د دنیا دا ټول ګندونه دغلته په ورتلو سره بیخی نیشت شی او د دې خپل مړ کیدونکې مخلوق هم په کښې نهٔ سخا کیږی.

په دې آیت کښې الله تعالی خپل انعام او احسان په دې شان بیانوی چه د انسان د ضرورت په جوړ الله تعالی دوه قسمه دریابونه پیدا کړل بل ئې دا خپل کامل قدرت ښکاره کړو چه چرته په سمندر کښې خوږې اوبه د نهرونو و غیره ورګډې شی نو په میلونو یو ځائ بهیږی هیڅ پرده ئې په منځ کښې نهٔ ښکاری خو خوږې اوبه هم هغسې خوږې او ترخې اوبه هم هغسې ترخې وی او یو بل سره ګډون نهٔ کوی.

﴿وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّصِهْرًا﴾ نسبی خپلولی هغه ده چه د پلار یا مور د اړخه وی، او ،صهر، [ سخرګنئ خپلولی] هغې ته وئیلې شی چه د خپلې ښځې د اړخه وی دا ټولې خپلولئ او تعلقات د الله تعالی ورکړی نعمتونه دی چه د انسان د ښه ژوند د پاره لازمی دی یواځې بنده د هیڅ کار نهٔ وی

﴿قُلْ مَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ اِلَّا مَنْ شَآءَ اَنْ يَّتَّخِذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا﴾ یعنی تاسو ته چه زهٔ د ایمان بلنه درکوم او د الله تعالی حکمونه درته رسوم او ستاسو د دنیا او آخرت د کامیابئ کوشش کوم په دې کښې زما څه دنیاوی فائده نشته زهٔ د دې محنت بدله ستاسو نه نهٔ غواړم ،زما فائده سوا د دې نه بله نشته چه پخپله خوښه د الله تعالی لار اختیار کړئ هر کله چه د الله تعالی د لارې اختیارولو فائده پخپله هم دغې لار اختیاروونکی ته ده نوپیغمبر چه دې ته خپله فائده او فرمائیله نو دا د هغوئ پیغمبرانه شفقت ته اشاره ده چه زهٔ هم ستاسو فائده خپله فائده ګڼړم د دې مثال داسې دې چه یو ضعیف بوډا پلار خپل اولاد ته داسې وائی چه تاسو اوخورئ او خوشحاله اوسئ نو داسې شوه چه ما اوخوړه او خوشحاله شوم. دا احتمال هم کیدې شی چه خپله فائده ئې ورته په دې اعتبار فرمائیلې وی چه د دې ثواب به هم هغوئ ته ملا ویږی. چنانچه صحیح حدیث کښې راغلې دی چه څوک چاته د نیکو کارونو هدایت کوی او هغوئ پرې د دهٔ د وینا مطابق عمل او کړی نو د هغې پورا ثواب خو به کوونکې ته هم ملاویږی او د هغه هومره ثواب به هدایت کونکی ته هم ملاویږی [ مظهری] ([23])

﴿فَسْـَٔلْ بِهٖ خَبِيْرًا﴾ یعنی آسمانونه او زمکې پیدا کول بیا د خپل شان مطابق په هغې باندې جلوه ګر کیدل ټول د الله رحمان کار دې که د دې تحقیق او تصدیق کول غواړئ نو چا خبردار نه تپوس او کړئ، د خبردار نه مطلب الله تعالی او جبرائیل امین دې او دا احتمال هم شته چه مراد ترې د پخوانی آسمانی کتابونو عالمان وی چه ورته د خپلو خپلو پیغمبرانو ﷺ په ذریعه د دې خبر

[23] ) تفسیر المظهري ج:۷ص:٤۳ و صحیح مسلم کتاب الزکوة، باب الحث علی الصدقة ج:۱ص:۳۲۷

ورکړې شوې وی [مظهری] ([۲۴])

﴿قَالُوْا وَمَا الرَّحْمٰنُ﴾ ، رحمان د عربی ژبې لفظ دې په معنی باندې ئې ټول عرب خلق پوهیدل خو دا لفظ به ئې د الله تعالی د پاره نه وئیلو ځکه ئې تپوس کولو چه رحمان څوک او څه څیز دې ؟

﴿تَبٰرَكَ الَّذِيْ جَعَلَ فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّجَعَلَ فِيْهَا سِرٰجًا وَّقَمَرًا مُّنِيْرًا ۞ وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ اَرَادَ اَنْ يَّذَّكَّرَ اَوْ اَرَادَ شُكُوْرًا ۞﴾ د دې ایتونو نه انسان ته دا ښودل مقصود دی چه مونږه په آسمان کښې لوئ لوئ ستوری او نمر او سپوږمۍ پیدا کړی دی د دې په ذریعه د شپې او ورځې اړول او بدلول کوو . د دې تیارهٔ ، رڼړا او زمکه آسمانونه او ټول کائنات مو ځکه پیدا کړی دی چه غور فکر کونکو ته په دې کښې د الله تعالی د کامل قدرت او توحید دلیلونه په لاس ورشی شکر کولو ته د شکر کولو موقع په لاس ورشی د چا وخت چه په دنیا کښې د دې څیزونو نه خالی تیر شو نو د هغه وخت برباد شو او د هغه اصلی پنګه هم فنا شوه ، اې الله مونږ ذکر کونکی او شکر کونکی جوړ کړې

ابن عربی فرمائیلی دی چه ما د شهید اکبر نه آوریدلې دی چه ډیر په غبن او خساره کښې دی هغه څوک چه عمر ئې شپیتهٔ کاله شی ، نیم عمر [ دیرش کاله ] ئې د شپې په اودهٔ کیدو کښې تیر کړل شپږمه برخه د عمر [ لس کاله ] ئې د ورځې په آرام کښې تیر کړل یعنی په شپیتو کالو کښې ئې صرف شل کاله په کار کولو کښې تیر کړل ([۲۵]) – قرآن کریم دلته د لویو ولاړو ستورو او ګرځینده ستورو او د نورو آسمانی څیزونو د بیان کولو نه پس دا هم اوښودل چه قرآن کریم د دې څیزونو بیان بیا بیا ځکه کوی چه تاسو د دې په پیدا کیدو ، د دې په حرکتونو ،د دې نه پیدا کیدونکو اثراتو کښې غور اوکړئ ، د دې پیدا کونکې او چلوونکې اوپیژنئ او په شکر کولو سره ئې یادوئ . د آسمانی څیزونو شکل او حقیقت باندې ځان پوهول [ چه دغه آسمانی څیزونه په آسمان کښې د ننه دی یا د دې نه بهر په آسمانی فضا کښې دی ] ضروری ځکه نهٔ دی چه د دې پورې د دنیا او آخرت څه مسئله تړون نهٔ لری او د دې حقیقت معلومول د انسان د پاره آسان هم نهٔ دی چا چه خپل عمرونه په دې کښې خوړلې دی د هغوی د اقرار کولو نه ثابتیږی چه څه قطعی او آخری فیصله ئې نهٔ ده کړې شوې که چرته څه فیصلې ئې کړې دی نو د نورو سائنس پوهانو مخالفو تحقیقاتو هغه بیکاره یا غیر یقینی او ګرځول ، په دې وجه د قران کریم په تفسیر کښې تر دې زیات په یو بحث کښې پریوتل هم د قرآن څه ضروری خدمت نهٔ دې لیکن د اوسنئ زمانې سائنسی ماهرانو مصنوعی سیارې والخولې سپوږمۍ ته د رسیدو ، د هغې خاوړې ، غارونو او غرونو د تصویرونو راوړلو بیشکه حیرانونکې کارنامې سر ته اورسولې خو افسوس دا دې چه قرآن کریم په دې سره انسان ته د کوم حقیقت پیژندو سبق ورکول چه غواړی دا خلق د خپلو تحقیقی محنتونو په نشه کښې مست شو او د هغې نه نور هم زیات لرې شو د عامو خلقو ذهنونه ئې هم پریشانه کړل څوک خو د دې څیزونو د لیدلو کتلو نه بیخی انکار کوی او د قرآن کریم نه ئې خلاف ګنړی خنې خلق په قرآن کریم کښې تاویلونه کوی ځکه په تفصیل سره د دې مسئلې واضح کول راته ضروری ښکاره شو چنانچه د سورت حجر دآیت ﴿وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا﴾ ([۲۶]) لاندې م داوعده هم کړې ده چه په سورت فرقان کښې به د دې تفصیل لیکم اوس هغه دادې لیکم. والله الموفق

[۲۴]) تفسیر المظهري ج:۷ص:٤٤

[۲۵]) أحکام القرآن لابن العربي تحت هذه الآیة ج: ٦ ص:۱٦۹

[۲٦]) ترجمه:- او بیشکه مونږ په آسمان کښې غټ غټ ستوری پیدا کړی دی.

په ځانګ ولاړ او ځرځنده ستوري په آسمان کښې دننه دي او که بهر ؟

په دې باره کښې د قديم او جديد علم هيئت نظرئې او د قرآن کريم ارشادات:

د ﴿جَعَلْنَا فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا﴾ الفاظو څخه په ظاهره دا معلوميږي چه دا بروج يعنې ستوري په آسمان کښې دننه دی .ځکه چې حرف د فی د ظرفيت دپاره مستعمل دې. هم داشان په سورة نوح کښې دی چې ﴿اَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللّٰهُ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ۙ وَّجَعَلَ الْقَمَرَ فِيْهِنَّ نُوْرًا وَّجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا﴾(۲۷) کښې د لفظ، فِيْهِنَّ ، ضمير د [سَبْعَ سَمٰوٰتٍ] طرفته راجع دې. او ددې په ظاهري طور هم دا معلوميږي چه سپوږمۍ په آسمان کښې دننه دی دلته ددوه خبرې قابل غور دی.اول دا چه په قرآن کريم کښې د ، سماء ، چې په څومره عظيم الشان او وهم وګمان څخه زيات وسعت لرلو والا مخلوق دپاره استعماليږي چې په دې کښې د قرآن کريم د تصريحاتو مطابق دروازې دی چه فرشتې پرې پيرې ورکوی او په خاص خاص وختونو کښې پرانستې شی او قرآن کريم ئې شمير هم اووهٔ ښائی . او دغسې لفظ د سماء هر اوچت څيز دپاره استعماليږي چې آسمان طرفته اوچت وی. د آسمان او زمکې تر مينځه فضاء او ددې څخه مخکښې چې کوم ځايې دی چې ورته خلا وئيلې کيږي، دا ټول د بلې معنی په اعتبار سره لفظ د سماء په مفهوم کښې داخل دی. ﴿وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوْرًا﴾(۲۸) او دغه شان په نورو آيتونو کښې چرته چه د آسمانونو نه د باران راورولو بيان دې نو اکثرو مفسيرينو ﷺ د دې دويمه معنې مراد اخستې ده او د عامو ليدلو کتلو نه ثابته ده چه بارانونه د وريځو نه راوريږي چه اصلی آسمانونو اوچت والی سره يې هيڅ تعلق نشته چنانچه قرآن کريم هم د وريځو نه د باران راورول په ډاګه کړی دی فرمائی ، ﴿ءَاَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ مِنَ الْمُزْنِ اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ﴾(۲۹) دلته د ، مزن ، معنی سپينه وريځ ده د ټول آيت معنی به داسې شی چه ، [آيا باران تاسو د سپينو وريځو نه رابښکته کړې دې او که مونږه ؟] دغسې بل ځايې کښې فرمائی ﴿وَاَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا﴾(۳۰) دلته د ، معصرات، معنی د اوبو ډکې وريځې ده د ټول آيت معنی دا شوه [چه هم مونږه د ډکو وريځو نه په شيبو اوبه رابښکته کړې ] د قرآن پاک ددې واضحه تصريحاتو او مشاهدو په بنا په کومو آيتونو کښې چې دباران وريدل د آسمان نه مذکور دی په هغه کښې هم اکثرو مفسيرينو ﷺ د ، سماء ، دويمه معنی مراد اخستې ده يعنی آسمانی فضا -

هر کله چه دا معلومه شوه چه په آسمان کښې د ستورو د موجودګۍ دواړه معنې صحيح کيدې شی که اصلی آسمان ترې مراد واخستې شی او که فضا او خلا ترې مراد واخستې شی ځکه د دې قطعي او پرې کړې فيصله قرآن ته نشی منسوب کيدې چه ګنی فرمائيلی دی چه ستوری په آسمانونو کښې دننه دی يا د هغې نه لاندې په فضا او خلا کښې دی په دې بنا د تحقيقونو او تجربو مشاهدو او ليدلو کتلو نه چه کومه خبره ثابته شی هغه به د قرآن کريم نه مخالفه نهٔ وی -

(۲۷) ترجمه:- آيا تاسو ته معلومه نه ده چې الله څنګه اووهٔ آسمانونه يو بل دپاسه پيدا کړل او دې کښې سپوږمۍ سره رڼرا جوړه کړه او نمر يې روښانه جوړ کړو.

(۲۸) ترجمه:- اومونږ د آسمانه اوبه نازلوؤ چې د پاکولو څيز دې.

(۲۹) ترجمه:- دا د وريځو نه تاسو وروئ اوکه مونږ يې وروؤ.

(۳۰) ترجمه:- او مونږ د اوبو نه ډکو وريځونه اوبه اورولې.

**کونیه حقیقتونه او قرآن:** دلته په یو خبرې باندې په اصولی ډول ځان پوهول داسې پکار دی چه قرآن کریم د فلسفې یا علم هیئت څه کتاب نهٔ دې چه پکښې به د کائناتو ، آسمانونو یا ستورو و غیره د شکل ، هیئت او حرکتونو و غیره بیان وی خو بیا هم د آسمانونو ،زمکې او د دې ترمنځه د کائناتو بیان بیا بیا کوی او پکښې د غور فکر کولو بلنه خلقو ته ورکوی په دغې تولو آیتونو باندې چه غور اوکړې شی نو په ښکاره ډول ترې دا ثابتیږی چه قران کریم د دې کونیه حقیقتونو ځنې صرف هغه څیزونه ښودل غواړی چه عقیده او نظریه ورسره د روستولې شی یا ورسره د دین دنیا څه فائدې تړلې وی مثلاً قران کریم د آسمانونو ، زمکې ، ستورو او سیارو ، د دې د حرکتونو او د دې د حرکتونو نه د پیدا کیدونکو اثراتو بیان بیا بیا په دې غرض کړې دې چه انسان د دې عجیبه کاریګرئ او د عادت نه پورته د دې د اثراتو په لیدو دا یقین اوکړی چه دا څیزونه پخپله نهٔ دی پیدا شوی بلکه د دې پیدا کونکې داسې یو ذات دې چه زیات لوئ د حکمت خاوند ، زیات لوئ د علم خاوند او د تولو نه زیات د قدرت او طاقت خاوند دې د دې یقین کولو دپاره هچرې د دې ضرورت نشته چه دوئ د آسمانونو ، فضائی مخلوقاتو ، د ګرځینده او په ځائ ولاړو ستورو د مادې په حقیقت او د دې په اصلی شان او صورت په تول نظام او په پوره شان باندې پوه کړې شی بلکه صرف دومره قدرې کافی دی چه هرڅوک ئې محسوسولې او لیدلې کتلې شی چه کله نمر سپوږمئ او نور ستوری مخې ته راځی او کله غائبیږی ، سپوږمئ کله زیاتیږی او کله کمیږی . کله شپه وی ، کله ورځ وی ، کله یو موسم وی کله بل موسم ، شپه او ورځ کله لنډیږی او کله اوږدیږی ، او په دې تول عجیبه نظام کښې په زرګنو کلونو تیریدو سره چرې د یو سیکنډ فرق هم نهٔ دې راغلې دې څیزونو ته په کتو سره یو معمولی عقل او بصیرت لرونکې انسان خامخا په دې یقین کولو باندې داډه شی چه دا تول حکیمانه نظام همداسې پخپله روان نهٔ دې د دې روانونکې او په خپل ځائ باقی لرونکې یو لوئ ذات شته په دومره خبره باندې پوهیدو د پاره انسان ته نهٔ خو د څه فلسفی تحقیق او رصدی آلاتو ضرورت پیښیږی او نهٔ قرآن کریم دې ته بلنه ورکوی قرآن کریم خو تر دې حده بلنه ورکوی چه دې څیزونو کښې غور فکر کوئ چه په عامو لیدلو کتلو او تجربو سره حاصلیدې شی چنانچه رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ﷺ د رصدی آلاتو جوړولو برابرولو او د آسمانی څیزونو د شکلونو حیثیتونو معلومولو بیخی څه بندو بست نهٔ دې کړې که دې ته څه ضرورت وی نو خامخا به رسول الله ﷺ د دې انتظام کړې وو خصوصاً ځکه هم چه دغه وخت د دغې فنونو او علمونو په دنیا کښې د زده کړې او پرې د عمل کولو رواج وو په مصر ، شام ، هند ،او چین و غیره کښې د دې فنونو پوهان اوپه دې باندې کار کونکې موجود وو د حضرت عیسی ﷺ نه پنځه سوه کاله وړاندې د فیثا غورس او تر څه مودې پس د ، بطلیموس، نظریه په دنیا کښې خوره شوې او رواج موندونکې وه او د دغې زمانې د حالاتو په مناسب رصدی آلات وغیره په دغه زمانه کښې ایجاد شوې وو خو چه په کوم پاک ذات باندې دا آیتونه نازل شوې وو او کومو صحابه کرامو ﷺ چه نیغ په نیغه د هغوئ ﷺ نه اولوستل ، دې خبرو پسې ئې هیڅ مخه یو نهٔ وړله په یقینی ډول د دې د معلومیدو نه پس په دې باندې ځان پوهول ضروری شو چه په دې کونیه آیتونو کښې د غور فکر کولو منشاء هیچرې دا نهٔ وه چه خلائی سفر ، په سپوږمئ ، مریخ او زهره ته د کمندونو غور ګرځولو کوششونه د قرآن کریم تقاضا پوره کول دی ځکه چه دا اثر اوسنو تجدد پسند عالمانو د یورپ د تحقیقاتو نه متاثره کیدلو سره اختیار کړې دې - په دې بنا صحیح خبره دا ده چه قرآن

کریم نهٔ دي فلسفي او سائنسي تحقیقاتو [جدید یا قدیم ] ته خلق رابلی او نهٔ په دې باندې بحث کوی نهٔ ئې مخالفت کوی د قرآن کریم حکیمانه اصول او طرز ، د کائناتو او مخلوقاتو په باره کښې هم دا دې چه هغه د هر فن د څیزونو څنې په دومره اندازه اخلی او بیانوی چه ورسره ئې د دین یا دنیا ضرورتونه تړلې وی او انسان ئې په آسانۍ سره حاصلولې هم شی او چه په حاصلولو سره ئې انسان ته تخمیني تسلی هم کیږی په داسې باریکو فلسفي بحثونو او تحقیقاتو کښې انسان نهٔ ښکیل کوی کوم چه د انسان د قابو نه بهر دی او د هغې څنې د څه قدرې حاصلولو په صورت کښې هم په یقین سره دا نشی وئیلې چه ګنی هم دا صحیح دی بلکه حیرانی او شکونه زیاتیږی ولې چه د قرآن کریم په نظر کښې د انسان منزل مقصود د زمکې او آسمانونو ټولو کائناتو او مخلوقاتو نه وریسته د خپل خالق په مرضۍ باندې چلیدلو سره د جنت همیشه نعمتونه او آرام حاصلول دی د کائناتو په حقیقتونو باندې بحث کول نهٔ خو دهٔ د پاره ضروری دی او نهٔ خو په دې ټولو باندې علم حاصلولې شی د هرې زمانې د فلسفیانو او د فلکیاتو د ماهرانو په نظریاتو کښې سخت اختلافونه او د امروزه نوی معلومات د دې واضح دلیلونه دی چه یوې نظرئې او تحقییق ته آخری نشی وئیلې انسانی ضرورتونو سره تعلق لرونکو ټولو فنونو فلکیاتو د فضا د کائناتو وریځې ، باران ، خلا او د زمکې د برخو ، بیا په زمکه کښې د پیدا کیدونکو مخلوقاتو ، جماداتو ، نباتاتو ، حیواناتو ، عالم انسان ، انسانی علوم او فنون ، تجارت ، زراعت او کاریګرۍ وغیره ټولو نه قرآن کریم صرف د دې روح او د لیدلو کتلو هومره برخه اخلی چه ورسره د انسان څه دینی یا دنیوی ضرورت تړلې وی یقین ته نهٔ رسیدونکو تحقیقونو کښې څوک نهٔ ښکیل کوی البته کله کله یو ې خاصې مسئلې ته اشاره یا صراحت هم بیا موندې شی -

**د قرآن کریم په تفسیر کښې د فلسفي نظریو د موافقت یا مخالفت صحیح پیمانه:** ټول نوی او زاړهٔ حقانی عالمان په دې اتفاق لری چه د دې مسئلو په باره کښې کومه خبره چه د قرآن کریم نه په یقینی ډول ثابته ده که څه نوې یا زړه نظریه د دې نه مختلفه وی نو د دې په وجه په قرآنی آیتونو کښې څه لنډول غزول او تاویل کول جائز نهٔ دی هم دغه نظریه به په مغالطه بللې شی البته په کومه مسئله کښې چه د قرآن کریم څه داګیزه خبره موجوده نهٔ وی بلکه په قرآنی الفاظو کښې د دواړو معنو ګنجائش وی هلته که لیدلو کتلو او تجربو نه یو نظریه مضبوطه معلومه شی نو د قرآن دغې معنې بیانولو کښې څه بدیت‌نشته ، لکه د ﴿جَعَلْنَا فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا﴾ په باره کښې چه هر کله قرآن کریم څه واضحه فیصله نهٔ ده ورکړې چه ستوری په آسمان کښې دننه دی که بهر په آسمانی فضا کښې دی نن صبا کله چه خلائی تجربو دا ثابت کړل چه دغې سیارو ته رسیدل کیدې شی په دې سره فیثا غورسی نظریه مضبوطه ثابته شو ه چه ستوری په آسمانونو کښې دننه نهٔ دی ولې چهٔ د قرآن کریم او د صحیح احادیثو د تصریحاتو له مخې آسمان داسې یو قلا ده چه پکښې دروازې دی او په دروازو باندې د فرشتو پهره ده هرڅوک هلته دننه نشی ورتلې د دې مشاهدې او تجربې په بنا باندې د آیت مطلب به دا ګرځولې شی چه ستوری په آسمانی فضا کښې پیدا کړې شوې دی ، لهذا دا تاویل نهٔ شو بلکه په دوؤ مطلبونو کښې یو مطلب په ګوته کول دی البته که څوک د آسمانونو د موجودګۍ نه بیخی انکار اوکړی لکه څنګه چه د جدید علم هیئت ماهرانو وئیلې دی ، یا څوک دا دعوی اوکړی چه د راکټونو او هوائی جهازونو په ذریعه آسمانونو ته دننه ورتلل کیدې شی نو د قرآن کریم په بنیاد به داسې دعوه غلطه بللې شی او هیڅ تاویل به پکښې نهٔ شی کیدې ولې چه د قرآن کریم د ګڼو آیتونو نه دا ثابته ده چه آسمانونه

دروازې لري او هغه په خاص خاص حالاتو کښې بيرته کولې [خلاصولې] شي په دغه دروازو باندې د فرشتو پهره لګيدلې وي هرڅوک آسمانونو ته نشي ورننوتې.
دغه شان هرکله چه ، ﴿كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ﴾ (۳۱) نه د ستورو حرکت کول ثابت دی لهذا په دې معامله کښې به بطليموسی نظريه غلطه ګرځولې شی ولې چه دهغه د نظرئې مطابق ټول ستورې په آسمان کښې انبښتې وی چه پخپله حرکت نۀ کوی بلکه د آسمان په تبع حرکت کونکی ښکاری -
دې نه معلومه شوه چه کوم قديم مفسرين رحمهم الله د فلکياتو په باره کښې د بطليموسی نظرئې معتقد وو هغوئ په دغې قرآنی آيتونو کښې د تاويلونو نه کار واخستو چه په هغې سره د بطليموسی نظرئې خلاف څه څيز ګڼرلې شو دغه شان اوسنی ځنی مصنفين چه کوم آيتونه د جديد هيئت د نظرياتو نه مختلف او بل شان ګڼري نو په هغې کښې تاويلونو کولو سره د هغې مطابق جوړلو په فکر کښې دی دا دواړه صورتونه درست نۀ دی د پخوانو بزرګانو د طريقې خلاف او د نۀ منلو جوګه دی البته واقعه هم دا ده چه دا وخت هيئت جديد چه کوم تحقيقونه پيش کړی دی په هغې کښې د آسمانونو نه د انکار کولو نه بغير بل هيڅ د قرآن او سنت نه خلاف نۀ دی ځنې خلق ئې د کم علمئ په وجه د قرآن کريم او سنت نه خلاف ګڼرې او په کښې تاويلونو کولو ته بدې او وهی -
د اوسنئ زمانې د ټولونه لوئ مفسر قرآن سيد محمود آلوسی بغدادی رحمه الله ځکه چه د قرآن او سنت لوئ ژور عالم دې دغسې د فلسفې او قديم او جديد هيئت هم لوئ عالم دې د دوئ تفسير روح المعانی د پخوانو علماؤ رحمهم الله د تفسيرونو زياته غوره خلاصه ، په عربو او عجمو ، مشرق او مغرب کښې مقبول او مستند دې هغوئ رحمه الله په خپل دې تفسير کښې د فلسفی تحقيقاتو په باره کښې هم دغه اصول ګرځولې دی کوم چه بره بيان شو د هغوئ رحمه الله نمسی علامه سيد محمود شکری آلوسی په دغه مسئلو باندې يو مستقل کتاب ، ﴿ما دل عليه القرآن مما يعضد الهيئة الجديدة القويمة البرهان﴾ کښې د جديد هيئت د نظرياتو تائيد د قرآن کريم په رڼړا کښې کړيدې مګر د نورو نوی خيالونو والاعالمانو په شان ئې په قرآنی آيتونو کښې څه قسم تاويل کول نۀ دی خوښ کړی د هغوئ رحمه الله يو څو جملې دلته نقل کول کافی دی چه د هيئت جديده په تائيد کښې ئې ليکلی دی فرمائی -
﴿رايت كثيرا من قواعدها لا يعارض النصوص الواردة في الكتاب والسنة على انها لو خالفت شيئا من ذلك لم يلتفت اليها ولم نؤول النصوص لاجلها والتاويل فيها ليس من مذاهب السلف الحرية بالقبول بل لابد ان تقول ان المخالف لها مشتمل على خلل فيه فان العقل الصريح لا يخالف النقل الصحيح بل كل منهما يصدق الاخرة ويؤيده [ما دل عليه القرآن]﴾
[يعنی ما د هيئت جديده ډيرې قاعدې ليدلې دی هغه د قرآن او سنت د نصونو نه خلاف نۀ دی که هغه د قرآن او سنت د څه نص نه خلاف وی نو مخه به ورپسې نشی اوړې او نه په د قرآن او سنت په نصونو کښې د دې په وجه تاويل نشی کولې ځکه چه داسې تاويل د سلفو صالحينو په مقبول مذهب کښې نشته بلکه دغه وخت به مونږه دا اووايو چه کوم څيز د قرآن او سنت نه خلاف وی هم په هغې کښې به څه خلل وی ولې چه د عقل سليم او نقل صحيح تر مينځه کله هم خلاف نۀ وی بلکه د يو بل تائيد کوی ] -

(۳۱) ترجمه:- او دواړه په يوه يوه دائره کښې روان دی.

خلاصه د کلام دا ده چه د فلکیاتو په ځای د ولاړو او ګرځېدونکو ستورو د حرکتونو او هیئتونو په باره کښې بحث او تحقیق څه نوې فن نه دې ،د زرګونو کلونو راسې په دې مسئلو باندې د تحقیقونو سلسله جاری ده ،مصر ، شام ،هند ، او چین و غیره کښې د دې فنونو چرچا د پخوا زمانې راسې را روانه ده د حضرت عیسی علیه السلام نه پنځه سوه کاله وړاندې د دې فن لوئ استاذ فیثاغورس تیر شوې دې چه د ،اطالیه، په ،کروتونا، نومې مدرسه کښې ئې باقاعده د دې تعلیم ورکولو وریسې د حضرت عیسی علیه السلام د پیدا کیدو نه تقریبا یو سل او څلویښت کاله وړاندې د دې فن بل محقق بطلیموس رومی راغلو او هم په دغې زمانه کښې یو بل فلسفی ماهر، هیرخوس ، هم مشهور شو چاچه د زاؤیو میچ کولو آلې ایجاد کړې.
د فیثاغورس او بطلیموس نظریات د آسمانونو د هیئت په باره کښې بالکل د یو بل نه اپوټه[برعکس] وې بطلیموس سره د خپلې زمانې حکومت او عوام امدادیان وو د هغه نظریه دومره خوره شوه چه د فیثاغورس نظریه تقریبا پریښودې شوه او کله چه د یونانی فلسفې په عربی ژبه کښې ترجمه اوشوه نو د بطلیموس دغه نظریه دغې کتابونو ته منتقله شوه او اهل علمو هم هغه نظریه په عام ډول سره پیژندله ډیرو مفسرینو د قرآن کریم تفسیر هم د دغې نظرئې په جوړ کړې دې په یوؤلسمه صدئ هجری او پنځلسمې صدئ عیسوی کښې کله چه د یورپ قومونو ترقی شروع کړه په دوئ کښې د تولو نه ړومبې ،کوپرنک ، بیا جرمنی ، مین کیلر ،او اطالیه کښې ګلیلیو وو ، دوئ د نوی سره د دغه بحثونو جاج واخستو د دوئ ټولو په دې خبره اتفاق راغلو چه د آسمانونو د هیئت په باره کښې د بطلیموس نظریه غلطه او د فیثاغورس نظریه صحیح ده په اتلسمه صدئ عیسوی او دیارلسمې صدئ هجری کښې د اسحاق نیوټن مشهورتیا اوشوه د هغه تحقیقونو او ایجادونو دغه نظریه نوره هم مضبوطه کړه هغه دا تحقیق اوکړو چه په هوا کښې د وزن دار څیز په زمکه باندې د راپریوتو وجه دا نه ده چه د دنیا مرکز د زمکې په منځ کښې دې څکه چه دغه وزنی څیز لره زمکه خپل ځان ته راکاږی څنګه چه د بطلیموس نظریه ده بلکه دا اوښودل چه په هر ګرځېدونکی او په ځای ولاړ ستوری کښې د جذب کولو او د کشش [ راښکلو ] ماده شته زمکه هم یو ستورې دې چه دغسې کشش لری که هر یو وزن دار څیز د زمکې د کشش په چاپیریال کښې وی نو هغه به زمکې ته راځی که هغه د دغې چاپیریال نه بهر اوځی نو زمکې ته به نه راغورځیږی -
په موجوده زمانه کښې روسی او امریکی ماهرانو د پخوانی اسلامی فلسفی ابی ریحان بیرونی د تحقیقونو په امداد سره راکټ و غیره ایجاد کړو د دې عملی تجربه او مشاهده ئې او کړه چه کله یو راکټ په ډیر طاقت او تیز رفتارئ سره د زمکې د کشش چاپیریال مات کړی او ترې بهرته اوځی نو بیا لاندې نه راغورځیږی بلکه د یو مصنوعی سیارې صورت اختیار کړی او په خپله دائره کښې ګردش کوی د دغې سیارو د تجربو کولو نه پس دغې ماهرانو سیارو ته د رسیدو انتظامونه شروع کړل او آخر سپوږمئ ته او رسیدل ،چه د دې زمانې ټولو موافقو او مخالفو ماهرانو د فن د دې تصدیق اوکړو او تر اوسه پورې سپوږمئ ته د بیا بیا ورتلو هغه ځای نه د کاڼړو او خاؤرو و غیره راؤړلو او دهغې د تصویرونو اوویستلو سلسله جاری ده د نورو سیارو ته هم د رسیدو کوششونه جاری دی د خلائی سفراو کچ کولو مشقونه جاری دی - د دوئ څنې د یو امریکن خلائی مسافر ، جان ګلین ،مهم اقتباسونه د ماهنامه ،سیربین ، نه نقل کولې شی چه د هغې نه زمونږ په زیر بحث مسئله باندې کافی رڼړا پریوځی ، جان ګلین ، هغه امریکن خلائی

مسافر دي چه د خلا ئي سفر نه په کاميابئ سره واپس راغلي دي چه موافقو او مخالفو خلقو ټولو پرې يقين اوکړو د هغه يو بيان د امريکې په يوې مشهورې مياشتنۍ مجلې ، ريډرز ډائجسټ، کښې اوترجمه ئې د امريکې په اردومياشتينزه رساله ، سيربين ، کښې په تفصيل سره خوره شوې ده، دغې، جان ګلين، په خپلې اوږدې مقاله کښې د خلا عجائبات په دې شان ليکلي بيان کړيدي.

دا هغه يوا ځنې ځيز دي چه په خلا کښې د الله تعالى په شته والى باندې دلالت کوي او په دې چه څوک داسې طاقت شته چه دا ټول مرکز او محور سره تړلې لري -

وريسې ليکي چه - د دې باوجود د وړاندې نه چه کوم عمل جاري دې هغې ته چه اوګوري نو زمونږ کوششونه ډير زيات معمولي دي په سائنسي اصطلاح ګانو او پيمانو کښې خلا ئي ميچ کول نا ممکن دي - وريسې د هوائي جهاز د مشيني طاقت ياد ګيرنه داسې ليکي -

ليکن د يو يقيني او غير محسوس طاقت نه بغير د دې استعمال هم محدود او بې معنى پاتې کيږي ځکه چه جهاز د پاره د خپل مقصد د مکمل کولو د رخ [مخې] د ټاکلو ضرورت وي او دا کار د قطب نمانه اخستې شي هغه طاقت چه قطب نمالره حرکت کونکى لري زمونږه ټولو پنځو حواسو د پاره يو ډاګيز چيلنج دي نۀ خو هغه لره مونږه ليدلې شو ، نۀ ئې آورېدې شو ، نۀ لاس وروړې شو ، نۀ ئې څکلې شو او نۀ ئې بيولې شو ، سره د دې چه د نتيجو ښکاره کيدل په دې باندې ښکاره دلالت کوي چه دلته څه پټ طاقت ضرور شته دې - وريسې د ټول مزل او سفر د نتيجې په ډول ليکي -

د عيسائيت د اصولو او نظريؤ حقيقت همدغسې دې ، که مونږه هغې لره خپل راهنما جوړ کړو نو سره د دې چه زمونږه حواس د دې د موندلو نه بې وسه دي ليکن د دغې رهنما طاقت نتيجې او اثرات په خپلو او د خپلو نورو ورونړو په ژوند کښې په غرې دلو سترګو وينو هم دغه وجه ده چه مونږه پوهيږو او په دې بنا وايو چه په دې کائناتو کښې يو رهنما طاقت شته دې ، -

دا د خلائي مسافرو او په سيارو باندې د کمند غورځونکو د ګټې او کاميابئ حاصلات چه امريکې خلائي مسافر په بيان کښې دې اولوستل چه د دې ټولو منډو تړړو په نتيجه کښې د کائناتو راز او حقيقت ته رسيدل خو لاڅه کوې د بيحده او بې شميره سيارو او ستورو د ګردشونو په درک پوه شو نو زيات حيرانه شو په سائنسي آلاتو سره د هغې ميچ کول ئې ناممکن اوبلل او د هغې په مقابله کښې ئې خپل ټول کوششونه سپک او هيڅ اوښودل ، حاصل ئې دا شو چه د کائناتو او ستورو ، سيارو دا ټول انتظام پخپله نۀ دې روان بلکه دا د يو لوئ او غير محسوس طاقت د فرمان لاندې چليږي دا هغه خبره ده چه انبياؤ ﷺ د خپل رومبى قدم په ډول عامو انسانانو ته ښولې وه او د قرآن کريم په بې شميره آيتونو کښې د دې ځيز د يقين پيدا کولو په خاطر د آسمانونو ،زمکې ، ستورو او سيارو و غيره په حالاتو باندې د غور فکر کولو ښود نه کړې شويده - تاسو اوليدل چه څنګه په زمکه باندې اوسيدونکى خلق د آسماني فضاګانو ستورو او سيارو په تحقيقاتو او هيئتونو باندې فلسفي بحث کونکى د دې ځيزونو په حقيقت باندې پوه نۀ شو او آخر ئې د خپلې بې وسئ او عاجزئ اقرار او کړو دغه شان د زمکې نه پورته په لکونو ميله سفر کونکى د سپوږمئ کانړې خاوړې او د هغې ځائ نه تصويرونه راوړونکى هم د حقيقت پيژندلو په ميدان کښې د دې نه څه وړاندې ورتير نۀ شو -

**دې تحقيقونو انسان او انسانيت ته څه ور اوبخښل** ::که د انسان کوشش خواري ، محنت او د فکر بلند پروازئ او عجيبه کار ګزارئ او حيرانوونکو ځيزونو ښکاره کولو ته اوګورو نو دا خو صحيح او د

عامو نظرونو په اعتبار سره د دې جوګه دی چه ښه ورته اوونیلې شي لیکن که دې ته ژور نظر اوکړو چه بې ځایه مداری توب او تماشه کول کوم چه انسان او انسانیت ته ضروری فائده نشي ورکولې نو دا د هوښیارانو او عقلمندو خلقو کار نهٔ دې دې ته کتل پکار دی چه د دې پنځوس کلیزو خوارو او د کر بونو روپو لګولو او په اور د سیزولو انسان او انسانیت ته څه فائده اورسیده چه سپوږمۍ ته اورسیدل او هلته نه ئې د خاوړو او کاڼرو نمونې هم خان سره راوړې ؟ انسانان په ګنړ شمیر کښې د لوږې نه مری ، جامې او د سر پټولو ځای نهٔ بیا مومی ، آیا دې کوشش د هغوئ نیستی لرې کړه یا څه مشکل ئې د هغوئ حل کړو ، د رنځ بیمارئ نه د روغتیا موندو څه لار ور دپاره پیدا کړې شوه یا د زړونو د سکون او آرام موندو د پاره ئې څه بندو بست اوکړې شو ؟ د نیشت نه بغیر د دې هیڅ څه جواب چا سره نشته -

همدغه وجه ده چه قرآن او سنت ، انسان لره په دغسې بې مطلبه کارونو کښې د راګیرولو نه ږده کوی ، او د دنیا په کائناتو کښې د غور فکر او تدبیر بلنه صرف په دوؤ حیثیتونو سره ورکوی رومبې حیثیت کوم چه اصل مقصود دې دا دې چه د دې عجیبه اثراتو په لیدلو سره د حقیقی مؤثر او نا محسوس قوت یقین اوکړی کوم چه دا ټول نظام چلوی ، د هغه نوم الله تعالی دې ، دویم حیثیت دا دې چه الله تعالی کوم څیز د انسان د فائدې او د هر ضرورت د پاره د زمکې او آسمان په مخلوقاتو کښې امانت ایښې دې انسان له پکار دی چه په خپل عقل او شعور او خوارئ، محنت سره دغه څیزونه د زمکې د خزانونه راوباسی او د دې د استعمالولو طریقې ازده کړی رومبې حیثیت اصل مقصود دې او دویم حیثیت په دویمه درجه کښې د خپل ضرورت پوره کولو د پاره د ې ځکه د ضرورت نه زیات په دې کښې ور بوښتیدل څه ښه څیز نهٔ دې خو د دنیا په کائناتو کښې د غور فکر او تدبر کولو دواړه حیثیتونه انسان دپاره آسان او نتیجه خیز هم دی د دې دواړو حیثیتونو په نتیجو کښې د قدیم او جدید فلسفیانو څه اختلاف هم نشته - د دوئ ټول اختلافونه د آسمانونو او سیارو د حقیقت او هیئت په باره کښې دی چه قران یو بې ضرورت او په لاس نهٔ راتلونکې ګرځولو سره شاته ئې غور ځولې دې د مصر مفتی علامه بخیت په خپل کتاب ،توفیق الرحمان ،کښې علم هیئت په درې برخو کښې تقسیم کړې دې یوه صفتی برخه ده چه د آسماني څیزونو حرکتونو او حسابونو سره تعلق لری ، دویمه عملی برخه ده چه د دې د حسابونو معلومولو د پاره نوؤ او زړو آلاتو سره تعلق لری ، دریمه برخه ئې طبعی ده چه د سیارو او آسمانونو هیئت او حقیقت سره تعلق لری او لیکلی ئې دی چه رومبو دوؤ قسمونو کښې د قدیم او جدید ماهرانو تر منځه اختلاف د نیشت برابر دې د درک لګولو په آلاتو کښې د لویو اختلافونو باوجود په نتیجو باندې اکثرو څیزونو کښې د ټولو اتفاق دې د دوئ تر منځه سخت اختلاف په دریم قسم کښې دې - که غور اوکړئ نو د انساني ضرورت سره تعلق لرونکی هم دا رومبی دوه قسمونه دی ، دریم قسم څه بې مطلبه هم ښکاری او مشکل هم دې ځکه قرآن او سنت د عامو انبیاؤ ﷺ تعلیماتو ، انسان لره په دې دریم قسم بحث کښې ښکیل نکړو او پخوانو بزرګانو دا نصیحت او کړو -

زبان تازه کردن باقرار تو نینگیختن علت ازکار تو
مهندس بسے جویداز راز شان نداندکه چون کردی آغاز شان

[ ستاسو د خدايئ په اقرار باندې ژبه تازه کول پکار دي :: ستا په کار کښې وجې او علتونه نه دي لټول پکار.
څوک انجنير که د دې په راز لټولو باندې ډير وخت هم اولګوي :: خو په دې به پوه نشي چه اې خدايه د دې شروع دې څنګه او کړه ؟ ] -
صوفياءِ کرام چه دې څيزونو ته د کشف په نظر سره ګوری نو آخری فيصله ئې هم دا ده چه شيخ سعدی رحمه الله فرمائيلې دي -

چه شبها نشستم درين سير گم　　　که حيرت گرفت آستينم که قم

[ ډيرې شپې م په دې فکر کښې تيرې کړې ::: خو آخر حيرانئ م لستونړې رانيکو چه پاسه [بس کړه]
حافظ شيرازی رحمه الله په خپل سر کښې فرمائيلې دي -

سخن از مطرب و می گوئ و ر از دهر کمترجو
که کس نکشود و نکشايد بحکمت اين معمارا

[خبرې د سرود گر او شرابو [د الله تعالى دمينې او عشق] کوه او دزمانې په راز لټولو پسې مه گر څه ، څکه چه په هوښيارتيا سره دا غټه نه څو تر اوسه چا پرانيستې ده او نه به څوک دا اړ پرانيستې شی ]
د دې ټول تفصيل حاصل دا دې چه په کائناتو آسمانونو او زمکه او د دې په کائناتو کښې په دې شان سره غور فکر کول چه د دې د پيدا کوونکی الله تعالى په توحيد ، د هغه بې مثاله علم قدرت باندې دليل او لټولې شی دا هو بهو د قرآن کريم مقصد دې او ځاى په ځائې هم د دې بلنه ورکوی او په کومو څيزونو باندې چه د دې څيزنو څنې انسانی ضرورتونه اړه لری تر دغې حده پورې ئې علم حاصلول د قرآن کريم منشاده او تر دغې حده پورې ئې بلنه ورکوی خو دا خيال به پکښې ساتی چه معاش او معاشيات به اصل مقصد نه بولی او په دې کښې به نه ور بوښتيږی بلکه د دنيا ژوند به هغې [ د آخرت] ژوند د پاره يو سفر ګنړی او په دغه شان به پکښې شغل ساتی او هر کله چه درئيم حيثيت د انسانی ضرورت نه زيات هم دې او حاصلول ئې هم مشکل دی څکه په دې کښې د عزيز عمر ضائع کولونه څان ساتلو ته اشاره کوی دلته دا هم واضح شو چه د موجوده سائنس نوی ترقيات او تحقيقونه د قرآن کريم عين منشا ګنړل هم غلط دی څنګه چه د نوی رڼا عالمانو دې لره بعينه د قرآن کريم منشا ګنړلې ده او دا هم ونيل غلط دې چه قرآن سراسری د دې مخالفت کوی څنګه چه زوړ خيالی علماء ئې وائې حقيقت دا دې چه قرآن کريم د دې د بيانولو د پاره نه دې راغلې دا د دې د بحث ميدان نه دې انسان په آسانئ سره دا حاصلولې هم نشی او نه ئې انسانی ضرورتونو سره تعلق شته قرآن کريم په دې معاملو کښې خاموش دې په تجربو او ليدلو کتلو باندې ثابت شوی څيز ته د قرآن کريم خلاف ونيل هم صحيح نه دی چنانچه سپوږمئ ته رسيدل هلته پاتې کيدل د هغه ځاى د معدنياتو نه فائده پورته کول و غيره ټول هر څه په دې کښې دا خل دی ولې چه دا په تجربو او ليدلو کتلو سره ثابت شوې دی او کوم داسې څيزونه چه په دې شان سره نه دی ثابت شوی خوامخواه په هغې کښې خيالونه زغلول او عزيز عمر پکښې ضائع کول هم څه هوښياری نه ده - [ والله سبحانه و تعالى اعلم ] -

﴿ عباد الرحمن ﴾ [۳۲]

وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِيْنَ

| او بندگان درحمان | هغه دي |

| او د الله ﷻ [رینښتونی] بندگان هغه دي | چې په

يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا وَّاِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُوْنَ

چې گرځي | په زمکه باندې | په نرمۍ سره | او کله چې | خبرې کوي دهغوئ سره | جاهلان خلق |

عاجزۍ سره په زمکه گرځي | اوچې کله جاهلان ورسره خبرې کوي | نو ورته وائي

قَالُوْا سَلٰمًا ۝ وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا

نو وائي [په جواب کښې] | سلام | او هغه کسان دي | چې شپې تيروي | رب خپل ته | سجده کونکي

چې زمونږ سلام دې | اوهغه کسان چې شپه خپل رب ته په سجده او قيام کښې تيروي

وَّقِيَامًا ۝ وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ

او قيام کونکي | او هغه کسان دي | چې وائي | اے ربه زمونږه | اوگرزوه | زمونږ نه | عذاب

اوهغه کسان چې دا دعا غواړي | چې اۓ زمونږه ربه ! ددوزخ

جَهَنَّمَ ۖ اِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا ۝ اِنَّهَا سَآءَتْ

ددوزخ | بيشکه عذاب ددوزخ | دې | لازم هميشه | بيشکه دا دوزخ | ډير خراب دې |

دعذاب نه مونږ بچ کړه | بيشکه چې دغه عذاب ډيره سمه تباهي ده | يقيني ده چې هغه

مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ۝ وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَنْفَقُوْا

په لحاظ دځائې دقرار | او داستوگنې | او هغه کسان دي | کله چې خرچ کوي هغوئ |

خرابه ټکانه اوخراب ځائې دې | ............اوهغه کسان چې څه وخت خرچ کوي

لَمْ يُسْرِفُوْا وَلَمْ يَقْتُرُوْا وَكَانَ بَيْنَ ذٰلِكَ قَوَامًا ۝ وَالَّذِيْنَ

نونۀ اسراف کوي | اونۀ کموالې کوي | اووي په منځ ددې کښې | قائم په اعتدال | او هغه کسان دي

نو نه خو مال بې ځايه خرچ کوي | او نه شومتيا کوي | او د ده خرچ درميانه وي | اودا هغه

لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ

چې نۀ رابلئ | دالله سره | معبود بل | اونۀ وژني | نفس هغه | چې حرام کړې وي الله

خلق دي چې دالله ﷻ سره بل معبود نه رابلي | اودکوم نفس وژل چې الله ﷻ حرام کړې دي

۳۲) دې ځايې کښې دا عنوان په دې وجه قائم کړې شوې دې چې دا د يو مستقلې رسالې په صورت کښې شائع کيدې شي او کله چې داسې اوکړې شي نو ددې په شروع کښې دې بسم الله الرحمن الرحيم اوليکلې شي. محمد شفيع.

إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ۚ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ﴿٦٨﴾

مگر | په حقه سره | اونهٔ زنا کوی | او هغه څوك چي اوکړی | دا کار | بدله به مومی | دګناه خپلې

هغه نه وژنی | مګر په حق | او هغوئ زنا نه کوی | اوچا چې داسې اوکړل | نو دګناه سزا به بیامومی

يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ

دوچنده به کړې شي | هغه لره | عذاب | په ورځ دقیامت | او همیشه به وی | په هغې کښې |

دقیامت په ورځ به دهغه عذاب زیاتولې شي | او هغه به په کښې همیشه خوار ذلیله پروت وی

مُهَانًا ﴿٦٩﴾ إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا

خوار ذلیله | مګر | هغه څوك | چې توبه ئې اوویستله | او ایمان ئې راوړو | او وې کړو عمل نیك |

مګر څوک چې توبه اوباسی | او ایمان راوړی | او دنیکئ کارونه کوی | نو

فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا

نو هغوئ چې دی | بدل به کړی الله | ګناهونه دهغوئ | په نیکو سره | او دې الله | ښښونکې |

د دوی ګناهونه به الله تعالی په نیکو بدل کړی | او الله ﷻ ښښونکې مهربان دې

رَحِيمًا ﴿٧٠﴾ وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَإِنَّهُ يَتُوبُ

مهربانه | او هغه چاچې | توبه اوویستله | او عمل ئې شروع کړو نیك | نو بیشکه هغه | رجوع کوی

او څوک چې توبه اوباسی | او دنیکئ کارونه کوی | نو هغه خاص الله ﷻ ته رجوع

إِلَى اللَّهِ مَتَابًا ﴿٧١﴾ وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ

الله ته | په رجوع کولو سره | او درحمان بندګان هغه دی | چې ګواهی نهٔ کوی | ددروغو

او کړه | او هغه خلق چې د دروغو ګواهی نه ورکوی | او کله چې په یو

وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا ﴿٧٢﴾ وَالَّذِينَ

او کله چې | تیریږی | په فضول کارونو باندې | نو تیریږی | په شرافت سره | او هغه کسان دی |

فضول مجلس باندې تیریږی | نو په عزت سره تیریږی | او هغوئ داسې خلق دی |

إِذَا ذُكِّرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوا عَلَيْهَا

کله چې | نصیحت اوکړې شي هغوئ ته | په آیتونو | درب خپل سره | نو نهٔ پاتې کیږی | په هغې باندې

چې څه وخت ورته دخپل رب د آیتونو په ذریعه نصیحت اوشی | نو هغوئ ړانده کاڼړه

صُمًّا وَعُمْيَانًا ﴿٧٣﴾ وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا

کاڼړه | او ړانده | او هغه کسان دی | چې وائی | اے ربه زمونږه | راکړه | مونږ ته |

نه غورزیږی | او هغه داسې کسان دی چې دا دعا کوی | ائې زمونږه ربه! زمونږ دپاره زمونږ

مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ

د ښځو زمونږ نه | او داولاد زمونږ نه | یخوالې | دسترګو | او جوړ کړه مونږه | دپاره دمتقیانو |

ښځې او بال بچ د سترګو د یخوالی ذریعه اوګرځوه | او مونږ د پرهیزګارانو

إِمَامًا ۝ أُولَٰٓئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا

امامان | دا کسان چې دی | بدله ورکړې کیږي دوئ ته | دنګه مانړئ | په سبب دهغې |

مشران کړه | هم دې کسانو ته بهٔ [جنت کښې ]بالاخانې ورکولې شي | دا هرڅه د دوی

صَبَرُوا وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً وَسَلَٰمًا ۝

چې صبر اوکړو دوئ | او استقبال به کیږي ددوئ | په هغې کښې | په دعا سره | او په سلام سره |

د صبر په وجه ورکولې شي|او هلته بهٔ ورته دعا او سلام کولې شي

خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ۝ قُلْ

همیشه به وسی | په هغې کښې | بنهٔ دې | ځائې دقرار | او ځائې داستوګنې | ورته اووایه |

همیشه به په هغې کښې وی|څنګه بنهٔ ځائې داوسیدو دې | اوځومره بنه مقام دې| ته اووایه

مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَآؤُكُمْ ۖ فَقَدْ

چې نهٔ کوی هیڅ پروا | ستاسو | رب زما | که چرې | نهٔ وی آواز ستاسو هغه ته | پس په تحقیق سره

[اې پیغمبره] ..................چې زما رب ستاسو یوه ذره بر پرواه هم نه کوی | که تاسو عبادت نه کوئ

كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا ۝

دروغ ګنړلي دي تاسو [قرآن] | پس زر دې | چې وی به | [دا عذاب] لازم [ستاسو سره] |

یقینا تاسو دهغه حکمونه درغ اوګنړل |اوس به ددې سزا ضروری وی

## آسان ترجمه قرآن

او د رحمٰن بندګان هغه دی کوم چه په زمکه باندې په عاجزئ سره ځی، او چه کله جاهلان خلق هغوی ته (جاهلانه) خطاب کوی نو هغوی د سلامتئ خبرهٔ کوی او څوک چه شپې داسې تیروی چه دخپل رب په وړاندې (کله) په سجدهٔ کښې وی، او (کله) په قیام کښې اوڅوک چه داسې وائی چه : اې زمونږ ربه! د جهنم عذاب زمونږ نه لرې اوساته. حقیقت دا دې چه دهغې عذاب هغه تباهی دهٔ کومه چه اینخلی. یقینًا هغه د چا د مستقر او قیام کاه جوړیدو دپارهٔ بدترین ځائې دې. او هغه خلق دی چه خرچ کوی نو نه خو فضول خرچی کوی، نه تنګی کوی، بلکه د هغوی طریقه د دې (افراط اوتفریط) ترمینځه د اعتدال طریقه دهٔ اوکوم خلق چه د الله پاک سره د نورو معبودانو عبادت نه کوی، او کوم نفس ته چه الله پاک حرمت ورکړې دې، هغه ناحق نه قتلوی، او نه هغوی زنا کوی. او کوم انسان هم چه دا کار اوکړی، هغوی به د خپلې ګناه سره مخامخ کیږی دقیامت په ورځ باندې به دهغه سزا زیاتولو سره دوچند کولې شی، او ذلیل کیدو سره به په هغې کښې د همیشه همیشه دپارهٔ وی خوچه څوک توبه اوکړی، ایمان راوړی، او نیک عمل اوکړی نو الله پاک به د داسې خلقو بدئ په نیکو باندې بدلې کړی. او الله پاک ډیرهٔ بخښنه کونکې، ډیر مهربان دې. او څوک چه توبه اوکړی او نیک عمل کوی نو هغه په حقیقت کښې الله پاک ته صحیح صحیح واپس کیږی. او د (رحمٰن بندګان هغه دی) چه په ناحق کارونو کښې نه شاملیږی او کله چه په یو لغوهٔ څیز باندې تیریږی نو په وقار سره تیریږی. او کله چه هغوی ته د خپل رب د آیتونو

په ذريعه نصيحت کولې شي نو هغوی په هغې باندې کونګيان او ړانده جوړېدو سره نه ورغورځيږي او هغه څوک چه (په دعا کښې) وائي چه : اې زمونږ ربه! مونږ ته د خپلو ښځو او بچو نه د سترګو يخ والې را کړه، او مونږ د پرهيزګارانو امامان جوړ کړه دا خلق دي چاته چه به دهغوی د صبر په بدله کښې د جنت بالاخانې ورکولې شي، او هلته به په دعاګانو او سلام سره د هغوی استقبال کولې شي هغوی به هلته هميشه ژوندي وي، د چا د مستقر او قيام ګاه جوړېدو دپاره هغه بهترين ځائې دې. (اې پيغمبره! خلقوته) اووايه چه! زما د رب به په تاسو باندې لږه پرواه هم نه وې، که تاسو هغه نه رابللې . اوس چه هرکله تاسو (اې کافرو) د حق تکذيب کړې دې نو دا تکذيب به تاسو پورې لازم وی.

## خلاصه تفسير

﴿وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ﴾[اود] حضرت [رحمن ] خاص [ بندګان هغه دی﴿الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا﴾ کوم چه په مزکه په عاجزئ سره روان دی ] مطلب دادې چه دهغوی په مزاج کښې تواضع وې په ټول کارونو کښې اوددې اثرپه تلوکښې هم ظاهرېږی او څه خاص چال دهيئت بيانول مقصود نه دی ځکه چه په دماغ دارئ سره نرم رفتار موجب دمدحه نه دې او داتواضع خو ددوی خاص طرز په خپلو عملونو کښې دې [ او] نوروسره ددوی طرز دادې چه ﴿وَّاِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُوْنَ﴾[ کله هغوی سره جاهلان خلق ] دجهالت خبرې ] اترې [ کوی﴿قَالُوْا سَلٰمًا﴾ نو هغوی دشرد دفع کولو خبره کوی] مطلب دادې چه دخپل خان دپاره قولی يا فعلی انتقام نه اخلی اوکوم چه تاديب او اصلاح شرعی سياست يا دکلمت الله داوچتولو دپاره وی ددې نفی مقصود نه ده﴿وَالَّذِيْنَ﴾ [ اوکوم چه ] دالله تعالی سره خپل دا طرز ساتی چه﴿يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا﴾ [په شپو کښې دخپل رب په وړاند په سجده اوقيام ] يعنی مونځ [ کښې لګياوی ﴿وَالَّذِيْنَ﴾ اوکوم چه] سره د ادا کولو دحقوق الله او حقوق العباد دالله تعالی نه دومره ويره کوی چه ﴿يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ﴾ [ دعاګانې غواړی چه اے زمونږ پروردګاره مونږ نه دجهنم عذاب لرې وساتې ﴿اِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا﴾ځکه چه ددغه عذاب پوره تباهی ده ﴿ اِنَّهَا سَآءَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا﴾ بيشکه هغه جهنم بدځائ او بدمقام دې ] دا خوپه بدنی عبادتونو کښې ددوی حال دې [ او] په مالی عبادت کښې يې داحال دې چه ﴿وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَنْفَقُوْا لَمْ يُسْرِفُوْا وَلَمْ يَقْتُرُوْا﴾[هغوی چه کله خرڅ کوی نو نه فضول خرڅی کوی] چه په ګناه کښې يې خرڅ کړی [ اونه تنګی کوی ] چه په ضروری عبادتونو کښې يې هم په خرڅ کولو کوتاهی کوی او په اسراف کښې دغه خرڅ هم راغی چه بې ضرورته دطاقت نه زيات په مباح کارونو کښې يابغير ضروری عبادتونو کښې يې خرڅ کوی چه انجام يې په اخر کښې بې صبری او حرص او بدنيتی وی ځکه چه دا کارونه دګناه دی په دې وجه هغه هم دګناه په کار کښې خرڅ کول شول دغه شان په ضروری عبادتونو کښې بالکل دنه خرڅ کولو بدوالی په [لم يقتروا] سره معلوم شو ځکه چه هرکله په خرڅ کښې د کمی کول جائز نه وی نونه خرڅ کول خو په درجه اولی سره ناجائز شو پس داشبهه پاتې نه شوه چه په خرڅ کښې کمی کولو خو نفی اونهی وشوه ليکن دنه خرڅ کولو خو بالکل نفی اونهی نه ده شوې غرض دغه خلق په خرڅ کښې دافراط اوتفريط دواړو نه ويزاره دی ﴿وَكَانَ بَيْنَ ذٰلِكَ قَوَامًا﴾[ او ددوی خرڅ کول ددې] افراط او تفريط [ په مينځ کښې وی ] او دا ذکرشوې حالت خو دعبادتونو د اداکولو سره متعلق وو﴿وَالَّذِيْنَ﴾[ اوکوم چه ] دګناه نه دځان ساتلو داشان لرې چه﴿لَا يَدْعُوْنَ

﴿مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾ [ دالله تعالى سره دچابل معبود عبادت نه كوى ] كوم چه دعقيدې متعلق ګناه ده ﴿وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ﴾ [ او ] د [كوم سړى ] قتل كولو [الره چه الله تعالى] دشرعى قاعدو رو سره [حرام كړې دې هغه لره نه قتلوى ﴿اِلَّا بِالْحَقِّ﴾ مګرپه حقه سره ] يعنى هركله چه دقتل وجوب يا مباح والې په څه شرعى سبب موندې شى دغه وخت بيا بله خبره ده ﴿وَلَا يَزْنُوْنَ﴾ [ او هغوئ زنا نه كوى] ځكه چه داقتل اوزنا دعملى ګناهونو سره متعلق دى ﴿وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ﴾ [ اوكوم سړې چه داسې كاروكړى ] چه شرك وكړى يا دشرك سره قتل ناحق هم وكړى يا زنا هم وكړى لكه دمكې مشركان چه وو ﴿يَلْقَ اَثَامًا﴾ [ نو د سزا سره به مخامخ شى ﴿يُّضٰعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ چه دقيامت په ورځ به ددهٔ عذاب زياتيږى ] لكه دكفارو په حق كښې چه په نورو ايتونو كښې راغلې دى [زدنهم عذابا فوق العذاب]([٣٣]) ﴿وَيَخْلُدْ فِيْهٖ مُهَانًا﴾ [او هغه به په دې ] عذاب [ كښې هميشه هميشه ذليل] اوخوار[ وسيږى ] چه دبدنى عذاب سره به يې دذلت روحانى عذاب هم وى او دسختوالى دعذاب يعنى دو جندئ سره دمقدار زياتوالې يعنى هميشوالې هم وى او مراد ددې [ومن يفعل ذلك] نه كفار اومشركان دى په قرينه د [يضاعف ويخلد ومهانا او امن] ځكه چه دمومن ګناهګار دپاره په عذاب كښې زياتې او خلود به نه وى بلكه ددهٔ عذاب به دهٔ لره دپاك صاف كولو دپاره وى نه چه دسپكولو دپاره او ددهٔ دپاره دايمان دنوى كولو ضرورت نشته صرف دتوبې ضرورت دې دكومې چه وړاند بيان دې [ومن تاب وعمل الخ] دارنګ د ذكر شوو قرينونه سوا په صحيحينو كښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه شان نزول هم ددې دانقل دې چه دمشركانو په باره كښې دا ايت نازل شوې دې ﴿اِلَّا مَنْ تَابَ﴾ [ مګركوم چه ] دشرك اوګناهونونه [ توبه وكړى او] ددې توبې دقبليدو شرط دادې چه ﴿وَاٰمَنَ﴾ [ايمان ] هم [ راوړى ﴿وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا﴾ اونيك كاركوى ] يعنى ضرورى عبادتونه پوره كوى [ نو] په جهنم كښې هميشوالې څه كوې چه جهنم به دې [يوه ذره مسه هم نه كړى ﴿فَاُولٰٓئِكَ يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ﴾ بلكه الله تعالى به دداسې خلقو د ] تيرو [ ګناهونو] خاتمه وكړى او دهغوا په ځائ ] اننده [ نيكئ وركړى ] يعنى چونكه تيركفر اوګناه دكفر دزمانې نه پس به يې داسلام په بركت سره معاف شى او اننده به يې دنيكو عملونو په وجه نيكئ ليكلې كيږى او په دې به ثواب ملاويږى په دې وجه دجهنم سره به ددوى هيڅ تعلق نه وى پس الا استثناء منقطع ده اود من تاب خبر فاولئك الخ دې او مقصود په حكم سره بدلول دګناهونو په نيكيودى كوم چه په مجموعه ايمان توبه او عمل صالح باند مرتب دې اود جهنم داور نه محفوظ پاتې كيدل ددې لازمى اثر دې او جهنم ته يې دسره داخليدل نشته نو هميشوالې يې نه كيدل ظاهر دى يا استثناء متصله وى او دنيتوالى دخلود دپاره مجموعه ايمان او توبه او عمل صالح شرط نه وى مګر دمجموعې سره نستوالې دخلود موندل په دې ايت كښې مذكور شو او صرف په ايمان باند نيشتوالې دخلود مرتب كيدل په نورو دليلونوسره ثابت وى [او] دالرې كيدل دګناهونو او ثابتيدل دنيكيو ځكه وشو چه ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا﴾ [الله تعالى بخښونكې دې ] په دې وجه يې ګناهونه ختم كړل او[ رحيم دې ] په دې وجه يې نيكئ قائمې پاتې كړې دا خو دكفر نه دتوبه

[٣٣]) ددې پوره آيت مبارك ترجمه داده:- كومو خلقو چې به كفر كولو او دالله تعالى د لارې نه به يې منع كول، نو مونږ دوئ دپاره ددوى د فساد په وجه د يوې سزا دپاسه بله سزا زياتوو.

کوونکی بیان وو [ او ] وړاندې دهغه مؤمن ذکر دې کوم چه دګناه نه توبه وکړي ددې دپاره چه مضمون دتوبې پوره شي او رانګ دمقبولو بندګانو دباقی صفتونو بیان دې چه داخلق همیشه داطاعت پابند او دګناهونونه دپرهیز کولو عادتیان ثمودیان نه دی لیکن که چرې ددوی نه نافرمانی وشی نو توبه کوی په دې وجه دتوبه کوونکو حال ارشاد فرمائی یعنی ﴿وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا﴾[کوم سړی چه ] دګناه نه [ توبه کوی اونیك کارکوی ] یعنی اننده دګناه نه ځان ساتی [ نو هغه ] به هم دعذاب نه بچ وی ځکه چه هغه﴿فَإِنَّهُ يَتُوبُ إِلَى اللَّهِ مَتَابًا﴾ [دالله تعالی طرف ته په خاص طور سره رجوع کوی ] یعنی په ویره او اخلاص سره چه شرط دتوبې دې وړاند بیا دعبادالرحمان صفتونه بیانوی یعنی [ او ] په دوی کښې داخبره ده چه﴿وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ﴾ [په عبثوخبرو کښې ] لکه لهو لعب دشریعت نه خلاف [ نه شاملیږی ﴿وَإِذَا﴾ اوکه چرې ] اتفاقا بلاقصده ﴿مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا﴾[ په عبثو مشغلو راشی تیریږی نو په سنجیدګئ ] او شرافت [ سره تیریږی] یعنی نه دغې طرف ته مشغولیږی او نه ددغې په نښو سره ترې نه د ګناهګارو سپکوالي او خپله لوئ او تکبر ظاهریږی ﴿وَالَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ﴾[ اوهغه داسې دی چه کله دوی ته دالله تعالی داحکامو په ذریعه نصیحت وکړې شی نو په دې] احکامو﴿لَمْ يَخِرُّوا عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا﴾ [راندهٔ کاڼرهٔ نه ورغوریږی ] لکه ځنګه چه کافران قرآن دتماشې په طور باند یوه نوې خبره ګڼړي او دارنګ په دې کښې داعتراضاتو پیداکولو دپاره ددې دحقیقتونو او دمعلوماتو نه ړانده کاڼره کیږی ګډ وډ بې ترتیبه ګڼړه جوړوی لکه چه بل ځائ د قرآن ارشاد دې [کادوایکونونه علیه لبدا]([۳۴]) دځنې تفسیرونو په بنا باند پس ذکر شوی بندګان داسې نه کوی بلکه په عقل او پوه سره قرآن ته توجه کوی او ددې طرف ته راځی چه ثمره ئ زیات ایمان او عمل په احکامو دی پس مقصود په ایت کښې دړوند کوڼړ کیدو نفی کول دی نه چه دقرآن طرف ته دمتوجه کیدو او په دهٔ د راغورزیدو نه ځکه چه دغه عین مطلوب دی او په دې سره دکفارو دپاره هم په قرآن غورزیدول خو ثابتیږی مګر دغه دمخالفت اومزاحمت په طور دړندو کڼړو په شان وو په دې وجه دغه بد دی ﴿وَالَّذِينَ﴾[ او هغه داسې دی چه ] لکه ځنګه چه په خپله په دین عاشقان دی دغه شان دخپل اهل وعیال دپاره هم ددې سعئ او کوشش ئ وې چنانچه دعملی کوشش سره دالله تعالی نه هم [دعاکوی يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ چه اے پرودګاره زمونږ امونږ له زمونږ دبیبیانو او زمونږ داولاد دطرف نه دسترګو یخوالي ] یعنی راحت [ راکړې] یعنی دوی دیندار ه جوړ کړې اومونږ زمونږ په دې کوشش ددینداریٔ کښې کامیاب کړې چه دوی دډینداریٔ په حالت وینو او راحت اوخوشحالی وی [ او] تاخو مونږ لره زمونږ دخاندان مشران خو جوړ کړې دې مګر زمونږ دعا دا ده چه داټول متقیان جوړ کړې ﴿وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا﴾[ مونږ دمتقیانو مشران جوړ کړې ] نو اصل مقصود دمشری غوښتل نه دی اګرچه په دې کښې هم څه بدوالې نشته مګر مقام پرې دلالت نه کوی بلکه اصل مقصود دخپل خاندان دمتقی کیدو درخواست دې یعنی په ځائ ددې چه مونږ صرف دخاندان مشران یو مونږ لره دمتقی خاندان مشران جوړ کړې تردې ځائ پورې دعبادالرحمان دصفتونو بیان وو وړاند ددوی جزاء ده یعنی ﴿أُولَٰئِكَ﴾[ داسې خلقو ته به ] په

[۳۴] ) ترجمه:- نزدې وو خلق چې شوی دی په هغه باندې حمله کونکی په جمع سره

جنت کښې اوسيدو دپاره ﴿یُجۡزَوۡنَ ٱلۡغُرۡفَةَ﴾ [بالاخانې ملاوشي ﴿بِمَا صَبَرُوا﴾ په وجه ددوی ] په دين او اطاعت [ دثابت قدم پاتې کيدو ﴿وَیُلَقَّوۡنَ فِیهَا تَحِیَّةً وَسَلَـٰمًا﴾ او هغوی ته به په دې ] جنت [ کښې ] دفرښتو دطرف نه [ دبقادعا او سلام ملاويږي ] او ﴿خَـٰلِدِینَ فِیهَا﴾ [په دې ] جنت [ کښې به هغوی هميشه هميشه وسيږي ﴿حَسُنَتۡ مُسۡتَقَرࣰّا وَمُقَامࣰا﴾ هغه څنګه ښه ځای اومقام دی] لکه چه دجهنم په باره کښې [ساءت مستقراومقاما](۴۰) فرمائيلی دی اے پيغمبر ﷺ [ته ] په عام طور سره خلقوته ﴿قُلۡ مَا یَعۡبَؤُا۟ بِكُمۡ رَبِّی لَوۡلَا دُعَاۤؤُكُمۡ﴾ [ ووايه چه زمارب به ستاسو يوه ذره هم پرواه نه کوی که تاسو عبادت ونه کړئ پس] په دې سره پوهيدل پکاردی چه اے کفارو ﴿فَقَدۡ كَذَّبۡتُمۡ فَسَوۡفَ یَكُونُ لِزَامَۢا﴾ تاسوخو داالله تعالی [ حکمونه دروغ ګڼړئ نو ډير ژر به دا] دروغ ګڼړل ستاسو دپاره وبال [جان] شي [خواه په دنيا کښې لکه په واقعه دبدر کښې چه په کفارو مصيبت راغې يا په اخرت کښې او هغه ظاهره ده]

## معارف او مسائل

د سورت فرقان زيات مضمونونه د رسول الله ﷺ د پيغمبرئ په ثبوت او د کافرانو او مشرکانو د هغې اعتراضونو په جواب کښې وو چه د دوئ ﷺ په پيغمبرئ به ئې کول او په دې کښې د کافرانو مشرکانو او د حکمونو نافرمانی کونکو د عذاب او سزا بيان هم وو په آخر د سورت کښې د خپلو هغو مخصوصو او مقبولو بندګانو بيان کوی چه په پيغمبرئ باندې ئې ايمان هم مکمل دې او د هغوئ عقيدې ،عملونه ، اخلاق او عادتونه ټول د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ د مرضئ تابع او د شرعی حکمونو مطابق دی -

قرآن کريم دغې مخصوص بندګانو ته د ، عبادالرحمن ، لقب ورکړو چه د هغوئ د ټولونه لوئ عزت دې هسې خو ټول مخلوق په تکوينی ډول د الله تعالی په بندګئ کولو او د هغه د ارادې په تابع کيدو کښې مجبور دی د هغه د ارادې نه بغير هيڅوک څه نشی کولې ،خو دلته د بندګئ نه مراد په خپل اختيار سره شرعی بندګی کول دی چه په خپل اختيار سره خپل وجود ، خپل خواهشات او ټول کارونه د الله تعالی د مرضئ جوړول دی ، د سورت تر آخره پورې د الله تعالی د هغې مخصوصو بندګانو بيان دې چه الله تعالی ورته خپل بندګان وئيلو سره عزت ور ښښلې دې په منځ منځ کښې د کفر او ګناه نه د توبې او د هغې د اثراتو بيان راغلې دې - دلته الله تعالی خپل مخصوص بندګان ځان ته منسوب کولو سره هغوئ ته عزت ورکول وو خو دې د پاره په ټولو خپلو مبارکو نومونو کښې ، رحمن ، نوم مبارک ته دوئ منسوب کول شائد دې ته اشاره وی چه د الله تعالی د دغې بندګانو عادتونه او صفتونه داسې وی چه درحمانيت صفت دپاره ترجمان او د هغې ننداره دې وی -

**د الله تعالی د مخصوصو او مقبولو بندګانو مخصوص صفتونه او نبنی نښانې** :: په دې آيتونو کښې د الله تعالی د مخصوص او مقبول بندګانو ديارلس صفتونه او نښې نښانې بيان شويدی يو په کښې عقيده سمول او په خپلو ټولو ذاتی عملونو بدنی او مالی کښې د الله تعالی او رسول ﷺ د حکمونو او مرضئ پابندی کول دی او بل پکښې انسانانو سره زيست روزګار کول او تعلقات لرل

(۴۰) ترجمه:- دا جهنم ډير زيات خراب ځائې دې او ډير خراب مقام دې

د شپې ورځې عبادت کولو سره د الله تعالی ویره لرل ، تولو ګناهونو نه د ځان ساتلو انتظام کول او خپل ځان سره سره د خپل اولاد او بیبیانو د اصلاح فکر کول و غیره شامل دی.

د تولو نه اول صفت ئې ،عباد ، [ بندګان د خدای] کیدل دی ، عباد ، د ،عبد، جمع ده معنی ئې بنده ده چه د خپل آقا [ مالک] مال وی- د هغه وجود او تول اختیارات او عملونه د خپل مالک د حکم او مرضۍ تابع وی د الله تعالی د بنده کیدو هغه څوک حقدار دې چه خپلې عقیدې خیالونه تولې ارادې او تول حرکات سکنات او خواهشات د خپل رب د حکم او مرضۍ تابع لری هر وخت ئې آواز ته غوږ وی چه د څه حکم راته اوشی هغه به په ځای راوړم

**دویم صفت**:: دویم صفت ئې ﴿یَمۡشُوۡنَ عَلَی الۡاَرۡضِ هَوۡنًا﴾ دې [ چه په خاکسارۍ سره په زمکه باندې ګرځی] دلته د ،هونٌ، مطلب آرام ، وقار او خاکساری ده چه د نشې ګرځیدل داسې نۀ کوی چه د متکبرانو په شان قدم اردی. ډیر په مزه ګرځیدل ترې مراد ځکه نۀ دی چه بې ضرورته دغسې کول د سنتو نه خلاف دی چنانچه د رسول الله ﷺ په شمائیلو کښې بیان شوې دی چه د هغوی ګرځیدل به ډیر په مزه مزه نۀ وو بلکه تر څه حده پورې تیز او جلت به وو ، حدیث کښې راغلې دی ،﴿کانما الارض تطوي لـه﴾، [ ګویا کښې زمکه به ورته راغونډیدله کله به چه هغوی تلل ] [ ابن کثیر] [۳۶]

همدغه وجه ده چه پخوانو بزرګانو په تکلف سره رو رو تلل د تکبر نښه ګرځولې ده او فرمائیلې ئې دی چه هر کله دا یو قسم نخره کول دی ځکه مکروه دی ، فاروق اعظم رضی الله عنه یو ځوان اولیدو چه ډیر رو رو [کرار کرار] روان وو تپوس ئې ترې اوکړو چه آیا تۀ بیمار ئې ؟ هغه اوئیل چه نا هغوی پرې دره پورته کړه او حکم ئې ورته اوکړو چه په چستۍ سره ګرځه - [ ابن کثیر ] [۳۷]

حضرت حسن بصری رحمه الله د دې آیت ﴿یَمۡشُوۡنَ عَلَی الۡاَرۡضِ هَوۡنًا﴾ په تفسیر کښې فرمائیلې دی چه د مؤمنانو مخلصانو تول اندامونه او جوارح ، سترګې غوږونه ، لاسونه ، خپې تول د الله تعالی په وړاندې ذلیله او عاجزه وی نا خبره چه ورته اوګوری نو معذوره او عاجزه ئې ګڼړی سره د دې چه نۀ خو هغه بیمار او نۀ معذوره وی بلکه روغ موټ او تکړه وی صرف د الله تعالی ویره پرې دومره غالبه وی چه په نورو دومره غالبه نۀ وی دنیاوی جنجالونو نه هغوی د آخرت فکر ایسار کړې وی او څوک چه د الله تعالی آسره کوی تول مخه ئې هم د دنیا کارونو ته وی نو هغه همیشه د پاره ارمانجن ځکه وی چه دنیا خو تول په لاس ورتلې نشی او آخرت د پاره ئې څه کار نۀ دې کړې چا چه د الله تعالی نعمتونه صرف د خوراک څکاک څیزونه ګرځولې دی اعلی اخلاقو ته ئې هډو مخه نۀ ده ګرځولې دهغه علم ډیر کم دې اوعذاب هغه دپاره تیار دې [دابن کثیرنه په لنډو] [۳۸]

**دریم صفت**:: دریم صفت ئې ﴿وَاِذَا خَاطَبَهُمُ الۡجٰهِلُوۡنَ قَالُوۡا سَلٰمًا﴾ [ کله چه د جهالت خاوندان ورسره خطاب کوی نو دوی وائی چه سلام ] دې دلته د ، جاهلون، ترجمه د جهالت خاوندان ځکه اوکړې شوه چه دې نه مراد بې علمه خلق نۀ دی بلکه هغه پوه خلق هم ترې مراد دی چه کارونه د جاهلانو پشان کوی اود سلام نه مراد دلته عرفی سلام نۀ دې بلکه د سلامتۍ خبره ترې مراد ده، قرطبی د

[۳۶] جامع الترمذي ، ابواب المناقب ، باب ماجاء في صفة النبي صلى الله عليه وسلم ج:۲ ص:۲۰۵ و تفسير ابن كثير تحت هذه الآية ج: ٦ ص:۱۲۲

[۳۷] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية ج: ٦ ص:۱۲۲

[۳۸] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية ج: ٦ ص:۱۲۲

نحاس نه نقل کړی دی چه دلته سلام د تسلیم نه مشتق نه دې بلکه د تَسَلُّم نه مشتق دې چه معنی ئې سلامت پاتې کیدل دی مراد دا شو چه د جاهلانو په جواب کښې هغه د سلامتئ خبره داسې کوی چه بل چا ته پرې زیان نه وررسی چه دې پرې گنهگار نشی هم دا تفسیر د حضرت مجاهد رحمه الله او مقاتل رحمه الله و غیره نه منقول دې [ مظهری ] [39]

حاصل ئې دا شو چه جاهلانه خبرې کوونکو بیوقوفانو سره دا حضرات انتقامی معامله نه کوی بلکه په هغې باندې خپه راکاړی -

**څلورم صفت:** څلورم صفت ئې دې ﴿وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا﴾ یعنی [ شپه په دې شان تیروی چه د خپل رب په وړاندې سجده کونکی او ولاړ وی ] په عبادت کښې د شپې رونړا کوؤ په خصوصیت سره ځکه بیان اوکړې شو چه د اوده کیدو او آرام کولو په دې وخت کښې عبادت کول خاص مشقت او خواری کول دی چه په کښې د ریا او نمائش خطره هم نه وی مطلب دا دې چه د دوی کار شپه او ورځ د الله تعالی په عبادت او فرمانبرداری کښې تیرول دی ، د ورځې تعلیم ، تبلیغ اود الله تعالی په لار کښې دجهاد کولووغیره کارکوی اودشپې د الله تعالی عبادت کولوته ئې بدې وهلې وی چنانچه د شپې دتهجد کولوپه حدیث شریف کښې لوئ فضیلت راغلې دې ترمذی دحضرت ابی امامه رضی الله عنه نه روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل قیام الیل [تهجد] په پابندئ سره کوئ ځکه چه دا تاسونه وړاندې هم د ټولو نیکانو بندګانو عادت پاتې شوې دې دا الله تعالی ته نزدې کونکې د ګناهونو کفاره او د ګناهونونه ایساروونکې څیز دې [ مظهری ] [40]

حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چه چا د ماسختن مونځ نه پس دوه رکعاته یا دې نه زیات اوکړل هغه هم په دې حکم کښې داخل دی چه ﴿بات لله ساجدا وقائما﴾ ، [ الله تعالی ته ئې په سجده او په ولاړې شپه تیره کړه ] . [ مظهری د بغوی نه ] [41]

او د حضر عثمان غنی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ او فرمائیل ، چا چه د ماسختن مونځ په جمع اوکړو نو حکم ئې داسې شو چه نیمه شپه ئې په عبادت کښې تیره کړه او چا چه د صبا مونځ په جمع اوکړو نو هغه داسې شو لکه چه پاتې نیمه شپه ئې په عبادت کښې تیره کړه [ رواه احمد و مسلم په حواله د مظهری ] [42]

**پنځم صفت:** پنځم صفت ئې ﴿وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ﴾ الایة ، دې مطلب دا دې چه دغه مقبولین خلق شپه او ورځ په عبادت کښې لګیا وی خو سره د هغې نه هم د الله تعالی نه نه بې ویرې کیږی بلکه هر وخت د الله تعالی نه ویره کوی او د آخرت فکر کړی چه عملی کوشش هم ور د پاره جاری لری او الله تعالی نه دعاګانې غواړی –

**شپږم صفت:** شپږم صفت ئې ﴿وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَنْفَقُوْا﴾ الایة ، دې یعنی د الله تعالی مقبول بندګان چه مال لګوی نو اسراف او فضول خرچی هم نه کوی او بخل او کوتاهی هم نه کوی بلکه د دواړو تر

[39] ) تفسير المظهري ج:٧ص:٤٦ و تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:١٣ ص:٦٩

[40] ) تفسير المظهري ج:٧ص:٤٦ و جامع الترمذي ، ابواب الدعوات، باب في دعاء النبي صلي الله عليه وسلم ج:٢ ص:١٩٥

[41] ) تفسير المظهري ج:٧ص:٤٧ والبغوي ج: ٦ ص:٩٤

٤٢ ) صحيح مسلم، كتاب مساجد ومواضع الصلاة، باب فضل صلاة الجماعة إلخ: ج ١، ص ٢٣٢، ومسند احمد، مسند عثمان بن عفان رضى الله تعالى عنه ، رقم الحديث : ٤١٦.

درمیانه حال باندي قائم پاتې کيږي په آيت کښې د اسراف او د دې په مقابله کښې د ،اقتار ، الفاظ استعمال شوي دي د اسراف لغوي معنې د حد نه تيريدل دي د شريعت په اصطلاح کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه مجاهد رحمه الله قتاده رحمه الله او ابن جريج رحمه الله په نزد اسراف دې ته وائي چه د ګناه په کار کښې خرچ اوکړې شي اګر که يوه پيسه وي او ځنې حضراتو فرمائيلي دي چه په روا او مباح کارونو کښې د ضرورت نه زيات خرچ کول چه د تبذير [فضول خرچۍ] په حد کښې داخل شي دا هم د اسراف په حکم کښې راځي ځکه تبذير د قرآن کريم په نص سره حرام او د ګناه کار دې ځنګه چه الله تعالى فرمائي ﴿إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ﴾ (۴۳) په دې لحاظ سره د دې تفسير حاصل هم د حضرت ابن عباس رضي الله عنه و غيره بيان کړې تفسير شو يعنې چه د نافرمانۍ او ګناه په کار کښې څه خرچ کړې شي هغه اسراف دې [مظهري] (۴۴) د ،اقتار ، معنې په خرچ کښې تنګي او بخل کول دي د شريعت په اصطلاح کښې د دې معنې دا ده چه په کومو کارونو کښې الله تعالى او رسول صلى الله عليه وسلم د خرچ کولو حکم کړې دې په دغې خرچ کښې تنګي کول [چه بيخي خرچ پکښې نۀ کول هم دا خل دي] دا تفسيرهم د حضرت ابن عباس رضي الله عنه قتاده رحمه الله و غيره نه منقول دي [مظهري] (۴۵) د آيت مفهوم دا شو چه د مقبولو بندګانو صفت په مال خرچ کولو کښې دا وي چه د اسراف او اقتار په منځ منځ کښې په ميانه روۍ عمل کوي – رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي ،من فقه الرجل قصده فى معيشته ، [د انسان د هوښيارۍ نښه دا ده چه په خرچ کولو کښې ميانه روي اختيار کړي [اسراف هم نۀ کوي او بخل هم نۀ کوي] [احمد د ابي الدرداء نه په حواله د ابن کثير] (۴۶)، يو بل حديث پاک کښې د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې [ماعال من اقتصد] [څوک چې متوسط خرچ کوي هغه به کله هم فقير ا ومحتاج نشي] [امام احمد بحواله ابن کثير] (۴۷)

**اووم صفت** :: اووم صفت ئې ، ﴿وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا﴾ ، دې په ړومبو شپږو صفتونو کښې د طاعت او فرمانبردارۍ اصول راغلي دي اوس د ګناه او نافرمانۍ مهم اصول بيانولي شي ړومبې ځيز پکښې د عقيدې په باره کښې دې فرمائي ، دا خلق الله تعالى سره په عبادت کښې بل هيڅوک نۀ شريکوي – دې نه معلومه شوه چه شرک د ټولو نه لويه ګناه ده -

**اتم او نهم صفت** :: اتم او نهم صفت ئې ، ﴿وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي﴾ الاية ، دې په عملي ګناهونو کښې دا د لويو لويو او سختو ګناهونو بيان دې چه د الله تعالى مقبول بندګان ئې خواته هم نۀ ورځي څوک په نا حقه هم نۀ وژني او د زنا خوا ته هم نۀ ورځي د دې دريو زياتو لويو ګناهونو [د عقيدې او د عمل] بيانولو نه پس قرآن کريم فرمائي ﴿وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا﴾ [څوک چه دا ګناهونه کوي سزا به ئې بيا مومي] دلته ابو عبيده د ،اثام ، لفظ تفسير د ګناه په سزا سره کړې دې او ځنو

---

۴۳ ) ترجمه:- بيشکه فضول خرچه خلق دشيطان رونړه دي.
۴۴ ) تفسير المظهري ج:۷ص:۴۷
۴۵ ) تفسير المظهري ج:۷ص:۴۷، ۴۸
۴۶ ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية ج: ٦ ص:۱۲۴ ومسند احمد باق حديث ابي الدرداء رضي الله عنه (بألفاظ مختلفة) رقم الحديث: ۲۲۳۴۴
۴۷ ) تفسير ابن كثير ج: ٦ ص:۱۲۴ و مسند احمد، حديث العباس رضي الله عنه رقم الحديث: ۴۲۶۹

مفسرينو رحمهم الله فرمائيلي دي چه ، اثام ، د جهنم د يوې كندې نوم دې چه د زياتو سختو عذابونو نه ډكه ده او په دې باندې ګواه څو حديثونه ئې هم ليكلي دي [ مظهري ] [48]

وروسته د هغې عذاب بيان دې چه د بيان شوؤ ګناهونو په كونكو باندې به وي او د آيتونو د رواني او وراندې روستونه دا خبره په ګته شويده چه دا عذاب هغې كافرانو د پاره مخصوص دې چاچه كفراو شرک هم اوكړو او ورسره ئې زنا او قتل هم اوكړو ولې چه اول خو د ﴿يُضٰعَفْ لَهُ الْعَذَابُ﴾ الفاظ د ګناهګارو مسلمانانو د پاره خكه نشي كيدې چه په قران او سنت كښې د دوئ په يو ګناه باندې هم د يوې سزا وعده منصوص ده په مقدار او كيفيت كښې د سزا زياتول مسلمانانو دپاره نشته بله دا چه دلته د ،ويخلد فيه مهانا ، [ په دې عذاب كښې به تل تر تله ذليل او خوار پاتې كيږي] الفاظ هم ښائې چه دا سزا به د كافرانو او مشركانو خكه وي چه مسلمانان به هميشه د پاره په جهنم كښې نۀ پاتې كيږي بلكه د ګناه مناسب سزا تيرولو نه پس به جهنم نه اوښكلې شي خلاصه ئې دا شوه چه كوم خلق په كفراو شرک كښې مبتلا شو او قتل او زنا ئې هم اوكړل د هغوئ عذاب نور هم زياتولې شي چه سخت به هم وي او تل د پاره به هم وي وروسته دا بيان دې چه د كومو مجرمانو عذاب چه دلته بيان شو كه چرې هغوئ توبه كړي او سره د ايمان راوړلو نيک عمل هم كول شروع كړي نو الله تعالى به ئې ګناهونه په نيكو سره بدل كړي مطلب دا دې چه د دې توبې نه پس د هغوئ په عمل نامه كښې به سراسر نيكئ پاتې شي خكه چه د شرک او كفرنه په توبې كولو سره د الله تعالى د وعدې مطابق تول كړي ګناهونه ئې هم معاف شي او خائ به ئې ايمان او نيک عملونه واخلي بدئ په نيكيانو باندې د بدلولو دا تفسير د حضرت ابن عباس رضي الله عنه حسن بصري رحمه الله سعيد ابن جبير رحمه الله مجاهد و غيره د تفسير د امامانو نه منقول دې [مظهري] [49]

ابن كثير د دې يو بل دا تفسير هم نقل كړې دې چه د ايمان راوړلو نه پس د كفر په حالت كښې د كافر د كړي ګناهونو په خائ نيكيانې ئې ليكلې شي وجه ئې دا ښودلې ده چه د ايمان راوړلو نه پس هر كله چه ورته په كفر كښې كړې ګناهونه رايادې شي نو په هغې به خپمانه شي او توبه به نوې كړي د دې عمل په بنا به ئې هغه ګناهونه په نيكيانو كښې بدل كړې شي او د دې په دليل كښې ئې د حديث څنې روايتونه هم پيش كړې دي [50]

﴿وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَإِنَّهُ يَتُوبُ إِلَى اللَّهِ مَتَابًا﴾ په ظاهره خو دا هم هغه مضمون ښكاري كوم چه په ﴿إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا﴾ كښې بيان شو ي وو خو قرطبي رحمه الله د قفال نه نقل كړې دی چه دا توبه د هغې توبې نه مختلفه داسې ده چه اوله معامله د كافرانو او مشركانو وه كوم چه په قتل او زنا كښې هم مبتلا شوی وو هغوئ چه ايمان راوړو نو ګناهونه ئې په نيكيانو باندې بدل شول خكه چه هغې سره د ،امن ، ذكر هم وو اوس دې دويمه توبه كښې هركله چه د ايمان ذكر نشته نو دې نه معلوميږي چه دا د مؤمنانو د توبې بيان دې چه د غفلت له كبله په قتل او زنا كښې اخته شوی وو نو داسې خلق چه د زباني توبې كولو نه پس آئنده د پاره خپل عملونه نيک او صحيح كړي هله به ئې توبه صحيح او درسته ګنړلې شي خكه د شرط په ډول د توبې كولو ابتدائی حال بيانولو نه پس به د دې په جزا كښې بيا د ،﴿يَتُوبُ﴾ بيانول صحيح وی په دې بنا په شرط كښې د بيان شوې

[48] ) تفسير المظهري ج:۷ ص: ۴۸، ۴۹
[49] ) تفسير المظهري ج:۷ ص:۵۰
[50] ) تفسير ابن كثير ج: ٦ ص:۱۲۷، ۱۲۸

توبې مطلب زباني توبه ده او په جزا کښې د بيان شوې توبې مطلب هغه توبه ده چه په نيک عمل باندې اړه لري د پورا آيت مطلب به دا شي چه ، چا د توبې قبلولو نه پس په خپل عمل سره هم د دغې توبې ثبوت ورکړو نو هغه به په صحيح ډول الله تعالى ته رجوع کوونکې ګڼړلې شي په خلاف د هغه چانه چه د توبې کولو نه پس ئې د هغې عملي ثبوت ورنکړو نو د هغه توبه د توبې نه کولو په حساب کښې شوه د دې بيان نه پس د دې ظاهري فائده به هم هغه وي کومه چه په رومبي آيت کښې داسې ښودلې شوې ده چه د دهٔ ګناهونه به په نيکيانو سره بدل کړې شي - پورته د مخصوص او مقبولو بندګانو خاص صفتونه بيانيدل په منځ کښې ئې د ګناه نه د توبې کولو حکمونه بيانول راغلل دې نه پس د پاتې صفتونو بيان داسې دې -

**لسم صفت**: لسم صفت ئې ﴿وَالَّذِيْنَ لَا يَشْهَدُوْنَ الزُّوْرَ الخ﴾ ، [ دې يعنى دا خلق په دروغو او باطلو مجلسونو کښې نهٔ شريکږي ] ټولو نه لوئ دروغ او باطل خو شرک او کفر دې وروسته د عامو دروغو او ګناهونو کارونه دي د آيت مطلب دا شو چه د الله تعالى مقبول بندګان په داسې مجلسونو کښې د شريکيدو نه هم ډډه کوي حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلې دي چه دې نه مراد د مشرکانو اخترونه او ميلې تيلې دي - او محمد بن حنفيه رحمه الله اوفرمائيل چه دې نه مراد دسندرو او سرودونو مجلسونه دي عمرو بن قيس اوفرمائيل چه دې نه مراد د بې حيايئ او د ګډا سرودونو [غزلونو ربابونو] محفلونه دي . امام زهري رحمه الله او امام مالک رحمه الله اوفرمائيل چه دې نه د شرابو څکلو او څکولو محفلونه مراد دي [ابن کثير] ( [51] )

او حقيقت دا دې چه په دې قولونو کښې هيڅ اختلاف نشته دا ټول مجلسونه د ،زور ، مجلسونه دي د الله تعالى نيک بنديګان دې د داسې محفلونو پرهيز کوي ځکه چه لغو او باطل څيزونه په ارادې او قصد سره کتل په دې کښې د شريکيدو په حکم کښې دي [ مظهري ] ( [52] ) ځنې مفسيرينو دلته ﴿لَا يَشْهَدُوْنَ﴾ د ګواهئ په معنى اخستې دي مطلب ئې دا شو چه د الله تعالى مقبول بندګان د دروغو ګواهى نهٔ ورکوي چنانچه د دروغو ګواهي ورکول د قرآن کريم او سنت له مخې لويه ګناه او وبال کيدل مشهور دي ، چنانچه بخاري او مسلم کښې د حضرت انس رضي الله عنه په روايت رسول الله صلى الله عليه وسلم په دروغه ګواهي ورکول ،اکبر الکبائر ، [ په لويو کښې زياته لويه ګناه ] ښودلې ده ( [53] ) حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه او فرمائيل چه د چا په باره کښې ثابته شي چه په دروغه ګواهي ئې ورکړې ده نو هغه ته دې د څلويښتو درو سزا ورکړې شي مخ تور کړې دې په بازار کښې ګرځولې شرمولې شي بيا دې اوږده زمانه قيد اولرلې شي [ روايت کړو ابن ابى شيبه او عبد الرزاق [ مظهري ] ( [54] )

**يوولسم صفت**: يو لسم صفت ئ ﴿وَإِذَا مَرُّوْا بِاللَّغْوِ مَرُّوْا كِرَامًا﴾ [دې يعنى که په عبث او بې هوده مجلسونو باندې ئې تيريدل چرته را پيښ شي نو په نا غرضئ او شرافت سره پرې تيريږي ] مطلب ئې دا دې چه داسې مجلسونو کښې خو د دوئ شريکيدل لرې خبره ده که چرته ناڅاپي پرې

---

[51] ) تفسير القرطبي　ج:۱۳ص:۷۹

[52] ) تفسير المظهري ج:۷ص:٥٤

[53] ) صحيح البخاري كتاب الشهادات ،باب ما قيل في شهادة الزور　ج:۱ص:۳٦۲　و صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب الكبائر واكبرها　ج:۱ص:٦٤

[54] ) مصنف ابن ابى شيبة رقم الحديث : ۲۸۷۱۳　و مصنف عبدالرزاق رقم الحديث: ۱۵۳۹۲

وریېښ شي نو په داسې شان پرې تیر شي چه دغه کار خو یقینا بد ګڼړې مګر په دې کښې د شاملیدونکو سپکاوې او بې عزتي نۀ کوي او نۀ خپل ځان د دوئ نه غوره ګڼړي چنانچه یو ځل حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په داسې یو مجلس باندې وریېښ شو نو ایسار نشو او همداسې پرې تیر شو رسول الله ﷺ ته چه معلومه شوه نو وې فرمائیل چه ابن مسعود کریم شو او دا آیت ئې پرې چسپان کړو په کوم کښې چه په داسې مجلسونو باندې د کریمانو او شریفانو پشان د تیریدو حکم دې - [ ابن کثیر ] (۵۵)

**دولسم صفت:** دولسم صفت ئې ﴿وَالَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوا عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا﴾ دې [ یعنی د دې مقبول بندګانو شان دا دې چه کله ورته د الله تعالی آیتونه او آخرت وریاد کړې شي نو هغوئ دغې آیتونو ته د ړندو کڼړو په شان مخه نۀ کوي ] بلکه د سمیع بصیر انسان په شان په دې کښې غور کوي او عمل پرې کوي د غافلانو او شودګانو په شان کار نۀ کوي چه ګڼې د سره ئې آوریدلي او کتلي نۀ دي – په دې آیت کښې دوه څیزونه بیان شوي دي یو د الله تعالی په آیتونو باندې ورپریوتل [ چه ښه په شوق ئې ورته مخه شي ] دا خو ښه ، مقصودي او ډیر نیک کار دې بل لکه د ړندو کڼړو پشان پرې داسې ورپریوتل دي چه د قرآن کریم آیتونو ته مخه کړي لیکن عمل په داسې شان سره کوي چه ګویا که دۀ د سره لیدلي او آوریدلي نۀ دي یا عمل پرې په داسې شان کوي چه صحیح اصولو او د صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو په خلاف ئې د خپلې رائ یا صرف د آوریدنو [ بې سنده ] خبرو تابع ګرځولو سره غلط عمل پرې کوي چه دا هم د ړندو ، کڼړو پشان پرې د ور پورې وتو په حکم کښې دي -

**د دیني حکمونو صرف مطالعه کول کافي نۀ دي بلکه د پوهانو عالمانو د تفسیر مطابق پرې ځان پوهول او هغې پرې عمل کول ضروري دي:** په دې آیتونو کښې څنګه چه ددې خبرې سخته بدي بیان شوې ده چه د الله تعالی آیتونو ته د سره توجه اونکړي یا د ړندو کڼړو پشان پرې ځان نا غرضه کړي دا شان د دې بدي هم بیان شوې ده چه توجه خو ورته اوکړي خو په اټکل پرې داسې عمل کوي چه ځان پرې نۀ پوهوي بې بصیرته په خپلې رائ سره څنګه چه ئې خوښه شي هغسې پرې عمل اوکړي ابن کثیر د ابن عون نه نقل کړې دي چه هغوئ د حضرت شعبي رحمه الله نه تپوس اوکړو چه کله زه داسې یو مجلس ته ورشم چه پکښې خلق په سجدې پراتۀ وي نو زۀ هم ورسره په دغې سجده کښې شامل شم اګر چه پرې نۀ پوهیږم چه دا کومه یوه سجده ده ؟ حضرت شعبي رحمه الله اوفرمائیل چه ، نۀ ، مؤمن د پاره دا درست نۀ دي چه په نا پوهۍ کښې څه کار کولو باندې لګیاشي بلکه ضروري دي چه په بصیرت سره عمل کوي کله چه هغه آیت تاسو پخپله نۀ وي آوریدلي د کوم په بنیاد چه دغه خلق سجده کوي او د سجدې حقیقت هم درته نۀ وي معلوم نو دغه شان ورسره په سجده کښې شریکیدل جائز نۀ دي (۵٦) – په دې زمانه کښې دا خبره خو د شکر کولو جوګه ده چه د نوي خلمو او نوي تعلیمیافته خلقو کښې د قرآن کریم لوستلو او په دې باندې دځان پوهولو شوق پیدا شوې دې او په دې بنا هغه د خپله ځانه د قرآن ترجمه کوي یا د استاذ نه بغیر یو تفسیر کتو نه ترجمه کوي مګر دا بیخي بې اصوله خبره ده ځکه چه قرآن کریم باندې د صحیح پوهیدو په ځائ د ډیرو مغالطو ښکار شي د اصولو خبره دا ده چه د دنیا یو معمولي نه معمولي فن هم خالص د

(۵۵) تفسیر ابن کثیر ج: ٦ ص:۱۳۱ و تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحدیث: ۱٦۲۵۰
(۵٦) تفسیر ابن کثیر ج: ٦ ص:۱۳۲

هغې د کتاب په مطالعې سره په يقيني ډول نشي ازده کيدې تر څو چه هغه د يو استاذ نه او نه لوستې شي معلومه نه ده چه قرآن او د قرآن علوم ولې داسې ګنړلې شوې دی چه د هر چا زړه غواړي پخپله ترجمې کتو سره د دې مطلب تاکی دا بې اصوله مطالعه چه د يو ماهر استاذ رهنمائی ورته پکښې نه وی د الله تعالی په آيتونو باندې د ګنړو ړندو پشان د وړيړيوتو په مفهوم کښې شامل دی الله تعالی دې مونږ ټولو ته د صراط مستقيم توفيق راکړی -

**دېارلسم صفت:** ﴿وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ اَزْوَاجِنَا وَذُرِّيّٰتِنَا قُرَّةَ اَعْيُنٍ وَّاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِيْنَ اِمَامًا﴾ دې په دې کښې خپل اولاد او بيبيانو د پاره د الله تعالی نه دا دعا ده چه هغوئ دې الله تعالی زمونږه د سترګو يخوالې جوړکړی د حضرت حسن بصری رحمه الله د تفسير مطابق د سترګو د يخوالی جوړولو مراد دا دې چه دوئ لره د الله تعالی په عبادت کښې مشغول وينی چه انسان د پاره اصلی يخوالې دې او که د اولاد او بيبيانو ظاهری صحت ،روغتيا او خوشحالی هم پکښې شامله کړې شی نو دا هم درست دی - په دې دعا کښې دې ته اشاره ده چه د الله تعالی مقبولو بندګانو صرف د خپل نفس [ خان ] په اصلاح او نيک عملونو باندې تسلی نه کيږی بلکه غواړی چه د دوئ اولاد او بيبيانې هم د ښو عملونو او ښو اخلاقو خاوندان شی او دې د پاره کوشش هم کوی يو قسم کوشش دا هم دې چه د الله تعالی نه ور د پاره د دې دعا کوی د دې آيت وروستې جمله کښې د دعا دا برخه هم ده ﴿وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِيْنَ اِمَامًا﴾ [ مونږ د متقيانو امامان او پيشوايان جوړکړې ] په دې کښې په ظاهره خپل ځان د پاره لويئ او مرتبې حاصلولو دعا ده چه د قرآن کريم نصونو سره سمون نه خوری لکه قرآن کريم فرمائی ﴿تِلْكَ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا﴾(۵۷) يعنی مونږه د آخرت دار [ کور ] هغې خلقو د پاره مخصوص کړې دې چه په زمکه کښې خپله لويئ نه غواړی او نه په زمکه کښې فساد ولاړول غواړی په دې وجه ځنې عالمانو رحمهم الله د دې آيت په تفسير کښې او فرمائيل چه هر څوک د خپل بال بچ د پاره په قدرتی ډول امام او پيشوا وی په دې بنا د دې دعا حاصل دا شو چه زمونږه اولاد او آل و عيال متقيان جوړکړې کله چه هغوئ متقيان جوړشی نو په طبعی ډول به دغه کس د متقيانو امام او پيشوا بللې شی حاصل ئې دا شو چه دا د خپلې لويئ د پاره دعا کول نه دی بلکه د بال بچ د متقيانو جوړيدو د پاره دعا ده او حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله اوفرمائيل چه په دې دعا کښې خپل ځان د پاره څه مشری ، امامت او پشوائی غوښتل مقصود نه دی بلکه د دې دعا مقصود دا دې چه اې خدايه ، مونږه داسې جوړ کړې چه خلق په دين او عمل کښې زمونږ اقتدا کوی او زمونږ د علم او عمل نه هغوی ته فائده اورسی چه ثواب ئې زمونږه هم اوشی - او حضرت مکحول شامی رحمه الله فرمائيلې دی چه د دعا مقصود خپل ځان د پاره د تقوی داسې يو اعلی مقام حاصول دی چه د دنيا متقيانو خلقو ته هم زمونږ د عمل نه فائده اورسی قرطبی رحمه الله د دې دواړو قولونو نقل کولو نه پس اوفرمائيل چه د دې دواړو حاصل يو شان دې چه کومه مشری امامت د دين او آخرت د فائدې د پاره وی نو هغه څه بديت نه لری بلکه جائز دی(۵۸) او په ، لايريدون علوا ، کښې د هغې مشرئ او اقتدار غوښتو بديت بيان شوې دې چه د دنيوی عزت او مرتبې د پاره وی . والله اعلم .

---

۵۷) ترجمه:- دا د آخرت دنيا مونږ ددې خلقو دپاره خاص کوؤ چې په دنيا کښې نه لوې جوړيدل غواړی او نه فساد کوؤنکې.

۵۸) تفسير القرطبي ج:۱۳ص:۸۳

تر دې پورې د ، ﴿وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ﴾ [ د کاملانو مؤمنانو ] مهمو صفتونو بیان پوره شو وروسته د دوئ د جزا او آخرت د درجو بیان دې .
﴿أُولٰٓئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ﴾ د ، غرفة ، لغوی معنی بالاخانه ده په جنت کښې به خاصو نزدیکانو د پاره داسې بالاخانې وی چه عامو جنتیانو ته به دومره لرې ښکاری څنګه چه ستوری ورته لرې ښکاری [ بخاری مسلم و غیرهما مظهری ] (۵۹)
په مسند احمد ، بیهقی ترمذی او حاکم کښې د حضرت ابی مالک اشعری ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل جنت کښې به داسې بالاخانې وی چه دننه برخه به ئې بهر نه او بهرنۍ برخه ئې دننه نه ښکاری . خلقو ترې تپوس او کړو چه دغه بالاخانې به د چا د پاره وی ؟ وې فرمائیل ، څوک چه خپل کلام نرم او پاک لرې او هر مسلمان ته سلام کوی او خلقو باندې طعام خوروی او د شپې په هغه وخت کښې تهجد کوی کله چه خلق اوده وی - [ مظهری ] (۶۰)
﴿وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً وَسَلٰمًا﴾ یعنی د جنت نورو نعمتونوسره به هغوئ ته دا اعزاز هم حاصل وی چه فرښتې به مبارکی ورکوی او سلام به پرې اچوی – تر دې پورې د مؤمنانو مخلصانو د خصوصی عادتونو او عملونو او د دې د ثواب او جزا بیان وو په آخری آیت کښې بیا کافران او مشرکانو لره د عذاب نه په ویرولو سره سورت ختم کړې شوې دې .
﴿قُلْ مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَآؤُكُمْ﴾ د دې آیت په تفسیر کښې مختلف قولونه دی زیات واضح او آسان پکښې هغه دې چه د تفسیر په خلاصه کښې داسې لیکلې شوې دې چه ،د الله تعالی په نزد به ستاسو هیڅ قدر اوعزت نۀ وو که ستاسو د اړخه الله تعالی لره بلل او هغه لره عبادت کول نۀ وې- ولې چه د انسان د پیدا کولو منشا هم دا ده چه دالله تعالی عبادت دې اوکړې لکه په بل آیت کښې دی ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ (۶۱) [ ما انسان او پیریان سوا د دې نه هیڅ کار د پاره نۀ دی پیدا کړې چه هغوئ زما عبادت اوکړی دا خو یو عامه ضابطه بیان شوه چه د بې عبادته انسان هیڅ قدر او عزت نشته ، وروسته د کافرانو او مشرکانو بیان دې کوم چه د پیغمبرئ او عبادت نه منکر دی هغوئ ته خطاب دې ﴿فَقَدْ كَذَّبْتُمْ﴾ یعنی [ تاسو ،تول څیزونه په دروغه بولئ اوس د الله تعالی په نزد ستاسوهیڅ قدر نشته ] ﴿فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا﴾ ، اوس دغه دروغژن بلل او کفر ستاسو د غاړې امیل جوړ شوې دې او هم تاسو پورې به پیوست وی تر هغې پورې چه د جهنم دائمی [ د همیشه ] عذاب ته به مو اورسوی [ د جهنمیانو د حال نه د الله تعالی پناه غواړو ] -
تم بحمد الله سبحانه تفسیر سورة الفرقان یوم الاحد الثالث عشر من صفر المظفر ۱۳۹۱ هجري وباتمامه تم بعون الله وکرمه الحزب الرابع من الاحزاب السبعة القرانية والله سبحانه وتعالى ارجو واسال اتمام الباقى وما ذلك على الله بعزيز.

(۵۹) تفسير المظهري ج:۷ص:۵۵ وسنن الدارمي رقم الحديث: ۲۸۸۶ و صحيح البخاري كتاب الرقاق بباب صفة الجنة والنار ج:۲ص:۹۷۰ و صحيح مسلم كتاب الجنة وصفة نعيمها واهلها، باب ترائى اهل الجنة ج:۲ص:۳۷۸
(۶۰) تفسير المظهري ج:۷ص:۵۵ و جامع الترمذي ، ابواب البر والصلة، باب فى ماجاء فى القول المعروف ج:۲ ص:۱۹ و سنن البيهقي رقم الحديث : ۸۷۴۲ و مسند احمد، مسند علي بن ابي طالب رضي الله عنه رقم الحديث: ۳۱۵۱ و المستدرك للحاكم رقم الحديث: ۲۴۸
(۶۱) ترجمه:- او ما جنات او انسانانو ددې دپاره پیدا کړل چې دوئ به زما عبادت کوی.

## [ سورة الشعراء ]

| آیاتونه | سورة الشعراء مكية وهي مائتان وسبع وعشرون آية واحد عشري ركوعا | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۲۲۷ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان　　زیات رحم کونکي دي | ۱۱ |

طٰسٓمّٓ ① تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡمُبِيۡنِ ② لَعَلَّكَ بَاخِعٌ

ط س م | دا | آیتونه دکتاب | اصفا بیانونکی دی | شاید چی ته | هلاکونکي ئې |

ط س میم ، داديو واضح كتاب ايتونه دى | داسې ښکاری چې

نَّفۡسَكَ اَلَّا يَكُوۡنُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ ③ اِنۡ نَّشَاۡ نُنَزِّلۡ

دخان خپل | په دې چی نه کیږی دوئ | ایمان راوړنکی | که اوغواړو مونږه | نو نازل به کړو مونږه |

ته ددې خلقود ایمان نه راوړ په غم کښې خپل ژوند بائیلې | که مونږ اوغواړو نو دوئ ته

عَلَيۡهِمۡ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً فَظَلَّتۡ اَعۡنَاقُهُمۡ لَهَا خٰضِعِيۡنَ ④

په دوئ باندې | دآسمان نه | یوه نښه | نوشی به | څټونه ددوئ | هغه نښې ته | غاړه اېښودونکی

بۀ دآسمان نه یوه لویه نښه راولیږوا ...........نو ددوئ څټونه بۀ ورته ټيټ شي

وَمَا يَاۡتِيۡهِمۡ مِّنۡ ذِكۡرٍ مِّنَ الرَّحۡمٰنِ مُحۡدَثٍ اِلَّا كَانُوۡا عَنۡهُ

اونۀ راځي دوئ ته | یو نصیحت | د طرفه درحمان نه | نوې | مګر | وی دوئ | دهغې نه |

اودوئ ته چې کله هم د رحمان ذات د طرفه څه نصیحت راغلې دې | نو دوئ ترینه

مُعۡرِضِيۡنَ ⑤ فَقَدۡ كَذَّبُوۡا فَسَيَاۡتِيۡهِمۡ اَنۡۢبٰٓؤُا مَا

مخ اړونکی | اوس دروغ اوګڼړو دوئ [دا] | پس زر به راشی دوئ ته | خبرونه [حقیقت] | دهغه څیز

مخونه اړوی | نو دوئ خو [قرآن] دروغ اوګڼړلو | ډیر زر به ورته دهغې حقیقت معلوم شی

كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ⑥ اَوَلَمۡ يَرَوۡا اِلَى الۡاَرۡضِ كَمۡ

چی وۀ دوئ | چی په هغې پورې | به ئې توقې کولې | آیا نه ګوری دوئ | دې زمکې ته | چی څومره

چې دوئ به ورپورې خنداګانې کولې ..........آیا دوئ زمکې ته نه ګوری | چې مونږ

اَنۡۢبَتۡنَا فِيۡهَا مِنۡ كُلِّ زَوۡجٍ كَرِيۡمٍ ⑦ اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ

زرغونه کړې دی مونږه | په دې کښې | دهر قسم ښه ښۀ [بوټونه] | بیشکه | په دې کښې |

په دې کښې څومره ښه بوټی راززرغون کړی دی | یقینا په دې کښې [خلقو د پاره]

لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكۡثَرُهُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ⑧ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ

خامخا یوه نښه ده | اونۀ دی | اکثر ددوئ نه | ایمان راوړونکی | او بیشکه رب ستا | خامخا هغه

نښه ده | ...............او په دې اکثر خلق ایمان نه راوړی | او بیشکه ستا رب

| | |
|---|---|
| الْعَزِيزُ | الرَّحِيمُ ⑨ |
| غالب دي | مهربانه دي |
| غالب مهربان دي | |

## آسان ترجمه قرآن

طٰسٓمٓ: دا د هغه کتاب آيتونه دي کوم چه حق لره واضح کونکي دي. (اې پيغمبره!) کيدې شي چه ته په دې غم کښې ځان هلاکونکې ئې چه دا خلق (ولې) ايمان نه راوړي! که مونږ اوغواړو نو د آسمان نه به پر داسې نخښه راوړو چه د هغې مخې ته به د دوئ سټونه ټيټ پاتې شي د هغوی حال خو دا دې چه) دوئ ته د رحمٰن ذات د طرف نه هيڅ نوې نصيحت نه راځي، مگر دوی ترې نه اعراض کونکی دی. دغه شان دوئ حق دروغژن کړې دې، پس دا خلق چه په کومو خبرو پورې ټوقې کوی، اوس به ډير زر د هغې صحيح صحيح حقائق د هغوی مخې ته راشي. او آيا دوئ زمکه نه ده ليدلې چه مونږ په دې کښې هر قسم نفيس ځيزونه راټوکولي دي؟ يقيناً په دې ټولو ځيزونو کښې د عبرت سامان دې، بيا هم په دوئ کښې اکثر خلق ايمان نه راوړي. او يقين ساته چه ستا رب صاحب د اقتدار هم دې، ډير مهربان هم.

## خلاصه تفسير

﴿طٰسٓمٓ﴾ ددې معنی خو الله تعالی ته معلومه ده ﴿تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ﴾ [ دا ] مضامين کوم چه په تاباند نازليږی [ دکتاب واضح ] يعنی قرآن [ ايتونه دی ] او دا خلق کوم چه په دې ايمان نه راوړی نو ته دومره غم ولې کوې چه معلوميږی ﴿لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ﴾ [شايدته ددوی په ايمان نه راوړو باند] تردې افسوس کوې چه [خپل روح به ورکړې ] اصل خبره داده چه دادنيا دازمائش ځائ دې په دې کښې دحق په ثابتولو هغه دليلونه قائمولې شی دکومې نه پس چه ايمان راوړل دبنده په اختيار کښې وی ورنه ﴿اِنْ نَّشَاْ﴾[که مونږه] جبراً دوی لره مؤمن کول [وغواړو ﴿نُنَزِّلْ عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً﴾ نو په دوی اسمان نه يوه] داسې [لويه نښه به نازله کړو] چه ددوئ اختيار به بالکل سلب شی ﴿فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ﴾[ بيابه ددوی څټونه په] راتلو ﴿لَهَا خٰضِعِيْنَ﴾[ددغې نښې سره ښکه شی ] او اضطراراً به مؤمنان شی ليکن په داسې کولوسره به ازمائش باقی پاتې نه شی په دې وجه داسې نه شی کولې او معامله دجبر او اختيار په مينځ کښې وی [او] ددوی دا حالت دې چه﴿وَمَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ﴾ [ دوئ ته څه تازه فهمائش د] حضرت ﴿مِّنَ الرَّحْمٰنِ مُحْدَثٍ﴾[رحمن] جل شانه [ دطرف نه داسې نه راځی ﴿اِلَّا كَانُوْا عَنْهُ مُعْرِضِيْنَ﴾دکوم سره چه دوی بې رخی نه کوی پس ] ددې بې رخئ دې حدته نوبت ورسيدو چه ﴿فَقَدْ كَذَّبُوْا﴾[دوی ] حق دين لره [ درغژن کړلو] کومه چه دمخ اړولو انتهائی درجه ده اوصرف ددې په ابتدائی درجه يعنی بې التفاتئ ئې صبرنه شو او بيا دروغژن کول هم يوازې نه بلکه دمسخرو سره ﴿فَسَيَاْتِيْهِمْ اَنْبٰؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ﴾ [ پس اوس به ډير زر دوی ته ددې خبرې حقيقت معلوم شی دکوم سره چه دوی مسخرې کولې] يعنی کله چه عذاب الهی يا د مرګ په وخت يا په قيامت کښې وينی دغه وخت به قرآن او څه چه په قرآن کښې دی يعنی د عذاب وغيره حق والې ښکاره شی ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اِلَى الْاَرْضِ﴾[ ايادوی زمکه نه ده ليدلې] کومه چه دوی ته ډيره نژدې او هر وخت ئې په نظر کښې ده ﴿كَمْ اَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ﴾[ چه مونږ په دې کښې

خومره عمده عمده قسم قسم بوټی زرغون کړی دی ] کوم چه دتولو مصنوعاتو په شان دخپل جوړونکی په وجود اووده په يووالي اوکمال قدرت دلالت کوی چه ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً﴾ [په دې کښې ] د توحيدذاتي او صفاتي او افعالي [ يوه لويه نښه ] عقلي [ده] او دا مسئله هم عقلي ده چه دخدايئ دپاره ذاتي او صفاتي کمال شرط دی او د ذکرشوی کمال سره لازمه ده چه هغه په خدايئ کښې يوازې وی [ او] سره ددې ﴿وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُؤْمِنِينَ﴾ [ په دوی کښې اکثرخلق ايمان نه راوړی] او شرك کوی غرض شرك كول دنبوت نه دانکارنه هم زياته ګناه ده ددې نه معلومه شوه چه ددوی عناد ددوی فطرت بالکل خراب کړې دې بيا په داسې خلقو باند خفګان دځه دې [ او] که ددوی دالله تعالى په نزد دشرکت په بدوالی کښې داشبهه وی چه په مونږ عذاب فورا ولې نه راخی نو دهغې جواب دادې چه ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ﴾ [ بيشکه ستارب ] سره ددې چه ﴿لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ﴾ [غالب] اوکامل قدرت والا [ دې] مګر ددې سره [ رحيم] هم [دې] او دهغه عام رحمت په دنيا کښې دکفارو سره هم متعلق دې دهغې اثردادې چه دوی ته ئې مهلت ورکړې دې ورنه کفر يقينا بد او دعذاب مقتضى دې

## معارف او مسائل

﴿لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ﴾ الآية ، باخع ، د ،بخع ، نه مشتق دې معنى ئې دا ده چه د ذبح کولو آخرى حد بخع [ د څټ رګ ] ته اورسی ، دلته د باخع نه مزاد خپل ځان په تکليف او مشقت کښې اچول دی علامه عسکری فرمائيلی دی چه اګر که دا صورت د جملې خبريئ دې خو په حقيقت کښې مراد منع کول دی مطلب دا دې چه ائ پيغمبره ، د خپل قوم د کفر او اسلام نه د اوريدو په وجه دومره غم مه کوئ چه ځان خورئ ـــ د دې آيت نه يو خو دا معلومه شوه چه د يو کافر په باره کښې دا معلومه هم شی چه د ده په قسمت کښې ايمان راوړل نشته ، بيا هم ورته د تبليغ کولو نه منع کيدل پکار نه دی -- دويمه خبره ترې دا هم معلومه شوه چه مشقت درميانه کول پکار دی او په هدايت نه موندنکی باندې زيات غم ،خفګان دې نشی کولې ﴿إِن نَّشَأْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَاءِ آيَةً فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِينَ﴾ علامه زمخشری فرمائيلی دی چه اصل کلام ،فظلو لها خضعين ،دې مطلب ئې دا دې چه کافران د دې لوئې نشانی په ليدو سره تابع او ټيټ شی ليکن دلته د ،اعناق ، لفظ د دې ښکاره کولو د پاره راوړې شوې دې چه د عاجزئ کولو ځائ ښکاره شی([1]) ولې چه ښکته کيدل او عاجزی کول د ټولو نه اول په سټ باندې ښکاره کيږی د دې آيت مضمون دا دې چه مونږ په دې باندې هم قدرت لرو چه د خپل توحيد او کامل قدرت څه نشانی ښکاره کړو چه ورسره شرعی حکمونه او خدائی حقيقتونه په بديهی کيدو سره مخې ته راشی او د انکار کولو څه ګنجائش پاتې نشی خو د حکمت تقاضا دا ده چه دا حکمونه او معرفتونه [ علمونه ] بديهی نهٔ بلکه نظری وی چه په غور فکر باندې اړه لری او هم دغه غور او فکر د انسان ازميښت دې چه ثواب او عذاب پرې اړه لری او د بديهی څيزونو اقرار خو يو طبعی او ضروری کار دې په دې کښې د عاجزئ اختيارلو او تابعدارئ شان نشته [ قرطبى ]([2])

﴿زَوْجٍ كَرِيمٍ﴾ د ، زوج ، لفظى معنى جوړه ده څکه ښځې خاوند هر يو ته زوج وئيلې شی ډيرو اونو کښې هم نر او ښځې وی په دې مناسبت سره هغې ته هم زوج وئيلې شی ، او کله دا ،زوج ، لفظ د

---

[1]) تفسير الكشاف للزمخشرى تحت هذه الآية ج: ٤ ص:٤٩٢

[2]) تفسير القرطبي ج:١٣ص:٨٩

خاص قسم او صنف دپاره استعمالولې شی په دې بنا داونې هرقسم ته، زوج، ونیلې شی او د کریم معنی ښکلې او غوریز څیز ده -

وَاِذْ نَادٰى رَبُّكَ مُوْسٰٓى اَنِ ائْتِ الْقَوْمَ

| او کله چې | آواز اوکړو | رب ستا | موسی ته | چې لاړشه ته | قوم |

| او هغه وخت [یادکړه چې] ستارب موسی ﷺ ته آواز اوکړو | چې ته دغې

الظّٰلِمِيْنَ ۝ قَوْمَ فِرْعَوْنَ ؕ اَلَا يَتَّقُوْنَ ۝ قَالَ رَبِّ اِنِّيْٓ

ظالم ته | قوم دفرعون ته | آیا نهٔ یریږی هغوئ | اوونیل موسی | اے ربه زما | بیشکه زهٔ

ظالمانو ته یعنی دفرعون قوم ته ورشه | آیا هغوئ خان دعذاب نه نه بچ کوی ؟ | موسی ﷺ اوونیل چې

اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ؕ وَيَضِيْقُ صَدْرِيْ وَلَا يَنْطَلِقُ لِسَانِيْ

یریږم | چې دروغژن به اوګڼړی مالره | او تنګیږی | سینه زما | او نهٔ چلیږی | ژبه زما |

ائې زماربه! زه ددې خبرې نه ویریږم | چې هغوئ بهٔ مې دروغژن اوګڼړی | اوزما زړه تنګیږی

فَاَرْسِلْ اِلٰى هٰرُوْنَ ۝ وَلَهُمْ عَلَيَّ ذَنْبٌ فَاَخَافُ

نو اولیږه [رسالت] | هارون ته | اوده دهغوئ په ما باند | ګناه [جرم] | نو زهٔ یریږم |

اوزما ژبه نه چلیږی | نو هارون ته هم وحی اولیږه | اود هغوی په ما باندې یو جرم دعوی ده | زهٔ یریږم

اَنْ يَّقْتُلُوْنِ ۝ قَالَ كَلَّا ۚ فَاذْهَبَا بِاٰيٰتِنَآ اِنَّا

چې قتل به کړی مالره | اوونیل الله | هرګز نهٔ | پس لاړشئ دواړه | دنښو زمونږ سره | بیشکه مونږ

چې هسې نه هغوئ ما قتل کړی | الله اوفرمائیل چې هیڅکله نه | تاسو دواړه زما حکمونه یوسئ | مونږ

مَعَكُمْ مُّسْتَمِعُوْنَ ۝ فَاْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُوْلَآ اِنَّا

ستاسو سره | اوریدونکی یو | پس ورشئ دواړه | فرعون ته | نو ورته اووایئ دواړه | بیشکه مونږ

تاسو سره یو | هرڅه آورو | نو تاسو دواړه فرعون ته ورشئ | او ورته اووائې چې مونږ دواړه د

رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ اَنْ اَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ؕ قَالَ

استاذی | درب العالمین یو | چې اولیږه | زمونږ سره | بنی اسرائیل | اوونیل فرعون

رب العالمین پیغمبران یو | او ته مونږ سره بنی اسرائیل پریږده | [چې خپل وطن فلسطین ته لاړشو]

اَلَمْ نُرَبِّكَ فِيْنَا وَلِيْدًا وَّلَبِثْتَ

آیا نهٔ وې پاللې مونږ ته | په کور زمونږ کښې | په وړوکوالي [ستا کښې] | او وخت تیر کړې تا |

[فرعون] اوونیل چې آیا مونږ په وړوکوالي کښې ستا پالنه دلته نه وه کړې او تا دخپل عمر

فِيْنَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِيْنَ ۝ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِيْ فَعَلْتَ

په کور زمونږ کښې | دعمر ستانه | ډیر کلونه | او بیا اوکړو تا | کار خپل | هغه | چې اوکړو تا

څوکلونه مونږ سره یو ځائې نه وو تیرکړې | او تا هغه کار هم کړې وو کوم چې دې کړې وو [زمونږ سرې

وَأَنْتَ | مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ⑲ | قَالَ | فَعَلْتُهَآ | إِذًا وَّأَنَا
اوته | دناشكرونه ئې | اووئيل موسى | كړې وو ما هغه كار | كله چې وم زه |
دې قتل كړې وو | او ته ډېر ناشكره ئې | [موسى ﷺ] اووئيل چې بيشكه ما هغه وخت دا حركت كړې وو | اوما

مِنَ الضّآلِّيْنَ ⑳ | فَفَرَرْتُ | مِنْكُمْ | لَمَّا | خِفْتُكُمْ
دناپو هانونه | نو اوتښتيدم زه | ستاسو نه | هر كله چې | اوېريدم زه ستاسو نه |
نه غلطي شوې وه | نوزه تاسو نه وېريدم | او اوتښتيدم | بيا زما رب

فَوَهَبَ لِيْ | رَبِّيْ | حُكْمًا | وَّجَعَلَنِيْ | مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ㉑
نو راكړه ماته | رب زما | حكم [پوهه پيغمبري] | او جوړ ئې كړم زه | د رسولانو نه |
ماته دانائي راكړه | ...............او زه ئې په پيغمبرانو كښې شامل كړم

وَتِلْكَ نِعْمَةٌ | تَمُنُّهَا | عَلَيَّ | أَنْ عَبَّدْتَّ
او دغه نعمت | چې ته احسان كوې دهغې | په ما باند | دادې چې تا غلامان كړې وو |
او دا [زما د پرورش] احسان چې ته په ما كوې | [ددې وجه داده] چې تا بني اسرائيل غلامان

بَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ ㉒ | قَالَ فِرْعَوْنُ | وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ㉓ | قَالَ
بني اسرائيل | اووئيل فرعون | او څه شيز دې رب العالمين | اووئيل موسى |
جوړ كړې دى | فرعون اووئيل چې د خلقو رب څوك دې ؟ | موسى ﷺ جواب وركړو

رَبُّ السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ | وَمَا | بَيْنَهُمَا ط | إِنْ كُنْتُمْ
رب داسمانونو دې | او د زمكې دې | او د هغه | چې په منځ ددواړو كښې دى | كه يئ تاسو |
چې هغه داسمانونو او زمكې اوددې دواړه په مينځ د هرڅه مالک دې | كه چرې تاسو

مُّوْقِنِيْنَ ㉔ | قَالَ | لِمَنْ | حَوْلَهٗٓ | أَلَا تَسْتَمِعُوْنَ ㉕
يقين كونكي | اووئيل فرعون | هغه چاته | چې چاپيره وو دهغه نه | آيا نه اورئ تاسو |
يقين كوئي | فرعون خپل [گيرچاپيره ناستو] درباريانو ته اووئيل | چې تاسو واوريدل ؟

قَالَ | رَبُّكُمْ | وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ | الْأَوَّلِيْنَ ㉖ | قَالَ
اووئيل موسى | [هغه] رب ستاسو دې | او رب د پلارانو ستاسو دې | چې اولني وو | اووئيل فرعون
موسى ﷺ ورته اووئيل چې هغه ستاسو هم رب دې | او ستاسو د پلار نيكه هم رب دې | فرعون ووئيل

إِنَّ | رَسُوْلَكُمُ | الَّذِيْٓ | أُرْسِلَ | إِلَيْكُمْ | لَمَجْنُوْنٌ ㉗
بيشكه | رسول ستاسو | هغه | چې راليږلې شوې دې | تاسو ته | خامخا ليونې دې |
چې ستاسو دا رسول چې تاسو ته راغلې دې | ........................ دا خو ليونې دې

قَالَ | رَبُّ الْمَشْرِقِ | وَالْمَغْرِبِ | وَمَا بَيْنَهُمَا ط | إِنْ كُنْتُمْ
اووئيل موسى | رب دمشرق | او دمغرب دې | او هغه چې په منځ ددواړو كښې دى | كه يئ تاسو
موسى ﷺ اووئيل هغه [الله ﷻ] د مشرق او مغرب او څه چې ددې په مينځ كښې دى | د ټولو رب دې

تَعۡقِلُوۡنَ ۞ قَالَ لَئِنِ اتَّخَذۡتَ اِلٰـهًا غَيۡرِىۡ

چي دعقل نه څه كار اخلئ | اووئيل فرعون | كه چرې اونيوو تا | معبود | غير زما نه [بل څوك] |

كه تاسو دعقل نه كار اخلئ | فرعون اووئيل كه تا زما نه بغير بل څوک معبود جوړ كړو

لَاَجۡعَلَنَّكَ مِنَ الۡمَسۡجُوۡنِيۡنَ ۞ قَالَ اَوَلَوۡ جِئۡتُكَ بِشَىۡءٍ

نو مونږ به جوړ كړو تالره | دقيديانو نه | اووئيل موسى | اگر كه راوړم زۀ تاته | څه څيز [دليل]

نو زه به تا قيدي كړم | موسى ﷺ اووئيل چي | اگر كه زۀ درته يو ښكاره دليل پيش كړم

مُّبِيۡنٍ ۞ قَالَ فَاۡتِ بِهٖۤ اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ ۞ فَاَلۡقٰى

ښكاره | اووئيل فرعون | راوړه هغه | كه ئې ته | د رښتينو خلقو نه | نو اوغورزوله هغه

[نو بيا هم ما بندى كوې] فرعون اووئيل چي [ښه ده] ته خپل دليل رااوړاندې كړه | كه ته ريښتونې ئې نو

عَصَاهُ فَاِذَا هِىَ ثُعۡبَانٌ مُّبِيۡنٌ ۞ وَّنَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا

همسا خپله | نو يودم وه | هغه | اژدها ښكاره | اوراويستلو ئې | لاس خپل | نو ناساپه وو

موسى ﷺ خپله همسا اوغورزوله | اودهغې نه يو غټه اژدها جوړه شوه | او لاس ئې [دترخ نه] بهر كړو

هِىَ بَيۡضَآءُ لِلنّٰظِرِيۡنَ ۞

هغه تك سپين خليدونكې | دپاره دكتونكو |

نوټولو كتونكو ته ځلنده سپين ښكاره شو |

## آسان ترجمه قرآن

او دهغه وخت حال واوره چه كله ستا رب موسٰى عليه السلام ته آواز كولو سره اووئيل چه: دې ظالم قوم ته لاړ شه. يعنې د فرعون قوم ته. آيا د هغوى په زړونو كښې د الله پاک ويره نشته؟ موسٰى عليه السلام اووئيل چه: اې زما ربه! زه ويريږم چه هغوى زما تكذيب اونكړي. او زما زړه تنګيږي، او زما ژبه اينښلې، په دې وجه ته هارون ته هم (د نبوت) پيغام اوليږه او زما خلاف هغوى يو جرم هم لګولې دې، چه د هغې په وجه زه ويريږم چه هغوى ما قتل نه كړي. الله پاک اوفرمائيل چه: هرګز نه! تاسو دواړه زمونږ د نخښو سره لاړ شئ. يقين ساتئ چه مونږ تاسو سره يو. ټولې خبرې اورو اوس تاسو دواړه فرعون ته لاړ شئ، او اووايئ چه: مونږ دواړه د رب العلمين پيغمبران يو. (او دا پيغام مو راوړې دې چه) بنى اسرائيل مونږ سره اوليږه فرعون (په جواب كښې موسٰى عليه السلام ته) اووئيل: آيا مونږ ستا هغه وخت پالنه نه وه كړې چه كله ته بالكل ماشوم وې؟ او تا د خپل عمر ډير كلونه مونږ سره تير كړي دي. او كوم حركت چه تا كړې وو هغه دې هم اوكړو او ته ډير ناشكره انسان ئې. موسٰى عليه السلام اووئيل: هغه وخت ما هغه كار په داسې حالت كښې كړې وو چه ما ته پته نه وه پس هركله چه زما ستاسو نه ويره پيدا شوه نو زه تاسو نه اوتختيدم. بيا الله پاک ما ته حكمت را كړو، او په پيغمبرانو كښې مې شامل كړم او هغه احسان چه ته په ما باندې ږدئې، (د هغې حقيقت) دا دې چه تا د ټولو بنى اسرائيلو نه غلامان جوړ كړي دي. فرعون اووئيل: رب العلمين څه ته وائې؟ موسٰى عليه السلام اوفرمائيل: هغه د ټولو آسمانونو او زمكې، او دهغه

ټولو څیزونو رب دي کوم چه د دې ترمینځه موندلې شي، که تاسو واقعي یقین کوئ فرعون خپل ګیرچاپیره خلقو ته اووئیل : آیا تاسو اورئ که نه؟ موسٰی علیه السلام اوفرمائیل : هغه ستاسو رب هم دې، او ستاسو دپخوانو پلار نیکهٔ رب هم دي. فرعون اووئیل : ستاسو دا پیغمبر کوم چه تاسو ته رالیږلې شوې دې، دې خو بالکل لیونې دې موسٰی علیه السلام اووئیل : هغه د مشرق او مغرب هم رب دې، او د هغې ترمینځه د ټولو څیزونو هم که تاسو عقل لرئ. هغه اووئیل : یاد ساتئ، که تا زما نه علاوه بل څوک معبود اومنلو نو زه به تا ضرور په هغه خلقو کښې شامل کړم کوم چه په جیل خانه کښې پراتهٔ دی. موسٰی علیه السلام اووئیل : او که زه تا ته یو داسې څیز اوښایم کوم چه حق واضح کړی، نو بیا فرعون اووئیل : ښه ده ! که رشتینې ئې نو راوړه هغه څیز. پس موسٰی علیه السلام خپله همسا اوغورزوله، او په هم ساعت کښې ترې نه ښکاره اژدها جوړه شوه. اوهغوی خپل لاس (د ترخ نه) راوېستلو نو په هم ساعت کښې هغه د ټولو کتونکو دپاره سپین شو.

## خلاصه تفسیر

[ او] دې خلقوته دهغه وخت قصه ذکر کړه ﴿وَاِذْنَادٰی رَبُّكَ مُوْسٰٓی﴾ [ کله چه ستا رب موسی علیه السلام [ ته اواز وکړو] اوحکم ئ ورته وکړو ﴿اَنِ ائْتِ الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ﴾ [چه ته هغو ظالمانو خلقو ﴿قَوْمَ فِرْعَوْنَ﴾ یعنی قوم دفرعون ته لاړ شه ] او اے موسی علیه السلام وګوره ﴿اَلَا یَتَّقُوْنَ﴾ [ ایا داخلق ] زمونږ دغضب نه [نه ویرېږی ؟] یعنی ددوی حالت عجیبه او بددې په دې وجه دهغوی طرف ته تاسو لره لیږلې شی ﴿قَالَ رَبِّ﴾[ده عرض وکړو چه اے زما پروردګاره ] زه ددې خدمت دپاره حاضریم لیکن ددې خدمت دپوره کولو دپاره یو مددګار غواړم خکه چه ﴿اِنِّیْٓ اَخَافُ اَنْ یُّكَذِّبُوْنِ﴾ [ ماسره دا ویره ده چه هغوی مالره] دخپلې خبرې دپوره کولو نه وړاندې [دروغژن کړی او] په طبعی طورسره په داسې وخت کښې ﴿وَیَضِیْقُ صَدْرِیْ وَلَا یَنْطَلِقُ لِسَانِیْ﴾ [زما زړهٔ تنګیږی اوزما ژبه ] په ښه شان سره [نه چلیږی ﴿فَاَرْسِلْ اِلٰی هٰرُوْنَ﴾ په دې وجه هارون ته] هم وحی [ولیږه] اوهغه له نبوت ورکړه کله چه هغوی ما دروغژن کوی نو چه دې مې تصدیق کوی او زړه مې پرانستې او ژبه مې روانه وی اوکه زما ژبه څه وخت بنده شی نو چه دې تقریر کوی اګر چې هرخومره داغرض خو هارون علیه السلام دخان سره په هسې ساتلو باند هم حاصلیدې شو مګر په نبوت ورکولو کښې زیات په کامله وجه سره پوره شوه [او] یوه خبره داقابل عرض ده چه ﴿وَلَهُمْ عَلَیَّ ذَنْبٌ﴾[ زما په ذمه ددغو خلقو یو جرم هم دې ] چه زما دلاسه دیو قبطی قتل شوې دې چه قصه به ئ په سوره قصص کښې راشی ﴿فَاَخَافُ اَنْ یَّقْتُلُوْنِ﴾ [ پس ] په دې وجه [ماسره ] یوه [ویره داده چه هغه خلق به مالره] درسالت دتبلیغ نه وړاند [ قتل کړی ] نو بیا به هم زهٔ تبلیغ ونه کړې شم نو ددې هم څه تدبیر وفرمایئ ﴿قَالَ كَلَّا﴾[ ارشاد ورته وشو چه دچاڅه مجال دې] چه داسې به اوکړې شی اومونږ هارون علیه السلام ته هم پیغمبری ورکړه اوس دتبلیغ دواړه مانعه لرې کړې شول [ پس ] اوس ﴿فَاذْهَبَا بِاٰیٰتِنَآ﴾[تاسو دواړه زما احکام یو سئ ] چه هارون علیه السلام هم نبی شو او ﴿اِنَّا مَعَكُمْ مُّسْتَمِعُوْنَ﴾ [مونږ] په نصرت اوامداد سره [تاسوسره یو] اوکومې خبرې چه ستاسواو دهغوی په مینځ کښې کیږی هغې لره [ اورو ﴿فَاْتِیَا فِرْعَوْنَ﴾ پس تاسو دواړه فرعون ته لاړ شئ او] هغه ته ﴿فَقُوْلَآ اِنَّا رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ﴾ [ ووایئ ] چه مونږ درب

العالمين رالیږلي شوی یو او دتوحید ددعوت سره مونږ داحکم هم راوړي دي ﴿أَنْ أَرْسِلْ مَعَنَا بَنِي إِسْرَاءِيلَ ﴾ [ چه ته بنی اسرائيلولره ] دخپل بیګار اوظلم نه ازاد کړه ددوی اصلی وطن شام طرف ته [ ماسره پریږده ] ددې دعوت نچوړپه حقوق الله او حقوق العباد کښې ظلم او زیاتي پریښودل دی چنانچه دادواړه حضرات لاړل او فرعون تـه ئې داټولې خبرې وکړې [فرعون] داټولې خبرې واوریدې اول موسی ﷺ ئې وپیژندو او دۀ ته متوجه شو او ﴿قَالَ﴾ [وې وئیل چه ] اها داته ئې ﴿أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا وَلِيدًا﴾ [ایاپه ورکوتوالی کښې مونږ ستاپرورش نه دې کړې ﴿وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ﴾ او تـه پـه خپـل] دې [ عمرکښې ډیرکلونـه پـه مونږ کښـې نـه ئې اوسیدلي ﴿وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِي فَعَلْتَ﴾ او تاخپل هغه حرکت هم کړې وو کوم چه دې کړی وو] يعنی قبطی [ دقتل کړې وو ﴿وَأَنْتَ مِنَ الْكَافِرِينَ﴾ او ته ډير ناشکره ئې ] چه زما دې خوړل اوزماسرې د قتل کړو بیا مالره دځان تابع کولو دپاره راغلې پکار خو داوه چه ته زما په وړاند غلې وسیدې ﴿قَالَ﴾ [ موسی ﷺ [جواب ورکړو چه ] واقعی ﴿فَعَلْتُهَا إِذًا وَأَنَا مِنَ الضَّالِّينَ﴾ [ هغه وخت دغه حرکت ماکړې وو اومانه غلطی شوې وه ] يعنی قصدا ماقتل نه ووکړې هغه لره دظالمانه روش نه منع کول مقصود وو اتفاقا هغه مړ شو ﴿فَفَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ﴾ [ بیا هرکله چه ماسره ویره شوه نو زۀ تاسو نه مفرور شوم يعنی اوتښتیدم ﴿فَوَهَبَ لِي رَبِّي حُكْمًا وَجَعَلَنِي مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ بیا ماتـه زما رب پوهـه راکـړه او زۀ ئې پـه پیغمبرانـو کښـې شـامل کـړم ] او هغـه پـوه ددې نبوت دلوازمونه ده نچوړ دجواب دادې چه زۀ د پیغمبرئ په حیثیت سره راغلې یم چه په دې کښې دغلی کیدو هیڅ وجه نشته او پیغمبری ددې واقعې دقتل خطا سره منافی نه ده ځکه چه دغه قتل په خطاسره صادر شوې وو کوم چه دنبوت داهلیت او صلاحیت سره منافی نه دې دا خوجواب دې دقتل داعتراض [ او] پاتې شو دپرورش احسان کول پس ﴿وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ﴾[ دا هغه نعمت دې دکوم چه ته په ما باند احسان ږدې ﴿أَنْ عَبَّدْتَ بَنِي إِسْرَاءِيلَ﴾ چه تابنی اسرائیل په سخت ذلت کښې ] او ظلم [کښې غورزولی وو] چه ددوی هلکان به دقتلول او ددې ویرې نه زۀ په صندوق کښـې کیښـودې او دریاب تـه وغـورزولې شوم او ستا پـه لاس راغلم او ستا پـه پرورش کښې پاتې شوم نو ددې پرورش اصلی وجه خوستا ظلم دې نو دداسې پرورش تـه پـه ماځه احسان ضباطوې يعنی ددې نه خو تاله ستا په ناشائسته حرکت باند شرم کول پکاردی ﴿قَالَ فِرْعَوْنُ﴾[ فرعون] په دې خبره لاجوابه شو او [خبره ئې بدله کړه ﴿وَمَا رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾هغه وئیل چه ] کوم ته چه ته [ رب العلمين ] وائې لکه دا قول دالله تعالی [انارسول رب العلمين ] ددۀ [ماهيت او حقیقت] [ څه دې ﴿قَالَ﴾ او موسی] ﷺ حقیقت [ جواب ورکړو ﴿رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾چه هغه پروردګار دې د اسمانونو اوزمکې ﴿وَمَا بَيْنَهُمَا﴾اوڅه چه ] مخلوقات [ ددې دواړو پـه مینځ کښـې دی ددې] ټولو ﴿إِنْ كُنْتُمْ مُوقِنِينَ﴾ [ کـه تاسو يقين ] حاصل [کول غواړئ] نو داپته ده مطلب دادې چه دهغه دحقيقت ادراك انسان نه شي کولې په دې وجه هرکله چه ددې سوال وی جواب بـه ئې پـه صفاتو سره ملاویږی ﴿قَالَ لِمَنْ حَوْلَهُ﴾ [ فرعون دخپلې خواوشا] ناستو [خلقوته ووئیل ﴿أَلَا تَسْتَمِعُونَ﴾ چه تاسو خلق ] څه ﴿ [ اوړئ ] چه تپوس دڅه کیږی او جواب دڅه ورکولې کیږی ﴿قَالَ﴾[ موسی] ﷺ [ وفرمائیل ﴿رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ﴾ چه هغه پروردګاردې ستاسو او ستاسو دوړاندینو مشرانو] په دې جواب کښې

مکرز خبرداري دي په دې ذکر شوی مطلب مگر [ فرعون ] پوه نه شو او ﴿قَالَ اِنَّ رَسُوْلَكُمُ الَّذِيْٓ﴾ [ وې وئیل چه داستاسو رسول کوم چه ] په خپل گمان ﴿اُرْسِلَ اِلَيْكُمْ لَمَجْنُوْنٌ﴾ [ ستاسو طرف ته رسول جوړشوې راغلې دې لیونې دې ﴿قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا﴾ موسی ﷺ [ وفرمائیل چه هغه پروردگار دې دمشرق او مغرب او څه چه ددې دواړو په مینځ کښې دی دهغې هم ﴿اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ﴾ که تاسو عقل لرئ ] نو په دې سره ومنئ [ فرعون ] اخر مجبور شو ﴿قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ اِلٰهًا غَيْرِيْ﴾ [وې وئیل چه که تا زمانه سوا بل معبود تجویز کړو ﴿لَاَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ﴾ نو تاسو به جیل خانې ته ولیږم ﴿قَالَ اَوَلَوْ جِئْتُكَ بِشَيْءٍ مُّبِيْنٍ﴾ موسی ﷺ [وفرمائیل چه که زهٔ څه واضح دلیل پیش کړم نو هم ] به نه منئ ﴿قَالَ فَاْتِ بِهٖٓ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ﴾ [ فرعون ووئیل چه ښه ده نو ته هغه دلیل پیش کړه که ته رښتونې یې ﴿فَاَلْقٰى عَصَاهُ﴾ نوموسی ﷺ [ خپله همسا وغورزوله ﴿فَاِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ﴾ نو ناڅاپه یوه ښکاره اژدها جوړه شوه او ] ددویمې معجزې ښودلو دپاره ﴿وَّنَزَعَ يَدَهٗ﴾ [ خپل لاس يې ] په ترخ کښې دننه کړو [ بهر راوویستلو ﴿فَاِذَا هِيَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ﴾ نو هغه ناڅاپه ورانديې ډیر پرقیدونکې شو ] او داهم ټولو په ظاهری سترگو سره ولیدو

## معارف او مسائل

**د فرمانبردارۍ دپاره امدادی اسباب طلب کول بهانه کول نهٔ دی:** ﴿قَالَ رَبِّ اِنِّيْٓ اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ۝ وَيَضِيْقُ صَدْرِيْ وَلَا يَنْطَلِقُ لِسَانِيْ فَاَرْسِلْ اِلٰى هٰرُوْنَ ۝ وَلَهُمْ عَلَيَّ ذَنْۢبٌ فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ﴾ دې مبارکو آیتونو نه ثابته شوه چه د حکم په ځای راوړلو کښې د داسې څیزونو خواست کول چه په هغې کښې مدد گار ثابتیږی دا بهانه لټول نهٔ دی بلکه جائز دی لکه حضرت موسی ﷺ چه د الله تعالی د حکم په ځای راوړو د پاره د الله تعالی نه خوست اوکړو چه دغه کار ورته آسان شی دې نه به دا نتیجه راوښکل غلط وی چه حضرت موسی ﷺ د الله تعالی حکم بې چون و چرا ولې قبول نهٔ کړو ولې پکښې توقف اوکړو ؟ ځکه چه موسی ﷺ څه اوکړل مطلب به هم حکم خداوندی په ځای پوره راوړل وو-

**د حضرت موسی ﷺ په باره کښې د ، ضلال ، مطلب ::** ﴿قَالَ فَعَلْتُهَآ اِذًا وَّاَنَا مِنَ الضَّآلِّيْنَ﴾ فرعون چه د موسی ﷺ نه تپوس اوکړو چه قبطی دې وژلې وو ، حضرت موسی ﷺ جواب ورکړو آو ووژل خو م کړې وو خو په قصد نهٔ بلکه د هغهٔ د غلطۍ په وجه یوسوك وهل سزا م ورکړه چه هغه ترې مړ شو غرض دا چه پیغمبرۍ سره قصدی وژل سمون نهٔ خوری او دا بې ارادې وژل وو چه نبوت او پیغمبرۍ سره بې جوړه نهٔ وو خلاصه دا شوه چه دلته د ، ضلال ، مطلب په بې خبرۍ کښې او بې ارادې د قبطی وژل دی د دې تائید د حضرت قتاده رحمه الله او ابن زید د روایتونو نه هم کیږی هغوی فرمائیلی دی چه په عربی ژبه کښې ، ضلال ، په گڼرو معنو کښې استعمالیږی هرچرته ئې مطلب گمراهی نهٔ وی چنانچه دلته ئې هم د ، گمراه ، ترجمه کول صحیح نهٔ دی -

**د الله تعالی د ذات او حقیقت علم حاصلول انسان هیڅرې نشی کولې:** ﴿قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ دې آیتونو مبارکو نه ثابته شوه چې د الله تعالی حقیقت هیڅ یو مخلوق نشی معلومولې ، کله چه فرعون د الله تعالی د حقیقت په باره کښې تپوس اوکړو نو حضرت موسی ﷺ ورته په جواب کښې د الله تعالی د حقیقت بیانولو په ځای د هغه صفتونه بیان کړل اشاره دې ته وه چه د الله

تعالی د حقیقت معلومول هیڅرې نشی کیدلې څکه دغسې سوال کول بیځایه دی [کذا فی الروح] (١)

﴿أَنْ أَرْسِلْ مَعَنَا بَنِي إِسْرَآءِيلَ﴾ بنی اسرائیل د شام باشندګان وو هلته ئې تلل غوښتل خو فرعون نۀ پرېښول او په دې شان هغوی د څلورو سوو کالو نه د هغه په بند کښې د غلامۍ ژوند تیرولو دغه وخت د هغوئ شمیر شپږ لکه او دیرش زره وو – حضرت موسی علیه السلام د حق د پیغام سره دا پیغام هم فرعون ته ورکړو چه په بنی اسرائیلو دې نور ظلم کول بند کړی او دوئ دې خپلې خوښې ته آزاد پرېښودې شی – [قرطبی] (٢)

**د پیغمبرانه مناظرې یوه نمونه د مناظرې اثرناک آداب** :: د دوؤ کسانو یا دوؤ ډلو تر منځه د نظریۀ بحث مباحثه کول پخوا راسې جاری ده چه په اصطلاح کښې ورته مناظره وئیلې شی خو په عام ډول دا مناظره د کتهات ، بیلات ، یوه لوبه جوړه شوې ده د خلقو په خیال د مناظرې مطلب دا وی چه د مناظرې کونکی خبره دې پورته راشی خواه هغه پخپله غلطه او دروغ وی او دۀ ته معلومه هم وی د هغې د صحیح او مضبوطئ ثابتولو د پاره د دلیلونو او ذهینتونو ټول زور لګولې شی دغه شان د مخالف څه خبره که ریښتیا او صحیح هم وی په هر حال د هغې په رد کولو کښې خپل ټول زور لګولې شی خو اسلام په دې باره کښې د میانه روئ نه کار اخستې دې د دې اصولو قاعدې او حدونه ئې ټاکلې دی دې لره ئې یو فائده ورکونکې اثرناکه آله د تبلیغ او اصلاح جوړه کړې ده-

په دې آیتونو کښې د دې څه لنډه غوندې نمونه ملاحظه کړئ حضرت موسی علیه السلام او حضرت هارون علیه السلام چه کله فرعون ته ورغلل دې لوئ ظالم د خدایئ دعویدار ته د حق پیغام ور اورسولو نو هغه خپل مخالفانه بحث د دوؤ داسې خبرو نه شروع کړو چه تعلق ئې د حضرت موسی علیه السلام د ذات سره وو لکه چالاک مخالف چه د خبرې اصلی جواب نشی ورکولې نو د خپل مقابل ذاتی کمزورئ لټوی او بیانوی ئې چه هغه شرمنده شی او په خلقو کښې بې قدره شی دلته هم فرعون دوه خبرې اوکړې –

اوله دا چه تاسو زمونږه پاللی ئې زما په کور کښې پاللی او لوئ شوی ئې خوان شوی ئې مونږه درباندې احسانونه کړی دی خمونږه په وړاندې ستاسو علیه السلام د خلې پرانیستو څه حق دې ؟

دویمه دا چه تاسو یو قبطی سړې هسی وژلې دې چه یو خو ظلم دې او بله ناشکری کول دی د کوم قوم په لاس کښې دې چه پالنه بیا موندې هم د هغوئ سړې دې اوژلو --- د دې پیغمبری جواب د حضرت موسی علیه السلام هم ملاحظه کړئ چه اول خو ئې د سوال ترتیب بدل کړو یعنی د وژلو خبره ئې اول کړه کومه چه فرعون دویمه کړې وه او د خپلې پالنې خبره ئې دویمه کړه کومه چه فرعون اوله کړې وه – د ترتیب په دې بدلولو کښې دا حکمت معلومیږی چه د قبطی په واقعه کښې د دوئ هم یو کمزوری وه په موجوده مناظرو کښې خو داسې خبره هسې اخوا دیخوا کړی شی او نورو خبرو ته د خلقو مخه ور اړولې شی خو د الله تعالی رسول علیه السلام اول هم د دې جواب ورکړو چه پکښې د خپل کمزورئ اقرار ئې هم وو د دې خبرې هیڅ پراوه ئې او نکړه چه مخالف خلق به وائی په خپلې غلطئ باندې اقرار کولو سره ئې خپل بائلات اومنلو -

---

(١) روح المعانی تحت هذه الآیة ج: ١٤ ص:١٨٥

(٢) تفسیر القرطبی ج:١٣ص:٩٤

حضرت موسی علیه السلام خو د هغې اقرار اوکړو چه غلطی رانه شویده خو ورسره ئې دا حقیقت هم ښکاره کړو چه دا قصدی نهٔ بلکه غلطی داسې وه چه ما په اسرائیلی باندې دقبطی ظلم کول ایساروں ، صرف یو سوک م په دغې غرض ورکړو خو هغه ترې مړ شو زما اراده د هغه د وژلو نهٔ وه داسې بې ارادې غلطی پیغمبرئ سره بې سمونه نهٔ وی چه گنې زما دا دعوه دې حقه او اثرناکه گنې نهٔ وی کله چې زهٔ په دې خپلې غلطئ خبر شوم ، د قانون گرفت نه ځان ساتلو په غرض د ښار نه اووتم الله تعالی راباندې بیا فضل او کړو او په پیغمبرئ سره ئې سرفرازه کړم -

غور اوکړئ چه دغه وخت کښې د دشمن نه د موسی علیه السلام صفا جواب دا ووچې مقتول قبطی یې واجب القتل ثابت کړې وې ، په ده باندې یې داسې الزامونه لگولی وی چې دهغې په وجه د هغه واجب القتل کیدل ثابت شوی وې . هلته بل څوک کس تکذیب کوونکی هم موجود نه وو چې دهغه څخه د تردید کولو ویره وه او که په هغه ځای د موسی علیه السلام په ځائې بل څوک وې نو نو د هغه جواب به ددې څخه سوا بل څه نه وو. مگر هلته خو د الله ﷻ اولوالعزم پیغمبر وو په کلکه ریښتني وو ، چه حقه او ریښتیا ښکاره کول ئې خپله فتح او کامیابی گنړل څکه ئې په ډک دربار کښې د خپلې غلطئ اقرار هم اوکړو او د دې په وجه چه په پیغمبرئ باندې څه شبه راولاړیدې شوه د هغې جواب ئې هم ورکړو. دې نه پس د احسان ضباطولو جواب ئې په دې شان ورکړو چه د دې اصلی حقیقت ته ئې د فرعونیانو مخه کړه وې فرمائیل چه زما او د فرعون کور کښې د پالنې څه جوړ کیدې شو ؟ د دې اصلی وجه د فرعون دا زور او ظلم کول وو چه بې گناه ماشومان هلکان به ئې وژل ، په ښکاره خو خبره داسې وه چه ددغې ظلم نه د ځان ساتلو د پاره زما مور په صندوق کښې بند کړې په دریاب کښې ورلاهو کړم ، د خدای قدرت ته گورئ چه هغه صندوق ستا لاس ته درغلو دا په حقیقت کښې د الله تعالی حکیمانه نظام او ستا د ظلم غیبی سزا وه چه د کوم ماشوم د ویرې . پدې وجه تاسو په زرگونو ماشومان وژلی وو قدرت ستاسو په لاس او کور کښې هغه ته پالنه ورکړه اوس فکر اوکړئ چه زما پالل ستاسو څه احسان وو ، د دې پیغمبرانه جواب د طرز اثر خو په طبعی او عقلی ډول سره په موجوده خلقو باندې اوشو چه دا بزرگ خو څه خبره د خانه نهٔ جوړه وی د ریشتیاؤ نه بغیر بل هیڅ نهٔ وائی دې نه پس ئې چه د هغوئ ښکاره کړې معجزې اولیدې نو زیات تصدیق ئې اوشو اگر چه اقرار ئې اونکړو خو رعب پرې دومره راغلو چه هغوئ صرف دوه کسان دی ورانډې ورستو ورسره بل هیڅوک د هغوئ علیهما السلام مدد گار نهٔ ښکاریدو دربار ټول د فرعون وو ، ښار ، علاقه او ملک ټول هر څه د هغه وو خو ویره ئې دا وه چه دا دوه کسان علیهما السلام مونږه د خپل ملک نه او باسی -

دا خدا داد یعنی الله ورکړې رعب وی ، د صدق ، رشتنئ او حق هیبت وی ، د پیغمبرانو ﷺ بحثونه ،مناظرې هم د صدق ، رشتنئ او د مخاطب د دینی خیر خواهئ د جذباتو نه ډک وی چه په زړونو کښې دننه ورځی او غټ سرکشان هم رالاندې کوی -

| حَوْلَهٗ | لِلْمَلَإِ | قَالَ |
| --- | --- | --- |
| چی ناست وؤ دهغه نه گیرچاپیره | سردارانو ته | اوونیل فرعون |

| فرعون خپل گیر چاپیره درباریانو ته اوونیل چې |
| --- |

إِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ۙ يُرِيْدُ أَنْ يُّخْرِجَكُمْ
بیشکه داسړی | خامخا جادوګر دی | ډیر پوهه | دی غواړی | چې اوباسي تاسو |
داسړي چې ډیر ماهر جادوګر دی | دی خو دا غواړي چې تاسو د خپل جادو په زور د ملک

مِّنْ أَرْضِكُمْ بِسِحْرِهٖ ۖ فَمَاذَا تَأْمُرُوْنَ ۝ قَالُوْٓا أَرْجِهْ
دزمکې ستاسو نه | په جادو خپل سره | پس څه | حکم کوئ تاسو | اووئیل هغوئ | ایسار کړه دی
نه بهر اوباسي | نو [ دده په حقله ] تاسو ماته څه مشوره راکوئ؟ [ دوئ اووئیل چې دة ته اوددة

وَأَخَاهُ وَابْعَثْ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ۙ يَأْتُوْكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ
او رور دده | اواولیږه | په ښارونو کښې | راجمع کونکی نوکران | چې راولی تاته | هر جادوګر |
رور ته [ څه قدرې ] مهلت ورکړه | او ټولو ښارونو ته کسان اولیږه | چې ټول پوهه جادوګاران

عَلِيْمٍ ۝ فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ ۙ وَّقِيْلَ
پوهه | نو راجمع کړې شو جادوګران | مقرر وخت دورځې | معلومې ته | اواووئیلې شو |
راحاضر کړی | نو ټول جادوګران دیو مقررې ورځې په یو مقرر وخت باندې راجمع کړې شول | او خلقو ته اووئیلې

لِلنَّاسِ هَلْ أَنْتُمْ مُّجْتَمِعُوْنَ ۙ لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ
خلقو ته | آیا یئ تاسو | جمع کیدونکی | کیدې شی چې مونږه پیروی اوکړو | دجادوګرانو |
شو | چې آیا تاسو هم جمع کیږی [ یعنی جمع شئ ] | د دې دپاره که جادوګران غالب شو | نو چې مونږ

إِنْ كَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ ۝ فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالُوْا لِفِرْعَوْنَ
که شو هغوئ | هم هغوئ غالب | نو هر کله چې | راغلل جادوګران | نو اووئیل هغوئ | فرعون ته
دهغوئ په لار روان پاتې شو | څه وخت چې جادوګران راغلل | نو فرعون ته ئې اووئیل

أَئِنَّ لَنَا لَأَجْرًا إِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ۝ قَالَ نَعَمْ
آیا وی به دپاره زمونږه | خامخا څه اجر | که شو مونږه | هم مونږه غالب | اووئیل فرعون | هو !
چې که چرې مونږ غالب شو نو آیا مونږ ته به څه انعام هم ملاویږی | فرعون اووئیل چې

وَإِنَّكُمْ إِذًا لَّمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ۝ قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى أَلْقُوْا
او بیشکه تاسو به | په هغه وخت | ضرور دنزدیکانو نه یئ | اووئیل | هغوئ ته | موسی | اوغورزوئ
آو ، او په دې صورت کښې به تاسو زما د دربار په نزدې کسانو کښې شامل شئ | موسی ﷺ اووئیل چې تاسو څه

مَآ أَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ ۝ فَأَلْقَوْا حِبَالَهُمْ وَعِصِيَّهُمْ
هغه څه | چې تاسو | غورزونکی یئ دهغې | نو اوغورزولې هغوئ | رسئ خپلې | او همسا ګانې خپلې
غورزول غواړئ | نو هغه اوغورزوئ | هغوئ خپل پړی او همسا ګانې نه اوغورزولې | او

وَقَالُوْا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ إِنَّا لَنَحْنُ الْغٰلِبُوْنَ ۝ فَأَلْقٰى مُوْسٰى
| اووې وئیل | په عزت دفرعون سره | خامخا مونږ به | غالب کیږو | نو بیا اوغورزوله | موسی
دائې اووئیل چه دفرعون په عزت او جلال قسم دی | چې مونږ به خامخا کامیابیږو | بیا موسی [ هم ]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَصَاهُ | فَإِذَا هِيَ | تَلْقَفُ | مَا | يَأْفِكُونَ |
| همسا خپله | نو څه گوري چي هغه | تيروي | هغه څه | چي دروغ جوړ کړي وو هغوئ |

خپله همسا اوغورزوله | نو فورا همسا دهغوئ جوړه کړې نظربندی تیرول شروع کړل |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ | سٰجِدِينَ | قَالُوا | اٰمَنَّا | بِرَبِّ |
| نو بې اختياره پريوتل جادوگران | سجده کونکي | اووئيل هغوئ | ايمان راوړو مونږه | په رب |

نوټول جادو گران پرمخ په سجده پريوتل | اداني اووئيل چي مونږ په رب العالمين

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْعٰلَمِينَ | رَبِّ مُوسٰى وَهٰرُونَ | قَالَ | اٰمَنْتُمْ لَهٗ |
| العالمين باندې | په رب دموسى اوهارون | اووئيل فرعون | تاسو خبره اومنله دهغه |

ايمان راوړو | چي دموسی ﷺ او هارون ﷺ رب دي | فرعون اووئيل چي تاسو زما د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَبْلَ اَنْ | اٰذَنَ | لَكُمْ | اِنَّهٗ | لَكَبِيرُكُمُ | الَّذِي |
| مخکښې ددي نه | چي زه اجازت درکړم | تاسو ته | بيشکه هغه | خامخا مشر ستاسو دې | هغه |

اجازت نه وړاندي په موسى ﷺ باندې ايمان راوړو | بيشکه داموسی ستاسو مشردې | چاچي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَّمَكُمُ | السِّحْرَ | فَلَسَوْفَ | تَعْلَمُونَ | لَاُقَطِّعَنَّ |
| چي ښودلې ئي دې تاسو ته | جادو | پس ډير زر به | پته اولګی تاسو ته | خامخا به پريکړم زه |

تاسوته جادو ښودلې دې | ډیر زر به تاسوته ددې انجام معلوم شي | زه به ستاسو دیواړخ

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَيْدِيَكُمْ | وَاَرْجُلَكُمْ | مِّنْ خِلَافٍ | وَّلَاُصَلِّبَنَّكُمْ |
| لاسونه ستاسو | او خپې ستاسو | دمخالفو طرفونو نه | او پانسی به کړم تاسو |

لاس او دبل اړخ پښه پريکړم | اوتاسو ټول به په سولئ کړم |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَجْمَعِينَ | قَالُوا | لَا ضَيْرَ | اِنَّا | اِلٰى رَبِّنَا | مُنْقَلِبُونَ |
| ټول | اووئيل هغوئ | نشته ضرر [پروا] | بيشکه مونږه | رب خپل ته | واپس تلونکی يو |

......هغوی اووئیل چي هیڅ خبره نه ده | مونږ خپل رب ته واپس تلونکی یو |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّا | نَطْمَعُ | اَنْ يَّغْفِرَ لَنَا | رَبُّنَا | خَطٰيٰنَا | اَنْ كُنَّا |
| بيشکه مونږه | اميد لرو | چي اوبه بخښي مونږ لره | رب زمونږه | ګناهونه زمونږه | چي وو مونږه |

مونږ امید لرو | چي زمونږ رب به زمونږ ګناهونونه معاف کړي | ځکه چي مونږ د تولو

اَوَّلَ الْمُؤْمِنِينَ

اول مومنان [په دغه حاضرينو کښي] |

ړومبي ايمان راوړي دي |

**آسان ترجمه قرآن**

فرعون خپل ګېر چاپېره سردارانو ته اووئیل : یقینًا دا خو ماهر جادوګر دې. دې غواړي چه د خپل جادو په زور باندې تاسو د خپلې زمکې نه بهر اوباسي. اوس اوښایئ ستاسو څه رائې ده؟ هغوی اووئیل : هغه

ته او دهغوی وروړ ته لږ مهلت ورکړه، او په ټولو ښهرونو کښې آستاذي اولیږه. چه ماهر جادوګران تاته راولي (او دهغه جادوګرانو مقابله اوکړي) پس په یو مقرر ورځ باندې ټول جادوګران جمع کړې شو. او خلقو ته اووئیلې شو چه: آیا تاسو جمع کیدونکي یئ؟ کیدې شي که دا جادوګر غالب راځي نو مونږ په د دوئ په لاره باندې ځو. بیا جادوګران راغلل نو دهغوی فرعون ته اووئیل: دا خبره خو یقیني ده کنه چه که مونږ غالب راغلو نو مونږ ته به څه انعام ملاویږي؟ فرعون اووئیل: او او، او تاسو به په دغه صورت کښې په مقربو خلقو کښې ضرور شاملولې شئ. موسی علیه السلام هغه جادوګروته اووئیل: څه چه تاسو ویشتل غواړئ هغه اوولئ. په دې باندې هغه جادوګرو خپل رسۍ او همساګانې په زمکه باندې ګوزار کړې او وې وئیل: د فرعون په عزت قسم! مونږ به غالب راځو. پس موسی علیه السلام خپله همسا په زمکه ګوزار کړه، نو ناڅاپه هغې (نه اژدها جوړه شوه او) هغه تماشې لره تیزول ئې شروع کړل کومه چه هغوی په دروغه جوړول. پس بیا هغه جادوګر په سجده کښې اوغورځولې شو. وې وئیل چه: مونږ په رب العلمین باندې ایمان راوړلو. چه د موسی او هارون رب دې. فرعون اووئیل: تاسو زما د اجازت درکولو نه مخکښې په موسی ایمان راوړلو. ثابته شوه چه دا ستاسو مشر دې چا چه تاسو ته جادو ښودلې دې. ښه نو اوس به تاسو ته پته اولګي. زه به ستاسو ټولو د یو طرف لاس او د بل طرف خپې پرې کړم. او تاسو ټول به په سولۍ کړم جادګرو اووئیل: مونږ ته هیڅ نقصان نشته، زمونږ یقین دې چه مونږ به خپل رب ته واپس لاړ شو. مونږخو په شوق سره امید کوو چه زمونږ رب په دې وجه زمونږ ګناهونه معاف کړي چه مونږ د ټولو نه مخکښې ایمان راوړې وو.

### خلاصه تفسیر

دحضرت موسی علیه السلام دامعجزې چه ظاهرې شوې نو ﴿قَالَ لِلْمَلَاِ حَوْلَهٗٓ﴾ [ فرعون درباریانو ته کوم چه دده خواوشاته ] ناست [ وو وئیل ﴿اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ﴾ چه په دې کښې څه شک نشته چه دالویئ ماهر جادو کردې ﴿يُّرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهٖ﴾ دده ] اصل [ مطلب دا دې چه په ] زور د[خپل جادو سره] په خپله مشرشي او [ تاسولره ستاسو دزمکې نه وباسي] چه بغیر دبل دمزاحمت نه دخپل قوم سره ریاست کوي ﴿فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ﴾[ پس تاسو خلق څه مشوره راکوئ؟ ﴿قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ وَابْعَثْ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ﴾ درباریانو ووئیل چه ته دۀ ته او دده وروړته ] څه مهلت ورکړه او] دخپل ملك دحدونو [ ښارونو ته ] راغوندونکې یعنی [ نوکران ولیږې ] حکم نامې ورکړه ﴿يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيْمٍ﴾ [چه هغوی] دټولو ښارونونه [ټولو ماهرانو جادوګرو لره ] جمع کړي [تاته حاضرکړي ﴿فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ﴾ غرض هغه جادوګران په یوه معینه ورځ په خاص وخت جمع کړې شول ] دمقررې ورځې نه مراد ورځ د اختر ده او دخاص وخت نه مراد وخت دڅاښت دی لکه دسوره طه په دریمه رکوع کښې چه ذکرشوی دی یعنی په دغه مقرر وخت ټول جمع کړې شول او فرعون ته دجمع کیدو اطلاع ورکړې شوه [ او] دفرعون دطرفه په طوردعام اعلان ﴿وَّقِيْلَ لِلنَّاسِ هَلْ اَنْتُمْ مُّجْتَمِعُوْنَ﴾[ خلقو ته دا اشتهار ورکړې شو چه ایاتاسو خلق] په فلانئ موقع باند دواقعې دلیدو دپاره [ جمع کیدونکی یئ ] یعنی جمع کیږئ به ﴿لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ اِنْ كَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ﴾ [چه که جادوګرغالب راشی ] لکه چه دغالب کیدو توقع ئې ده [ نومونږ به ددوی په لاره باند یو] یعنی هغه لاره کومه چه فرعون وو او نورې

هم په دې باند ساتل غوښتل مطلب دادې چه جمع شي او وګورئ اميد دې چه جادوګر به غالب وی نوزمونږ دخلقو دطريقې حقوالې به په دليل سره ثابت شي ﴿فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ﴾ [ بيا چه هركله هغه جادوګران ] دفرعون په وړاند [ راغلل ﴿قَالُوْا لِفِرْعَوْنَ أَئِنَّ لَنَا لَأَجْرًا إِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ﴾ نو فرعون ته ئې ووئيل چه که چرې ] په موسیٰ ﷺ باند [ مونږ غالب شو نو ايا مونږ ته به څه لويه صله] او انعام [ ملاوشي ﴿قَالَ نَعَمْ﴾ فرعون ووئيل چه هو] مالي انعام به درته هم ملاوشی [ او] په دې دپاسه به درته دامرتبه ملاوشي چه ﴿وَإِنَّكُمْ إِذًا لَّمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ﴾ [تاسو به په دې صورت كښې ] زما [ په مقربانو خلقوكښې داخل شئ ] غرض ددې خبرواترو نه پس عين دمقابلې موقعې ته راغلل او دبل طرف نه موسیٰ ﷺ تشريف راوړو اومقابله شروع شوه او ساحرانو موسیٰ ﷺ ته عرض وكړو چه ته خپله همساوړاندغورزوې اوكه مونږ وغورزوو؟ ﴿قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى أَلْقُوْا مَا أَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ﴾ [موسیٰ ﷺ [دوی ته وفرمائيل چه تاسو څه غورزول غواړئ ] په ميدان كښې [وغورزوئ ﴿فَأَلْقَوْا حِبَالَهُمْ وَعِصِيَّهُمْ﴾ پس دوی خپلې رسئ اوهمساګانې وغورزولې ] كومې چه دجادو په اثر سره ماران معلوميدل ﴿وَقَالُوْا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ﴾ [ اووئ ونيل چه دفرعون په نصيب باندې قسم دې ﴿إِنَّا لَنَحْنُ الْغٰلِبُوْنَ﴾ بيشكه مونږ به غالب راځو ﴿فَأَلْقٰى مُوْسٰى عَصَاهُ﴾ بياموسیٰ] ﷺ په حكم دخدای [خپله همسا وغورزوله دغورزولو سره ] اژدها جوړه شوه ﴿فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُوْنَ﴾ [پس اچانك ددوی ټول جوړ شوی څيزونه تيرول ئې شروع كړل پس ] چه دائې وليد ﴿فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ﴾ [ جادوګران ] داسې متاثره شول چه [ټول په سجده پريوتل ] او په چغوسره ﴿قَالُوْا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ [ وئ ونيل چه مونږ ايمان راوړو په رب دعالمينو باند كوم چه ﴿رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ﴾ دموسی اوهارون ] ﷺ [ هم رب دې فرعون] ډير اوويريدو چه هسې نه ټول رعيت مسلمانان نشی نويو مضمون ئې جوړكړو په صورت دعتاب ئې ساحرانو ته ﴿قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ أَنْ اٰذَنَ لَكُمْ﴾ [ ووئيل چه هو تاسو ايمان راوړو په موسیٰ] ﷺ [ باند بغيرددې چه زۀ تاسوته اجازت دركړم خامخا] معلوميږی چه ﴿إِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ﴾ [ دې] په جادو كښې [ستاسو دټولو استاددې كوم چه تاسو ته جادو ښودلې دې ] او تاسو ددۀ شاګردان يئ په دې وجه تاسو پټ سازش كړې دې چه ته داسې وكړه مونږ به داسې وكړو بيابه دغه شان ګتيه بيلا دظاهر كړو چه دقبطيانو نه حكومت واخلو او په فارغ زړۀ سره په خپله حكومت كوو لكه دا قول دالله تعالى [ان هـذالمكـر مكرتمـوه فـي المدينـة لتخرجـوامنهـا اهلهـا ]() پس اوس به ﴿فَلَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ﴾ [تاسو ته حقيقت معلوم شی ] او هغه دادې چه ﴿لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ﴾ [ زۀ به ستاسو ديو طرف لاسونه او دبل طرف خپې پريكړم ﴿وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ أَجْمَعِيْنَ﴾ او تاسو ټول به په سولئ كړم ] چه نور درنه عبرت واخلی ﴿قَالُوْا لَا ضَيْرَ﴾ [ دوی جواب وركړو چه هيڅ حرج نشته ﴿إِنَّا إِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ﴾ مونږ به خپل مالك ته اورسو ] كوم ځای چه دهرقسم امن او راحت دې بيا په داسې مرګ سره نقصان څه دې او ﴿إِنَّا نَطْمَعُ أَنْ يَّغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطٰيٰنَا﴾ [ مونږ اميد لرو چه زمونږ پروردګاربه زمونږ خطاګانو لره معاف كړی ﴿أَنْ كُنَّا أَوَّلَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ په دې وجه چه مونږ ] په

[1]) ترجمه:- دا خو ستاسو يو چال دې چې تاسو په دې ښار كښې څكه اوچلولو چې ددې ښار اوسيدونكی ددې ځائې نه بهر اوباسی.

دي موقع په حاضرينو كښې [ دټولو نه اول ايمان راوړو ] پس په دې دا شبهه نه شي كيدې چه ددوى نه وړاند خو هم څنو ايمان راوړې وو لكه اسيه اومؤمن دآل فرعون او بنى اسرائيل

## معارف او مسائل

﴿اَلْقُوْا مَآ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ۝﴾ يعنى حضرت موسى عليه السلام جادو ګرو ته اوونيل چه تاسو څه جادو ښكاره كول غواړئ هغه ښكاره كړئ دا شبه كول بې ځايه دى چه ګنى هغوئ ته حضرت موسى عليه السلام د جادو ښكاره كولو حكم وركړو حالانكه داسې نۀ ده بلكه لږ غور كولو سره معلوميږى چه د هرې ژبې په محاوره كښې مقابل ته داسې په دې غرض وئيلې شى چه څه كنه زور دې ښكاره كړه چه زۀ ئې مات كړم او ټولو خلقو ته ښكاره شى چه بيا د سر راپورته كولو جوګه پاتې نۀ شې -

﴿بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ﴾ دا د جادو ګرو قسم خوړل وو څنګه چه د جاهليت په زمانه كښې د داسې قسم خوړلو رواج وو افسوس دې چه اوس په دې مسلمانانو كښې هم د دې نه زيات ناكاره قسمونو رواج موندلې شى څوک د بادشاه په نوم قسم خورى ، څوک په سر ، څوک په ږيره ، څوک د چا د پلار په قبر باندې قسم خورى داسې قسمونه خوړل په شريعت كښې بيخى ناروا دى بلكه په دې باره كښې به دا وئيل غلط نۀ وى چه څومره ګناه د الله تعالى په نوم د دروغو قسمونو خوړلو ده هومره لويه ګناه د دې رواجى قسمونو هم ده [ كما فى الروح ] (¹)

﴿قَالُوْا لَا ضَيْرَ ۫ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ۝ۚ﴾ كله چه فرعون جادو ګرو ته په ايمان راوړلو باندې د سولئ وركولو او د لاسونو خپو پريكولو دړكه وركړه نو جادو ګرو په ډيرې بې پروايئ سره دا جواب وركړو ، چه لاس دې آزاد ، مونږ ته هيڅ زيان نشته كه مو اووژنې نو خپل رب ته به ورشو چرته چه سراسرى آرام دې -

هر كله چه دغه جادو ګران ټول عمر د جادو ګرئ په كفر كښې اخته پاتې شوى وو د فرعون خدائى ئې هم ورسره منله او د هغه عبادت ئې كولو خو د موسى عليه السلام د معجزې په ليدو سره ئې د خپل ټول قوم بلكه د ظالم جابر بادشاه فرعون په خلاف د خپل ايمان راوړو اعلان اوكړو او ايمان راوړل ئې هم په دې شان څرګند كړل چې ګويا كه قيامت او آخرت د هغوئ مخې ته راغلې وى د آخرت نعمتونه ئې ليدلې وى څكه د دنيا د هر مصيبت سزا او تكليف نه بيخى بې پروا شوى دا وائى چه ﴿فَاقْضِ مَآ اَنْتَ قَاضٍ ؕ﴾ (²) [ لاس دې آزاد هغه اوكړه چه زړه دې غواړى ، مونږه د ايمان نه بيرته اوريدونكى نۀ يو ] دا هم په حقيقت كښې د حضرت موسى عليه السلام معجزه وه چه د همسا او يد بيضا د معجزې نه كمه نۀ ده دغسې ډير واقعات زمونږ د رسول محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم په لاس مبارک څرګند شوى وو مثلا په يو منټ كښې د اويا كالو په كافر كښې داسې بدلون راغلو چه يواځې مؤمن نۀ شو بلكه غازى شو او د شهيدګئ آرزو ئې لرله -

| وَاَوْحَيْنَآ | اِلٰى مُوْسٰٓى | اَنْ اَسْرِ |
|---|---|---|
| او وحى اوكړه مونږه | موسى ته | چې دشپې بوخه |
| او مونږ موسى عليه السلام ته حكم اوكړو چې زما بندګان شپه په شپه | | |

(¹) روح المعاني تحت هذه الآية ج: ١٤ ص:٢٠٤

(²) ترجمه:- ته چې څه كول غوارې اوكړه.

بِعِبَادِيٓ إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ۝ فَأَرْسَلَ فِرْعَوْنُ فِي الْمَدَآئِنِ

بندگان زما | بیشکه تاسو | پسې به درځی خلق | نو اولیږل | فرعون | په ښارونو کښی [خبریالان]

[د مصر نه] بهر ته اوباسه | خو تاسو به رالاندي کولې شئ | فرعون تولو ښارونو ته سپاهیان

حٰشِرِينَ ۝ إِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيلُونَ ۝ وَإِنَّهُمْ

راجمع کونکی [دلښکر] | بیشکه دا بنی اسرائیل | خامخا یوه ډله ده | لږه | او بیشکه دوئ

اولیږل | ............اووې وئیل چې دا یو وړوکې شان تولې دي | او دوئ

لَنَا لَغَآئِظُونَ ۝ وَإِنَّا لَجَمِيعٌ حٰذِرُونَ ۝

مونږ لره | غصه راوستونکی دی | او بیشکه مونږه | خامخا یوه ډله یو | بیدار اوسیدونکی |

مونږ ډیر زیات قهرولی یو | او مونږ وسله پورې خلق یو

فَأَخْرَجْنٰهُم مِّن جَنّٰتٍ وَعُيُونٍ ۝ وَكُنُوزٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ۝

نو راوویستل مونږ هغوئ لره | دباغونونه | او دچینونه | او دخزانونه | او دښو ځایونونه

غرض داچې مونږ دغه فرعونیان دباغونو اوچینو اوخزانو او ښائسته کورونو نه بهر اوویستل

كَذٰلِكَ ۚ وَأَوْرَثْنٰهَا بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ۝

هم داسې اوکړل مونږه | او په میراث کښی ورکړل مونږه هغه | بنی اسرائیلو ته |

دامو اوکړل | او مونږ بنی اسرائیل د دوئ وارثان جوړ کړل

فَأَتْبَعُوهُم مُّشْرِقِينَ ۝ فَلَمَّا تَرَآءَ

نوروان شو هغوئ په هغوی پسې | په وخت دختلو دنمر کښی | انو هر کله چې ایوبل سره لیدل اوکړل

هغوئ د نمر ختلو په وخت کښې بنی اسرائیلو پسې شول | هر کله چې

الْجَمْعٰنِ قَالَ أَصْحٰبُ مُوسٰىٓ إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ۝ قَالَ

دواړو ډلو | نو اووئیل | ملګرو دموسی | بیشکه مونږه اونیولې شو | اووئیل موسی

دواړو ډلو یو بل ته اوکتل | نو د موسی ؑ ملګرو اووئیل | چې مونږ خو بس سم راګیر شو

كَلَّآ ۖ إِنَّ مَعِيَ رَبِّي سَيَهْدِينِ ۝ فَأَوْحَيْنَآ إِلٰى مُوسٰىٓ

هرگزنه | بیشکه ماسره | رب زما دی | چې لاربه ښائی ماته | نووحی اوکړه مونږه | موسی ته

موسی ؑ اوفرمائیل چې هیڅکله نه بیشکه زما رب ماسره دی | هغه به راته لاره ښائی | هغه وخت مونږ

أَنِ اضْرِب بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ ۖ فَانفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ

چې اووهه | په همسا خپله | دادریاب | نو اوشلیدو هغه | پس شوه | هره حصه |

موسی ؑ ته حکم اوکړو | چې په خپله همسا دریاب اووهه | نو دریاب اوشلیدو | او [داوبو] یوه ټکړه

كَالطَّوْدِ الْعَظِيمِ ۝ وَأَزْلَفْنَا ثَمَّ الْآخَرِينَ ۝ وَأَنجَيْنَا

پشان | دغرلوئ | او رانزدې کړل مونږه | هغه ځائی ته | هغه بله ډله | او بچ کړو مونږه |

دلوئی غر په شان شوه | او مونږ بله ډله [کافران] هم نزدې اورسول | او مونږ موسی ؑ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُوْسٰى | وَمَنْ | مَّعَهٗٓ | اَجْمَعِيْنَ ۝ | ثُمَّ اَغْرَقْنَا | الْاٰخَرِيْنَ ۝ |
| موسی | او هغه خوك | چې وو د هغه سره | ټول | بيا ډوب کړل مونږه | هغه نور خلق |

او هغه ملګری ټول بچ کړل | بيا دويم فريق [فرعونيان] مو ډوب کړل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيَةً ۭ | وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ ۝ | وَاِنَّ |
| بيشکه | په دې کښې | يوه نښه ده | اونه دی اکثر ددې خلقو نه | ايمان راوړونکی | او بيشکه |

بيشکه په دې واقعه کښې ډير لوئې عبرت [پټ] دې او په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړي

| | | | |
|---|---|---|---|
| رَبَّكَ | لَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الرَّحِيْمُ ۝ |
| رب ستا | خامخا هغه دې | غالب | رحم کونکې |

او بيشکه ستا رب غالب او مهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ موسٰی علیه السلام ته وحی اولیږله چه: زما بندګان ځان سره کړه او د شپې شپې روان شه، یقیناً ستاسو پسې به درتګ کولې شی په دې بانډې فرعون په ښهرونو کښې استاذی اولیږل. (او دا پیغام ئې ورته اولیږلو چه:) دا (بنی اسرائیل) دیوې ورې ډلې لږشان خلق دی. او حقیقت دا دې چه هغوی زمونږ زړونه سوزولی دی [غصه کړی دی] او مونږ ټولو احتیاطی تدبیرونه کړی دی (لهٰذا ټول یو ځائې په هغوی پسې شئ) دغه شان مونږ هغوی بهر راویستل د باغونو او چینو نه هم، او د خزانو او د باعزت ځایونو نه هم. دهغوی معامله خو دغه شان شوه، او (بل طرف ته) دهغه څیزونو وارثان مونږ بنی اسرائیل جوړ کړل. غرض داسې اوشوه چه دا ټول خلق د نمر ختلو سره په هغوی پسې اووتل. بیا چه کله دواړه ډلې یو بل ته ښکاره شوې نو د موسٰی علیه السلام ملګرو اووئیل: اوس خو دا خبره یقینی ده چه مونږ اونیولې شو. موسٰی علیه السلام اوفرمائیل: هیڅکله نه! ما سره یقینی طور زما رب دې، هغه به ماته لار ښائی. پس مونږ موسٰی علیه السلام ته وحی اوکړه چه خپلې همسا بانډې سمندر اووهه پس سمندر اوچودلو، او هره حصه د یو لوئې غر په شان اودریدله او دویم فریق هم مونږ هغه ځائې ته نزدې راوستل او موسٰی او د هغه ملګری مونږ بچ کړل. بیا مو نور غرق کړل. یقیناً په دې ټوله واقعه کښې د عبرت ډیر سامان دې. بیا هم په دوی کښې اکثر خلق ایمان نه راوړی، او یقین اولره چه ستا رب صاحب د اقتدار هم دې، ډیر مهربان هم.

## خلاصه تفسیر

[ او] هرکله چه فرعون ته ددې واقعې نه هم هدایت اونه شو او ده بنی اسرائیل از اول پرې نه ښودل نو ﴿وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى﴾ [ مونږ موسی] علیه السلام [ ته حکم ولیږلو ﴿اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِيْٓ﴾ چه زما] دې [بندګانو لره ] یعنی بنی اسرائیل لره [ شپه په شپه ] دمصر نه بهر [ اوباسه څه ] ﴿اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ﴾ او دفرعون دطرف نه [ ستاسو خلقو تعاقب به ] هم [ کولې شی] چنانچه هغه دحکم موافق بنی اسرائیل شپه په شپه دخان سره کړل سحر دا خبره مشهور شو ﴿فَاَرْسَلَ فِرْعَوْنُ فِي الْمَدَاۗىِٕنِ حٰشِرِيْنَ﴾ نو [ فرعون ] دتعاقب دتدبیر کولو دپاره ځای په ځای خواوشا [ ښارونو ته نوکران وزغلول] او دای ورته ووئیل ﴿اِنَّ هٰٓؤُلَاۗءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيْلُوْنَ﴾ [ چه دا خلق ] یعنی بنی

اسرائیل زمونږ په نسبت [لږشان جماعت دي] ددوی دمقابلې نه هيڅ مه ويرېږئ ﴿وَاِنَّهُمْ لَنَا لَغَآئِظُوْنَ﴾ [ او دوی ] په خپله کار روايئ سره [ مونږ ډير غصه کړي يو] هغه کار روائي داده چه پټ په چالاکئ سره ووتل ياداچه زمونږ نه يئ کالي يعني زيورات هم دعاريت په بهانه سره يوړو غرض زمونږ نه احمقان جوړکړل او لاړل خامخادذې تدارك كول پكاردي ﴿وَاِنَّا لَجَمِيْعٌ حٰذِرُوْنَ﴾ [ اومونږټول يو باوسه جماعت] او باقاعده فوج [ يوغرض ] دوه ډلور ورځوكښې کله چه په سامان او فوج سره برابر شو نو دلښکر سره دبنی اسرائيلو په تعاقب کښې ووتل او ددې نه خبرنه وو چه اوس به واپسې مونږ ته نصيب نه شي نو په دې حساب سره ګويا ﴿فَاَخْرَجْنٰهُمْ مِّنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ۙ وَّكُنُوْزٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ﴾ [ مونږ دوی لره دباغونو نه او دچينونه او دخزانو نه او ښائسته مکانونو نه بهر وويستل] مونږ دهغوی سره خو ﴿كَذٰلِكَ ۛ وَاَوْرَثْنٰهَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ [ داسې وکړل او ددوی نه پس مو بنی اسرائيلو لره ددغو مالکان جوړکړل ] دا جمله معترضه وه وړاند قصه ده [ غرض ] يوه ورځ ﴿فَاَتْبَعُوْهُمْ مُّشْرِقِيْنَ﴾ [دنمر ختو په وخت کښې په دوی پسې روان شول ] يعني نزدې ورته اورسيدل هغه وخت بنی اسرائيل په درياب دقلزم دپورې وتوپه فکر کښې وو چه څه انتظام وکړو ﴿فَلَمَّا تَرَآءَ الْجَمْعٰنِ﴾ [ بيا چه هرکله دواړه جماعتونه ] يوبل ته دومره نزدې شول چه [يوبل ئې وليدل ﴿قَالَ اَصْحٰبُ مُوْسٰٓى اِنَّا لَمُدْرَكُوْنَ﴾ نو دموسی عليه السلام [ملګرو ] په ويره كښې [ ووئيل چه] اې موسی عليه السلام [ بس مونږ ددوی په لاس ورغلو ﴿قَالَ كَلَّا ۚ اِنَّ مَعِيَ رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ﴾ موسی] عليه السلام [اوفرمائيل چه هرګز داسې نه ده څکه چه زمونږ ملګرې زما پروردګار دې هغه به ماته اوس ] ددرياب نه دپورې وتلو [لار وښائي څکه چه موسی عليه السلام ته د روانيدو په وخت کښې دا وئيلې شوې وو چه په سمندر کښې به اوچه لار پيداشي [فاضرب لهم طريقا في البحر يبسا لاتخاف دركا ولا تخشى] (۱) اګر چه د وچيدو کيفيت ئې هغه وخت نه وو ښودلې پس موسی عليه السلام په دې وعده مطمئن وو او بنی اسرائيلو ته حال معلوم نه وو نو پريشانه وو ﴿فَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى﴾ [بيامونږ موسی] عليه السلام [ ته حکم ورکړو ﴿اَنِ اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ﴾ چه خپله همسا درياب له راپريږده چنانچه ] ده په همسا ووهلو او په دې سره ﴿فَانْفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ﴾ [هغه] درياب [څيرې]حصې حصې [شو ] يعني اوبه څوځائ اخوا ديخوا په څنګ شوې او په مينځ کښې ئې ډير سرکونه جوړ شول [ اوهره حصه دومره ] لويه [ وه ﴿كَالطَّوْدِ الْعَظِيْمِ﴾ لکه لوئ غر] داخلق په درياب باند ښه په اطمينان سره پورې وتل ﴿وَاَزْلَفْنَا ثَمَّ الْاٰخَرِيْنَ﴾ [ اومونږ بل فريق لره هم دې موقعې ته نژدې اورسولو او دتيرې پيشګويئ مطابق [ واترك البحر رهوا] (۲) درياب ترهغه وخته پورې په دغه حال ولاړ وو په دې وجه کلاؤ لارې ئې غنيمت وګڼلې وړاند وروستوئ هيڅ سوچ ونه کړو ټول لښکر درياب ته ورننوتو او دڅلور واړه طرفه پرې اوبه راټولې شوې او ددوی کارئ تمام کړو [ او] انجام دقصې دا شو چه ﴿وَاَنْجَيْنَا مُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ﴾ [ مونږ موسی] عليه السلام [لره او دده ملګرو ټولو لره] دغرقيدو نه [بچ کړل ﴿ثُمَّ اَغْرَقْنَا الْاٰخَرِيْنَ﴾ بيا نورو لره ] يعني ددوی مخالفولره مو[ غرق کړل ] او ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ﴾ [په دې واقعه کښې لوئ عبرت دې ] يعني

(۱) ترجمه:-بيا مو دهغوئ دپاره په درياب کښې اوچه لاره جوړه کړه ، نه به تاسو ته د اويره چې مونږ پسې به څوك ورستو نه راشي اونه به په تاسو څه قسمه ويره وي.

(۲) ترجمه:- او تاسو دا درياب د سکون په حالت کښې پريږدئ.

د دې قابله ده چې کفار پرې دليل ونيسي چه مخالفت داحکامو او رسولانو دالله تعالی دعذاب موجب دې او چه په دې پوه شي او دمخالفت نه ځان وساتی [ او] ددې باوجود ﴿وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ﴾ [ په دوی ] کفارو دمکې [کښې اکثر خلق ايمان نه راوړی ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ﴾ او ستارب لوئ زبردست دې ] که غوښتلي ئې نو په دنيا کښې به ئې دوی ته عذاب ورکړې وو ليکن [ لوئ مهربان ] هم [ دې ] په دې وجه په خپل عام رحمت سره ئې دعذاب مهلت مقرر کړې دې پس دعذاب دزر راتلونه بې فکره کيدل نه دی پکار.

## معارف او مسائل

[۱] ﴿وَأَوْرَثْنَاهَا بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ د دې آيت د ظاهر نه په ښکاره داسې معلومیږی چه د قبطيانو د هلاکیدونه پس د هغوئ دمال جائيداد بنی اسرائيل مالکان اوګرځيدل ليکن په دې کښې يو تاريخی مشکل داپيښيږی چه د فرعونيانو د هلاکيدو نه پس بنی اسرائيل مصر ته نۀ دی واپس شوی بلکه خپل اصلی وطن مقدس زمکې شام ته روان شو په دغې دوران کښې يو کافر قوم سره د جهاد کولو حکم ورته اوشو خو بنی اسرائيلو د هغې د منلو نه انکار اوکړو د هغې په سزا کښې بنی اسرائيل په يو ميدان کښې څلويښت کاله بند کړې شو چه د هغې نه وتلې نۀ شو او هم په دغې ميدان [تيه] کښې حضرت موسی عليه السلام او حضرت هارون عليه السلام هم وفات شو دې نه پس د تاريخ د کتابونو نه نۀ ثابتيږی چه څه وخت بنی اسرائيل په جمع باندې په طاقت سره مصر ته ورغلي وی او د فرعونيانو جائيدادونه او خزانې و غيره ئې قبضه کړی وی – په تفسير روح المعانی([۲]) د سورت شعراء د دې آيت د لاندې د دې دوه جوابونه د تفسير امامانو رحمهم الله د حضرت حسن رحمه الله او قتاده رحمه الله په حواله نقل کړې دی حسن رحمه الله فرمائيلی دی چه په دې آيت کښې دا بيان خو شته دې چه د فرعونيانو د پريښولی جائيداد و غيره مالکان بنی اسرائيل جوړ کړې شو خو دا بيان پکښې نشته چه ګنی د هغوئ د هلاکيدو نه سمدستی پس دې مالکان ګرځولې شوې وی بلکه د ميدان تيه د واقعې [څلويښت پنځوس کلونو ] نه پس دغسې شوی وی نو د آيت په مطلب کښې څه فرق نۀ راځی که څوک دا اووائی چه تاريخ نه دا نۀ دی ثابت چه بنی اسرائيل بيا په جمع مصر ته ورغلی دی نو اول خو دا خبره د  پام کولو وړ هم څکه نۀ ده چه د دغې زمانې ليکلې تاريخ د يهودو او نصاراؤ د دروغو ګوډې دې چه هيڅ قسم اعتبار پرې نشي کولې په دې وجه د قرآن کريم په آيت کښې د څه تاويل کولو ضرورت نشته. حضرت قتاده رحمه الله اوفر مائيل چه د دې واقعې بيان د قرآن کريم په ګڼرو سورتونو کښې راغلې دې مثلاً د سورت اعراف په ايتونو ۱۲۸ و ۱۳۷ ، کښې او د سورت قصص په آيت ، ۵ ، کښې او د سورت دخان په آيتونو ۲۵ تر ۲۸ او د سورت شعراء په دې آيت ، ۵۹ ، کښې دې تولونه خو په ظاهره اګر چه ذهن دې اړخ ته ځی چې بنی اسرائيل هم خاص ددغې باغونو جائيدادونو و غيره مالکان ګرځولې شوی وو کوم چه فرعونيانو نه پاتې شوې وو چه هغې د پاره يقيناً د بنی اسرائيلو مصر ته دوباره داخليدل ضروری دی ليکن په دې ټولو آيتونو کښې دا ګنجائش هم شته چه مراد تر دا وی چه بنی اسرائيل هم د

[۱] دا مضمون په روميی اشاعت کښې ليکلو څخه پاتې شوې وو ،په طبع جديد کښې نن ۱۲ شعبان کال ۱۳۹۵ هجرئ کښې اوليکلې شو ، او د احقر په اتيا کاله عمر کښې صرف اته ورځې باقی دی.

[۲] ) روح المعاني تحت هذه الآية ج: ۱٤ ص:۲۲۳ (بأختصار)

دغې قسم خزانو او باغونو مالکان ګرځولې شوې وو کوم قسم باغونه وغیره چه فرعونیانو سره وو په دې بنا مصر ته د دوئ دوباره تلل ضروري نه شو بلکه داسې هم کیدې شی چه په شام ملک کښې ورته ورکړې شوې وی - او د سورت اعراف په آیت «التی بارکنا فیها» د الفاظو نه په ظاهره دا معلومیږی چه زمکه د شام ترې مراد ځکه ده چه د قرآن کریم ګڼو آیتونو کښې د شام د زمکې په باره کښې د «بارکنا» و غیره الفاظ راغلې دی ځکه د حضرت قتادة رحمه الله قول دا دې چه بې ضرورته د قرآن کریم آیتونه په داسې ځائ چسپان کول درست نه دی چه د دنیا تاریخ سره سمون نه خوری - خلاصه ئې دا ده چه که د واقعاتو نه دا ثابت شی چه د فرعون او فرعونیانو د هلاکیدو نه پس که هیڅ وخت هم بنی اسرائیل په مصر باندې په اجتماعی صورت سره قابض شوې نه وی نو بیا هم د حضرت قتادة رحمه الله د تفسیر مطابق په دې ټولو آیتونو کښې د شام د زمکې او د دې د باغونو او خزانو و غیره وارث کیدل مراد اخستې شی . والله اعلم .

﴿قَالَ أَصْحٰبُ مُوسٰى إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ۚ قَالَ كَلَّا ۖ إِنَّ مَعِيَ رَبِّي سَيَهْدِينِ﴾ کله چه وریسې راتلونکی فرعونی لښکر بنی اسرائیلو ته نزدې راؤرسیدو نو دوئ په چغه شو چه مونږه خو دا دې رالاندې کړې شو ځکه چه د دوئ په رالاندې کیدو کښې خو بل څه پاتې نه وو وریسې لوئ لښکر وو او مخې ته ئې دریاب وو دا اګر چه حضرت موسی علیه السلام په خپلو سترګو لیدلو مګر د استقامت غر د الله تعالی په وعدې باندې یقین کولو ځکه ئې دغه وخت ښه ډاډه اوفرمائیل ﴿كَلَّا﴾ [ یعنې مو نشی رالاندې کولې ] او وجه ئې دا ښودله چه ﴿إِنَّ مَعِيَ رَبِّي سَيَهْدِينِ﴾ [ ما سره زما پرور دیګار دې چه لار به راکوی ] د ایمان امتحان په داسې موقعو کښې اخستې شی چه حضرت موسی علیه السلام پوتې قدرې هم نه ویریدو هغوئ دومره ډاډه وو چه ګویا کښې ورته ملاویدونکې لار یې د سر په سترګو لیدله ځکه چه غار ثور کښې د پټیدو په وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دغسې استقامت او د الله تعالی په وعدې باندې پوخ یقین داسې ښکاره کړو ﴿لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ کله چه دوئ صلی الله علیه وسلم پسې راتلونکی دشمنان د غار خلې ته راؤرسیدل که لږ شان لاندې ئې کتلې وې نو دوئ صلی الله علیه وسلم به ئې لیدلی وو چه د غه وخت حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه او ویریدو نو دوئ صلی الله علیه وسلم ورته دغه جواب ورکړو چه [ غم مه کوه الله تعالی مونږ سره دې ] خو په دې دواړو واقعاتو کښې په دې خبره هم غور کول دی چه حضرت موسی علیه السلام فرمائی ﴿إِنَّ مَعِيَ رَبِّي سَيَهْدِينِ﴾ [ ، او رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی ﴿لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ د ، معی ، معنی ما سره [ یواځې ] او د معنا ، معنی مونږه [ دواړو ] سره ده یعنې حضرت موسی علیه السلام او فرمائیل چه الله تعالی ماسره دې او رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه الله تعالی مونږ سره دې - ځکه د امت محمدیه دا خصوصیت ترې ثابت شو چه امتی هم خپل پیغمبر سره په دې خبره کښې شریک وی چه الله تعالی ورسره وی -

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | نَبَاَ | عَلَيْهِمْ | وَاتْلُ |
| | | قیصه | په دوئ باند | او اولوله |
| | | | او [ائې نبی] دوئ ته د ابراهیم علیه السلام قصه | |
| مَا تَعْبُدُونَ | وَقَوْمِهٖ | لِاَبِيهِ | قَالَ | اِذْ | اِبْرٰهِيمَ |
| دڅه عبادت کوئ تاسو | اوقوم خپل ته | پلار خپل ته | اوونیل هغه | کله چې | د ابراهیم علیه السلام |

هم واوروه | هرکله چې هغوئ خپل پلار او خپل قوم ته اوونیل | چې دا تاسو د څه څیز عبادت کوئی

قَالُوْا　نَعْبُدُ　اَصْنَامًا　فَنَظَلُّ　لَهَا
اووئیل هغوئ | مونږه عبادت کوو | دبتانو | پس همیشه اوسیږو مونږ | دي بتانو ته |
هغوئ اووئیل چې مونږ د بتانوعبادت کوو | اوهم دهغوئ په عبادت قائم یو

عٰكِفِيْنَ ۝　قَالَ　هَلْ يَسْمَعُوْنَكُمْ　اِذْ　تَدْعُوْنَ ۝
نزدې کیناستونکې | اووئیل ابراهیم | آیا اوری دوئ خبری ستاسو | کله چې | تاسو آواز کوئ دوئ ته
ابراهیم ﷺ ورته اووئیل چې آیا دوئ ستاسو خبره اوریدې شی | کله چې تاسودوئ رابلئ ؟

اَوْ يَنْفَعُوْنَكُمْ　اَوْ يَضُرُّوْنَ ۝　قَالُوْا　بَلْ وَجَدْنَآ
یا دوئ فائده رسوی تاسو ته | یا ضرر دررسوی تاسو ته | اووئیل هغوئ | بلکه موندلی دی مونږه
یا تاسو ته څهٔ ضرر یا فائده درکولې شی ؟ | هغوئ اووئیل چې نه ، مونږ خو بس

اٰبَآءَنَا　كَذٰلِكَ　يَفْعَلُوْنَ ۝　قَالَ　اَفَرَءَيْتُمْ　مَّا
پلاران زمونږه | چې دارنګې | کار به ئې کولو | اووئیل ابراهیم | آیا نو کتلی دی تاسو | هغه بتانوته
خپل پلار نیکه په دې کار دغسې موندلی دی | ابراهیم ﷺ اووئیل چې آیا تاسو ددغې

كُنْتُمْ　تَعْبُدُوْنَ ۝　اَنْتُمْ　وَاٰبَآؤُكُمُ　الْاَقْدَمُوْنَ ۝
چې یئ تاسو | چې عبادت ئې کوئ | تاسو | او پلاران ستاسو | چې مخکښې تیر شوی دی |
معبودانو حالت هم لیدلې دې | تاسو یا ستاسو پخوانو پلارنیکونو |

فَاِنَّهُمْ　عَدُوٌّ لِّيْٓ　اِلَّا　رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ۝　الَّذِيْ
پس بیشکه چې دوئ | دشمنان دی زما | مګر نه | رب دمخلوقاتو | هغه رب |
هغه ټول زمادښمنان دی | سوا دهغه رب العالمین نه کوم چې زه پیدا کړم

خَلَقَنِيْ　فَهُوَ　يَهْدِيْنِ ۝　وَالَّذِيْ　هُوَ　يُطْعِمُنِيْ
چې پیدا ئې کړم زهٔ | پس هغه | لار ښائی ماته | او هغه رب | چې هغه | خوراک راکوی ماته |
او هم هغه ما ته سمه لار ښائی | او هم هغه رب چې ماباندې خوروی څکوی

وَيَسْقِيْنِ ۝　وَاِذَا　مَرِضْتُ　فَهُوَ　يَشْفِيْنِ ۝　وَالَّذِيْ
اواوبهٔ راکوی ماته | او کله چې | ناجوړه شم زهٔ | نوهغه | شفا راکوی ماته | او هغه رب |
اوڅه وخت چې زه بیمار شم | نو هم هغه ماته شفا راکوی | او هم [هغه الله ﷻ بهٔ]

يُمِيْتُنِيْ　ثُمَّ يُحْيِيْنِ ۝　وَالَّذِيْٓ　اَطْمَعُ　اَنْ يَّغْفِرَ　لِيْ
چې مرکوی به ما | بیا به ژوندې کوی ما | او هغه رب | چې امید لرم زهٔ | چې اوبه ښښی | ماته |
راته په وخت مرګ راکوی | اوبیابه مې ژوندې کوی | اوهغه [الله ﷻ] چې دکوم نه زه امیدلرم

خَطِيْٓـئَتِيْ　يَوْمَ الدِّيْنِ ۝　رَبِّ　هَبْ لِيْ　حُكْمًا　وَّاَلْحِقْنِيْ
ګناهونه زما | په ورځ دجزاء [قیامت] | اے ربه زما | راکړه ماته | حکم [حکمت] | او پیوست کړې ما
چې زماګناهونه بهٔ دقیامت په ورځ اوبخښی | اې زما ربه ماته حکمت [ د دین پوهه] راکړه | اوما په

بِالصّٰلِحِيْنَ ۝ وَاجْعَلْ لِّيْ لِسَانَ صِدْقٍ فِي الْاٰخِرِيْنَ ۝ وَاجْعَلْنِيْ

دصالحانو سره | اواوگرځوه ما | ژبه د صدق | په روستو خلقو کښې | اواوگرځوه ما |

خپلو نيکانو بندګانو کښې شامل کړه | او زما دنيکنامئ ذکر په راتلونکو نسلونو کښې جاري اوساته

مِنْ وَّرَثَةِ جَنَّةِ النَّعِيْمِ ۝ وَاغْفِرْ لِاَبِيْۤ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الضَّآلِّيْنَ ۝

دوارثانو | دجنت دنعمتونونه | اواوبښه | پلار زما | بيشکه چې دې هغه | دګمراهانونه |

اومادنعمتونو نه ډک جنت وارث کړه | او زما پلار هم اوبښه | بيشکه هغه په ګمراهانو کښې شامل دې

وَلَا تُخْزِنِيْ يَوْمَ يُبْعَثُوْنَ ۝ يَوْمَ لَا يَنْفَعُ

اومه شرمنده کوه ما | په هغه ورځ اچې راپورته کولې به شي دا خلق | په هغه ورځ اچې څه فائيده به نۀ رسوي

اوپه هغه ورځ مې مه شرموه | چې خلق به بيا راژوندي کړې شي | په کومه ورځ چې به نه

مَالٌ وَّلَا بَنُوْنَ ۝ اِلَّا مَنْ اَتَى اللّٰهَ بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ ۝

مال | اونۀ اولاد | ماسوا | دهغه چانه | چې راشي الله ته | په زړۀ سلامت سره |

مال فائده ورکوي او نه اولاد | خو څوک چې الله ﷻ ته [دشرک اوګناهونونه] پاک زړۀ يوسي

وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ۝ وَبُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ

او نزدې به کړې شي | جنت | دپاره دپرهيزګارانو | او ښکاره به کړې شي | دوزخ |

او په کومه ورځ چې بۀ نيکانو ته جنت نزدې کړې شي ۴......او ګمراهانو ته بۀ دوزخ ښکاره کړې شي

لِلْغٰوِيْنَ ۝ وَقِيْلَ لَهُمْ اَيْنَمَا كُنْتُمْ

دپاره دګمراهانو | اواوبه وئيلې شي | هغوئ ته | کوم ځائې دې هغه معبودان | چې وئ تاسو |

او ورته به اووئيلې شي اچې هغه معبودان مو څه شول | چې تاسو به ئې دالله د عبادت

تَعْبُدُوْنَ ۝ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ هَلْ يَنْصُرُوْنَكُمْ اَوْ يَنْتَصِرُوْنَ ۝

چې عبادت به موکولو | بې دالله نه | آيا مدد کوي هغوئ ستاسو | يا مدد کوي دخان خپل |

نه بغير عبادت کولو | آيا هغوئ نن ستاسو مدد کولې شي | يا بدله اخستې شي ؟ |

فَكُبْكِبُوْا فِيْهَا هُمْ وَالْغَاوٗنَ ۝ وَجُنُوْدُ اِبْلِيْسَ

نو اوبۀ غورزولې شي نسکور | په هغې کښې | هغوئ | او ګمراهان | او لښکر دابليس |

نوبيابه دغه معبودان او ګمراهان ټول په دوزخ کښې پرمخې واچولې شي | اودشيطان لښکرې

اَجْمَعُوْنَ ۝ قَالُوْا وَهُمْ فِيْهَا يَخْتَصِمُوْنَ ۝

ټول | اووائي به هغوئ | او حال داچې هغوئ به | په هغې کښې | جګړه کوي |

به ورسره هم وي | نو کافران به په دوزخ کښې يو بل سره جګړې کوي

تَاللّٰهِ اِنْ كُنَّا لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝ اِذْ نُسَوِّيْكُمْ

قسم په الله دې اچې وو مونږه | خامخا په ګمراهئ ښکاره کښې | چې برابر ولئ مونږ تاسو

اوداسې به وائي اچې قسم مونږ په څرګند ګمراهئ کښې پراته وو | چې تاسومو د رب

بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۸﴾ وَمَآ اَضَلَّنَآ اِلَّا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۹۹﴾ فَمَا لَنَا

درب العالمين سره | اونهٔ وو گمراهه کړی مونږه | مگر مجرمانو خلقو | پس نشته دي مونږ لره |

العالمين سره برابر گنړلئ | او مونږ خو بل چا نهٔ بلکه دې مشرانو مجرمانو گمراه کړو

مِنْ شَافِعِيْنَ ﴿۱۰۰﴾ وَلَا صَدِيْقٍ حَمِيْمٍ ﴿۱۰۱﴾ فَلَوْ اَنَّ لَنَا

څوک سفارش کونکي | او نهٔ دوست | اخوږ مخلص | پس کاش که وې | مونږ لره |

نو اوس هيڅوک زمونږ سفارشي نشته دې | او نه څوک اخلاص مند ملګرې شته | نو څنګه به

كَرَّةً فَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۲﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

يو ځل بيا واپس تلل | نو شو به مونږه | دمومنانونه | بې شکه | په دې [قيصه] کښې |

ښه وې که [دنيا ته] يو ځل دواپس تلو موقع راکولې شوې | نو مونږ به مسلمانان شوی وو | بيشکه

لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۳﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ

خامخا نښه دعبرت ده | اونهٔ دې اکثر ددوئ | مؤمنان | او بيشکه | رب ستا | خامخا هم هغه

په دې واقعه کښې لوئې سبق پروت دې | او ددوئ اکثر خلق ايمان نه راوړی | او بيشکه رب ستا

الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۰۴﴾

غالب دې | مهربانه دې |

ډير زبردست او مهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پيغمبره) هغوی ته د ابراهيم عليه السلام واقعه واوروه، چه کله هغوی خپل پلار او خپل قوم ته وئيلې وو چه: تاسو د کوم څيز عبادت کوئ؟ هغوی اووئيل چه: مونږ د بتانو عبادت کوو، او د هغوی په وړاندې مو پېرلت غځولې وی. ابراهيم عليه السلام اووئيل: چه کله تاسو هغه راباللئ نو آيا دا ستاسو خبره اوری؟ يا تاسوته څه فائده يا نقصان در رسولې شی؟ هغوی اووئيل: اصل خبره دا ده چه مونږ خپل پلار نيکهٔ هم داسې کونکې موندلې دی. ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل: آيا تاسو هغه څيزونه په غور سره ليدلې دی د چا چه تاسو عبادت کوئ؟ تاسو هم او ستاسو پخوانی پلار نيکهٔ هم! زما دپاره خو دا ټول دشمنان دی، سوا د يو رب العلمين نه. چا چه زهٔ پيدا کړې يم، او هم هغه زما رهنمائی کوی او کوم ذات چه ماته خوراک څکاک راکوی. او کله چه زهٔ بيمار شم نو ماته شفا راکوی او کوم ذات چه به ماته مرګ راکوی، بيا به مې ژوندې کوی، او د چا نه چه زهٔ دا اميد کوم چه د حساب کتاب په ورځ باندې به زما خطا معاف کړی. اې زما ربه! ماته حکمت راکړه، او ما په نيکانو خلقوکښې شامل کړه او په راتلونکو نسلونوکښې زما دپاره هغه ژبې پيدا کړه چه زما د رشتينوالی ګواهی ورکوی. او ما د هغه خلقو نه کړه چه د نعمتونو والا جنت وارثان به وی. او زما د پلار مغفرت اوکړه، يقيناً هغه د ګمراهانو نه دې او په هغه ورځ باندې ما رسوا نه کړې کله چه به خلق دوباره ژوندی کولې شی. په کومه ورځ چه به نه څه مال په کار راشی، نه اولاد، مگر هغه سړې چه الله پاک ته د سلامتی والا زړه راوړی، (هغه ته به خلاصې ملاؤ شی). او جنت به متقيانو خلقو ته نزدې کړې شی، او دوزخ به ښکاره د ګمراهانو مخکښې راوړې شی.

اوهغوی ته به اوویلې شي چه: چرته دی هغه څوك د چا چه به تاسو د الله پاك نه سوا بندګي كوله؟ آیا هغوی به ستاسو امداد اوكړی یا به خپل ځان بچ كړی؟ بیا به هغوی هم او ګمراهان هم پرمخې دوزخ ته ګزار كړې شي او د ابلیس ټولې لښكرې هم. هلته به دوی ټول په جهګړې كولو سره (خپلو معبودانو ته) وائي. چه: قسم په الله پاك مونږ خو هغه زمانه كښې ښكاره ګمراهۍ كښې مبتلا وو. كله چه مونږ تاسو د رب العالمین سره برابر كړی وئ او مونږ خو هغه لوئې لوئې مجرمانو ګمراه كړی وو. نتیجه دا ده چه نه خو مونږ ته څه قسم سفارش كونكی ملاو دی. او نه یو داسې دوست چه مونږ سره همدردی اوكړې هي. اوس كاش چه مونږ ته یو كرت بیا دنیا ته د واپس تلو موقع ملاؤ شي نو مونږ به مومنان شو! یقیناً په دې ټولو څیزونو كښې د عبرت سامان دې، بیا هم په دوی كښې اكثر خلق ایمان نه راوړی. او یقین ساته چه ستا رب صاحب د اقتدار هم دې، ډیر مهربان هم.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إِبْرَاهِيمَ﴾ [ او ته ددې خلقو په وړاندې دابراهیم عليه السلام [قصه بیان كړه] چه دوی ته دشرك بدوالې په دلیلونو سره معلوم شي اوبیا خاص د ابراهیم نه په نقل كولو سره څكه چه دا دعربو مشركانو ځان ته دابراهیم عليه السلام په دین وائی او دغه قصه هغه وخت شوې وه ﴿إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا تَعْبُدُونَ﴾ [هركله چه دوی خپل پلار او خپل قوم ته] كوم چه بت پرست وو [چه داتاسو دڅه ] واهیاتو [څیزونو عبادت كوئ﴿قَالُوا نَعْبُدُ أَصْنَامًا﴾ هغوی ووئیل چه مونږ دبتانو عبادت كوو﴿فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِينَ﴾اومونږ دوی ته ] عبادت ته ئ [هم دغسې ناست یو ﴿قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ إِذْ تَدْعُونَ﴾ ابراهیم ] عليه السلام [اوفرمائیل چه آیا دوی ستاسو خبره اوری كله چه تاسو دوی لره ] دخپلو حاجتونو دعرض كولو په وخت كښې [رابلئ﴿أَوْ يَنْفَعُونَكُمْ﴾ یا] تاسو چه كوم ددوی عبادت كوی نو ایا [ دوی تاسوته څه نفع رسولې شی ﴿أَوْ يَضُرُّونَ﴾یا] كه تاسو ددوی عبادت پریږدئ نو ایا [دوی تاسو ته څه ضرر رسولې شي] یعنی دخدایئ مستحق كیدو دپاره علم او كامل قدرت خو ضروری دې ﴿قَالُوا﴾ [هغه خلقو ووئیل چه نا] داخبره خونه ده چه دوی څه اوری یا نفع او ضرر رسولې شی او ددوی دعبادت كولو دا وجه نه ده﴿بَلْ وَجَدْنَا آبَاءَنَا كَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ﴾ [بلكه مونږ خپلو مشرانو لره په داسې كولو لیدلی دی ] په دې وجه مونږهم دغسې كوو﴿قَالَ أَفَرَأَيْتُمْ مَا كُنْتُمْ تَعْبُدُونَ﴾ [ابراهیم ] عليه السلام [وفرمائیل چه ښه نو تاسوددوی ] حالت [ لره ] په غورسره [ولیدو هم دكومو چه تاسو عبادت كوئ ﴿أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمُ الْأَقْدَمُونَ﴾ تاسو هم او ستاسو تیرومشرانو هم ﴿فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِي﴾چه دا] معبودان [زما] یعنی ستاسودپاره [دضرر باعث دی] یعنی كه ددوی عبادت وكړې شی خواه نعوذبالله زهٔ ئ وكړم یا تاسوئ وكړئ نو بغیر دضرر نه ئ بله نتیجه نشته ﴿إِلَّا رَبَّ الْعَالَمِينَ﴾[ مګر رب العلمین] داسې دې چه هغه دخپلو عبادت كوونكودوست او دهغه عبادت سراسرنفع مند دې ﴿الَّذِي خَلَقَنِي﴾[ كوم چه ماله] او دغه شان ټولو لره [پیداكړو ﴿فَهُوَ يَهْدِينِ﴾بیاهغه ماته ] زماد مصلحتونوطرف ته [رهنمائی كوی] یعنی عقل او پوهه راكوی په كوم سره چه نفع او ضرر پیژنم ﴿وَالَّذِي هُوَ يُطْعِمُنِي وَيَسْقِينِ﴾[ اوكوم چه ماته خوراك څكاك راكوی﴿وَإِذَا مَرِضْتُ﴾ اوكله چه زهٔ ناجوړه شم ] دكوم نه پس چه شفاكیدل وی ﴿فَهُوَ يَشْفِينِ﴾[نو هغه ماله شفاراكوی ﴿وَالَّذِي يُمِيتُنِي﴾ اوكوم چه ماته ] په وخت

باند [مرګ راکوي بيا به ] دقيامت په ورځ ﴿ثُمَّ يُحْيِيْنِ﴾ [ مالره ژوندي کوي ﴿وَالَّذِيْٓ اَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لِيْ خَطِيْٓئَتِيْ يَوْمَ الدِّيْنِ﴾ اوکوم چه زماتړې نه دا اميدې چه زما خطا ګانې به دقيامت په ورځ معاف کړي] داټول صفتونه ئې په دې وجه بيان کړل چې قوم د الله ﷻ د عبادت رغبت پيدائش او بيا يې صفات کمال بيانول بيانول په غلبه دحضور سره ئې الله تعالى ته مناجات شروع کړو چه ﴿رَبِّ هَبْ لِيْ حُكْمًا﴾ [ اے زما پروردګاره ماته حکمت ] يعني په جامعيت دعلم او عمل کښې زيات کمال [راکړې ] ځکه چه نفس حکمت خو په وخت ددعاکښې هم حاصل دې [ او] په مرتبودقرب کښې ﴿وَّاَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ﴾ [ مالره ] داعلى درجې [نيکوخلقو سره شامل کړې ] مراد ترې نه عالي شان انبياء ﷺ دي ﴿وَاجْعَلْ لِّيْ لِسَانَ صِدْقٍ فِي الْاٰخِرِيْنَ﴾ [ اوزما ذکر په راتلونکو خلقو کښې جاري وساتې ] چه زما په طريقه روان وي او په دې کښې ماته زيات ثواب ملاوشي ﴿وَاجْعَلْنِيْ مِنْ وَّرَثَةِ جَنَّةِ النَّعِيْمِ﴾ [اومالره دباغونو دنعمتونو دمستحقينونه کړې ﴿وَاغْفِرْ لِاَبِيْٓ﴾ او زما پلار] ته توفيق دايمان ورکړې او هغه [ وبخښې ﴿اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الضَّآلِّيْنَ﴾ چه هغه دګمراهو خلقونه دې ﴿وَلَا تُخْزِنِيْ يَوْمَ يُبْعَثُوْنَ﴾او په کومه ورځ چه ټول بيا ژوندي شي راپورته شي په هغه ورځ مالره مه رسواکوئ ] وراندې ددغې ورځې دځنو هيبتناکو حالاتوهم ذکر وفرمائيلو چه قوم ئې واوري او ووېرېږي يعني هغه به داسې ورځ وي ﴿يَوْمَ﴾ [ په کومه ورځ چه ] نجات دپاره ﴿لَا يَنْفَعُ مَالٌ وَّلَا بَنُوْنَ﴾ [ نه مال په کار راځي نه اولاد ﴿اِلَّا مَنْ اَتَى اللّٰهَ﴾ مګر البته ] هغه به نجات مومي [کوم چه دالله تعالى خواته] دکفراو شرك نه ﴿بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ﴾ [ پاك زړه راوړي او] په هغه ورځ به ﴿وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ﴾ [خداترسو] يعني ايماندارو [دپاره به جنت نزدې کړې شي ] چه داووينى او دا ورته معلومه شي چه مونږ به دې ته ځونو خوشحاله به شي ﴿وَبُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ لِلْغٰوِيْنَ﴾ [ اودغه ګمراهانو ] يعني کافرانو [دپاره به دوزخ مخامخ ظاهرکړې شي ] چه هغې لره ويني غمژن کيږي به چه مونږ به ورته ځو ﴿وَقِيْلَ لَهُمْ﴾ [او] په هغه ورځ [ به دې ] ګمراهان [ ته ووئيلې شي ﴿اَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ۝ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ چه هغه معبودان چرته لاړل دکومو چه تاسو دالله تعالى نه سوا عبادت کولو] داوخت ﴿هَلْ يَنْصُرُوْنَكُمْ اَوْ يَنْتَصِرُوْنَ﴾ [ ايا هغه ستاسو مددکولو شي يا خپل بچاؤکولې شي بيا ] دا به ووائى ﴿فَكُبْكِبُوْا فِيْهَا هُمْ وَالْغَاوٗنَ ۝ وَجُنُوْدُ اِبْلِيْسَ اَجْمَعُوْنَ﴾ [ هغه] عبادت کوونکي [ اوګمراه خلق او دابليس لښکر ټول په جمع به دوزخ ته پرمخې واچولې شي ] بس هغه بتان او شيطانان به نه خپل ځان بچ کړې شي نه خپل عبادت کوونکي ﴿قَالُوْا وَهُمْ فِيْهَا يَخْتَصِمُوْنَ﴾ [هغه کفار به په دې دوزخ کښې خبرې کوي ] هغو معبودانو ته به[ ووائي ﴿تَاللّٰهِ اِنْ كُنَّا لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ﴾ چه په الله تعالى قسم بيشکه مونږ په ښکاره ګمراهئ کښې وو ﴿اِذْ نُسَوِّيْكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ کله چه مونږ تاسولره ] په عبادت کښې [ دربّ العلمين سره برابرولئ ﴿وَمَآ اَضَلَّنَآ اِلَّا الْمُجْرِمُوْنَ﴾ اومونږ لره خو بس دې لويو مجرمانو] کوم چه دګمراهئ بانيان وو [ ګمراه کړل پس] اوس ﴿فَمَا لَنَا مِنْ شَافِعِيْنَ﴾[نه مونږ لره ځوك سفارشي شته ] چه ازادي راکړي ﴿وَلَا صَدِيْقٍ حَمِيْمٍ﴾[ اونه ځوك مخلص دوست ] چه خالي زړه راباندوسيزي ﴿فَلَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً﴾[ پس څه به ښه وه که مونږ ته ] په دنياکښې [بيا واپسي وې ﴿فَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ چه مونږ مسلمانان شوې] تردې ځائ پورې دابراهيم ﷺ تقرير وشو وراندې دالله تعالى ارشاد دې چه ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً﴾[ بيشکه په دې واقعه ] په مناظر

ابراهیمی او دارنگ په واقعه دقیامت [ کښې ] هم دحق طالبانو او انجام ته دنظرکوونکو دپاره [ يوعبرت دې ] چه دمناظرې په مضامینو کښې غور وکړي دتوحيد اعتقاد وکړي او دقيامت د واقعاتونه وويريږي اوایمان راوړی [ او] باوجود ددې ﴿وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ﴾ [په دوی ] مشرکانو دمکې [کښې اکثر خلق ایمان نه راوړی ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ﴾ او بیشکه ستارب لوئ زبردست رحمت والادې ] چه عذاب ورکولې شي مگر مهلت يې ورکړې دې.

## معارف او مسائل

**تر قیامته پورې په انسانانو کښې د ښې یادګیرنې لرلو دعا:** ﴿وَاجْعَل لِّي لِسَانَ صِدْقٍ فِي الْآخِرِينَ﴾
په دې مبارک آیت کښې د ، لسان ، نه مراد یادګیرنه ده او لام د ،لی ، د نفع د پاره دې د آیت معنی دا شوه چه ای خدایه ماته داسې غوريزې طريقې او ښکلې نښانيانې راکړې چه نور خلق ئې تر قيامته پورې تابعداري کوی او ما په ښو او اعلی صفتونو سره يادوی [ ابن کثیر او روح المعانی] (١) الله تعالی د ابراهیم عليه السلام دعا ګانې قبولې کړې تر دې چه يهود ، نصاری او د مکې مشرکان هم ملت ابراهیمی سره مینه او محبت لري او خپل خانونه ورته منسوب کوی اګر چه د دوئ طريقه د ملت ابراهیمی نه خلاف د کفر او شرک ده خو سره د هغې دا دعوی کوی چه مونږه په ملت ابراهیمی يو او امت محمد پخپل خائې هم په ملت ابراهیمی باندې کیدل خپل خان دپاره باعث دفخر ګنړی.

**مرتبې سره مینا لرل بدیت لری خو په خو شرطونو سره جائز دی:** مرتبې سره داسې مینا لرل چه خلقو نه د خپل عزت او صفت کولو طمع لری ، دا په شریعت کښې ډیره بده خبره ده چنانچه قرآن کریم فرمائی چه د دار آخرت نعمتونه ،مرتبې سره په مینا پرینښولو باندې اړه لری لکه فرمائی ﴿تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا﴾ (٢) دلته په آیت کښې ﴿وَاجْعَل لِّي لِسَانَ صِدْقٍ فِي الْآخِرِينَ﴾ کښې د ابراهیم عليه السلام دعا چه ، ای الله ،په راتلونکو نسلونو کښې دې زما ثنا او تعريفونه کیږی ، په ظاهره مرتبې سره مینا لرل معلومیږی ، لیکن که د آیت په الفاظو کښې غور اوکړې شی نو معلومه به شی چه د دې دعا اصل مقصد مرتبې سره مینه لرل نهٔ دی بلکه د الله تعالی نه دا دعا غوښتل دی چه ماته د داسې نیکو عملونو توفیق راکړې چه آخرت د پاره زما پنګه جوړه شی او دې ته په کتو سره د نورو خلقو هم نیکو عملونو سره مینه پیدا شی او ماته پس هم راتلونکی خلق په دغې عملونو کښې زما په نقش قدم روان وی خلاصه ئې دا شوه چه په دې سره ئې دنیوی مرتبه حاصلول مراد نه وو د کومې چه قرآن کریم بدی بیان کړې ده بلکه د آخرت فائده حاصلول او بل ته ئې فائده ورکول مراد وو -

امام ترمذی رحمه الله او نسائی رحمه الله د حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه په روایت بیان کړیدی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل ، دوه اوږی لیوګان د ګډو چیلو په رمه کښې پرینښول دومره نقصان نهٔ ورکوی څنګه چه دوه خصلتونه د انسان د هغه دین ته نقصان ورکوی – يو د هغې خنې د مال مینه او بل خپل خان د پاره مرتبه او عزت طلب کول [ طبرانی د ابی سعید خدری رضي الله عنه نه او بزار د ابی هریره

---

(١) روح المعاني تحت هذه الآية ج: ١٤ ص:٢٥٥ وتفسير ابن كثير ج: ٦ ص:١٤٧

(٢) ترجمه:- دا د آخرت دنیا مونږ ددې خلقو دپاره خاص کوؤ چې په دنیا کښې نه لوې جوړيدل غواړی او نه فساد کوؤنکي.

ﷺ نه [(۱) او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ديلمي په ضعيف سند سره دا روايت نقل کړې دې چه د مرتبې او تعريف مينه ، انسان لره ړوند کوڼ جوړ وی دې ټولو روايتونو نه مراد د مرتبې مينه او د تعريف طلب کول دی چه دنيوی مطلب پرې حاصلول وی د هغې په خاطر دين نه آوړيدل راځی ، خو که داسې نۀ وو نو د مرتبې طلب کول څه بديت نۀ لری چنانچه په حديث کښې پخپله رسول الله ﷺ نه دا دعا منقول ده ، چه ﴿ اللهم اجعلني في عيني صغيرا وفي اعين الناس كبيرا ﴾(۲) [يا الله ما په خپل نظر کښې وړوکې او سپک جوړ کړې او د نورو په نظر کښې مې لوئ جوړ کړې] مطلب دا دې چه په دې شان م لوئ اوګرځوې چه په نيکو عملونو کښې خلق زما په پل باندې روان وی خکه امام مالک رحمه الله اوفرمائيل چه څوک په واقع کښې نيک او صالح وی د خلقو په نظر کښې د نيک ښکاريدو د پاره رياکاری نۀ کوی داسې کس د پاره د خلقو د اړخه د مدح او ثنا محبت بديت نۀ لری ابن عربی فرمائيلی دی چه د دې آيت نه ثابت شو چه د کوم نيک عمل په وجه خلق د چا تعريف کوی نو د داسې نيک عمل طلب او خواهش جائز دې(۳) او امام غزالی رحمه الله اوفرمائيل چه په دنيا کښې د عزت او مرتبې محبت په درې شرطونو سره جائز دې - اول شرط دا دې چه خپل ځان په هغې سره غټ او بل وړوکې او سپک جوړول نۀ وی بلکه دا د آخرت د فائدې د پاره وی چه خلق زما عقيدت مند شی او په نيکو عملونو کښې زما تابعداری کوی.

دويم شرط دا دې چه په دروغه ثنا صفت کول ئې مقصود نۀ وی مطلب دا دې چه د داسې ښه والی صفت نۀ غواړی کوم چه په دۀ کښې نۀ وی.

دريم دا چه د هغې د حاصلولو د پاره څه د ګناه کار نۀ کوی او يا د دين په معامله کښې د مداهنت نه کار وانخلی.

**مشرکانو د پاره ښښنه غوښتل د الله تعالى نه . روا نۀ دي:** ﴿وَاغْفِرْ لِأَبِي إِنَّهُ كَانَ مِنَ الضَّالِّينَ﴾ د قرآن کريم د دې فرمان نه پس چه ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ﴾ اوس داسې د چا د پاره د ښښنې دعا غوښتل ناجائز او حرام دی د چا چه په کفر باندې مړه کيدل يقينی وی ځکه چه د دې آيت ترجمه دا ده [دې نبی ﷺ او مؤمنانو د پاره دا بيخی نا جائز دی چه هغه د مشرکانو د پاره ښښنه غواړی اګر چه هغوئ د دوئ خپلوان او نزد دې خلق وی کله چه د هغوئ جهنمی کيدل بالکل په ډاګه شوې وی]

**يو سوال او جواب:** اوس دلته دا سوال پيدا کيږی چه د دې بنديز او منع کولو نه پس حضرت ابراهيم عليه السلام ولې د خپل مشرک پلار د پاره د ښښنې دعا اوغوښتله د دې جواب قرآن کريم دا ورکړې دې ﴿وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَنْ مَوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ﴾(۴)توبه] - د جواب خلاصه دا ده چه حضرت ابراهيم عليه السلام د خپل پلار د پاره د هغه په ژوند

---

۱) جامع الترمذي ، ابواب الزهد ، باب (ماجاء في اخذ المال بحقه) ج:۲ ص:۶۲ و المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث : ۷۸۳

۲) مجمع الزوائد رقم الحديث : ۱۷۴۱۲

۳) احكام القرآن لابن العربي تحت هذه الآية ج: ۶ ص:۱۷۹

۴) ترجمه:او ابراهيم چې خپل پلار دپاره دمغفرت دعاغوښتلې وه هغه صرف دوعدې مطابق وه چې ورسره ئې وعده کړې وه .بيا چې کله په هغه داخبره ښکاره شوه چې هغه دالله تعالى دښمن دې نو هغه سره ئې تعلق پريښودو، واقعی ابراهيم ډير رحيم المزاج او حليم الطبع وو.

كښې په دې نيت او خيال ښښنه غوښتل كړې وو چه الله رب العزت ورته د ايمان راوړو توفيق وركړى چه د هغې نه پس ښښنه ورته كيدل يقينى دى يا د حضرت ابراهيم عليه السلام دا خيال وو چه پلار مې په پټه ايمان راوړې دې او د هغې اعلان ئې نۀ دې كړې خو كله چه حضرت ابراهيم عليه السلام ته د خپل پلار په كفرباندې مرۀ كيدل معلوم شو نو هغه نه ئې پوره ويزارى ښكاره كړه - [ فائده ] د دې خبرې پوره تفصيل په سورت توبه كښې تير شوې دې چه حضرت ابراهيم عليه السلام د خپل پلار د شرك او كفر نه د خپل پلار په ژوند خبر شو ، يا د هغه د مرګ نه پس يا به د قيامت په ورځ په پرې خبر شي ؟ -

﴿يَوْمَ لَا يَنفَعُ مَالٌ وَلَا بَنُونَ ۝ إِلَّا مَنْ أَتَى اللَّهَ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ۝﴾ [ د قيامت په ورځ به چاته د هغه مال او خامن فائده نشي رسولى سوا د هغه چانه چه الله تعالى ته سليم زړه راوړى ] خنى حضراتو دا استثناء منقطع ګرځولې ده د هغې په بنا مطلب ئې دا شو چه د قيامت په ورځ به مال او خامن پكار نۀ راخى سوا د سليم زړه نه چه شرك او كفر پكښې نۀ وى ، د دې جملې مثال به دا وى لكه څوك چه د زيد په باره كښې تپوس او كړى چه آيا د زيد مال او خامن شته - نو په جواب كښې ورته اووئيلې شى چه د هغه مال او خامن خو د هغه سليم زړه دې - مطلب ئې دا شو چه مال او خامن خو نۀ لرى البته د دې په ځائې ئې زړه سليم دې د دې آيت ددې تفسير مطابق د مضمون خلاصه دا شوه چه په دغه ورځ به مال او اولاد هيڅ پكار نه راخى صرف ايمان او نيک عمل به پكار راخى چه ورته ، قلب سليم ، اووئيلې شو ليكن د اكثر مفسرينو په نزد دا استثناء متصله ده په دې بنا معنى به ئې دا وى چه د قيامت په ورځ به مال او اولاد به د هيچا پكار نۀ راخى سوا د هغې چا نه چه سليم زړۀ ئې وى يعنى هغه مؤمن وى ، حاصل ئې دا شو چه دا څيزونه صرف د مؤمنانو د پاره پكار راتلې شى د كافرو پكار نۀ شى راتلې دلته ئې ، بنون ، او فرمائيل چه خامن به پكار نۀ راخى حالانكه لونړه هم پكار نشى راتلې - د دې مطلب دا دې چه څنګه عموما په دنيا كښې د خامنو پكار راتلل او پكار راوستل كيدې شى اګرچه كله كله لونړه هم د غسې ثابتې شى ليكن اكثر لره حكم د كل وركړې شو او په دغې بنا باندې په اولاد كښې خاص خامن ذكر كړې شو بله خبره دا ده چه د ، قلب سليم ، لفظى معنى روغ جوړ زړه ده ، ابن عباس رضي الله عنهما او فرمائيل چه دې نه مراد هغه زړه دې چه د توحيد د كلمې ګواهى وركوى او د شرك نه پاک وى هم دا مضمون د مجاهد ، حسن بصرى او سعيدبن المسيب نه په مختلفو عنوانونو سره منقول دې - چنانچه سعيد بن مسيب رحمه الله او فرمائيل چه روغ جوړ زړۀ يواځې د مؤمن كيدې شى او د كافر زړۀ رنځور وى لكه قرآن كريم فرمائى ، ﴿فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾ (١)

**په آخرت كښې هم مال او لاد او خاندانى تعلقات په دې شرط فائده وركولې شى چه ايمان ورسره وى ::** د دې آيت د مشهور تفسير په جوړ معلوم شو چه د انسان مال د قيامت په ورځ هم پكار راتلې شى خو هله چه مسلمان وى د هغې صورت دا دې چه چا په دنيا كښې خپل مال د الله تعالى په لار كښې په نيكو كارونو كښې لګولې وى ، يا صدقه جاريه ئې پريښې وى او د هغه آخر انجام هم سره د ايمانه وى او د قيامت په ورځ مؤمنانو كښې حساب كړې شى نو دغه مال او صدقه جاريه به ئې په ميدان حشر ،ميزان او حساب كښې هم پكار راخى كه دغه كس د سره مسلمان نۀ وو يا بې ايمانه د دنيا نه تير شو نو په دنيا كښې هيڅ كړې نيک عمل به ئې هلته پكار رانشى ، دغه شان

---

(١) ترجمه:- ددوئ په زړونو كښې غټ مرض دې.

اولاد هم دي چه د اولاد دعا ، ثواب رسول به هم هله د چا پکار راخي چه مسلمان د دنيا نه تير شوي وي يا ئې خپل اولاد لره د نيک جوړولو کوشش کړي وي نو د هغوئ د نيک عمل ثواب به پخپله هم ورکولې شي او په عملنا مه کښې به ئې درج کولې شي او په دې شان هم که اولاد به ئې په شفاعت کولو سره د ښښنې انتظام کوي څنګه چه د حديث شريف نه هم ثابت شوي دي، خصوصا د نابالغ اولاد په شفاعت کولو سره([1]) ، دغه شان مور پلار به هم اولاد ته په دې شرط فائده رسولې شي خو شرط دا دې چه ايماندار وي او د هغوئ نيک عمل د مور پلار درجې ته نه وي رسيدلې نو الله تعالى به ئې د مور پلار د خاطره د مور پلار درجې ته په خپل فضل سره ورپورته کړي څنګه چه قرآن کريم په ښکاره فرمائي ﴿أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾ [ يعني مونږه به د نيکانو بندګانو اولاد هم دوئ سره غاړه کړو ] د دې آيت د مشهور پاسنى تفسير له مخې دا معلومه شوه قرآن و حديث کښې چرته چې دا مذکور دي چې د قيامت په ورځ به خانداني تعلق هيڅ په کار نه راخي نو د هغه مراد دا وي چې غير مؤمن ته به په کار نه ورځي تر دې چې دپيغمبر اولاد او بي بي هم که مؤمنان نه وي نو دهغه پيغمبري به په قيامت کښې د هغوئ اولاد او بي بي ته هيڅ فائده نه ورکوي. څنګه چه د حضرت نوح عليه السلام او حضرت لوط عليه السلام مثالونه ښه په ښکاره په قرآن کريم کښې موجود دي ، دغه شان د حضرت ابراهيم عليه السلام او د پلار مثال ئې هم په قرآن کريم کښې موجود دي په دې پاره کښې د قرآن کريم څو آيتونه دا دي ، ﴿فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ﴾([2]) ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ ۝ وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ ۝ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ﴾([3]) ﴿يَوْمًا لَّا يَجْزِي وَالِدٌ عَن وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِ شَيْئًا﴾([4])د دې ټولو آيتونو مطلب هم دغه راوځي کوم چه مونږه بيان کړو [ والله اعلم ] -

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَذَّبَتْ | قَوْمُ نُوحٍ | الْمُرْسَلِينَ ۝ | إِذْ قَالَ | |
| دروغ اوګڼړل | قوم دنوح | رسولان | کله چې اووئيل | |
| [دنوح عليه السلام قوم پيغمبران دروغژن اوګڼړل] څه وخت چې د هغوئ [دبرادرئ] | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَهُمْ | أَخُوهُمْ | نُوحٌ | أَلَا تَتَّقُونَ ۝ | إِنِّي لَكُمْ | رَسُولٌ |
| هغوئ ته | رور دهغوئ | نوح عليه السلام | آيا نه يريږئ تاسو | بيشکه زه دپاره ستاسو | رسول |
| رور نوح عليه السلام ورته اووئيل [چې آيا تاسو دالله جل جلاله نه نه ويريږئ ؟ [بيشکه زه تاسو ته امانت دار پيغمبر | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَمِينٌ ۝ | فَاتَّقُوا اللَّهَ | وَأَطِيعُونِ ۝ | وَمَا أَسْأَلُكُمْ | عَلَيْهِ |
| امانتدار يم | پس اويريږئ دالله نه | او خبره اومنئ زما | اونه غواړم زه ستاسو نه | په دې باندې |
| رالیږلې شوې يم] نو دالله جل جلاله نه اوويريږئ] او زما تابعداری اوکړئ] او زه ستاسو نه څه | | | | |

[1] ) ددې قسمه څينوروايتونو دپاره اوګورئ : مجمع الزوائد رقم الحديث : ۳۹۹۹ ، ۴۰۰۰ و مسند احمد رقم الحديث: ۱۷۴۳۴

[2] ) ترجمه:- بيا چې کله شپيلۍ اووهلې شي نو په دوئ کښې به خپلو رشتې په دې ورځ نه وي.

[3] ) ترجمه:- په هغه ورځ به يو کس دخپل رور نه او خپلې مور نه او خپل پلار نه تښتي.

[4] ) ترجمه:او نه يو پلار دخپل ځوئې د طرفه څه ادا کولې شي او نه به يو ځوي داسې وي چې هغه دخپل پلار دطرفنه څه اداکړي.

مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٠٩﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ

څه اجر | نهٔ دي اجر زما | مګر | په رب د مخلوقاتو باند دي | نو اوويرېږئ د الله نه |

اجر نه غواړم | زما اجر خو د رب العالمين په ذمه دي | نو الله ﷻ نه اوويريږئ |

وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١١٠﴾ قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ﴿١١١﴾

اوخبره اومنئ زما | اووئيل هغوئ | آيا مونږه اومنو ستا | حال دا چې پيروي کړي ده ستا | رذيلانو خلقو

او زما تابعداري اوکړئ | هغوئ اووئيل آيا مونږ په تا باندي ايمان راوړو | حالانکه ستا تابعداري نيچ خلقو کړې ده

قَالَ وَمَا عِلْمِيْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١١٢﴾ اِنْ حِسَابُهُمْ

اووئيل نوح | او نشته علم ماته | په هغه عمل | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | نهٔ دي حساب د دوئ

نوح ﷵ اووئيل چې ماته خو معلوم نه دی چې هغوئ څه کوی ؟ | د هغوئ معامله

اِلَّا عَلٰى رَبِّيْ لَوْ تَشْعُرُوْنَ ﴿١١٣﴾ وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٤﴾

مګر | په رب زما دي | که پوهيږئ تاسو | اونهٔ يم زهٔ | شړونکې د مومنانو |

زما د رب سره ده | کاش چې تاسو په خبره پوهيدلئ | او زه مومنان د ځان نه شړلې نشم

اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿١١٥﴾ قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰنُوْحُ

نهٔ يم زهٔ | مګر | يرونکې يم | ښکاره | اووئيل هغوئ | که چرې | منع نهٔ شوې ته | اے نوح |

زه خو نور څه نه يم خو يو ښکاره يرونکې يم | هغوئ اووئيل چې ائې نوح ﷵ که ته [د دې خبرونه] منع نه

لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْمَرْجُوْمِيْنَ ﴿١١٦﴾ قَالَ رَبِّ اِنَّ

نو خامخا به شې ته | د ويشتل شوؤ نه په ګټو يا په کنځلو | اووئيل نوح عليه السلام | اے ربه | بيشکه |

شوې نو خامخا به سنګسار کړې شې | نوح ﷵ دعا اوکړه چې ائې زمار به ! زما

قَوْمِيْ كَذَّبُوْنِ ﴿١١٧﴾ فَافْتَحْ بَيْنِيْ وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا

قوم زما | دروغ اوګڼلم زهٔ | پس فيصله اوکړه | په منځ زما | او په منځ د دوئ کښې | صفا فيصله |

قوم ماته دروغژن اووئيل | نو ته زما او د دوئ په مينځ کښې فيصله اوکړې

وَنَجِّنِيْ وَمَنْ مَّعِيَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٨﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ

او نجات راکړه ماته | او هغه چاته | چې زما سره دي | د مومنانو نه | پس نجات ورکړو مونږ هغه له

او ماله او زما ايماندارو ملګرو ته نجات راکړې | بيا مونږ هغه ته

وَمَنْ مَّعَهٗ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿١١٩﴾ ثُمَّ اَغْرَقْنَا بَعْدُ

او هغه چاله | چې د هغه سره وو | په کشتئ | ډکه کښې | بيا غرق کړل مونږه | روستو د هغوئ نه

او هغه سره په بيړئ کښې سوارهٔ ملګرو ته نجات ورکړو او بيا مو باقي پاتې خلق ډوب کړل

الْبٰقِيْنَ ﴿١٢٠﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٢١﴾

باقي پاتې خلق | بيشکه په دې کښې | خامخا نښه ده | اونهٔ وو | اکثر د هغوئ نه | مومنان [منونکی]

بيشکه په دې واقعه کښې لوئې عبرت دې | او په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړي

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاِنَّ رَبَّكَ | لَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الرَّحِيْمُ ؏ |
| او بیشکه رب ستا | خامخا هغه | غالب دی | مهربانه دی |

او بیشکه ستا رب غالب او مهربان ذات دی

## آسان ترجمه قرآن

د نوح علیه السلام قوم هم د پیغمبرانو تکذیب اوکړو. کله چه دهغوی ورور نوح علیه السلام هغوی ته اووئیل: آیا تاسو د الله پاک نه نهٔ ویریږئ؟ یقین اولرئ چه زهٔ ستاسو دپاره یو امانت دار پیغمبر یم. لهٰذا تاسو د الله پاک نه اوویریږئ، او زما خبره اومنئ. او زهٔ ستاسو نه په دې کار باندې هیڅ مزدوری نه غواړم. زما اجر خو صرف هغه ذات په خپله ذمه اخستلې دې کوم چه د ټول جهان پالنه کوی. لهٰذا تاسو د الله پاک نه اوویریږئ، او زما خبره اومنئ. هغه خلقو اووئیل: آیا مونږ په تا ایمان راوړو، حال دا چه ډیر د لاندې درجې خلق ستا تابعداری کوی؟ نوح علیه السلام اوفرمائیل: ما ته څه معلومه ده چه هغوی څه کار کوی؟ دهغوی حساب د بل چا نه، زما درب په ذمه دې کاش چه تاسو د پوهې نه کار واخلئ! او زهٔ دا مومنان شړلو سره د ځان نه نهٔ شم لرې کولې. زهٔ خو بس یو خبردارونکې یم چه (ستاسو مخکښې) حقیقت ښکاره بیانوی هغوی اووئیل: اې نوح! که ته قلار نه شوې نو ته به په کاڼو ویشتلو سره هلاک کړې شې. نوح علیه السلام اووئیل: اې زما ربه! زما قوم زما تکذیب اوکړو. اوس زما او د دوئ تر مینځه صفا فیصله اوکړه، او ما او زما مومنان ملګری بچ کړې. پس مونږ هغوی او د هغوی ملګری په ډکه کشتۍ کښې بچ کړل، بیا مو د دې نه پس باقی خلق غرق کړل. یقیناً په دې ټوله واقعه کښې د عبرت سامان دې، بیا هم په دوئ کښې اکثر خلق ایمان نه راوړی او یقین ساته چه ستا رب صاحب د اقتدار هم دې، ډیر مهربان هم.

## خلاصه تفسیر

﴿كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوْحِ الْمُرْسَلِيْنَ ۞﴾ [قوم نوح ﷺ پیغمبرانو لره دروغژن کړل] ځکه چه دیوپیغمبر په دروغژن کولو سره دټولو پیغمبرانو دروغژن کول لازمیږی ﴿اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ نُوْحٌ﴾ [هر کله چه دوی ته ددوی دبرادرئ ورور نوح ﷺ] [ ووئیل ﴿اَلَا تَتَّقُوْنَ ۞﴾ چه ایاتاسو ] دالله تعالی نه [نه ویریږئ ؟ ﴿اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ۞﴾ زهٔ ستاسو دپاره امانتدار پیغمبریم ] چه بعینه دالله تعالی پیغام درته بې دځه کمی زیاتی رسوم [ پس] ددې مقتضی داده چه ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ۞﴾ [تاسو خلق الله تعالی نه وویریږئ او زما تابعداری اوکړئ ﴿وَمَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞﴾ او دارنګه زهٔ ستاسو نه څه [دنیوی]صله [هم] نه غوارم زماصله خو بس درب العلمین په ذمه ده پس] زما ددې بې غرضئ مقتضی هم داده چه ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ۞﴾[ تاسو دالله تعالی نه وویریږئ اوزما خبره ومنئ ﴿قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ۞﴾ هغو خلقو ووئیل چه ایامونږ تالره ومنو حال دادې چه رذیلان خلق تاسره ملګری شوی دی ] دکومو په ملګرتیا سره چه شریفانو له شرم ورځی او اکثر دداسې کم حوصلې خلقو مقصد دچاسره په ملګری کیدو څه مال یا مرتبه حاصلول وی ددوی دایمان دعوی هم قابل اعتبار نه ده ﴿قَالَ﴾ [ نوح ] ﷺ [ ووئیل چه ﴿وَمَا عِلْمِيْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۞﴾ ددوی د] پیشه ورانه [کارسره زما څه تعلق دې ] خواه شریفان وی اوکه رذیلان په دین کښې دا تفاوت هیڅ اثر نه کوی پاتې شو دا احتمال

چه ددوی ایمان په زړه سره نه دې پس په دې سره ﴿اِنْ حِسَابُهُمْ اِلَّا عَلٰى رَبِّىْ لَوْ تَشْعُرُوْنَ﴾ [ ددوی حساب اوکتاب اخستل دخدایٔ کار دې څه به ښه وو که تاسو په دې پوهیدې او] رذالت پیشه خلق چه دخپل ایمان راوړو نه مانع مقرر کوئ او اشارتا ددې نه دا درخواست معلومیږی چه زه دوی دخپل ځان نه لرې کړم نو ﴿وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [ زه ایماندارو لره لرې کوونکې نه یم ] خواه تاسو ایمان راوړئ او که نه راوړې زما هیڅ ضرر نشته ځکه چه ﴿اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ﴾ [زه خو په صاف طور سره یو ویرونکې یم ] او په تبلیغ سره زما فرض منصبی پوره کیږی وړاند خپله نفع نقصان تاسو خلق اوګورئ ﴿قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰنُوْحُ﴾ [ هغو خلقو ووئیل چه که ته ] ددې خبرو اوړولونه [ اے نوح منع نه شوې ﴿لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْمَرْجُوْمِيْنَ﴾ نو خامخا به سنګسار کړې شې ] غرض چه هرکله ډیر کلونه په دې شان سره تیرشول نو ﴿قَالَ﴾ [ نوح ] [ دعا وکړه ﴿رَبِّ اِنَّ قَوْمِىْ كَذَّبُوْنِ﴾ چه اے زما پروردګاره زما قوم مالره ] په مخه [ دروغژن کوی ﴿فَافْتَحْ بَيْنِىْ وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا﴾ پس ته زما او ددوی په مینځ کښې یوه ] عملی [ فیصله وکړې ] یعنی دوی لره هلاك کړې ﴿وَنَجِّنِىْ وَمَنْ مَّعِىَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [ اومالره اوکوم ایماندار چه ماسره دی دوی لره ] ددې هلاکت نه [نجات راکړې ﴿فَاَنْجَيْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ فِى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ﴾ نو مونږ] ددهٔ دعا قبوله کړه او[ دهٔ لره او څوك چه ددهٔ سره په ډکه کشتئ کښې ] سواره [ وو دوی لره مونجات ورکړو ﴿ثُمَّ اَغْرَقْنَا بَعْدُ الْبٰقِيْنَ﴾ بیا ددې نه پس مونږ باقی خلقولره غرق کړل ﴿اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً﴾ بیشکه په دې ] واقعه [ کښې ] هم [لوئ عبرت دې او ] سره ددې [ په دوی ] کفارو دمکې [ کښې ﴿وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ اکثر خلق ایمان نه راوړی ﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ﴾ [اوبیشکه ستارب زبردست ] او [ مهربان دې ] چه دې سره ددې چه په عذاب ورکولو قادر دې بیایٔ هم دوی لره مهلت ورکړې دې

## معارف او مسائل

**په عبادتونو باندې د اجرت اخستو حکم** :: ﴿وَمَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ﴾ د دې آیت نه معلومیږی چه په دینی تعلیم او تبلیغ اجرت اخستل جائز نهٔ دی هم دغه وجه ده چه پخوانو بزرګانو ورته حرام وئیلې دی ، لیکن متاخرینو علماؤ ورته د مجبورئ په حالت کښې روا وئیلی دی د دې پوره تفصیل ﴿وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِىْ ثَمَنًا قَلِيْلًا﴾(١) لاندې بیان شوې دی -

[ **فائده** ] دلته ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ﴾ دوه ځل په دې غرض راوړې شو چه یو خو تاکید اوشی او بل دا اوښودلې شی چه د الله تعالی نه په ویریدو او د نوح په فرمانبرداریٔ کښې صرف د رسول په امانت او دیانت یا صرف په تبلیغ باندې اجرت نهٔ طلب کول کافی وو ، لیکن په کوم رسول کښې چه دا صفتونه موندې شی نو د هغه فرمانبرداری کول او د هغه د خدایٔ نه ویریدل خو نور هم ضروری شی -

**شرافت او د ذلیل والی په عملونو او اخلاقو باندې اره لری په خاندان ، مرتبې او رعب داب باندې اره نهٔ لری**
﴿قَالُوْا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ﴾ په دې کښې اول د مشرکانو دا قول نقل کړې شوې دې چه د ایمان راوړو نه انکار کول هغوئ په دې بنا اوښودل چه ستاسو منونکی ټول ذلیل خلق دی مونږ

(١) ترجمه:- او زما د احکامو په مقابله کښې لږه معاوضه مه اخلئ

شریفان او عزتمند خلق هغوئ سره څنګه یو ځای کیدې شو ؟ - حضرت نوح علیه السلام ورته جواب ورکړو چه ماته خو د دوئ د عملونو حال معلوم نهٔ دې دې کښې اشاره دې خبرې ته وه چه تاسو خو دا ښکاره کوئ چه ګنی شرافت په خاندانی شرافت ، مال ، دولت یا په عزت او مرتبه باندې اړه لری خو دا غلط څکه دی چه عزت او ذلت په اصل کښې په عملونو او اخلاقو باندې اړه لری تاسو چه دوئ ټول رذیلان او نیچ بولئ نو دا ستاسو جهالت څکه دې چه په مونږه کښې هر څوک د عملونو او اخلاقو نه خبر نهٔ دې څکه مونږ هیڅ فیصله نشو کولې چه په حقیقت کښې نیچ څوک دې او د شرافت خاوند څوک دې ؟ [ قرطبی ](۱)

| |
|---|
| كَذَّبَتْ عَادُ |
| \| دروغ اوګڼړل \| عادیانو \| |
| \| .....عادیانو خپل |
| الْمُرْسَلِينَ ۝ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ أَلَا تَتَّقُونَ ۝ |
| رسولان \| کله چې \| اووئیل \| هغوئ ته \| رور د هغوئ \| هود \| آیا نهٔ یریږئ تاسو \| |
| پیغبران دروغژن اوګڼړل \| کله چې د هغوئ رور هود اووئیل اچې آیا تاسو د الله د عذاب نه نه ویریږئ |
| إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ۝ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ۝ |
| بیشکه زهٔ ستاسو دپاره \| رسول امانتدار یم \| نو اویریږئ د الله نه \| او خبره اومنئ زما \| |
| واورئی! زه خو تاسو دپاره امانت دار پیغمبر یم \|نو الله نه اویریږئ \|او زما تابعداری اوکړئ |
| وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ |
| اونهٔ غواړم زهٔ ستاسو نه \| په دې باند \| هیڅ اجر \| نه دې اجر زما \| مګر \| په رب العالمین باندې دې \| |
| اوزهٔ ستاسو نه په دې دعوت څه بدله نه غواړم \|زما بدله خو د رب العالمین په ذمه ده |
| أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ ۝ وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ |
| آیا تاسو جوړوئ \| په هر اوچت ځائې باندې \| نښه \| عبث بې فائدې \| او جوړوئ تاسو \| قلاګانې |
| آیا تاسو په هر اوچت ځائې باندې یادګارونه جوړوئ \| او دنګې دنګې پخې مانړئ |
| لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ ۝ وَإِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ |
| شاید چې تاسو به \| همیشه اوسئ \| اوکله چې \| حمله کوئ تاسو \| نو حمله کوئ \| |
| آبادوئی \| لکه چې همیشه به دلته اوسیږئ \|او چې په چا حمله کوئ نو ډیره د ظلم حمله |
| جَبَّارِينَ ۝ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ۝ وَاتَّقُوا الَّذِي |
| په جبر یعنې ظلم سره \| پس اویریږئ \| د الله نه \| او خبره اومنئ زما \| او اویریږئ \| د هغه ذات نه \| |
| پرې کوئ \| نو الله ﷻ نه اوویریږئی \|او زما تابعداری اوکړئ\| او د هغه ذات نه اوویریږئی |

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة ج:۱۳ص:۱۲۰، ۱۲۱

أَمَدَّكُم بِمَا تَعْلَمُونَ ۝ أَمَدَّكُم

چې امداد ئې کړې دې ستاسو | په هغه څيز | چې تاسو ته معلوم دی | امداد ئې کړې دې ستاسو سره

چاچې ستاسو په هغه څيزونو سره مدداوکړو | کوم چې تاسوته معلوم دی | يعنی هغه

بِأَنْعَامٍ وَبَنِينَ ۝ وَجَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ۝ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ

په څاروو سره | او په خامنو سره | او په باغونو او چينو سره | بيشکه زهٔ | يريږم | په تاسو باند |

دڅاروو او اولاد په صورت کښې ستاسو مدداوکړو | اوپه باغونواوچينو سره | ماته ستاسو په معامله

عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝ قَالُوا سَوَاءٌ عَلَيْنَا أَوَعَظْتَ

عذاب دورځې لوئې نه | اوونيل هغوئ | برابره خبره ده | په مونږ باندې | که نصيحت کوې تهٔ

کښې دلوئې ورځې د عذاب نه ويره ده | هغوئ جواب ورکړو چې مونږ دپاره برابر ده | که ته راته

أَمْ لَمْ تَكُن مِّنَ الْوَاعِظِينَ ۝ إِنْ هَٰذَا إِلَّا خُلُقُ الْأَوَّلِينَ ۝

يانهٔ کيږې تهٔ | دنصيحت کونکونه | نهٔ دی دا خبری | مګر | عادتونه دی | دمخکښنو خلقو |

نصيحت اوکړې اوکه اونه کړې | دا خو بس د پخوانو خلقو عادتونه دی | اومونږ

وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ۝ فَكَذَّبُوهُ فَأَهْلَكْنَاهُمْ

اونهٔ يو مونږه | چې عذاب به راکړې شی | نو دروغ اوګڼړو هغوئ هغه | نو هلاك كړل مونږه هغوئ |

ته هيچرې عذاب نشی راکولې | نو هغوئ پيغمبردروغ اوګڼړلو | نومونږ هغوئ هلاک کړل

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ۝ وَإِنَّ رَبَّكَ

بيشکه په دې کښې | خامخا يوه نښه ده | اونهٔ دی اکثر ددوئ | منونکی او بيشکه رب ستا

بيشکه په دې کښې د عبرت نښه ده | او په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړی | او

لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ۝

خامخا هغه | غالب دې | او رحم کونکې دې |

بيشکه ستا رب هغه ذات دې | چې غالب اومهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

دعاد قوم هم د پيغمبرانو تکذيب اوکړو. چه کله د هغوی ورور هود عليه السلام هغوی ته اووئيل: آيا تاسو د الله پاک نه نهٔ ويريږئ؟ يقين اوساتئ چه زه ستاسو دپاره يو امانت دار پيغمبر يم. لهٰذا تاسو د الله پاک نه اويريږئ او زما تابعداری اوکړئ. او زه ستاسو نه په دې کار څه اجرت نه غوارم. زما اجر خو صرف د هغه ذات په ذمه دې چه د ټول جهان پالنه کوی. آيا تاسو په هر اوچت ځائې باندې څه يادګار جوړولو سره فضول حرکتونه کوئ؟ اوتاسو ډير په کاريګرئ باندې جوړ کړی کورونه داسې پريخودلې دی لکه چه تاسو به هميشه ژوندی اوسيږئ؟ او کله چه څوک رانيسئ نو ظالمانه نيول کوئ پس د الله پاک نه اويريږئ، او زما خبره اومنئ. او د هغه ذات نه اويريږئ چا چه تاسو ته هغه څيزونه درکولو سره ستاسو په طاقت کښې اضافه اوکړه کوم چه تاسو ته معلوم دی هغه تاسو ته څاروی او اولاد درکړې دی. او

باغونه او چينې هم. حقيقت دا دې چه زما په تاسو باندې د يو لوئې ورځې د عذاب ويره ده. هغوی او وئيل: که ته نصيحت کوې يا نه کوې، زمونږ دپاره ټول برابر دی. دا خبرې خو هم هغه دی کوم چه د مخکښی خلقو عادت وو او مونږ ته يو د عذاب کړې شو نه. غرض هغه خلقو د هود عليه السلام تکذيب او کړو، چه د هغې په نتيجه کښې مونږ هغوی هلاک کړل يقيناً په دې ټوله واقعه کښې د عبرت سامان دې بيا هم په دوی کښې اکثر خلق ايمان نه راوړی. او يقين ساته چه ستا رب صاحب د اقتدار هم دې، ډير مهربان هم.

## خلاصه تفسير

﴿كَذَّبَتْ عَادٌ الْمُرْسَلِينَ﴾ [ قوم دعاد پيغمبرانو لره دروغژن کړل ﴿إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ﴾ هر کله چه دوی ته ددوی ] دبرادرئ [ ورور هود] عليه السلام [ ووئيل ﴿أَلَا تَتَّقُونَ﴾ چه ايا تاسو] دالله تعالى نه [نه ويريږئ؟ ﴿إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ﴾ زهٔ ستاسو امانت دار پيغمبر يم ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ﴾ پس تاسو دالله تعالى نه وويريږئ او زما خبره ومنئ ﴿وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ﴾ او زهٔ تاسو نه په دې ] تبليغ [باندې څه بدله نه غواړم ﴿إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ بس زما بدله خو درب العلمين په ذمه ده ﴿أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ﴾ ايا تاسو ] علاوه دشرك نه په تکبر او فخر کښې هم په دې درجه سره مصروف يئ چه [ په هر دنګ ځائ يو] د[يادګار] په طور سره ابادی [ جوړوئ ] چه بنه دنګه په نظر راځی کومې لره چه محض فضول ] بې ضرورته [ جوړوئ او] ددې نه علاوه کوم چه داوسيدو مکانونه دی دکومو چه په يوه درجه کښې ضرورت هم دې په هغو کښې هم داغلوده [ چه ﴿وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ﴾ لوئ لوئ محلونه جوړوئ ] حال دا دې چه دهغو نه په کمو کښې ارام ملاويږی [ لکه چه په دنيا کښې تاسو هميشه پاتې کيدونکی يئ ] يعنی دومره لوئ مکانونه او داسې اوچت محلونه او داسې مضبوطې او داسې يادګارې ابادئ خو هغه وخت مناسب وې هر کله چه په دنيا کښې هميشه پاتې کيدل وې نو دا خيال به وو چه کورونه فراخه او لوئ جوړوئ چه په راتلونکی نسل باند تنګ نه شئ ځکه چه مونږ به هم يو او هغوی به هم وی او دنګ ئې ځکه جوړوئ چه که لاند ځائ تنګ شی نو بره به وسيږو او مضبوط ئې جوړوی چه زمونږ داوږد عمر دپاره کافی وی او يادګاری ئې جوړوئ چه زمونږ دژوندی پاتې کيدو سره زمونږ ذکر ژوندې وی نو اوس خو دا ټول فضول دی لوئ لوئ يادګارونه جوړ دی او دجوړونکی نوم ئې هم نشته مرګ دټولو نومونه ورك کړی دی دچا ژر دچا پس [ او] ددې تکبر په سبب سره په طبيعت کښې سختی او بې رحمی خو دومره لرئ چه ﴿وَإِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ جَبَّارِينَ﴾ [ کله په چا حمله کوئ نو بالکل جابران ] او ظالمان [ جوړيږئ حمله کوئ ] ددې بدو اخلاقو بيان ئې ځکه وشو چه دا بداخلاق اکثر دايمان او اطاعت په لاره کښې بنديز جوړيږی [ پس ] چونکه شرك او تير بداخلاق دالله تعالى دناخوښئ او عذاب سببونه دی په دې وجه [ تاسو] له پکاردی چه ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ [ دالله تعالى نه وويريږئ او] چونکه زهٔ رسول يم په دې وجه ﴿وَأَطِيعُونِ﴾ [ زما اطاعت وکړئ ﴿وَاتَّقُوا الَّذِي﴾ او دهغه الله نه وويريږئ ] يعنی دکوم نه چه دويريدو څه وايم هغه داسې دې ﴿أَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُونَ﴾ [ کوم چه ستاسو مدد ئې په هغو څيزونو سره کړې دې کومو لره چه تاسو پيژنئ ] يعنی ﴿أَمَدَّكُمْ بِأَنْعَامٍ وَبَنِينَ﴾ [ په څاروو او په اولاد ﴿وَجَنَّاتٍ وَعُيُونٍ﴾ او په باغونو او په چينوئ ستاسو مدد وکړو ] نو دمنعم کيدو مقتضا داده چه دهغه داحکامو بالکل مخالفت ونه کړې شی إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ

[ماسره ستاسو په حق کښې ] که تاسو دهغو کارونو منع نه شئ [ ديوې لوئ سختې ورځې دعذاب ويره ده ] دا ترهيب دې او په [ امدکم بانعام الخ ] کښې ترغيب وو ﴿قَالُوا سَوَآءٌ عَلَيْنَآ﴾ [ هغو خلقو ووئيل چه زمونږ په نزد خو دواړه خبرې برابرې دی ﴿أَوَعَظْتَ أَمْ لَمْ تَكُن مِّنَ الْوَاعِظِينَ﴾ خواه که ته نصيحت کوې اوکه نصيحت کوونکې نه جوړيږې ] يعنی مونږ په دواړو حالتونو کښې دخپل کردار نه نه منع کيږو او ته چه څه وائې ﴿إِنْ هَٰذَآ إِلَّا خُلُقُ الْأَوَّلِينَ﴾ [ داخو دتيرو خلقو يو] يومعمول [ عادت ] دې اورسم [ دې ] چه په هره زمانه کښې خلق دنبوت دعوی کوی خلقو ته داسې وانې اوروی [ او] تاسو چه کوم مونږ دعذاب نه ويروئ نو ﴿وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ﴾ [ مونږ ته خو هرګز عذاب نه شي کيدې ﴿فَكَذَّبُوهُ﴾ غرض دې خلقو هود [ لره دروغژن کړو ﴿فَأَهْلَكْنَاهُمْ﴾ نو مونږ هغوی لره ] دسختې سيلئ په عذاب سره هلاك کړل ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً﴾ بيشکه په دې ] واقعه [ کښې ] هم [ لوئ عبرت دې ] چه داحکامو دمخالفت څه انجام شو [ او] باوجود ددې [ په دې ] کفارو دمکې [کښې ﴿وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ﴾ اکثر خلق ايمان نه راوړی ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ﴾ او بيشکه ستارب زبردست او مهربان دې ] چه په عذاب ورکولو باندې قادر دې او په رحمت سره ئې مهلت هم ورکړې دې

## معارف او مسائل

**د څو مشکل الفاظو وضاحت کول:** ﴿أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ﴾ [الريع] ابن جرير رحمه الله د حضرت مجاهد رحمه الله نه نقل کړې دی چه ، ريع ، د دوؤ غرونو تر منځه لارې [ درې] ته وئيلې شی[۱] . د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او جمهورو نه منقول دی چه ، ريع ، لوړ ځای ته وئيلې شی ،ريع النبات ، [ وده کوونکې او په پورته ختونکی بوټی ] دې نه وتی دی – د ، آية ،لفظی معنی علامه او نښه ده ، دلته ترې لوړ محل مراد دې ، تعبثون ، د دې مصدر عبث دې معنی ئې دا ده چه پکښې نۀ څه حقيقتا فائده وی او نۀ حکما ، دلته به ئې معنی دا وی چه هغوئ به لوړ لوړ محلونه جوړول چه هيڅ ضرورت به ئې ورته نۀ وو صرف د فخر د پاره به ئې جوړول ، مصانع، د مصنع جمع ده حضرت قتاده رضي الله عنه د دې معنی حوض بيان کړې ده حضرت مجاهد رضي الله عنه ترې مضبوط محلونه مراد اخستې دی ﴿لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ﴾ امام بخاری رحمه الله په صحيح بخاری کښې فرمائی چه په دې آيت کښې ،لعل ، تشبيه د پاره دې او حضرت ابن عباس رضي الله عنه ئې ترجمه کړې ده ، کانکم تخلدون ، [ ګويا چه تاسو به تل د پاره پاتې کيږئ [ لکه چه په روح کښې دی ][۲]

**بې ضرورته عمارت جوړول بده خبره ده:** د دې آيت نه ثابت شو چه بې ضرورته مکان جوړول او څه آباديانې کول د شريعت له مخې بد دی د هغې حديث هم دا معنی ده کوم چه امام ترمذی د حضرت انس رضي الله عنه نه داسې روايت کړې دې ،النفقة كلها في سبيل الله الا البناء فلا خير فيه [۳] ، يعنی کومه ابادی چه بې ضرورته جوړه کړې شی په هغې کښې هيڅ ښه والې او ښيګړه نشته ، د دې معنی

---

[۱] ) تفسير الطبري تحت هذه الآية ج: ۱۹ ص: ۳۷۱
[۲] ) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية ج: ۱۴ ص: ۲۹۸ ، ۲۹۹ و صحيح البخاري كتاب التفسير سورة الشعراء (بلاختصار) ج: ۲ ص: ۷۰۲
[۳] ) جامع الترمذي ، ابواب صفة القيامة باب ج: ۲ ص: ۷۵

تصدیق د حضرت انس رضی الله عنه د بل روایت نه هم کیږی فرمائی ،ان کل بناء وبال علی صاحبه الاما لا یعنی الا مالابدمنه، [ابوداؤد][1]

[یعنی هره ابادی کول آبادی کونکی [مالک] د پاره مصیبت وی مګر کومه آبادی چه ضروری وی هغه وبال نهٔ دې – په روح المعانی کښې فرمائی چه بغیر د صحیح غرض نه لوړه آبادی کول په شریعت محمدی کښې هم بده خبره ده[2]

| |
|---|
| كَذَّبَتْ ثَمُودُ الْمُرْسَلِينَ ۝ |
| دروغ اوګڼړل \| ثمودیانو \| رسولان \| |
| [دغه شان] ثمودیانو پیغمبران دروغ اوګڼړل \| |
| إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ صَٰلِحٌ أَلَا تَتَّقُونَ ۝ إِنِّي لَكُمْ |
| کله چې اووئیل\| هغوئ ته \| رور دهغوئ \| صالح \| آیا نهٔ یریږئ تاسو \| بیشکه زهٔ \| دپاره ستاسو |
| څه وخت چې ددوئ رور صالح عليه السلام دوئ ته اووئیل \| آیا تاسو د الله نه نه ویریږئ ازهٔ ستاسو دپاره |
| رَسُولٌ أَمِينٌ ۝ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ۝ وَمَا أَسْأَلُكُمْ |
| رسول یم \| امانتدار \| پس اویریږئ دالله نه \| او اطاعت اوکړئ زما \| اونهٔ غواړم زهٔ ستاسو نه \| |
| یو امانتدار پیغمبر یم انو د الله جل جلاله نه اوویریږئ \|او زما حکم اومنئ \|اوزه ستاسو نه په |
| عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَٰلَمِينَ ۝ أَتُتْرَكُونَ |
| په دې کار باندې\| څه بدله \| نهٔ ده بدله زما \| مګر \| په رب العالمین ده \| آیا تاسو به پریښودې شئ |
| دې څه اجر نه غواړم \| زما بدله خو د رب العالمین په ذمه ده \|........ آیا کوم څیزونه چې |
| فِي مَا هَٰهُنَا آمِنِينَ ۝ فِي جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ۝ |
| په هغه څیزونو کښې \| چې دلته په دنیا کښې دی \| په اطمینان سره \| په دې باغونو \| او چینو کښې |
| دنیا کښې دی \|تاسو به پدې کښې په امن سره پریښودې شئ ؟! [یعنی] په باغونو اوچینو کښې |
| وَزُرُوعٍ وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ ۝ وَتَنْحِتُونَ |
| اوپه دې فصلونو\|اوکجورو کښې\|چې غونچکونه دهغې\|پستې پخې ډکې دی\| اوراکنئ تاسو [جوړوئ] |
| او په فصلونو او کهجورو کښې \|کومې غنچې چې نرمې او نازکې وی \|اوتاسو غرونه |
| مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا فَٰرِهِينَ ۝ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ۝ وَلَا تُطِيعُوا |
| دغرونو نه \| کورونه \| غرور کونکی \| نو اویریږئ دالله نه \| او خبره اومنئ زما \| اومهٔ منئ |
| تراشئ\|او دفخر دپاره په کښې مانړئی جوړوئ \|نو د الله نه اوویریږئ\|اوزما دحکم تابعداری |

[1] ) سنن ابوداود، کتاب الأدب، باب ما جاء في البناء ۰ ج:۲ص: ۳٦٤
[2] ) روح المعاني تحت هذه الآية ج: ١٤ ص:۲۹۸

أَمْرَ الْمُسْرِفِيْنَ ۙ الَّذِيْنَ يُفْسِدُوْنَ فِي الْأَرْضِ وَلَا

حکم | داسراف کونکو خلقو | هغه [مسرفان] | چې فساد کوي | په زمکه کښې | اونه کوي کار

اوکړئ او د زياتی کونکو خبره مه منئ اچې په ملک کښې فساد خوروي او سم کارنې دلاسه نه کيږي

يُصْلِحُوْنَ ۞ قَالُوْٓا اِنَّمَآ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ ۚ مَآ اَنْتَ اِلَّا

داصلاح | اووئيل ثموديانو | بيشکه چې ته | دجادو کړې شوؤ نه يې | نه يې ته | مگر

هغوئ ورته اووئيل چې په تا خو چرته غټ جادو شوې دې | ته خو زمونږ په شان يو

بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۚ فَاْتِ بِاٰيَةٍ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۞

يو انسان يې | پشان زمونږه | پس راوړه | يوه نښه | که يې ته | دصادقانو نه |

انسان يې | نو څه معجزه راوړه | که ته [په دې دعوی کښې] ريښتونې يې | [صالح ﷺ]

قَالَ هٰذِهٖ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ وَّلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ

اووئيل صالح | داوښه ده | دې لره | اوبه څکل دي | او ستاسو دپاره | اوبه څکل دي | دورځې |

اوفرمائيل چې دايوه اوښه ده اچې يوه ورځ داوبو څښلو وار د دې دې او ديوې تاکلې ورځې يو وار

مَّعْلُوْمٍ ۚ وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ فَيَاْخُذَكُمْ عَذَابُ يَوْمٍ

معلومې | او مه رسوئ دې ته | څه ضرر | پس اوبه نيسي تاسو لره | عذاب | د ورځې |

ستاسو دپاره مقرر دې او دې اوښې ته تکليف مه رسوئ گنې په تاسو به د يوې لوئې ورځې عذاب راشي

عَظِيْمٍ ۞ فَعَقَرُوْهَا فَاَصْبَحُوْا نٰدِمِيْنَ ۙ فَاَخَذَهُمُ

لوئې | پس هغوئ دهغې خپې پريکړې | پس شول هغوئ | شرمنده | نو اونيول هغوئ |

خو هغوئ داوښې پښې پرې کړې | نو بيا په خپلو کړو پښيمانه شول | بيا باندې عذاب

الْعَذَابُ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۞

عذاب | بيشکه په دې کښې | نښه ده | اونه دې اکثر ددوئ | منونکې |

راغله | يقيناً په دې واقعه کښې د عبرت نښه ده | او په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړي

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۞

او بيشکه رب ستا | خامخا هغه | زبردست دې | رحم کونکې دې |

او بيشکه چې ستا رب زبردست او مهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

قوم ثمود د پيغمبرانو تکذيب اوکړو چه کله هغوی ته دهغوی ورور صالح عليه السلام اوفرمائيل: آيا تاسو د الله پاک نه نهٔ ويريږئ؟ يقين اولرئ چه زهٔ ستاسو دپاره يو امانت دار پيغمبر يم. لهٰذا تاسو د الله پاک نه اويريږئ. او زما خبره اومنئ. او زهٔ ستاسو نه په دې کار څه اجرت نه غواړم. زما اجر خو صرف هغه ذات په ذمه اخستلې دې چه د ټول جهان پالنه کوی آيا تاسو به په اطمينان سره په دې نعمتونو کښې اوسيدلو ته پريښودلې شئ کوم چه دلته موجود دی؟ په دې باغونو او چينو کښې؟ او په دې پټو او د

کهجورو په باغونو کښې چه غنچې ئې يو بل سره پيوست دي؟ او آيا تاسو به غرونه ډير په ناز سره تراشلو باندې (هميشه) کورونه جوړوئ؟ اوس د الله پاک نه اوويرېږئ او زما خبره اومنئ. او هغه د حد نه د تيرو شوو خلقو خبره مه منئ کوم چه په زمکه کښې فساد خوروی، او د اصلاح کار نه کوی. هغوی اووئيل چه: په تا باندې خو چا ډير لوئې جادو کړې دې. ستا حقيقت د دې نه سوا هيڅ نه دې چه ته زمونږ په شان انسان ئې، که رشتينې ئې نو څه نخښه راوړه. صالح عليه السلام اوفرمائيل: (واخلئ) دا اوښه ده، د اوبه څکلو دپاره به يو وار د دې وی، او په يو مقرر ورځ باندې به ستاسو وار وی. او دې ته په بد نيت لاس هم پولسئ، ګينې تاسو به د يوې لوئې ورځې عذاب راونيسي. بيا داسې اوشوه چه هغوی د هغه اوښې خپې پرې کړې، او آخر پښيمانه شو. پس عذاب هغوی راونيول يقيناً په دې ټوله واقعه کښې د عبرت سامان دې، بيا هم په دوی کښې اکثر خلق ايمان نه راوړی او يقين اولره چه ستا رب صاحب د اقتدار هم دې، ډير مهربان هم.

## خلاصه تفسير

﴿كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ [ دثمود قوم ] هم [پيغمبرانولره دروغژن کړل ﴿اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ صٰلِحٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ﴾ هرکله چه دوی ته ددوی ورور صالح ؑ [وفرمائيل اياتاسو] دالله تعالى نه] نه ويريږئ ﴿اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ﴾ زه ستاسو امانتدارپيغمبر يم ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ پس تاسو دالله تعالى نه ووېرېږئ ﴿وَاَطِيْعُوْنِ﴾ او زما خبره ومنئ ﴿وَمَاۤ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ﴾ او زه تاسونه په دې هڅ بدله نه غوارم ﴿اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ بس زما بدله درب العلمين په ذمه ده] اوتاسو چه کوم دخوشحالئ په وجه دومره دالله تعالى نه غافله يئ نو ﴿اَتُتْرَكُوْنَ فِيْ مَا هٰهُنَاۤ اٰمِنِيْنَ﴾ [ اياتاسو به په دې څيزونو کښې په امن سره پريښودې شئ کوم چه دلته ] په دنياکښې [ موجوددی ﴿فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ﴾ يعنى په باغونو اوچينو کښې ﴿وَّزُرُوْعٍ وَّنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيْمٌ﴾ او په دې فصلونو او کجورو کښې دکومو ګنکوچی [غونچې]چه ښه ليسدار[نرمې]دی ] يعنى په دې کجورو کښې ښه ډيره ميوه راځی [ اوايا] ددې غفلت په وجه ﴿وَتَنْحِتُوْنَ مِنَ الْجِبَالِ﴾ [ تاسوغرونه تراش کوئ ﴿بُيُوْتًا فٰرِهِيْنَ﴾ په فخر] او لويئ کولو[ سره مکانات جوړوئ ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ پس دالله تعالى نه ووېرېږئ ﴿وَاَطِيْعُوْنِ﴾ او زما خبره ومنئ ﴿وَلَا تُطِيْعُوْۤا اَمْرَ الْمُسْرِفِيْنَ﴾ او دهغو حدونو ] دبندګئ [ نه د وتونکوخبره مه منئ ﴿الَّذِيْنَ يُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ﴾ کوم چه په زمکه کښې فساد کوی او] چرې د ﴿وَلَا يُصْلِحُوْنَ﴾ [ اصلاح ] خبره [ نه کوی] مراد ترې نه دکفارو سرداران دی چاچه به خلق ګمراهئ ته راړول او دفساد او د اصلاح نه کولو نه دامراد دې ﴿قَالُوْۤا اِنَّمَاۤ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ﴾ [ هغوخلقو ووئيل چه په تاخو چالوئ جادوکړې دې ] په کوم سره چه ستا په عقل کښې خرابی راغلې ده چه دنبوت دعوى کوې حال دادې چه ﴿مَاۤ اَنْتَ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا﴾ [ ته خو بس زمونږ په شان يو ] معمولې [ بنی آدم يئ ] او بنی آدم خو نبی کيدې نه شی ﴿فَاْتِ بِاٰيَةٍ﴾ [ پس څه معجزه پيش کړه ﴿اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ﴾ که ته] دنبوت په دعوى کښې [ رښتونې ئ ﴿قَالَ هٰذِهٖ نَاقَةٌ﴾ صالح ] ؑ [اوفرمائيل چه دايوه اوښه ده] کومه چه دخلاف عادت پيدا کيدو په وجه معجزه ده لکه چه داتمې پارې ختميدوته نزدې تير شوی دی او علاوه ددې چه دا زما په رسالت دليل دې په خپله ددې هم حقوق دی چنانچه په هغې کښې يو دادې چه ﴿لَهَا شِرْبٌ وَّلَكُمْ

﴿يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ﴾ [ دا وبو څښلو د پاره يو وار ددې مقرر دې او په يوه مقرر ورځ کښې يو وار ستاسو دې ] يعنى ستاسو دڅاروو دې [ او] يوحق يې دادې چه ﴿وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ﴾ [ دې لره په بدئ ] او تکليف ورکولو [سره لاس مه وروړئ ﴿فَيَاْخُذَكُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَظِيْمٍ﴾ چرته تاسو] به ديوې لوئ ورځې [عذاب ونيسى ﴿فَعَقَرُوْهَا﴾ پس هغوى ] نه د رسالت تصديق وکړو نه يې د اوښې حقونه ادا کړل بلکه [ هغه اوښه] يې [ مړه کړه ﴿فَاَصْبَحُوْا نٰدِمِيْنَ﴾ بيا هر کله دعذاب نښې ښکاره شوې نو په خپل حرکت باند [ ستومانه شول ] مګر اول خو دعذاب ليدو په وخت کښې ستومانى بې کاره ده دويم خالى په طبعي ستومانئ هيڅ نه کيږى ترڅو پورې چه اختيارى تدارك يعنى توبه او ايمان نه وى ﴿فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ﴾ [بيا] اخر [ عذاب دوى لره ونيول بيشکه ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً﴾ بيشکه په دې ] واقعه [ کښې لوئ عبرت دې او] سره ددې [په دوى ] ﴿وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ کفارو دمکې [کښې اکثر خلق ايمان نه راوړى ﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ﴾ او بيشکه ستارب لوئ زبردست ډير مهربان دې] چه سره دقدرت نه مهلت ورکوى

## معارف او مسائل

﴿وَتَنْحِتُوْنَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا فٰرِهِيْنَ﴾ حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه د ﴿فٰرِهِيْنَ﴾ تفسير ﴿بطرين﴾ [ فخر کونکى] منقول دې ليکن ابو صالح اوفرمائيل چه ددې تفسير ﴿حاذقين﴾[1] [ ماهرين] دې څنګه چه امام راغب رحمه الله هم دا تفسير کړيدې ، مراد دا دې چه الله تعالى په تاسو باندې دا نعمت کړې دې چه تاسو ته ئې داسې کاريګرى در ازده کړه چه په غرونو کښې په آسانئ سره مکانونه جوړولې شئ ، حاصل ئې دا دې چه د الله تعالى انعامونه را ياد کړئ او په زمکه کښې فساد مه کوئ -

**مفيدو پيښو [ کسبونه ] خدائى انعامات دي خو هله چه په خرابو کارونو کښې استعمال نکړې شي ::** دې نه دا ثابته شوه چه اعلى کسبونه د الله تعالى انعامات دى او دهغې نه فائده پورته کول جائز دى خو که دې نه څه ګناه ، يا حرام کار يا بې ضرورته پکښې بوښتيدل وى نو دغه کسب اختيارول بيا ناروا دى څنګه چه اوس لړ شان وړاندې د بې ضرورته آباديانو لوړولو بدى چه بيان کړې شويده -

كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطِ
ادروغژن اوګڼړل | قوم دلوط
| دلوط عليه السلام قوم هم خپل پيغمبران دروغژن اوګڼړل

الْمُرْسَلِيْنَ ۚ اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ لُوْطٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ۚ
رسولان | کله چې اووئيل | هغوئ ته | رور دهغوئ | لوط عليه السلام | آيا تاسو يريږئ نه |
کله چې ددوئ رور لوط عليه السلام دوئ ته اووئيل اچې آيا تاسو [د الله جل جلاله] نه نه يريږئ

اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ۙ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ۚ
بيشکه زه | ستاسو دپاره | رسول امانتدار يم | پس اويريږئ دالله نه | او خبره اومنئ زما |
زه ستاسو په حقله يو امانت دار پيغمبر يم | نو تاسو دالله نه اويريږئ او زما تابعدارى اوکړئ

[1] ) مفردات القرآن للراغب الاصفهاني ج:۱ ص:۳۷۹

وَمَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلٰی رَبِّ

اونهٔ غواړم زهٔ ستاسو نه | په دې باندې | اجر | نه دې اجر زما | مګر | په رب

اوزهٔ ستاسو نه په دې [تبليغ] څه بدله نه غواړم | زما بدله خو درب العالمين په ذمه ده

الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۶۴﴾ اَتَاْتُوْنَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۶۵﴾ وَتَذَرُوْنَ مَا

العالمين باندې | آيا ورځئ تاسو | نارينوته | دخلقو نه | او پرېږدئ | هغه

آيا په ټوله دنيا کښې صرف تاسو [داسې خلق يئ] | چې دهلکانو سره لواطت کوئ | او ستاسو

خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ ۭ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ

چې پيدا کړې دی | تاسو لره | رب ستاسو | دښځو ستاسو نه | بلکه يئ تاسو | قوم

رب چې ستاسو دپاره کومې ښځې پيدا کړې دی | هغه تاسو پرېږدئ | تاسو خو دحد نه تير شوی خلق ئې

عٰدُوْنَ ﴿۱۶۶﴾ قَالُوْا لَىِٕنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰلُوْطُ لَتَكُوْنَنَّ

دحدنه اوړيدونکی | اووئيل هغوئ | که چرې | منع نه شوې ته | اے لوط | نوخامخا شې به ته |

هغوئ ورته اووئيل چې ائې لوط ﷺ! که ته دخپلو خبرونه منع نه شوې انو ته به

مِنَ الْمُخْرَجِيْنَ ﴿۱۶۷﴾ قَالَ اِنِّیْ لِعَمَلِكُمْ مِّنَ الْقَالِيْنَ ﴿۱۶۸﴾

دايستلو شوؤ نه | اووئيل هغه | بيشکه زهٔ | دې بدعمل ستاسو لره | دسخت بغض لرونکونه يم

دوطن نه بهر اوويستلې شې | [لوط ﷺ] اووئيل چې بيشکه زه ستاسو دعملونو نه نفرت کوم

رَبِّ نَجِّنِیْ وَاَهْلِیْ مِمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶۹﴾

اے ربه زما | نجات راکړه مالره | او اهل زما لره | دهغې [بدعملئ] نه | چې دوئ ئې کوی |

ائې زما ربه ! ما او زما خاندان ددې خلقو د عملونو [دوبال] نه اوساتې

فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۷۰﴾ اِلَّا عَجُوْزًا

پس نجات ورکړو مونږ هغه له | او اهل دهغه له | تولو له | مګر | بوډئ ښځه |

نو مونږ دې اوددهٔ ټول ښخاندان بچ کړو | خو بس يو بوډئ چې روستو پاتې کيدونکو

فِی الْغٰبِرِيْنَ ﴿۱۷۱﴾ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿۱۷۲﴾ وَاَمْطَرْنَا

په روستو پاتې کيدونکو کښې وه | بيا هلاک کړل مونږه | هغه نور | او راواوروؤ مونږه |

کښې پاتې شوه | بيا مونږ ټول تباه کړه |..................او په هغوئ مو يو خاص

عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿۱۷۳﴾ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ

په هغوئ باند | باران | پس بدوؤ | باران ديرولو شوؤ | بيشکه په دې کښې | خامخا نښه ده

باران اوورولو | څومره خراب باران وو | په هغه خلقو چې دعذاب نه ويرولې شوی وو | بيشکه په دې واقعه

| وَمَا كَانَ | اَكْثَرُهُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۸﴾ | وَاِنَّ | رَبَّكَ | لَهُوَ | الْعَزِيْزُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه دي | اکثر ددوئ | منونکي | او بیشکه | رب ستا | خامخا هغه | غالب دي |
| کښې عبرت دي \| او په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړي \| او بیشکه چې ستا رب غالب مهربان دي | | | | | | |
| الرَّحِيْمُ ﴿۹﴾ | | | | | | |
| مهربانه دي | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

د لوط علیه السلام قوم هم د پيغمبرانو تکذيب اوکړو، چه کله هغوی ته د هغوی ورور لوط علیه السلام اوفرمائيل: آيا تاسو د الله پاک نه نۀ ويريږئ؟ يقين اوساتئ چه زۀ تاسو دپاره يو امانت دار پيغمبر يم، لهٰذا تاسو د الله پاک نه اوويريږئ، او زما خبره اومنئ. او زۀ ستاسو نه په دې کار باندې هيڅ قسم اجرت نه غواړم. زما اجر خو صرف د هغه ذات په ذمه دې کوم چه د ټول جهان پالنه کوی آيا د ټول جهان په خلقو کښې صرف هم تاسو سړو ته راځئ. او ستاسو ښځې کومې چه ستاسو رب ستاسو دپاره پيدا کړی دی، هغوی مو پريښودلې دی؟ حقيقت خو دا دې چه تاسو بالکل د حد نه تېر خلق يئ وې وئيل: اې لوطه! که ته قلار نه شې نو ته به هم په هغه خلقو کښې شامل شې کوم چه (د کلی نه) ويستلې شی. لوط علیه السلام اوفرمائيل يقين ساتئ: زۀ د هغه خلقو نه يم کوم چه ستاسو د دې کار نه بالکل بيزاره دی. اې زما ربه! کوم حرکتونه چه دا خلق کوی، ما ته او زما د کور خلقو ته د هغې نه خلاصې ورکړې پس مونږ هغوی او د هغوی د کور خلقو ته خلاصې ورکړو سوا د يوې بوډئ نه چه په روستو پاتې کيدونکو کښې شامله وه. بيا باقي ټول مونږ تباه کړل او په هغوی باندې مو يو زبردست باران راوورولو. غرض ډير بد باران وو کوم چه په هغوی باندې اوريدلو، کوم چه مخکښې ويرولې شوې وو. يقيناً په دې واقعه کښې د عبرت سامان دې، بيا هم په دوی کښې اکثر خلق ايمان نه راوړی او يقين اوساته چه ستا رب صاحب د اقتدار هم دې، ډير مهربان هم.

### خلاصه تفسير

﴿كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطِ ۨالْمُرْسَلِيْنَ ﴾ [قوم دلوط] عليه السلام [ پيغمبرانو لره دروغژن کړل ﴿اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ لُوْطٌ﴾ هرکله چه دوی ته ددوی ورور لوط] عليه السلام [ ووئيل چه ﴿اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴾ ايا تاسو] دالله تعالى نه [نه ويريږئ؟ ﴿اِنِّىْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴾ بيشکه زۀ ستاسو امانتدار پيغمبر يم ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴾ پس تاسو دالله تعالى نه وويريږئ او زما خبره ومنئ ﴿وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ﴾ او زۀ تاسونه په دې څه بدله نه غواړم ﴿اِنْ اَجْرِىَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ پس زما بدله خود رب العلمين په ذمه ده ﴿اَتَاْتُوْنَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ ايا دټول جهان په خلقوکښې تاسو] دا حرکت کوئ چه [ دسړو سره بدفعلی کوئ ﴿وَتَذَرُوْنَ مَا خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ ۭ﴾ او ستاسو رب چه کومې تاسو دپاره بيبيانې پيدا کړی دی هغولره پرېږدئ ] يعنی بل يو سړی تاسونه سوا دا حرکت نه کوی اوداسې نه ده چه ددې په قبيح کيدو کښې څه شبهه ده ﴿بَلْ﴾ [بلکه ] اصل خبره داده چه ﴿اَنْتُمْ قَوْمٌ عٰدُوْنَ ﴾ [ تاسو دحد] دانسانيت [ نه وتونکی خلق يئ ﴿قَالُوْا لَىِٕنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰلُوْطُ﴾ هغو

خلقو ووئیل چه اے لوطه[عليه السلام] [ که ته] مونږ ته ددې خبرو کولو نه [ منع نه شوې ﴿لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمُخْرَجِينَ﴾ نو خامخا به] دکلی نه [وویستلې شې ﴿قَالَ﴾ لوط[عليه السلام] [ وفرمائیل چه] زۀ په دې ویرولو باند دخپلې خبرې نه نه واپس کیږم ځکه چه ﴿إِنِّي لِعَمَلِكُم مِّنَ الْقَالِينَ﴾[زۀ ستاسو ددې کارنه سخت نفرت کوم] نو وینا په ځنګه پریږدم هرکله چه په هیڅ شان هغو خلقو ونه منله او عذاب راتلونکې معلوم شونو [لوط[عليه السلام] [دعا وکړه ﴿رَبِّ نَجِّنِي وَأَهْلِي مِمَّا يَعْمَلُونَ﴾﴾ چه اے زما ربه ماله او زما] خاصو[متعلقینولره ددوی ددې کار] دوبال [ نه بچ کړې ] کوم چه په دوی راتلونکې دې ﴿فَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ أَجْمَعِينَ﴾[ پس مونږ دۀ لره او ددۀ متعلقینو ټولو لره نجات ورکړو﴿إِلَّا عَجُوزًا﴾ سوا دیوې بوډۍ نه ] مراد ددې نه بی بی دحضرت لوط[عليه السلام] ده ﴿فِي الْغَابِرِينَ﴾[ چه هغه ] په عذاب کښې [ په پاتې کیدونکو کښې پاتې شوه ﴿ثُمَّ دَمَّرْنَا الْآخَرِينَ﴾ بیا مونږ نورو ټولو لره] کوم چه دلوط[عليه السلام] او ددۀ داهل نه علاوه وو [هلاك کړل ﴿وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا﴾ او مونږ په دوی یو خاص قسم ] یعنې دکاڼو [باران وورولو ﴿فَسَاءَ مَطَرُ الْمُنذَرِينَ﴾ پس څه بدباران وو کوم چه په هغو خلقو وورولې شو کوم چه] دالله تعالی دعذاب نه [ ویرولې شوی وو ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً﴾ بیشکه په دې ] واقعه [کښې] هم [عبرت دې ﴿وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ﴾ او] سره ددې [ په دوی ] کفارو دمکې [ کښې اکثر خلق ایمان نه راوړی﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ﴾ او بیشکه ستارب لوئ قدرت والا لوئ رحمت والا دې ] چه عذاب ورکولې شی خو بیائ هم اوس ورنه کړو.

## معارف او مسائل

**خپلې بی بی سره هم غیر فطری کار کول حرام دی:** ﴿وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُم مِّنْ أَزْوَاجِكُم﴾ ، دلته ، ﴿مِّنْ أَزْوَاجِكُم﴾ کښې مِنْ، لفظ بیانیه هم کیدې شی ، مطلب به ئې داوی چه تاسو خلق خواهشونه د هغې بیبیانو نه نۀ پوره کوئ کومې چه الله تعالی هم دې د پاره پیدا کړې دی بلکه دغه کار د نارینو نه اخلئ چه ډیر ناکاره خوئ دې – دلته ، من ،تبعیضیه هم کیدې شی په دې باندې مطلب به ئې داوی چه تاسو خو خپلې بیبیانې د فطری کار د پاره نۀ ، بلکه د غیر فطری کار د پاره ئې استعمالوئ چه بیخی حرام دی د دې معنی په لحاظ سره دا هم ثابته شوه چه خپلو بیبیانو سره هم غیر فطری عمل کول قطعا حرام دی ، چناچه د یو حدیث له مخې رسول الله ﷺ هم په دغسې سړی باندې لعنت کړې دې [الروح](۱).

﴿إِلَّا عَجُوزًا فِي الْغَابِرِينَ﴾ د ، عجوز ، نه مراد د حضرت لوط عليه السلام بی بی ده چه هغه کافره وه او د لوطیانو په دغه ناکاره کار کولو باندې خوشحالیدله هغې ته ﴿عَجُوزًا﴾ وئیل په دې بنا هم کیدې شی چه هغه د عمر په لحاظ بوډۍ وه او په دې لحاظ هم چه د پیغمبر بی بی د هغوئ عليه السلام د امت مور وی چنانچه د ګڼر اولاد مور ته بوډۍ وئیل عامه خبره ده .

﴿وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا فَسَاءَ مَطَرُ الْمُنذَرِينَ﴾ دې نه معلومه شوه چه لوطی ته سزا ورکول روا دی چه دیوال پرې راګذار کړې شی یا د یو لوړ ځائ نه راګذار کړې شی ځنګه چې د احنافو مسلك دې

(۱) روح المعاني تحت هذه الآیة ج: ۱٤ ص:۳۲۵ او حدیث دپاره اوګورئ:- المعجم الأوسط للطبراني رقم الحدیث: ۲۰۰٤ و مجمع الزوائد رقم الحدیث : ۷۵۹۵

ولې چه د قوم لوط علیه السلام دغه ناکاره خلق سره د آبادئ او زمکې پورته اوخیژولې شو او بیا راګزارکړې شو [شامی کتاب الحدود] (۱)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَذَّبَ | اَصْحٰبُ لْئَيْكَةِ | | الْمُرْسَلِيْنَ | اِذْ | قَالَ | لَهُمْ |
| دروغ اوګنړل | ایکه | والو | رسولان | کله چې | اووئیل | هغوئ ته |

دبنړ خاوندانو خپل پیغمبران دروغژن اوګنړل اخه وخت چې شعیب علیه السلام دوئ ته اووئیل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شُعَيْبٌ | اَلَا تَتَّقُوْنَ | اِنِّيْ | لَكُمْ | رَسُوْلٌ | اَمِيْنٌ | |
| شعیب علیه السلام | آیا نهٔ یریږئ تاسو | بیشکه زهٔ | ستاسو دپاره | رسول یم | امانتدار | |

آیا تاسو دالله ﷻ نه نه ویریږئی ازهٔ ستاسو دپاره یو امانتدار پیغمبر یم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاتَّقُوا اللّٰهَ | وَاَطِيْعُوْنِ | وَمَآ اَسْئَلُكُمْ | عَلَيْهِ | مِنْ اَجْرٍ | |
| پس اویریږئ دالله نه | او خبره اومنئ زما | اونهٔ غواړم زهٔ ستاسو نه | په دې باندې | څه اجر | |

نو تاسو دالله ﷻ نه اوویریږئی اوزما خبره اومنئ او زهٔ تاسونه په دې کار هیڅ بدله نه غواړم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنْ اَجْرِيَ | اِلَّا | عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ | اَوْفُوا | الْكَيْلَ | وَلَا تَكُوْنُوْا |
| نهٔ دې اجر زما | مګر | په رب العالمین باند دې | پوره ورکوئ | پیمانه | اومهٔ کیږئ تاسو |

زمابدله خوبس صرف الله ﷻ سره ده | تاسو پیمانه پوره پوره ورکوئی | اوخلقو ته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنَ الْمُخْسِرِيْنَ | وَزِنُوْا | بِالْقِسْطَاسِ | الْمُسْتَقِيْمِ | وَلَا تَبْخَسُوا |
| دنقصان ورکونکونه | اوتول کوئ | په تله | نیغه باندې | اومهٔ ورکوئ کم |

نقصان مه ورکوئی | او په سمه تله باندې تول کوئی | او خلقو ته دهغوئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| النَّاسَ | اَشْيَآءَهُمْ | وَلَا تَعْثَوْا | فِى الْاَرْضِ | مُفْسِدِيْنَ | وَاتَّقُوا |
| خلقو ته | څیزونه دهغوئ | او مهٔ ګرځئ تاسو | په زمکه کښې | فساد کونکې | او اویریږئ |

په څیزونو کښې تاوانونه مه ورکوئی | او په زمکه کښې فسادونه مه خوروئی | او دهغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْ | خَلَقَكُمْ | وَالْجِبِلَّةَ | الْاَوَّلِيْنَ | قَالُوْٓا | اِنَّمَآ |
| دهغه ذات نه | چې پیدا ئې کړئ تاسو | او خلق | رومبنئ | اووئیل هغوئ | بیشکه |

ذات نه اوویریږئی | چې تاسو او ستاسونه وړاندې مخلوقات ئې پیدا کړې دی | هغوئ ورته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْتَ | مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ | وَمَآ اَنْتَ | اِلَّا | بَشَرٌ | مِّثْلُنَا |
| چې ته | دسحر کړې شوو نه ئې | اونهٔ ئې ته | مګر | انسان ئې | په شان زمونږه |

اووئیل چې په تاخو جوړې چا جادو کړې دې | او ته خو بس زمونږ په شان انسان یئ

(۱) شامی مع الدور، کتاب الحدود، باب الوط، الذي یوجب الحد والذي لا یوجبه مطلب في حکم اللوطة ج:٦ ص:٤٤

وَإِنْ نَّظُنُّكَ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿١٨٦﴾ فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا

او بیشکه مونږ گمان کوو په تا باندې | د دروغژنانو نه | پس راوغورزوه | په مونږ باندې |

اوزمونږ داخيال دې چې ته درغژن يې انوکه ته ريښتوني يې انو په مونږ باندې د

كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿١٨٧﴾ قَالَ رَبِّيْ

يو ټوټه | داسمان نه | که يې ته | د رښتينو خلقو نه | او ووئيل هغه | چې رب زما |

آسمان نه يوه ټوټه راوغورزوه | شعيب ﷺ اووئيل چې زما رب ته ستاسو عملونه

أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٨٨﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَأَخَذَهُمْ

ښهٔ پوهيږي | په هغه څه | چې تاسو يې کوئ | پس هغوئ دروغ اوګڼړو هغه لره | نو اونيول هغوئ لره

ښه معلوم دي | خوهغوئ شعيب ﷺ دروغژن اوګڼړلو | نو د سيورې د ورځې

عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ ۭ إِنَّهٗ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿١٨٩﴾ إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

عذاب | دورځې | دسورې | بيشکه چې دا وو | عذاب | دورځې لوئې | بيشکه په دې کښې

عذاب پرې راغلو | بيشکه چې دغه د عذاب ډيره سخته ورځ وه | بيشکه په دې واقعه کښې

لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٩٠﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ

خامخا نښه ده | اونهٔ وو | اکثر دهغوئ | منونکي | او بيشکه | رب ستا | خامخا هغه

هم [خلقو دپاره] نښه ده | مګر په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړی | او بيشکه هم

الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٩١﴾ ع

غالب دې | رحيم دې |

ستا رب غالب او مهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

دأيکه اوسيدونکو د پيغمبرانو تکذيب اوکړو کله چه شعيب عليه السلام هغوی ته اووئيل چه : آيا تاسو د
الله پاک نه نهٔ ويريږئ؟ يقين ساتئ چه زهٔ ستاسو دپاره يو امانت دار پيغمبر يم لهٰذا تاسو د الله پاک
نه اوويريږئ، او زما خبره اومنئ. او زهٔ تاسو نه په دې کار باندې هيڅ قسم اجرت نه غواړم، زما اجر خو
صرف هغه ذات په خپله ذمه اخستلې دې کوم چه د ټول جهان پالنه کوی. پوره پوره ناپ کوئ، او دهغه
خلقو نه مه جوړيږئ کوم چه لوږ خلق په تاوان کښې اچوی او تول په برابره تله باندې کوئ. او خلقو ته
د هغوی څيزونه کم مه ورکوئ، او په زمکه کښې فساد مه کوئ او د هغه ذات نه اوويريږئ چا چه تاسو هم
پيدا کړی يئ، او مخکښې خلقت هم. وې وئيل : يقينًا ستا باندې چا ډير لوئې جادو کړې دې، ستا حقيقت د
دې نه سوا هيڅ نه دې چه ته زمونږ په شان يو انسان يې، او مونږ تا ته يقيني دروغژن ګڼړو لهٰذا که ته
رښتينې يې نو په مونږ باندې د آسمان يو ټکړه راګوزاره کړه. شعيب عليه السلام اوفرمائيل : زما رب ته ښه
معلومه ده چه تاسو څه کوئ غرض دا چه هغوی د شعيب عليه السلام تکذيب اوکړو چه د هغې نتيجه دا شوه
چه هغوی د وريځې عذاب راونيول بيشکه هغه د يوې زبردستې ورځې عذاب وو. يقينًا په دې ټوله واقعه

کښې د عبرت سامان دې، بیا هم په دوی کښې اکثر خلق ایمان نه راوړي. او یقیناً اوسا لیګ چه ستاسو رب صاحب اقتدار هم دې، ډېر مهربان هم.

## خلاصه تفسیر

﴿كَذَّبَ أَصْحٰبُ لْئَيْكَةِ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ [ او دبنړ اوسیدونکو ] هم دکومو ذکر چه د سوره حجر په اخر کښې تیر شوې دې [ پیغمبرانو لره دروغژن کړل ﴿إِذْ قَالَ لَهُمْ شُعَيْبٌ﴾ هرکله چه دوی ته شعیب] عليه السلام [ ووئیل ﴿أَلَا تَتَّقُوْنَ﴾ چه آیاتاسو دالله تعالی نه نه ویریږئ؟ ﴿إِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ أَمِيْنٌ﴾ زهٔ ستاسو امانتدار پیغمبر یم ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَطِيْعُوْنِ﴾ پس تاسو دالله تعالی نه وویریږئ او ځما خبره منئ ﴿وَمَا أَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ﴾ او زهٔ تاسونه په دې څه بدله نه غواړم ﴿إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ بس زما بدله خو درب العلمین په ذمه ده ﴿أَوْفُوا الْكَيْلَ﴾ تاسو خلق پوره پیمانه کوئ ﴿وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُخْسِرِيْنَ﴾ او] دحق دمالك [ نقصان مه کوی ] دغه شان دتول په څیزونو کښې ﴿وَزِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ﴾ [ په نیغه تله باند تول کوئ ] یعنی مه ډنډی وهئ او مه په کاڼړو کښې نقصان کوئ ﴿وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ﴾ [ او دخلقو څیزونه مه نقصانی کوئ ﴿وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِيْنَ﴾ او په زمکه کښې فساد مه خوروئ ﴿وَاتَّقُوا الَّذِيْ﴾ او دهغه ] قادرالله تعالی [ نه وویریږئ ﴿خَلَقَكُمْ وَالْجِبِلَّةَ الْأَوَّلِيْنَ﴾ کوم چه تاسولره او ټولو وړاند مخلوقاتو لره پیدا کړل ﴿قَالُوْا إِنَّمَا أَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ﴾ هغو خلقو ووئیل چه بس په تا چایو لوئ جادو کړې دې] چه په هغې سره دې عقل وران شوې دې نو دنبوت دعوی دې اوکړه ﴿وَمَا أَنْتَ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا﴾ [ او ته خو محض زمونږ په شان یو] معمولی [سړې یې ﴿وَإِنْ نَّظُنُّكَ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ﴾ او مونږ خو په تاد دروغژن سړی خیال کوو ﴿فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ﴾ پس که ته درښتونونه یې نو په مونږ داسمان نه څه ټکړه راوغورزوه ] چه مونږ ته معلومه شی چه واقعی ته نبی وې او ستاپه دروغژن کولو مونږ ته دا سزا راکړې شوه ﴿قَالَ﴾ [ شعیب] عليه السلام [ ووئیل چه] زهٔ دعذاب راوستونکې یاې د راوستو دکیفیت متعین کوونکې څوك یم؟ ﴿رَبِّيْ أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ﴾ [ستاسو عملونو لره زما رب ښه پیژنی ] او ددغې عمل چه څه مقتضاده چه څه عذاب به وی اوکله به وی دغې لره هم هغه پیژنی دهغه اختیار دې ﴿فَكَذَّبُوْهُ﴾ [ پس هغو خلقو ] برابر[ دهٔ لره دروغژن کړو ﴿فَأَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ﴾ پس هغوی لره دسائبان د واقعې عذاب ونیول ﴿إِنَّهُ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ﴾ بیشکه هغه دلوئ سختې ورځې عذاب وو] او ﴿إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَأٰيَةً﴾ [ په دې ] واقعه [ کښې] هم [ لوئ عبرت دې ﴿وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ او] سره ددې [په دوی] کفارو دمکې [ کښې اکثر خلق ایمان نه راوړي ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ﴾ او بیشکه ستا رب قدرت والا لوئ رحمت والا دې ] چه عذاب نازلولې شی مګر مهلت یې ورکړې دې

## معارف او مسائل

﴿وَزِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ﴾ ﴿قِسْطَاسِ﴾ ،ته چا رومی لفظ وئیلې دې چه معنی ئې انصاف ده ، ځنې ئې عربی لفظ بولی چه ،قسط ، نه را اخستې شویدې د قسط معنی هم انصاف دې مطلب دا دې چه د میچ ، کچ [ناپ] او تول و غیره څیزونه په صحیح ډول او په سمه طریقه استعمالوئ چه پکښې د کمئ بیشئ خطره نهٔ وی ﴿وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ﴾ یعنی [ د خلقو په خپلو څیزونو کښې

کمي مه کوئ مراد دا دي چه د معاهدې په جوړ د چا په حق کښې څه کمي کول حرام دي خواه هغه د میچ ، تول و غیره څیزونه وي او که د بل څه ، دې نه معلومه شوه چه کوم ملازم یا مزدور په مقرر کړې وخت کښې چه غلا کوي یا کم وخت پکښې لګوي نو هغه هم په دې د رکه کښې داخل دي . امام مالک رحمه الله په خپل مؤطا کښې یو روایت نقل کړې دې فرمائی چه حضرت عمر رضی الله عنه د مازیګر په مونځ کښې یو سړې بیا نهٔ موندو نو ورته ئې اوفرمائیل چه چرته وې ؟ هغه څه عذر بیان کړو ، حضرت عمر رضی الله عنه ورته اوفرمائیل ،طففت ، [ تاپه تول کښې کمي اوکړو ] هرکله چه مونځ د تول څیز نهٔ دې خکه د دې حدیث شریف د نقل کولو نه پس امام مالک رحمه الله فرمائیلي دي چه ، وفاءوتطفيف (۱)، [ یعنی د حق په جوړ کول یا پکښې کمي راوستل د هر څیز کیدې شي ، یواځې په میچ تول پورې اړه نه لري یعنی په هر څیز کښې ،تطفيف، راتلې شی کوم چه د ﴿وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ﴾(۲) له مخې حرام دي

**خدائي مجرم پخپله راځي د هغه د ګرفتار کولو ضرورت نهٔ وي :** ﴿فَأَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ﴾ د دې عذاب واقعه داسې ده چه الله تعالی په دغې قوم باندې سخته ګرمی راوسته چه د هغې له کبله دغې خلقو ته نهٔ په کور کښې آرام راتلو او نهٔ بهر ، دې پسې الله تعالی بهر میدان کښې ښه ګڼړه وریځ راوسته ورلاندې ښه هوا وه ، خلق هسې هم د ګرمئ نه تنګ وو تول په منډه منډه ورغلل او دغې وریځې لاندې راپنډ شو تول چه هغې لاندې راجمع شو نو الله تعالی د دغې وریځې نه د باران په ځائ اور راورولو چه تول پرې یعنی کباب وریت شو [ د ابن عباس رضی الله عنه نه په حواله د روح[(۳)

| | | |
|---|---|---|
| وَإِنَّهُ | لَتَنزِيلُ | رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٩٢﴾ |
| او بیشکه دا قرآن | خامخا نازل کړې شوي پیغام دې | درب العالمین |
| اودا قرآن پاک درب العالمین رالیږلې پیغام دې | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نَزَلَ | بِهِ | الرُّوحُ الْأَمِينُ ﴿١٩٣﴾ | عَلَىٰ قَلْبِكَ | لِتَكُونَ |
| نازل کړې دې | دا قرآن | روح امانتدار [جبریل] | په زړهٔ ستا باندې | دپاره ددې چی شې ته |
| دا روح الامین[جبریل] راوړې نازل کړې دې | استا [ په زړه ئې نازل کړې دې] | چې ته [ددې | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنَ الْمُنذِرِينَ ﴿١٩٤﴾ | بِلِسَانٍ | عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ﴿١٩٥﴾ | وَإِنَّهُ |
| دخبر دارونکونه | په ژبه | عربئ ښکاره [صفا] سره | او بیشکه دا قرآن |
| په ذریعه]خلق دالله ﷻ نه اویروې | اداپه واضحه عربئ ژبه کښې دې | اوددې ذکر دپخوانو | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ ﴿١٩٦﴾ | أَوَلَمْ | يَكُن لَّهُمْ | آيَةً | أَن يَعْلَمَهُ |
| خامخا په کتابونو رومبنو کښی دې | آیا نهٔ ده | دپاره ددوئ | نښه | [داخبره] چی پوهیږی په دې قرآن |
| امتونو په کتابونو کښې راغلې دې | آیا دې خلقودپاره داخبره کافی دلیل نه دې | چې [ددې کتاب | | |

(۱) موطا مالك رقم الحديث ۲۹ كتاب وقوت الصلاة باب جامع الوقوت.
(۲) ترجمه:- ناپ تول کښې کمی کوونکو دپاره ډیره لویه خرابی ده.
(۳) روح المعاني ج: ۱٤ ص: ۳٤۲ و المستدرك للحاكم رقم الحديث: ٤٠٧٤

عُلَمٰٓؤُا بَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ ۝ وَلَوْ نَزَّلْنٰهُ عَلٰى بَعْضِ الْاَعْجَمِيْنَ ۝

عالمان | دبنی اسرائیلو | او که نازل کړي وي مونږه دا | په یو باندي دعجمیانو نه |

حقیقت] دبنی اسرائیلو عالمانو ته معلوم دي [او که دا کتاب مونږ په چا عجمی باندي نازل کړي وي

فَقَرَاَهٗ عَلَيْهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ مُؤْمِنِيْنَ ۝ كَذٰلِكَ

پس لوستلي وي هغه دا | په دوئ باندي | نهٔ به وو دوئ | په هغې باندي | ایمان راوړونکی | دارنګې

اوبیا هغه په دوئ باندي لوستلي هم وي | نو دوئ به منلي نه وو | دغه شان مونږ [داعناد او انکار]

سَلَكْنٰهُ فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ۝ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ

ننښستلي دي مونږه دا ذکر | په زړونو دمجرمانو کښې | نهٔ راوړي ایمان دوئ | په دې [قرآن] |

دمجرمانو په زړونو کښې اچولي دي | دوئ په دې ایمان نه راوړي | تر دې چې

حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ۝ فَيَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً

تر هغې پورې | چې اووینی دوئ عذاب | دردناک | نو رابه شي دغه عذاب دوئ ته | ناساپه |

دردناک عذاب په خپلو سترګو اونه وینی | خو [هغه عذاب به پرې] داسې ناګهانه راشي

وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝ فَيَقُوْلُوْا هَلْ نَحْنُ مُنْظَرُوْنَ ۝

او حال دا چې دوئ | به نهٔ پوهیږی | نو وائی به دوئ | آیا مونږ ته | مهلت ملاویدې شی نور

چې دوئ بهٔ ترې خبر هم نه وی | نو په هغه وخت کښې به اووائی اچې آیا مونږ له بهٔ مهلت راکړي

اَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ ۝ اَفَرَءَيْتَ اِنْ مَّتَّعْنٰهُمْ

آیا پس عذاب زمونږ ته | تلوار کوی دوئ | آیا نو ستا څه خیال دی | که نفع ورکړو مونږ دوئ ته |

شی؟ انو آیا دوئ زمونږ عذاب زر غواړي اورته اووایه چې که مونږ یو څو کاله دوئ

سِنِيْنَ ۝ ثُمَّ جَآءَهُمْ مَّا كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ۝

ډیر کلونه | بیا راشی دوئ ته | هغه عذاب | چې دې دوئ | چې یرولې کیږی دهغې نه |

په عیش عشرت کښې اوساتو | اوبیا پرې هغه عذاب راشی | دکوم چې ورسره وعدې

مَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يُمَتَّعُوْنَ ۝

نو په کار به رانهٔ شی | ددوئ | هغه څیزونه چې وو دوئ | چې فائده به ورکولې شوه دوئ ته په هغې سره

شوی دی | نو ددوئ هغه عیش عشرت به څه کار ورکړی ؟ .....او مونږ چې کوم کلی

وَمَآ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا لَهَا مُنْذِرُوْنَ ۝ ذِكْرٰى

اونهٔ دی هلاک کړي مونږه | دهیڅ ښار نه | مګر | هغې لره به وو | یرونکی | نصیحت |

تباه کړي دی | نو هغوی ټولو ته د نصیحت دپاره یرونکی [پیغمبران] راغلی وو | او مونږ

وَمَا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ۝ وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ ۝ وَمَا يَنْۢبَغِيْ

اونهٔ وو مونږه | ظالمان | اونهٔ دي نازل کړي | دا قرآن | شیطانانو | اونهٔ ښائی [دا راوړل]

په چا ظلم نه کوو | او دا قرآن پاک شیطانانو نه دی راوړی | او دا دهغوئ دپاره مناسب هم نه

لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿۲۱۱﴾ إِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُولُونَ ﴿۲۱۲﴾

هغوئ لره | اونه طاقت لري هغوئ | بيشكه هغوئ | داوريدلو ددې نه | لرې ساتلې شوي دي |

دی | اونه دا دهغوئ دوس كار دې | هغوئ ددې [پاک كلام داوريدلو [قدر نه] هم محروم دي

فَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ فَتَكُونَ مِنَ الْمُعَذَّبِينَ ﴿۲۱۳﴾ وَأَنْذِرْ

پس مهٔ رابله تهٔ | دالله سره | معبود بل | پس شې به تهٔ | دسزا كړې شوؤ نه | اواوېروه

نو ته الله ﷻ سره دبل معبود بلنه مه كوه | گنی تا ته به عذاب دركړې شی | او نزدې

عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ ﴿۲۱۴﴾ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ

خپلوان ستا | نزدې | او ښكته كړه | وزر خپل | هغه چاته | چې پيروي ئې كړې ده

خپلوان دې [دعذاب نه] اووېروه | اوهغه مومنانو ته خپل اړخ ښكته كړه | كوم چې

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۲۱۵﴾ فَإِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ إِنِّي

دمومنانو نه | پس كه چرې هغوئ نافرماني اوكړه ستا | نو اووايه | بيشكه زهٔ |

ستا په قدم پسې روان دی | اوكه داخلق ستا خبره اونه مني انو ورته اووايه چې زهٔ

بَرِيءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴿۲۱۶﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ ﴿۲۱۷﴾

ذمه وار نهٔ يم | دهغې | چې تاسو ئې كوئ | اوبروسه كوه | په الله غالب رحيم باندې |

ستاسو دكارونونه بې زاره يم | او په قادر اومهربان الله ﷻ باندې بهروسه كوه |

الَّذِي يَرَاكَ حِينَ تَقُومُ ﴿۲۱۸﴾ وَتَقَلُّبَكَ

هغه الله | چې وينی تا | په هغه وخت كښې | چې پاسې تهٔ [تهجدته] | او وينی گرځيدل ستا |

هغه تاگوری څهٔ وخت چې ته [مونځ دپاره] اودرېږې | او په مونځ گزارو كښې ستا ښكته

فِي السّٰجِدِينَ ﴿۲۱۹﴾ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۲۲۰﴾ هَلْ

په سجده كونكو كښې | بيشكه هغه | خاص هغه | ښه اوريدونكې دې | ښه عالم دې | ايا

پورته كيدل هم وينی | هغه ډير ښه آوريدونكې په هر څه پوهه دې | آيازه تاسو

أُنَبِّئُكُمْ عَلَىٰ مَنْ تَنَزَّلُ الشَّيَاطِينُ ﴿۲۲۱﴾ تَنَزَّلُ

خبر دركړم تاسو ته اے خلقو | په هغه چا | چې راكوزيږي پرې | شيطانان | هغه راكوزيږي |

ته اوښايم چې شيطان په چاباندې راكوزيږي | هغوئ په هر

عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴿۲۲۲﴾ يُلْقُونَ السَّمْعَ وَأَكْثَرُهُمْ

په هر دروغژن | گنهگار باندې | رسوي شيطانان | غوږونو ته اوريدل [خبرې] | او اكثر دهغوئ |

دروغژن بدكار باندې راكوزيږي | چې هرې خبرې ته غوږ ايږدي | اودا سې خلق زيات

كَاذِبُونَ ﴿۲۲۳﴾ وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ ﴿۲۲۴﴾ أَلَمْ تَرَ

دروغژنان دي | او شاعران [خلق] چې دي | پيروي كوي دهغوئ | گمراهان خلق | آيا نهٔ وينې تهٔ

دروغژن وی | اوپاتې شول شاعران نو دهغوئ په لاره خو گمراه خلق روان دي | آيا تاته معلومه نه ده

أَنَّهُمْ فِي كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ ۙ وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ

چې بیشکه هغوئ | په هره کنده کښې | سرگردانه گرزي | او بیشکه چې هغوئ | وائي

چې هغوئ په هر میدان کښې سرگردان گرځي | او هغه څهٔ وائي چې په خپله پرې

مَا لَا يَفْعَلُونَ ۙ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا

هغه څه | چې نهٔ ئې کوي هغوئ | مگر | هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل

عمل نه کوي | سوا د هغه خلقو نه چې ایمان ئې راوړي دي | او ښه ښه کارونه کوي | او الله

الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا وَانْتَصَرُوا مِنْ بَعْدِ

نیک | او یاد کړو هغوئ الله | ډیر | او صرف بدل ئې واغستو | پس د هغې نه

ډیر ډیر یادوي | او کله چې په هغوئ ظلم اوکړې شي | نو د هغې نه روستو

مَا ظُلِمُوا ۗ وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنْقَلَبٍ

چې ظلم اوشو په هغوئ | او زر به پوهه شي | هغه خلق | چې ظلم ئې اوکړوا | چې دکوم انجام سره به

خپله بدله نه اخلي | ظالمانو ته به ډیر زر معلومه شي | چې هغوئ دعذاب کوم خراب

يَنْقَلِبُونَ ۟

مخ کیږي هغوئ |

ځائې ته واپس تلونکي دي

## آسان ترجمه قرآن

بیشکه دا قرآن کریم د رب العلمین نازل کړې شوې دې. امانت داره فرښته د هغې سره راکوزه شوې ده (اې پیغمبره!) ستا په زړه باندې نازل شوې دې چه ته په هغه (پیغمبرانو) کښې شامل شې کوم چه خلقو له خبردارونکی دی په داسې عربي ژبه کښې نازل شوې دې چه پیغام له واضح کونکې دې. او د دې (قران) تذکره په مخکښې (آسماني) کتابونو کښې هم موجود ده یا د دې خلقو دپاره دا هیڅ دلیل نه دې چه د بني اسرائیلو علماء د دې نه خبر دي؟ او که مونږ دا کتاب په عجمي خلقو کښې په چا باندې نازل کړې وې، او هغه ئې د دوی مخکښې لوستلې هم وې نو بیا به هم دې خلقو ایمان نه وې راوړې د مجرمانو په زړونو کښې خو مونږ دا هم د غه شان داخل کړې دې دا خلق په دې باندې تر هغه وخته پورې ایمان نه راوړي تر څو چه ئې دردونکې عذاب په سترګو نه وي لیدلې. او هغه به دوی ته داسې ناڅاپه راشي چه پته به هم ورته او نه لګي. بیا به هم دوی وائي چه آیا مونږ ته څه مهلت ملاویدې شي؟ نو آیا دا خلق زمونږ د عذاب دپاره ګړندي کوي؟ او ښه ایې که مونږ د ډیرو کلونو پورې هغوی ته د مزو سامان ورکړې وې. بیا هغه (عذاب) په دوئ دپاسه راشي د کوم نه چه دوئ ویرولې شي. نو د مزو کوم سامان چه دوئ ته ورکولې شي هغې به (د عذاب په وخت) څه فائده ورکولې شي؟ او مونږ یو کلې ددې نه بغیر نه دې هلاک کړې چه (مخکښې) د هغوی دپاره خبردار کونکی موجود وو، چه هغوی نصیحت اوکړي او مونږ داسې خو نه یو چه ظلم اوکړو. او دې قرآن سره شیطانان نه دي نازل شوي نه دا قرآن د هغوی د مطلب دې او نه هغوی

داسې کولې شي. هغوی خو (د وحی) د اورېدلو نه هم بند کړې شوي دي. لهٰذا د الله پاک نه سوا هيڅوک معبود مه منه، ګینې ته به هم په هغه خلقو کښې شامل شې چاته چه به عذاب ورکولې شي. او (اې پیغمبره!) ته خپل نزدې خاندان خبردار کړه اوکوم مومنان چه ستا تابعداري کوي، هغوی سره په تواضع بانډې ملاوېږه. اوکه هغوی ستا نافرماني اوکړي نو اووايه چه : څه چه تاسو کوئ، هغې سره زما هيڅ تعلق نشته. او په هغه (الله) بانډې اعتماد ساته چه ډير اقتدار والا، ډير مهربان دې، اوڅوک چه تا ته هغه وخت هم ګوري چه کله ته (د عبادت دپاره) اودرېږې. او په سجده کونکو کښې ستا ګرځېدل هم ويني. يقين ساتې چه هم هغه ذات دې چه هره خبره اوري او په هر څيز بانډې پوهيږي. آيا زه تاسو ته اوښايم چه شيطانان په چا بانډې نازليږي؟هغوی په هر داسې انسان نازليږي چه سخت دروغژن او ګنهګار وي، هغوی پرې اورېدلې خبره را اچوي اوپه هغوی کښې اکثر دروغژن دي. پاتې شو شاعران خلق، نو په هغوی پسې خو ګمراهان خلق ځي. آيا ته نه ګورې چه هغوی په هره کنده کښې سرګردانه وي؟او دا چه هغوی داسې خبرې کوي چه عمل کوي ئې نه خو هغه خلق مستثنٰی دی چا چه ايمان راوړلو، اوهغوی نيک اعمال اوکړل، او الله پاک ئې په کثرت سره ياد کړو، او په ځان بانډې د ظلم کيدو نه پس ئې د هغې بدل واخستلو او ظلم کونکو ته به زر پته اولګي چه هغوی کوم انجام طرف ته واپس کيږي.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِنَّهٗ لَتَنْزِيْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ [ او دا قرآن د رب العلمين رالیږلې شوې دې ﴿ نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ﴾ دا امانتداري فرښتې راوړې دې ﴿عَلٰى قَلْبِكَ لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ ۝ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِيْنٍ﴾ ستاپه زړه باند په صفا عربئ ژبه کښې چه ته ] هم [منجمله د ويرونکونه شې] يعنې څنګه چه نورو پيغمبرانو خپل امت ته دالله تعالی احکام رسولی دی ته هم ورسوې ﴿وَاِنَّهٗ لَفِيْ زُبُرِ الْاَوَّلِيْنَ﴾ [ او ددې] قرآن [ذکر د وړاندامتونو په ] اسماني [کتابونو کښې] هم [ دې] چه يوداسې شان بيغمبربه وی او په هغه به داسې کلام نازليږی چنانچه دتفسير حقاني په حاشيه باند په دې مقام يو څو خوشخبرئ دتيرو کتابونو تورات او انجيل نه نقل کړی دی وړاند ددې مضمون [وانه لفى زبر الاولين] وضاحت دې يعنې﴿اَوَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ اٰيَةً﴾ [ ايا ددې خلقو دپاره] په دې [ دا خبره دليل نه دې] ﴿اَنْ يَّعْلَمَهٗ عُلَمٰٓؤُا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ پيشګويئ [چه دې لره علماء دبنی اسرائيلو پيژني] چنانچه دوی کښې چه کومو خلقو اسلام راوړې دې هغوی خو په ډاګه ددې اعتراف کوی او کومو چه اسلام نه دې راوړې هغوی هم دخاصوخلقو په وړاند ددې اقرار کوی لکه داولې پارې د ايت [اتامرون الناس بالبر](١) په تفسير کښې ددې بيان راغلې دې او ددغو اقرارکوونکو شمير او ډيروالې دغه وخت که دخبر واحد پورې هم ومنلې شی خو بيا هم دقرائنوپه وجه سره معنوی تواتر ورته حاصل وو او دا دليل قائمول دناخوانده عربو دپاره دې ګنی تعليميافته خلق خوئ په خپله په اصل کتاب کښې ليدلې شی او ددې نه دانه لازميږی چه په تيرو کتابونو کښې تحريف نه دې شوې څکه چه سره دتحريف نه داسې مضامين په ځائ پاتې کيدل زيات حجت دې او دا احتمال چه دا مضامين به دتحريف نتيجه وی په دې وجه غلط دې چه دخپل نقصان دپاره څوك تحريف نه کوی دا مضامين خو دتحريف کوونکو دپاره نقصانی دی لکه چه

(١) ترجمه:- آيا تاسوحکم کوئ خلقو ته د نيکئ او هيرو کړی مو دی زانونه خپل

ظاهره ده تردې ځائ پورې ئې د دعوې د [وانه لتنزيل] دوه نقلي دليلونه بيان کړی دی يعنی په ورومبو کتابونو کښې ددې ذکر او دبنی اسرائيلو پيژندل په دې کښې هم دويم داول دليل دې او اوس مخکښې دانکار کوونکو د عناد دبيان په ضمن کښې ددې دعوې عقلي دليل طرف ته اشاره ده يعنی دقرآن اعجاز مطلب دادې چه داخلق دومره عناد ګردی چه ﴿وَلَوْ نَزَّلْنٰهُ عَلٰى بَعْضِ الْاَعْجَمِيْنَ﴾[که چرې] بالفرض [مونږ دې ] قرآن [ لره په چا عجمي] غير عربی [باند نازل کړې وې] ﴿فَقَرَاَهٗ عَلَيْهِمْ﴾ عجمی [اوبيا هغه ددوی په وړاند دې لره لوستې هم وی] ددۀ معجزه کيدل نورهم زيات واضح کيږی ځکه چه په چا باند چه نازل شو ددۀ په عربۍ ژبه بالکل قدرت نه وې ليکن ﴿مَّا كَانُوْا بِهٖ مُؤْمِنِيْنَ﴾[ داخلق] په وجه دانتهائی ضد [بيا هم منونکی نه وو] وړاند دنبی کريم ﷺ دتسلۍ دپاره ددوی دايمان راوړو نه نااميدی ښکاره کوی يعنی ﴿كَذٰلِكَ﴾[ مونږ دغه شان ] په سختۍ او اصرار سره﴿سَلَكْنٰهُ فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ﴾ [ دې ايمان نه راوړو لره ددې نافرمانو په زړونو کښې غوړزولې دې ] يعنی په کفر کښې او په دې اصرار کوونکی دی او ددې شدت او اصرار په وجه سره ﴿لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ﴾[ داخلق په دې ] قرآن [ايمان نه راوړی ﴿حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ﴾ ترڅو چه سخت عذاب لره] دمرګ په وخت کښې يا په برزخ کښې يا په اخرت کښې [ ونه وينی ﴿فَيَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً﴾ کوم چه به ناڅاپه ددوی مخې ته راشی ﴿وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾ او دوی ته به] د وړاند نه [ خبرهم نه وی بيا] که دغه وخت معلومه کړی نو څه ﴿فَيَقُوْلُوْا هَلْ نَحْنُ مُنْظَرُوْنَ﴾ [وبه وائی چه ايا] په څه طور [مونږ ته به ] څه [ مهلت ملاوشی ] ليکن هغه وخت نه دمهلت دې اونه دايمان دقبليدو او هغه کفارو چه به داسې دعذاب د وعدو او عذابونو مضامين اوريدل نو دانکار په وجه به ئې دعذاب تقاضا کوله مثلا وئيل به ئې [ربنا عجل لنا قطنا(۱) او ان کان هذا هو الحق من عندك فامطر علينا حجارة](۲) يعنی اے الله تعالی که دا ستاد طرف نه حق وی نو په مونږ کاڼی راوروه او مهلت لره کوم چه په عذاب نه واقع کيدو کښې ډيل دې دابه ئې دليل نيولو چه ګوند عذاب نه راځی نو ددې نه معلومه شوه چه مونږ په حقه يو اوس مخکښې ددې جواب دې چه ايا] زمونږ دعذاب وعدې اورې ﴿اَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ﴾[داخلق زمونږ عذاب زر غواړی ] چه ددې منشاء انکار دې يعنی سره ددليل قائميدو بيا هم د يو رينښتونی بزرګ دخبر انکار کوی؟ پاتې شو مهلت لره بناء دانکار مقررول پس دا سخته غلطی ده ځکه چه ﴿اَفَرَءَيْتَ اِنْ مَّتَّعْنٰهُمْ سِنِيْنَ﴾[اے مخاطبه دا خولږ وښايه چه که مونږ دوی لره ] ترڅو کالو پورې [په عيش کښې پاتې کړو﴿ثُمَّ جَآءَهُمْ مَّا كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ﴾ بيا چه دکوم ] عذاب [ددوی سره ] وعده ده هغه ددوی په سر راشی ودريږی﴿مَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يُمَتَّعُوْنَ﴾ نو ددوی دغه عيش به په څه کار راشی] يعنی داعيش په کوم چه دوی ته مهلت ورکړې شوې دې په دې سره ددوی په عذاب کښې څه سپکوالې يا کمې نه شی راتلې [ او] ورکول د حکمت په وجه سره ترڅو ورځو پورې خواه کم وی اوکه زيات څه ددوی سره خاص نه دی بلکه تيرو امتونو ته هم مهلتونه ملاو شوی دی چنانچه [﴿وَمَآ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا لَهَا مُنْذِرُوْنَ ذِكْرٰى﴾ څومره کلی] دمنکرانو [چه مونږ ] په عذاب سره [هلاك کړی دی تولو ته دنصيحت

(۱) ترجمه:- اې زمونږه ربه! مونږ ته خپله حصه د حساب دورځې نه وړاندې راکړه.
(۲) ترجمه:- که واقعي دا قرآن کريم ستاد طرفنه وی نو په مونږ باندې دآسمان نه کاڼی راوروه.

دپاره ویرونکي ] پیغمبران [ راغلل ] هرکله چه يې ونه منله نو عذاب نازل شو ﴿وَمَا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ﴾ [ اومونږ ] صورتا هم [ ظالمان نه یو ] مطلب دادي چه په مهلت ورکولو سره چه کوم مقصود دی یعنی حجت پوره کول او عذر ختمول هغه تولو دپاره شو دپیغمبرانو راتلل او پوهول په خپله را هم یو مهلت ورکول دی مگر بیا هم دهلاکت عذاب راغي په دي واقعاتو سره دمهلت ورکولو حکمت هم معلوم شو اومهلت ورکول او په عذاب کښې تضادنه کیدل هم ثابت شو او صورتا ځکه ووئیلې شو چه حقیقتا خو په هیڅ حالت کښې هم ظلم نه وو اوس مخکښې بیا د اول مقصود یعنی داول مضمون [وانه لتنزیل الخ] طرف ته واپسی ده او په مینځ کښې دامضامین دمنکراتو دحالت دمناسبت په وجه ذکر شول او دراتلونکو ایتونو دمضمون نچوړ ددې شبهو دفع کول دی کومې چه د قرآن دحقانیت متعلق وې پس یوه شبهه خو په قرآن دالله تعالی دکلام کیدو او دهغه دطرف په رالیږل شوؤ په منلو باندې ځکه وه چه په عربو کښې د وړاندې نه کاهنان موجود وو هغوی به هم څه مختلف قسم جملې وئیلې نعوذبالله ددوی ﷺ په نسبت به هم څنو کافرانو داسې وئیل [کمافی الدرعن ابن زید](۱) او په بخاری کښې يې دیوې ښځې خبره نقل کړې ده په کومه زمانه کښې چه په نبی کریم ﷺ وحی نازلیدل دڅه وخته پورې ایسار شو نو هغې ښځې ووئیل چه دوی ﷺ لره ددهٔ شیطان پریښودو(۲) ځکه چه کاهنان ته به دشیطان دتعلیم او تلقین نه څه حاصلیدل ددې جواب دې چه دا درب العلمین دطرفه نازل کړې شوې دي ﴿وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ﴾ [او دې لره شیطانانو] کوم چه کاهنانو [ ته] راخی [نه دي راوړې] ځکه چه ددې دوه قوی موانع موجود دی یو ددغو صفت دشیطانت چه ددې په سبب [ دا] قرآن ﴿وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهُمْ﴾ [ ددغو] دحالت [هډو مناسب نه دې] ځکه چه قرآن سراسرهدایت او شیطان سراسر گمراهی ده نه دوی له داسې مضامین ورتلې شی اونه په داسې مضامینو شائع کولو باند ددوی غرض یعنی مخلوق گمراه کول پوره کیدې شی یو مانع خو دا شو [ او] دویم مانع دادې چه ﴿وَمَا يَسْتَطِيْعُوْنَ﴾ هغو [په دې قادر هم نه دی ﴿اِنَّهُمْ﴾ ځکه چه هغه شیطانان] د اسماني وحی ﴿عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُوْلُوْنَ﴾ [داوریدو نه منع کړې شوی دی] چنانچه کاهنانو اومشرکانو ته ددوی پیر یانو دخپلې ناکامئ په خپله اعتراف وکړو ددې دوی نورو ته هم خبر ورکړو چنانچه په بخاری کښې داسې په باب داسلارم دعمر ﷺ(۳) کښې ذکر دی پس دشیطانانو دتلقین خو په هیڅ شان سره احتمال پاتې نه شو او ددې جواب پوره کیدل او دیوې بلې شبهې جواب د سورت ختمیدو ته نزدې به راشی په مینځ کښې د الله تعالی دطرف نه نازلیدلو باندې په طور دتفریع یو مضمون دې یعنی هرکله چه ددې د الله تعالی دطرف نه نازلیدل ثابت دی نو ددې په تعلیم عمل واجب شو او منجمله ددې اهم کار او اعظم توحید دې [ پس ] اے پیغمبره مونږ ددې د وجوب په یوه خاصه طریقه سره تاکید کوو چه مونږ تا مخاطب کوو او وایو چه ﴿فَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾ [ ته د خدائ سر دچا بل معبود عبادت مه کوه ﴿فَتَكُوْنَ مِنَ الْمُعَذَّبِيْنَ﴾ هسې نه چه ته سزا بیا مومې ] حال دادې چه په تاکښې

(۱) الدرالمنثور ج: ۷ ص:۴۰۹

(۲) صحیح البخاري کتاب التهجد ،باب ترك القیام للمریض ج:۱ص:۱۵۱

(۳) صحیح البخاري کتاب المناقب ،باب اسلام عمر بن الخطاب رضی الله عنه ج:۱ص:۵۲۵

نعوذبالله نه دشرك احتمال شته نه دعذاب مگر خلقو ته داخبره ښودل مقصود دي چه هركله د
غيرالله په عبادت ستا دپاره هم دسزا حكم دي نو نور بې چاره په كوم شمير كښې دي؟ دشرك
نه به دوى څنګه نه شي منع كولې او چه شرك وكړي نو دعذاب نه به څنګه بچ شي؟ [ او] په
دې مضمون سره [ ته ] دټولو نه اول ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ [ خپل نزدې خپلوانو لره
وويروه] چنانچه دوى ﷺ ټولوته اواز وكړو جمع ئې كړل او په شرك كولو ئې دالله تعالى دعذاب
نه وويرول لكه چه په احاديثو كښې دى [ او] اوس مخكښې دنبوت ددعوت قبلوونكو او رد
كوونكو سره دمعاملې طرز ښائى يعنى ﴿وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ [ ددې
خلقو سره] خو په مشفقانه [عاجزئ سره مخې ته راځه كوم چه په مسلمانانو كښې داخل شى
ستا په لاره باندې ] خواه [دخاندان وى اوكه دغير خاندان ﴿فَإِنْ عَصَوْكَ﴾ اوكه دا خلق ]
كومو لره چه تا ويرولى دى [ ستاخبره نه منى] او په كفر ټينګ پاتې شى ﴿فَقُلْ إِنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا
تَعْمَلُونَ﴾ [نو ته] صفا [ ووايه چه زه ستاسو د كارونونه بيزاره يم ] په دې دواړو كارونو يعنى
[اخفض اوقل انى] كښې دالله تعالى سره دمحبت او بغض پوره تعليم دى او چرې ددې مخالفينو
دطرف نه د ازار او نقصان خطره مه كوه ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ﴾ [او په خدائ رحيم باند توكل
ساته ﴿الَّذِي يَرَاكَ حِينَ تَقُومُ﴾ هغه ذات چه تالره څه وخت چه ته] دمونځ دپاره [ودرېږې او]
دارنګ دمونځ دشروع كولو نه پس ﴿وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّاجِدِينَ﴾ دمونځ كوونكو سره ستا پاڅېدل
كښيناستل وينى او دمونځ نه علاوه دې هم هغه وينى ګورى څكه چه ﴿إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾
بيشكه هغه [ښه اوريدونكې ښه ليدونكې دې ] پس هركله چه د هغه علم هم كامل دې لكه چه
[يرئك اوسميع عليم] په دې دلالت كوى او هغه په تا مهربان هم دې لكه چه [الرحيم] په دې دلالت
كوى او پوره قدرت والا دې لكه چه د [العزيز ] نه معلوميږى نو هغه خامخا ددې لايق دې چه
توكل پرې اوشى هغه به تاد حقيقى ضرر نه بچ كوى أو متوكل ته چه كوم ضرر رسيږى هغه
صرف دظاهر په اعتبار سره ضرر وى چه لاتد ترې په زرګونو نفعې وى دكومو چه كله په دنيا
كښې كله په اخرت كښې ظهور كيږى اوس مخكښې دكهانت دشبهې دجواب تتمه ده چه اے
پيغمبره خلقوته ووايه چه ﴿هَلْ أُنَبِّئُكُمْ عَلَىٰ مَن تَنَزَّلُ الشَّيَاطِينُ﴾ [ايا زه تاسوته وښايم چه شيطان
په چا نازليږى] واورئ ﴿تَنَزَّلُ﴾ [په داسې خلقو نازليږى ﴿عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ﴾ كوم چه] دوړاندنه
[دروغ ويونكى لوئ بدعمله وى اوكوم چه] دشيطانانو دخبرونو په وخت كښې دهغو شيطانانو
طرف ته ﴿يُلْقُونَ السَّمْعَ﴾ [غوږونه ږدى او] خلقو ته دهغو څيزونو دبيانولو په وخت كښې
﴿وَأَكْثَرُهُمْ كَاذِبُونَ﴾ [هغوى ډير دروغ وائى] چنانچه سفلى عاملانو لره اوس هم په دې حالت
كښې ليدې شى او وجه ددې داده چه دفائده اخستونكې او فائده وركوونكې په مينځ كښې
مناسبت ضرورى دې نو دشيطان شاګرد به هم هغه وى كوم چه دروغژن او ګناهګاروى دارنګ
دشيطان طرف ته په زړه سره متوجه هم وى چه بغير د توجه نه استفاده نه شى اخستى كيدې او
چونكه اكثر دا شيطانى عملونه ناتمام وى په دې وجه دا د رنګين كولو او با وقعت كولو دپاره
څه حاشيه پرې هم دګمان او اندازې څيزونه غواړى كوم چه عادتا دكهانت دپاره ضرورى وى او
ددې ټولو خبرو په نبى كريم ﷺ كښې دكيدو څه دلرې احتمال هم نشته څكه چه ددوى
پېښونوالې خو ټولو ته معلوم دى ددوى ﷺ پر هيزګارى او دشيطانانو سره بغض ستا ل خو -
دشمنانو هم منلو او مشهور اومعلوم وو نو بيا دكهانت احتمال كوم ځائ پاتې شو [او] اوس

مخکښې د شاعروالی دشبهې جواب دې چه تاسو ﷺ شاعر هم نه يئ لکه کفارو چه به
وئيل ﴿بَلْ هُوَشَاعِرٌ﴾(١) [ بل هم شاعر] يعنى ددوى ﷺ مضامين خيالي غير واقعي دی اګر چه
منظوم نه دی پس دا احتمال ځکه غلط دې چه ﴿وَالشُّعَرَآءُيَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ﴾[ دشاعرانو په لاره خو
بې لارې خلق ځي] مراد دلارې نه شعر ګوئی ده يعنى خيالي شاعرانه مضامين په نثر يا نظم
کښې وئيل د هغو خلقو طريقه ده کوم چه دتحقيق مسلك نه لرې وی وړاند ددې دعوې
وضاحت دې چه ﴿اَلَمْ تَرَ اَنَّهُمْ﴾[اے مخاطبه ايا تاته معلومه نه ده چه هغه ] شاعران [خلق]
دخيالي مضامينو﴿فِيْ كُلِّ وَادٍ يَّهِيْمُوْنَ﴾ [په هرميدان کښې حيران ټکرې خوړونکی دمضامين په
تلاش کښې [ ګرځي او] کله چه ورته مضمون ملاوشی نو چونکه اکثر د واقعې نه خلاف وی
په دې وجه﴿وَاَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ مَالَا يَفْعَلُوْنَ﴾ [په ژبه باندې هغه خبرې وائي کومې چه کوی نه]
چنانچه دشاعرانو دګپونو يوه نمونه ليکلې شی

اے رشک مسیحا تری رفتار کے قرباں ٹھوکر سے مری لاش کئی بار جلا دی
اے بادصبا ہم تجھے کیا یاد کریں گے اس گل کی خبر تو نے کبھی ہم کو نہ لا دی

اے هغه ذات چه حضرت مسيحا هم دربانذ رشك کوی ستا دتګ نه قربان شم په تندك دهم څو
واره زما کالبوت کښې سا واچوله اے دصبا باد مونږ به ستا څه ياد ساتو تا چرې هم مونږ ته
دهغې ګل خبر رانه وړو.

صبا نے اسکے کوچہ سے اڑا کر خدا جانے ہماری خاک کیا کی

وغيره وغيره تردې چه کله خو دکفرياتو بکواس هم کوی دجواب مطلب دا شو چه دشعر
مضامين چه کوم باب سره هم متعلق دی ټول سراسر غير تحقيقي او خيالي دی په دې وجه
دوی ﷺ ته شاعر وئيل سوا دشاعرانه جنون نه نور څه دی؟ تردې چه اکثر چونکه په نظم کښې
داسې مضامين بيانولې شی په دې وجه الله تعالى نبی کريم ﷺ ته په نظم قدرت هم نه وو
ورکړې او بره چونکه دشاعرانو بدوالې بيان شوې دې چه ددې په عموم کښې په ظاهره ټول نظم
ويونکی راغلل اګر چه ددوی مضامين عين حکمت او تحقيق وی په دې وجه اوس مخکښې
ددوی استثناء فرمائی﴿اِلَّا الَّذِيْنَ﴾ [ البته مګر کوم خلق] چه په دې شاعرانو کښې ﴿اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا
الصّٰلِحٰتِ﴾[ايمان راوړی اوښه ښه کارونه وکړی ] يعنى دشريعت خلاف نه ددوی قول وی اونه
فعل يعنى دهغوی په اشعارو کښې بې هوده مضامين نه وی ﴿وَذَكَرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا﴾[او هغوی [په
خپلو اشعارو کښې] دالله تعالى ذکر ډير وکړو [يعنى دهغوی اشعار ددين په تائيداو دعلم په
اشاعت کښې وی چه داټول دالله تعالى په ذکر کښې داخل دی ] او که په يوشعر کښې په
ظاهره څه نامناسبه مضمون هم وې لکه دچا هجو اومذمت کوم چه په ظاهره داخلاق حسنه نه
خلاف دې نو دهغې وجه هم داده چه﴿وَّانْتَصَرُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا﴾ [دوی پس ددې نه چه په دوی
ظلم شوې دې ] دهغې [بدله اخستې] ده يعنى کافرانو فاسقانو اول دوی ته زباني تکليف
رسولې دی مثلا ددوی هجوئ کړې ده ياځ ددين توهين کړې دې کوم چه دخپلې هجو نه هم
زيات دتکليف سبب دې ياځ دهغوی مال او جان ته ضرر رسولې دې يعنى داخلق ددې نه
مستثنى دی ځکه چه په انتقامي طور کوم شعرونه وئيلې شوی دی په هغې کښې ځنې خو

---

(١) ترجمه:- بلکه دا خويو شاعر کس دې.

مباح دي اوخپې اطاعت او كار دثواب دې [او] تردې پورې درسالت متعلق دشبهاتو جوابونه پوره شول او ددې نه وړاند رسالت په دليلونو سره ثابت شوې وو اوس وړاند دې خلقو ته دعذاب وعده ده كوم چه ددې باوجود دنبوت نه منكر شول او نبى كريم ﷺ ته ازار رسوى يعنى ﴿وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ﴾ [او ډير زر به دې خلقوته معلومه شي كومو چه] دالله تعالى په حقونو يا د رسول الله ﷺ په حقونو يا د بندگانو په حقونو كښې ﴿ظَلَمُوٓا﴾ [ظلم كړې دې] ﴿أَىَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ﴾ چه څنگه] بد او دمصيبت [ځاىٔ ته ددوى واپس تلل دى] مراد ددې نه جهنم دې

**معارف او مسائل**

﴿نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ ۝ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنذِرِينَ ۝ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ۝ وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ ۝﴾

**قرآن د الفاظو او د معنو د مجموعې نوم دې:** دلته ، ﴿بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ﴾ نه معلوميږى چه قرآن هم هغه دې كوم چه عربى ژبه كښې وى د قرآن كريم د څه مضمون ترجمه كه په هره ژبه كښې وى هغې ته قرآن نشى وئيلې او د ﴿وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ﴾ نه په ظاهره دا معلوميږى چه بله ژبه كښې د قرآن كريم څه مضمون هم قرآن څكه بللې شى چه د زُبُر ، نه مراد تورات ، انجيل و غيره آسمانى كتابونه دى چه په عربى ژبه كښې نهٔ وو او بيا هم دا اوفرمائيلې شو چه د قرآن په دغې آسمانى كتابونو كښې هم دې او د جمهور امت په دې باندې عقيده ده چه يواځې د قرآن كريم مضامينو ته هم قرآن كريم وئيلې شى ولې چه د كتاب اصلى مقصود د دې مضامين وى نو په پخوانى آسمانى كتابونو كښې د قرآن كريم د موجود گئ مطلب هم دا شو چه په هغې كښې قرآنى مضامين موجود وو چنانچه د دې تائيد د احاديثو د ډيرو روايتونو نه هم كيږى. د مستدرك حاكم په حواله د حضرت معقل بن يسار رضی الله عنه په روايت رسول الله ﷺ اوفرمائيل ، ما ته سورت بقره ، د ذكر اول نه راكړې شوې دې سورت طه او طوا سين يعنى [ كوم سورتونه چه طس نه شروع كيږى ] او حواميم [ كوم سورتونه چه د حم نه شروع كيږى ] دا ټول راته د موسى عليه السلام د الواح [ تختو] نه راكړې شوې دى ، او سورت فاتحه راته د عرش د لاندې نه راكړې شوې ده — [1] او طبرانى ، حاكم ، بيهقى و غيره د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت كړې دې چه سورت ملك په تورات كښې موجود دې [ الحديث ] [2]

او په سورت اعلى كښې خو پخپله هم قرآن كريم داسې فرمائى [3] ﴿إِنَّ هَٰذَا لَفِي الصُّحُفِ الْأُولَىٰ ۝ صُحُفِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ ۝﴾ [ يعنى دا مضمونونه د حضرت ابراهيم عليه السلام او حضرت موسى عليه السلام په صحيفو كښې هم دى ] په دې بنا د ټولو آيتونو او روايتونو خلاصه دا شوه چه ډير قرآنى مضمونونه په پخوانو آسمانى كتابونو كښې هم موجود وو او خو دا ضرورى نهٔ ده چه دغې مضمونونو ته هم د قرآن نوم وركړې شى چنانچه په امت كښې د دې خبرې هيڅوك هم قائل نهٔ دى بلكه د جمهور امت عقيده دا ده چه قرآن كريم يواځې د الفاظو يا يواځې د معنو نوم نهٔ دې كه څوك د قرآن كريم د مختلفو ځايونو نه څه الفاظ راپو ځاىٔ كړى مثلا داسې اووائى ، ﴿الحمدلله العزيز الرحيم، الذى له

---

[1] ) المستدرك للحاكم رقم الحديث: ۲۰۴۳ كتاب فضائل القرآن باب ذكر فضائل سور، وآية متفرقة.
[2] ) المستدرك للحاكم، كتاب التفسيرباب تفسير سورة الملك رقم الحديث: ۳۷۹۸ و شعب للبيهقي رقم الحديث ۲٤۰٦ و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:۸۵۷۲
[3] ) ترجمه:- دا مضمون په وړاندينو صحيفو كښې هم شته دې يعنى دابراهيم او موسى په صحيفو كښې.

ملك السموات وهورب العلمين خالق كل شئ وهو المستعان﴾ نو دي ته او د قرآن كريم هغې معنو ته چه په نورو ژبو كښې ادا كړې شوې وي قرآن نه شي ونيلې -

**په مونځ کښې د قرآن کريم ترجمه لوستل په اجماع د امت سره ناجائز دي:** په دې وجه د ټول امت په دې باندې اتفاق دې چه په مونځ كښې د فرض تلاوت په ځاې د قرآن كريم د الفاظو ترجمه په اردو، فارسۍ، انګريزی و غيره كښې لوستل كافی نه دی كه مجبوری نه وی، څنو ائموؤ ﷺ نه چې په دې كښې كوم د توسع قول منقول دې د هغوی د دې قول نه رجوع هم ثابته ده.

**د قرآن کريم اردو ترجمې ته د اردو قرآن وئيل جائز نه دي:** په يوه ژبه كښې خالص د قرآن ترجمې نه بې د متن د قرآن نه د دغې ژبې قرآن وئيل ناروا دی داسې قسم قرآن شايع كول او خريد، فروخت ئې كول ټول هر څه ناروا دی، د دې مسئلې پوره تفصيل د احقر په رساله ﴿تحذير الاخوان من تغيير رسم القرآن﴾ كښې بيان كړې شوې دی.

﴿أَفَرَءَيْتَ إِن مَّتَّعْنَٰهُمْ سِنِينَ﴾ په دې آيت كښې دې ته اشاره ده چه په دنيا كښې چا ته اوږد عمر هم وركول د الله تعالى لوئ نعمت دې خو هله چه شكر ئې ادا كولې شي ګنی د ناشكرئ په صورت كښې دا وبال جوړيږی - امام زهری رحمه الله نه منقول دی چه حضرت عمربن عبد العزيز رحمه الله به هر سحر خپله ږيره اونيوله خپل ځان به ئې مخاطب كړو او به ئې فرمائيل ﴿أَفَرَءَيْتَ إِن مَّتَّعْنَٰهُمْ سِنِينَ﴾، بيا به په ژړا شو او دا اشعار به ئې لوستل -

| | |
|---|---|
| نهارك يا مغرور سهو و غفلة | و ليلك نوم و الردي لك لازم |
| فلا انت في الايقاظ يقظان حازم | و لا انت في النوم ناج و سالم |
| و تسعى الى ما سوف تكره غبه | كذلك في الدنيا تعيش البهائم[1] |

**ترجمه:** اې تيروتليه، ستا ټوله ورځ په غفلت او شپه دې په خوب كښې تيريږی، حالانكه خا مخا به ته مرې - نه خو ته په بيدارو خلقو كښې هوښيار او بيداره ئی او نه په اوده كيدونكو كښې په خپل خلاصی باندې تسلی مومی -

ستا كوشش په داسې كارونو كښې صرف كيږی چه انجام به ئې درته زر په يو نا خوښه صورت كښې مخې ته راشی په دنيا كښې ځاروی دغسې ژوند تيروی -

﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ د عشيرة، معنی ټبر او خاندان، چه، الاقربين، ئې اوفرمائيل نو دې نه د ټبر نزدې خپلوان مراد شو، دلته په دې خبره هم غور كول دی چه په رسول الله ﷺ باندې د رسالت تبليغ كول او ويرول پوره امت باندې فرض دی نو دلته د نزدې خپلوانو خاص كول څه مطلب لری ؟ -

مطلب دا دې چه په دې طريقې سره تبليغ او بلنه آسان او اثرناک جوړيږی چه اثر ئې ډير لرې پورې رسی، هغه داسې چه د خپل خاندان خلق كوم چه ورته نزدې وی د دې ډير حقدار هم دې چه په هر خير او ښه كار كښې د نورو نه وړاندې كړې شی او د تعلقاتو او ذاتی واقفيت په بنا باندې دې كښې دروغژن دعويدار نشی ځاې كيدې او د چا رشتينی او اخلاق برتری چه د چا د خاندان په خلقو كښې مشهوره ده نو د هغوی رښتينې بلنه قبلول خپلوانو د پاره آسانه هم ده كله چه نزدې خپلوان د يو ښه تحريک مرستيال جوړ شی نو د هغوی روروليی او امداد هم په پوخ بنياد باندې

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:۱۳ص:۱٤۱

قائم شي ، دغه خاندان د جمعیت په لحاظ سره هم د هغوی په تائید او رورو لیځ باندې مجبور شي ، او کله چه د قریبی [نژدې] خپلوانو او عزیزانو یو چاپیریال د حق او صداقت په بنیادونو باندې تیار شوې دې ، نو امروزه ، ژوند کښې هریو د پاره د دین په حکمونو باندې عمل کول ډیر آسان شی دې نه یو مختصر طاقت جوړشي او نورو ته د بلنې او تبلیغ باعث جوړ شی چنانچه د قرآن کریم په بل یو آیت کښې فرمائي ، ﴿قُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا﴾ ، [خپل خانونه او خپل بال بچ د جهنم د اور نه ساتئ په دې کښې د جهنم نه د بال بچ د خلاصولو ذمه داری د خاندان په هر غړي اچولې شویده چه د عملونو او اخلاقو سمولو آسانه او نیغه لار ده که غور اوکړی شی نو یو انسان پخپله هم د ښو عملونو او اخلاقو پابند نۀ شی جوړیدې او نۀ پرې تینګ پاتې کیدې شی تر څو چه د هغه چاپیریال د هغه سره موافق نۀ وی ، ولې چه په ټول کور کښې که یو کس د مونځ پوره پابندی کول غواړی نو په دې کښې ورته مشکلات راپېښيږی ، نن صبا چه حرامو څیزونو نه ځان ساتل ګران شو نو دهغې وجه دا نۀ ده چه ګنی د دې پرېښول ګران کار دې بلکه په ګنړ تېر کښې چه ټول په یو ګناه کښې اخته وی نو په هغوی کښې د یو کس ځان ساتل ترې ګران وی کله چه دا آیت په رسول الله ﷺ باندې نازل شو نو د خپل خاندان ټول خلق ئې په جمع راؤبلل او حق پیغام ئې ورته واؤرولو ، دغه وخت اګر چه خلقوترې انکار اوکړو لیکن په دمه دمه په اسلام او ایمان کښې داخلیدل ئې شروع شو او کله چه د هغوی ﷺ تره حضرت حمزه رضی الله عنه مسلمان شو نو اسلام ته ښه مضبوطیا حاصله شوه -

**د شعر تعریف**:: ﴿وَٱلشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ ٱلْغَاوُۥنَ﴾ ، په اصل لغت کښې شعر هر هغه کلام ته وئیلې شی چه پکښې خالص خیالی او غیر تحقیقی مضمونو نه بیان کړې شوې وی ، پکښې ، بحر ، وزن ، ردیف ، او قافیې هیڅ شرط نۀ وی د منطق په فن کښې هم داسې مضمونونه ادله شعریه او قضایا شعریه بللې شی په اصطلاحی شعر او غزل کښې هم چونکه عموما د خیالاتو غلبه وی خکه د شاعرانو په اصطلاح کښې موزون مقفی [ د وزن او قافې والا ] کلام ته شعر اووئیلې شو ځنې مفسیرینو رحمهم الله قرآنی دا آیتونه ﴿بَلْ هُوَ شَاعِرٌ﴾(۱) ﴿شَاعِرٍ مَّجْنُونٍ﴾(۲) ﴿شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِۦ﴾(۳)، و غیره د اصطلاحی شعر په معنی اخستې دی یعنی د مکې کافرانو به رسول الله ﷺ ته شاعر وئیلو چه کلام به ئې وزن او قافیه لرله . لیکن ځنو ترې دغه مطلب خکه نۀ دې اخستې چه د هغوئ کلام وزندار او قافیه دار نۀ وو او عرب هم شاعران وو چه د شعر د طرز او طریقې نه واقف وو بلکه د شعر نه د هغوئ [ مشرکانو ] مطلب خیالی کلام او مضمون پیش کول مراد وو او دې نه ئې اصلی مقصد هغوئ ﷺ ته دروغژن وئیل وو ولې چه شعر د دروغو په معنی کښې هم استعمالیږی او شاعر ته دروغژن وئیلې شی خکه د دروغو دلیلونو ته شعری دلیلونه وئیلې شی نو د مکې کافرانو به هغوئ ته شاعر په دې معنی سره وئیل اصطلاحی شاعر ورته ئې خکه نۀ شو وئیلې چه هغوئ پخپله شاعران وو یو عجمی ورته په دې وجه شاعر نۀ شو وئیلې نو دوئ به ورته څنګه شاعر وئیلې وو ولې چه قرآن کریم خو داشعارو مجموعه نشی کیدې - خلاصه دا شوه چه

(۱) ترجمه:- بلکه دا خویو شاعر کس دې
(۲) ترجمه:-ددې پوره آیت مبارك ترجمه داده:- او وئیل به ئې چې آیا مونږ خپل معبودان د یو دیوانه شاعر دپاره پرېږدو.
(۳) ترجمه:- دا شاعردې ، مونږ دده د مرګ په انتظار کښې یو.

ځکه وزندار او قافیه دار کلام ته شعر وئیلې شي دغه شان اټکلي او تخمیني کلام ته هم شعر وئیلې شي چه د منطقیانو اصطلاح ده –

﴿وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ﴾ په دې آیت کښې د شعر نه مراد اصطلاحي شعر دې چنانچه کله چه دا آیت شریف نازل شو نو حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه حسان بن ثابت رضي الله عنه او کعب بن مالک رضي الله عنه حاضر شو کوم چه په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې مشهور شاعران وو په ژړا کښې ئې رسول صلى الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چه ، دا آیت د شعر په باره کښې نازل شوې دې او مونږه هم شعر وایو . هغوئ صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائیل چه ، دآیت آخري برخه اولولئ (١) ، د دې مطلب دا وو چه ستاسو شعرونه بې هوده او غلط مقصد د پاره نۀ وی ځکه تاسو په هغې استثنا کښې داخل یئ کومه چه د آیت په آخر کښې بیان شوې ده په دې وجه مفسرین فرمائی چه په اول د آیت کښې د مشرکانو شاعران مراد دی ولې چه ګمراه خلق سرکش شیطانان او نافرمانه پیریان هم د دوئ د شعرونو تابعدار وو او هم دا به ئې روایت کول [ فتح الباری ] (٢)

**په اسلامي شریعت کښې د شعر او شاعرئ درجه:** د ذکرشوو آیتونو د شروع نه د شعر او شاعرئ سخته بدی معلومیږی او دا هم چه الله تعالی ئې نه خوښوی مګر په آخر د سورت کښې کومه استثناء چه راغلې ده د هغې نه دا ثابتیږی چه هر قسم شعر خراب نۀ دې هغه شعر بد او خراب دې چه په کښې د الله تعالی نافرمانی ، د الله تعالی د ذکر نه ایسارول دروغ پکښې وی په ناحقه د چا بدی او سپکاوې پکښې بیان شوې وی یا د بې حیایئ خبرې او بې حیایئ ته پکښې راپارول وی کوم شعرونه چه د دې قسمه خرابیانو نه پاک وی هغې لره الله تعالی د ﴿إِلَّا الَّذِينَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ الایه ، په ذریعه مستثنی کړیدی او ښې شعرونه خو عبادت او ثواب ځکه ګنړلې شی چه پکښې حکیمانه مضمونونه او وعظ و نصیحت وی لکه د حضرت ابئ بن کعب رضي الله عنه روایت دې ، ان من الشعرلحكمة ، [ ښې شعرونه حکمت وی ] – [بخاری ] (٣) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلی دی چه د حکمت نه مراد رشتیا خبره ده کومه چه د حق مطابق وی (٤) –

ابن بطال فرمائیلی دی – په کوم شعر کښې چه د الله تعالی وحدانیت ، د هغه ذکر ، اسلام سره مینا محبت بیان شوې وی هغه شعر پسندیده او ستائیلې شوې دی او په ذکر شوی حدیث کښې هم دغسې شعر مراد دې او په کوم شعرکښې چه دروغ اوفحش بیان وی هغه خراب دې (٥) ، د دې زیات تائید د دې روایتونو نه کیږی-

① عمر بن الشرید رحمه الله د خپل باباجی نه روایت کوی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم زما نه د ه ، امیه بن ابی الصلت ، ترسلو قافیو پورې دا اشعار واوریدل -

② مطرف رحمه الله فرمائیلې دی ما د کوفې نه بصرې پورې حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه سره سفر اوکړو او په هر منزل [ پړاؤ ] به هغه شعرونه آؤرول -

(١) مصنف ابن ابی شیبة رقم الحدیث : ٢٦٠٥١

(٢) فتح الباری کتاب الأدب باب ما یجوز من الشعر والرجز إلخ ج: ١٧ ص: ٣٣٧

(٣) صحیح البخاري کتاب الأدب ،باب ما یجوز من الشعر والرجز إلخ ج:٢ص:٩٠٨

(٤) فتح الباری ج: ١٧ ص: ٣٣٨

(٥) شرح ابن بطال ج: ١٧ ص: ٣٩٦ کتاب الأدب ما یجوز من الشعر والرجز إلخ .

③ طبري رحمه الله د لويو صحابه كرامو رضي الله عنهم او لويو تابيعينو رحمهم الله په باره كښې فرمائيلي دي چه هغوئ به شعرونه وئيل او آوريدل.

④ ابويعلى د ابن عمر رضي الله عنه په مرفوع روايت سره نقل كړي دي چه شعر يو داسې كلام دې چه د ښه او مفيد مضمون شعر ښه او د خراب او د ګناه د مضمون شعر بد او خراب دې [ فتح الباري ] (١)

په تفسير قرطبي كښې دي چه د مدينې منورې د لسو مشهورو فقهاؤ څخه عبيد الله بن عتيبه بن مسعود مشهور قادرعلى الكلام شاعر وو او د قاضي زبير بن بكار شعرونه په يو مستقل كتاب كښې جمع وو ، بيا قرطبي ليكلي دي چه ابو عمر اوفرمائيل چه په ښو مضمونونو باندې مشتمل اشعارو ته اهل علم او اهل عقل خلق بد او خراب نشي وئيلې ، ولې چه لوئ صحابه كرام رضي الله عنهم چه د دين پيشوايان وو په هغې كښې هيڅوک هم داسې نشته چه په خپله به ئې شعر نۀ وي وئيلې يا د نورو شعرونه به ئې آوريدلي ، لوستلي او خوښ كړي نۀ وي (٢) - په كومو روايتونو كښې چه د شعرو شاعرۍ بدي بيان شوې ده د هغې مقصود دا دې چه په شعر كښې دومره مصروف او بوښت شي چه د الله تعالى د ذكر عبادت او قرآن نه غافله شي ، امام بخاري رحمه الله دې له په يو مستقل باب كښې بيان كړيدى او په دې باب كښې د حضرت ابى هريره رضي الله عنه دا روايت ئې نقل كړې دې ﴿لان يمتلىء جوف رجل قيحا يريه خير من ان يمتلىء شعرا﴾ (٣) [ څوک چه په خولې سره خپله خيټه ډكوى دا د هغې نه ښه وى چه په شعر سره خيټه ډكه كړى ] -

امام بخاري رحمه الله فرمائيلي دي چه زما په نزد د دې معنى دا ده چه شعر كله چه د الله تعالى په ذكر ، په علم او قرآن كښې په مشغوليدو باندې غالب راشي او كه شعر مغلوب وي نو بيا بد نۀ دى دغه شان هغه اشعار چه پكښې فحش مضمونونه وي هغه د امت په اجماع سره حرام دي او دا څه شعرسره مخصوص نۀ دي او كوم نثر كلام چه داسې وى د هغې هم دغه حكم دې [ قرطبي ] (٤)

حضرت عمر بن الخطاب خپل ګورنر عدى بن نضله د هغه د منصب نه څكه برخاست[الرې] كړو چه فحش شعرونه به ئې وئيل ، حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله عمرو بن ربيعه او ابى الاحوص له هم په دې جرم كښې جلاوطن كړى وو عمروبن ربيعه توبه كړه چه قبوله كړې شوه [ قرطبي ] (٥)

**د الله تعالى او آخرت نه غافله كوونكي هر علم او فن خراب دې** :: ابن ابى جمره رحمه الله فرمائيلي دي چه ډيره قافيه بازي او هر داسې علم او فن چه زړونه سختوى د الله تعالى د ذكر نه د آوريدو او د مخ ګرخولو سبب ګرځي ، په عقيدو كښې شكونه شبهې او روحاني بيمارئ پيدا كوى د هغې هم حكم د خرابو شعرونو په شان دې -

---

(١) فتح الباري ج: ١٧ ص: ٣٣٨
(٢) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١٣ ص:١٤٧، ١٤٨ ]
(٣) صحيح البخاري كتاب الأدب ، باب مايكره ان يكون الغالب علي الإنسان الشعر إلخ [ ج:٢ ص:٩٠٩ ]
(٤) تفسير القرطبي [ ج:١٣ ص:١٥١ ]
(٥) تفسير القرطبي [ ج:١٣ ص:١٤٩ ]

**د تابعدارئ کوونکو ګمراهي اکثر د هغوئ د پیشوایانو د ګمراهئ نښه وي:** ﴿وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ﴾ په دې آیت کښې په شاعرانو باندې عیب لګولې شوې دې چه د هغوئ تابعداران ګمراهان دي، دلته دا سوال پیدا کیږی چه د تابعدارانو د ګمراهئ الزام د هغوئ په پیشوایانو باندې ولې لګی ؟ - جواب ئې دا دې چه د تابعدارانو ګمراهی عموما د هغوئ د پیشوایانو د ګمراهئ نښانی وی لیکن سیدی حضرت حکیم الامت تهانوی رحمه الله فرمائیلی دی چه دا هله چه د تابع په ګمراهئ کښې د پیشوا څه دخل وی ، مثلا پشوایان خپلو تابعدارانو لره د دروغو او غیبت نه د ساتلو څه غم فکر نۀ کوی د هغه په مجلس کښې چه داسې خبرې کیږی هغه ترې نه څه منع نۀ کوی او په دې وجه تابع کښې هم دغه عادت پریوځی نو په داسې صورت کښې د تابع ګناه د پیشوا د ګناه نښه ګڼړلې شی لیکن که د پیشوا ګمراهی په یو وجه او د تابع ګمراهی په بله وجه وی نو د تابع دا ګمراهی به د پیشوا د ګمراهئ نښه نۀ وی مثلا څوک په عقیدو او مسئلو کښې د یو عالم تابعداری کوی او په هغې کښې هیڅ ګمراهئ نۀ وی په عملونو او اخلاقو کښې د دغې عالم تابعداری نۀ کوی هم په هغې کښې دې ګمراه دې نو د هغه عملی او اخلاقی ګمراهی د دغې عالم په ګمراهئ باندې دلیل نۀ وی ، والله سبحانه و تعالی اعلم -

تمت سورة الشعراء بعون الله وفضله لنصف الربيع الثاني ١٣٩١ هجري
يوم الخميس ويتلوها انشاء الله تعالى سورة النمل

آیاتونه ۹۳ — سورة النمل مكية وهي ثلاث وتسعون اية وسبع ركوعات — ركوع گاني ۷

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

شروع كوم په نوم د الله چه ډېر مهربان زيات رحم كونكې دې

طٰسٓ ۚ تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ ۙ ① هُدًى

ط. س | دا | آيتونه دقرآن دى | او دكتاب مبين [حق بيانونكى] دى | لارښودونكې دې |

ط س دا د قرآن پاك او روښانه كتاب آيتونه دى | مومنانو دپاره

وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ ② الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ

او زيرې دې | دپاره دمومنانو | هغه [مومنان] | چې قائيموى | مونځ | او وركوى

هدايت او زيرې دې | هغه كوم چې دمونځ پابندى كوى | اوزكوة وركوى | او

الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ③ اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

زكات | او هغوئ | په آخرت باندې | خاص هغوئ يقين لرى | بيشكه هغه كسان | چې ايمان نه راوړى

په آخرت باندې پوخ يقين ساتى | كوم كسان چې په الله ﷻ او په آخرت ايمان نه راوړى

بِالْاٰخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ اَعْمَالَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُوْنَ ④ ط

په آخرت باندې | ښائيسته كړى دى مونږ | دپاره دهغوئ | عملونه دهغوئ | پس هغوئ | سرگردانه گرځى

مونږ دې خلقوته خپل [بد] عملونه ښائسته كړى دى | نو هغوئ سرگردان گرځى

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ وَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ

دا هغه خلق دى | چې ددوئ دپاره | سختى دعذاب ده | او دوئ | په آخرت كښې |

هم دا كسان دى چې دوئ دپاره سخت عذاب مقرر شوې دې | او هم دوئ به آخرت كښې

هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ⑤ وَاِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ مِنْ لَّدُنْ

هم دوئ تاوانيان دى | | او بيشكه ته چې نې | خامخا ملاويږى تاته | دا قرآن | دطرفه

تولو نه زيات تاوانيان وى | تولو نه زيات تاوانيان وى | اوتاته داقرآن پاك د حكيم او عليم ذات د

حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ ⑥

دحكيم او عليم نه |

طرفنه دركولې شى |

**آسان ترجمه قرآن**

طٰسٓ. دا د قرآن كريم او يو داسې كتاب آيتونه دى كوم چه حقيقت ښكاره كونكې دې، دا د هغه مومنانو دپاره تول هدايت دې او خوشخبرى سره راغلې دې. كوم چه مونځ قائموى، او زكوة ادا كوى. او هم هغوى دى چه په آخرت باندې يقين لرى. حقيقت دا دې چه كوم خلق په آخرت باندې ايمان نه لرى، مونږ د هغوى اعمال د هغوى په نظر كښې مزيدار كړې دى، په دې وجه هغوى سرگردانه گرځى. هم دا

هغه خلق دی چه دچا دپاره بد عذاب دی، او هم هغه دی چه په آخرت کښې د ټولو نه زيات نقصان اوچتونکی دی. او (اې پيغمبره!) بيشکه تاته دا قرآن د هغه (الله پاک) د طرفه درکولې شي چه د حکمت هم مالک دې، د علم هم مالک دې.

## خلاصه تفسير

﴿طٰسٓ﴾[طس] ددې معنی خو الله تعالی ته معلومه ده ﴿تِلْكَ اٰيٰتُ﴾ [دا] ايتونه کوم چه په تاسو نازلولې شی ﴿الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ﴾[ايتونه دی دقرآن او ديو واضح کتاب] يعنی په دې کښې دوه صفتونه دی قرآن کيدل اوواضح کتاب کيدل [دا] ايتونه ﴿هُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [دايماندارو دپاره] موجب د[هدايت دې او] په دې هدايت باندې دنيکې جزا [ خوشخبری اؤرونکی دی کوم] مسلمانان [چه داسې دی چه] عملا هم په هدايت چليږی ﴿الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ﴾ چنانچه [ دمونځ پابندی کوی ] کوم چه په بدنی عبادتونو کښې دټولو نه لوئ دې ﴿وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ﴾[ اوزکات ورکوی ] کوم چه په مالی عبادتونو کښې دټولونه لوئ دې [ او دعقيدې په لحاظ سره هم هدايت موندونکی دی چنانچه ﴿وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ﴾[ هغوی په اخرت باندې پوره يقين لرونکی دی] دا خو دايماندارو صفت دې او﴿اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ﴾[ کوم خلق چه په اخرت باند ايمان نه لری ﴿زَيَّنَّا لَهُمْ اَعْمَالَهُمْ﴾ مونږ دهغوی ] بد[ عملونه دهغوی په نظرونو کښې غوره ښکاره کړی دی  پس هغوی] په خپل جهل مرکب کښې دحق نه لرې ﴿فَهُمْ يَعْمَهُوْنَ﴾[سرګردانه دی] چنانچه نه دهغوی عقيدې ټيك دی نه عملونه په دې وجه چې هغوئ قرآن هم نه منی نو څنګه چې قرآن والو ته زيرې اؤرول وو دغه شان منکرانو ته دعذاب وعدې هم اؤروی چه﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ﴾ [دا هغه خلق دی کومو دپاره چه] په دنيا کښې دمرګ په وخت کښې هم﴿لَهُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ﴾ [سخت عذاب] کيدونکې [ دې ﴿وَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ﴾ او هغه خلق په اخرت کښې ] هم [په سخته خساره کښې دی] چه چرې به ئ نجات نه وی [ او] اګر چه دا منکران قرآن نه منی مګر﴿وَاِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ﴾ [تاته په يقين سره يو لوئ حکمت والا علم والا دطرف نه قرآن درکولې شی] ته ددې نعمت په خوشحالئ کښې ددوی په انکار سره مه غمژن کيږه

## معارف او مسائل

﴿زَيَّنَّا لَهُمْ اَعْمَالَهُمْ﴾ يعنی چه څوک په آخرت باندې ايمان نهٔ راوړی مونږه د هغوئ خراب عملونه د هغوئ په نظر کښې ښائسته کړيدی څکه هم دغه عملونه غوره ګڼړی او په ګمراهئ کښې اښته وی او ځنې مفسرينو ﷺ د دې آيت دا تفسير کړې دې چه دلته د﴿اَعْمَالَهُمْ﴾ نه مراد نيک عملونه دی مطلب ئې دا دې چه مونږ خو نيک عملونه ښائسته کړی د دوئ مخې ته ايخی وو خو دغې ظالمانو دې ته التفات اونکړو بلکه په کفر او شرک کښې اښته پاتې شو څکه په ګمراهئ کښې بې درګه شو خو رومبې تفسير زيات واضحه دې اول خو څکه چه ښائسته کول عموما د خرابو عملونو د پاره راغلې دی مثلا فرمائی ::

﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ﴾(1)

1) ترجمه:-خلقو ته د ښکلو څيزونو محبت ښکلې ښکاری.

دا شان ﴿زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا﴾(۱) ﴿زَيَّنَ لِكَثِيْرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ قَتْلَ اَوْلَادِهِمْ﴾(۲)
او ښو عملونو د پاره د دې استعمال ډير کم دې لکه فرمائي ﴿حَبَّبَ اِلَيْكُمُ الْاِيْمَانَ وَزَيَّنَهٗ فِيْ قُلُوْبِكُمْ﴾(۳) الايه ، دغه شان په بل آيت کښې ، اعمالهم ، [ د دوئ عملونه ] لفظ هم په دې دلالت کوی چه دې نه بد عملونه مراد دی نيک عملونه ترې ځکه مرادنهٔ دی چه د کفارو عملونه خراب دی ښهٔ هيچرې نهٔ دی -

اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِاَهْلِهٖٓ اِنِّيْٓ اٰنَسْتُ نَارًا ؕ

| کله چې | اووئيل موسی | کوروالو خپلو ته | چې بيشکه ما | اوليدو | وور

| هرکله چې موسی ﷺ خپل کور والا ته اووئيل اچې ما اور اوليدلو

سَاٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ اٰتِيْكُمْ بِشِهَابٍ قَبَسٍ

زر به راوړم زهٔ تاسو ته | دهغه ځائې نه | څه خبر | يا به راوړم تاسو ته | لمبه لګيدلې

زهٔ ستاسو دپاره دهغې نه څهٔ خبر راوړم | يا به يوه بله سکروټه راوړم اچې تاسو ترې نه ګرمی

لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ ۝ فَلَمَّا جَآءَهَا نُوْدِيَ

دپاره ددې | چې تاسو تاوده شی | نو هر کله چې | راغې هغه هغې وور ته | آواز اوشو |

حاصله کړئ | کله چې موسی ﷺ هلته اورسيدو | نو آوازورته اوشو | چې کومې [فرښتې] اور

اَنْۢ بُوْرِكَ مَنْ فِي النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ

چې برکتناک کړې شوې دې | هغه څوک | چې په دې وور کښې دې | او هغه څوک | چې چاپيره ددې دې

کښې دننه دی | هغه هم برکتی دی | اوکومې چې ددې نه ګيرچاپيره دی | هغه هم مبارکې دی

وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ يٰمُوْسٰٓى اِنَّهٗٓ اَنَا اللّٰهُ

او پاکی ده الله لره | چې پالونکې دمخلوقاتو دې | اے موسی | شان دادې | چې زهٔ الله يم |

اوالله پاک د ټولو مخلوقاتو پالونکې دې | اے موسی يقيناً هم زهٔ په حقيقت کښې د عبادت لائق يم

الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝ وَاَلْقِ عَصَاكَ ؕ فَلَمَّا رَاٰهَا

غالب [او] | حکمت والا يم | اواوغورزوه | همسا خپله | نو هر کله چې | اوليدله هغه هغه همسا |

غالب او دحکمتونو خاوند يم | اوته خپله همسا اوغورزوه | نو کله چې موسی ﷺ اوکتل

تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّلَمْ يُعَقِّبْ ؕ

چې خوزيدله | لکه چې هغه | انړې مار دې | نو اوګرځيدو | شاکونکې | اوراونهٔ ګرځيدو بيرته

نوهغه داسې خوزيده | لکه چې ماروی | نوپه شا طرف ته ئې منډه کړه | اوروستو ئې اونهٔ کتل

(۱) ترجمه:- دنياوی عيش وعشرت کافرانو ته ډير ښکلې معلوميږی.
(۲) ترجمه:- د ډيرو مشرکانو په خيال کښې ددوئ معبودانو خپل اولاد لره قتل کول ښه فعل ګرولې دې.
(۳) ترجمه:- الله تعالی تاسو ته د ايمان محبت درکړو او داني ستاسو په زړونو کښې ډير ښکلې کړو.

يٰمُوْسٰى لَا تَخَفْ ۫ اِنِّيْ لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُوْنَ ۝١٠

اے موسیٰ | مه یریږه | بیشکه زهٔ چې یم | نهٔ یریږیٔ | زما په دربار کښې | رسولان

[مونږ ورته آواز اوکړو چې] ائې موسیٰ! ته مه ویریږه! زما په دربار کښې پیغمبران نه ویریږي

اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًاۢ بَعْدَ سُوْۤءٍ

مګر | هغه څوک | چې ظلم کړې وی | بیا ئې | بدل کړو [عمل خپل] | په نیکیٔ سره | روستو د بدیٔ نه

البته چا چې ظلم کړې وی | بیا د بدئی په ځائې نیک کارونه کوی

فَاِنِّيْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝١١ وَاَدْخِلْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ

نو بیشکه زهٔ | ښښونکې | مهربانه یم | او ننباسه | لاس خپل | په ګریوان خپل کښې | راا وبهٔ وځی

نوزهٔ ښښونکې مهربان یم | او ته خپل لاس ګریوان ته داخل کړه | نو بغیر د څه عیب نه به

بَيْضَاۗءَ مِنْ غَيْرِ سُوْۤءٍ ۫ فِيْ تِسْعِ اٰيٰتٍ اِلٰى فِرْعَوْنَ

تک سپین [خلیدونکې] | بې د څه تکلیف [عیب] نه | په نهه | ښنبو [معجزو] کښې | [سره ددې دوه نخښو] فرعون ته

تک سپین راوځی | دا په هغه نهو معجزو کښې ده | چې فرعون او ددهٔ

وَقَوْمِهٖ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ۝١٢ فَلَمَّا

او قوم دهغه ته [دتلو دپاره] | بیشکه هغویٔ | دي یو قوم | فاسقان [نافرمانه] | نو هر کله چې

دقوم دپاره دی | ځکه چې هغویٔ دحد نه وړاندې تیریدونکی خلق دی | نوڅه وخت

جَاۗءَتْهُمْ اٰيٰتُنَا مُبْصِرَةً قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝١٣

راغلې هغویٔ ته | ښنبې زمونږه | ښکاره | نو اووئیل هغویٔ | دا جادو دي | ښکاره

چې فرعونیانو ته زمونږ روښانه معجزې راورسیدې | نو هغویٔ اووئیل چې داخوښکاره جادو دي

وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا

او انکار اوکړو هغویٔ | په دې ښنبو | او یقین ئې راغلې ووٌ په دې | دنفسونو دهغویٔ | په وجه دظلم

اوظلم او کبر په وجه ئې د هغې نه انکار اوکړو | د دې باوجود چې په زړونو کښې ئې پرې یقین

وَّعُلُوًّا ۭ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ۝١٤

او دسرکشیٔ | پس اوګوره | څه رنګې ووٌ | انجام | دفساد کونکو

راغلې ووانو | ته اوګوره | چې ددغې مفسدانو انجام څهٔ شو ؟ |

## آسان ترجمه قرآن

هغه وخت یاد کړه چه کله موسیٰ علیه السلام د خپل کور والو ته وئیلې وو چه : ما ته یو اور ښکاره شوې دې. زهٔ اوس تاسو ته د هغه ځائې نه څه خبر راوړم. یا به بیا تاسو ته د اور یو شعله راوړم. چه تاسو په هغې باندې تودهٔ شئ پس کله چه موسیٰ علیه السلام اور ته راورسیدلو نو هغوی ته آواز ورکړې شو چه : برکت دې وی په هغوی باندې هم کوم چه په دې اور کښې دننه دې، او په هغه باندې هم کوم چه د دې په خوا کښې دې او پاک دې الله پاک چه د ټولو جهانونو رب دې اې موسیٰ! خبره دا ده چه زهٔ الله پاک یم، ...

اقتدار والا، لوئې حکمت والا، او لږه خپله همسا لاندې گزار کړه. بیا چه کله هغوی همسا اولیده چه هغه داسې حرکت کوی لکه چه یو مار وی نو هغوی ترې نه اوتختیدل، او په شا ئې هم او نه کتل. (ارشاد اوشو:) موسٰیؑ ویرېږه مه، د چا نه چه پیغمبر جوړولې شی، هغه زما په دربار کښې ویرېږی نه مگر دا چه چا ظلم کړې وي. بیا د هغه بدئ نه پس هغې لره بدلولو سره ښه کار اوکړی، نو زه ډیر بخښنه کونکې، ډیر مهربان یم او خپل لاس په خپل گریوان کښې داخل کړه، نو هغه به بغیر د څه بیمارئ نه سپین راوځی. دا دواړه خبرې د هغه نهه نخښو نه دی کومې چه فرعون او د هغه د قوم طرف ته (ستا په ذریعه) لیږلې کیږی حقیقت دا دې چه هغوی نافرمان خلق دی. بیا داسې اوشوه چه کله هغوی ته زمونږ نخښې اورسیدلې چه هغه سترگې پرانستونکې وې، نو هغوی اووئیل چه: دا خو ښکاره جادو دې. او اگر چه د هغوی زړونو ته د هغې (د صدق) یقین شوې وو، خو هغوی د ظلم او تکبر د وجې نه انکار اوکړو. اوس اوگوره چه د هغه فساد کونکو څه انجام شو؟

## خلاصه تفسیر

دهغه وخت قصه ذکرکړه ﴿اِذْ﴾ [ هرکله چه] دمدین نه په راتلوکښې کوه طور ته نزدې دشپې دیخنئ په وخت راؤرسیدو او دمصر لار ترې نه هم غلطه شوې وه ﴿قَالَ مُوْسٰى﴾ [ موسیٰؑ] ﴿لِاَهْلِهٖٓ اِنِّیْٓ اٰنَسْتُ نَارًا﴾ [ خپل کور والو ته ووئیل چه ما] دطور طرف ته [ اور لیدلې دې ﴿سَاٰتِیْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ﴾ زه اوس ] څم [دهغه ځائ نه ] یا څو دلارې [څه خبر راوړم ﴿اَوْ اٰتِیْكُمْ بِشِهَابٍ قَبَسٍ﴾ یا تاسو ته ] دهغه ځائ نه [ داور لمبه په څه لرگی وغیره کښې لگولې راوړم ﴿لَّعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ﴾ چه تاسو ورته گرم شئ: ﴿فَلَمَّا جَآءَهَا﴾ پس هرکله چه د هغې ] اور﴿ ﴾[ خواته راورسیدو نو دهٔ ته] دالله تعالی دطرف نه ﴿نُوْدِیَ اَنْۢ بُوْرِكَ مَنْ فِی النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ [ اواز وکړې شو چه څوك په دې اور کښې دی] یعنی فرښتې [ په ] هغو دې هم برکت وی او څوك چه ددې ] اور[ خواؤشاته دی یعنی موسیٰؑ [ په هغه دې هم ] برکت وی دا دعا په طور د تحیتی او سلام ده لکه ملاقاتیان چه یویل ته سلام کوی چونکه موسیٰؑ پوه نه وو چه دانور دالله تعالی انوار دی په دې وجه ئې په خپله سلام ونه کړې شو نو دالله تعالی دطرف نه دالفت سلام ارشاد شو او فرښتې ملاوول په کښې شاید دې دپاره وی چه لکه څنگه فرښتوته د الله تعالی سلام دخاص قرب علامت وی داسلام هم موسیٰؑ ته دخاص قرب خوشخبری شوه [ او] ددې کاردښودلو دپاره چه دا نور کوم چه په شکل د اور دې په خپله دالله تعالی ذات نه دې ارشاد ئې وفرمائیلو چه﴿وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ﴾ [ الله رب العلیمن ]د رنگ جهتونه مقدار اوحدبندئ وغیره نه [پاك دې] او په دې نور کښې دا څیزونه موندې شی پس دا نور ذات خداوندی نه دې او دموسیٰؑ ذهن که ددې مسئلې نه خالی وی نو دهغه تعلیم دې اوکه دعقلی دلیلونو او صحیح فطرت په بنا دهٔ ته د وړاندې نه معلومه وی نو زیات پو هول ئې دی ددې نه پس ارشاد وشو چه ﴿یٰمُوْسٰٓى﴾ [اے موسیٰ]ؑ ﴿اِنَّهٗٓ اَنَا اللّٰهُ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ﴾ [خبره داده چه زهٔ] کوم چه بې کیفه کلام کوم [الله یم زبردست حکمت والا او] ﴿وَاَلْقِ عَصَاكَ﴾ اے موسیٰؑ ته [خپله همسا] په زمکه [وغورزوه ] چنانچه دهٔ اوغورزوله نو هغه اژدها جوړه شو خوزیده ﴿فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ﴾[ پس هرکله چه دوی دا دغسې حرکت کوونکې ولیده﴿كَاَنَّهَا جَآنٌّ﴾ لکه چه ماروی ﴿وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّلَمْ یُعَقِّبْ﴾ نو دهٔ شاکړه

اوتښتیدو او شاته ئ هم ونه کتل ] ارشاد وشو چه ﴿يٰمُوْسٰى لَا تَخَفْ﴾ [اے موسی علیه السلام [وېرېږه مه] ځکه چه مونږ تاته پیغمبری درکړې ده ﴿اِنِّىْ لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُوْنَ﴾ [او زمونږ په حضور کښې] یعنی دپیغمبرئ دعزت ورکیدو په وخت کښې [پیغمبران ] دادسې ځیزونو کوم چه په خپله ددوی دپیغمبرئ دلیل یعنی معجزات وی[ویره نه کوی ] یعنی تالره هم ویریدل نه دی پکار ﴿اِلَّا مَنْ ظَلَمَ﴾ [البته مگر دچانه چه څه قصور شوې وی ] یعنی لغزش شوې وی او هغه دا لغزش یادوی ویره کوی نو باك نشته لیکن ددې په نسبت هم دا قاعده ده چه که قصور وشی او ﴿ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًا بَعْدَ سُوْٓءٍ﴾ [ بیادبدئ ] کیدو[نه پس دبدئ په ځائ نیك كاروكړی ] تو به وباسی ﴿فَاِنِّىْ﴾ [ نوزۀ] دۀ لره هم معاف کوم ځکه چه زۀ ﴿غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ [ مغفرت والا رحمت والا یم ] دائ ځکه وفرمائیل چه دهمسا په معجزه سره دمطمئن کیدو نه پس چرته خپله قصه دقطبی دقتل یاده کړی او پریشانه شی په دې وجه ئ په دې سره مطمئن وفرمائیل چه ویره ترې نه لاړه شی [او] اے موسی علیه السلام دهمسا ددې معجزې نه سوا یوه بله معجزه هم درکولې شی هغه داچه ﴿وَاَدْخِلْ يَدَكَ فِىْ جَيْبِكَ﴾ [ ته خپل لاس گریوان ته دننه کړه] او بیائ راوباسه نو ﴿تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ﴾ [ هغه به بې دڅه عیب] یعنی بغیر دڅه مرض دبرص وغیره [ نه ] نهایت [روښانه راوځی ] او دا دواړه معجزې ﴿فِىْ تِسْعِ اٰيٰتٍ﴾ دهغو [نهو معجزو سره ] دی دکومو سره چه تالره ﴿اِلٰى فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهٖ﴾ فرعون او دهغه قوم طرف ته ] لیږلې شی ځکه چه ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ﴾ [هغه لوئ دحدنه وتونکی خلق دی ﴿فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ اٰيٰتُنَا﴾ غرض هرکله چه هغې قوم ته زمونږ] ورکړې شوې [ معجزې ورسیدې ] کومې چه ﴿مُبْصِرَةً﴾ [ ډیرې واضحه وې ] یعنی ددعوت په ابتداء کښې ئ دوه معجزې وښودلې بیا به وخت په وخت نورې ښودلې کیدې ﴿قَالُوْا﴾ [ نو هغه خلقو] داتولې ولیدې او بیائ هم [ ووئیل ﴿هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ﴾ چه د صریح جادو دې او] غضب خو دا وو چه ﴿وَجَحَدُوْا بِهَا﴾ دظلم او [تکبرپه وجه ددې ] معجزو[ نه بالکل منکر شول ﴿وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّعُلُوًّا﴾ [ حال دادې چه] ددننه نه [ددوی زړونو په دغو یقین کړې وو ﴿فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ﴾ پس ورگوره چه ځنگه ] بد[ انجام شو ددې فساد کوونکو] په دنیا کښې غرق شول او په اخرت کښې ئ د اورسزا بیاموندہ

## معارف او مسائل

﴿اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِاَهْلِهٖٓ اِنِّىْٓ اٰنَسْتُ نَارًا ۭ سَاٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ اٰتِيْكُمْ بِشِهَابٍ قَبَسٍ لَّعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ﴾

**انسان چه خپلو ضرورتونو د پاره طبعی اسباب اختیاروی نو دا توکل سره هې سمونه نۀ دی** :: په دغه موقع حضرت موسی علیه السلام ته دوه ضرورتونه راپیښ شوی وو یو د لارې تپوس کول چه غلطه کړې وه بل د اور ضرورت ئې وو چه په هغې توده[تاؤده] شی ځکه ئې کوه طور ته د تلو کوشش اوکړو لیکن سره د دې داسې الفاظ او فرمائیل چه په هغې سره خپله بندگی او د الله تعالی نه امیدځرگند کړې دې داسې نۀ چه په خپل مقصد کښې د کامیابئ یقین ئې لرلو او د دې دعوی ئې کوله دې نه معلومه شوه چه د خپلو ضرورتونو پوره کولو د پاره کوشش کول د توکل نه خلاف نۀ دی خو تکیه په خپلو کوششونو نۀ بلکه په الله تعالی باندې کول پکار دی او موسی علیه السلام ته په اور ښکاره کولو کښې هم شائد چه دا حکمت وی کوم سره چه د دوئ دواړه مقصدونه پوره کیدې شو چه هغه

د لارې درک موندل او توديدو د پاره اور حاصلول وو - [ كما في الروح ](۱)
دلته حضرت موسى عليه السلام د جمع صيغې ، ﴿امكثوا﴾ او ، ﴿تَصْطَلُونَ﴾ راوړلې حالانکه دوئ سره صرف خپله بی بی وه د دې مطلب د خپلې بی بی عزت او اکرام ښکاره کول وو څنګه چه په هره ژبه کښې د دې استعمال شته دې چه کس يو وی او صيغه ور د پاره د جمع استعمال کړې شی چنانچه رسول الله ﷺ خپلو ازواجو مطهراتو [ يو يا د دوؤ ] د پاره د جمع صيغه استعمال کړې ده څنګه چه د روايتونو نه ثابت دی -

**په عامو مجلسونو کښې د بي بي د ياديدنه د تخصيص په ځائ په کنائي سره کول زيات غوره دي:** دلته ﴿قَالَ مُوسَىٰ لِأَهْلِهِ﴾ اوفرمائيلې شو ځکه چه لفظ د اهل عام دې چه دې سره خپله بی بی او د کور نور خلق مراد اخستې شی په دې موقعه اګرچه د حضرت موسى عليه السلام سره يواځې خپله بی بی وه خو د هغې د پاره د دې عام لفظ استعمالولو کښې اشاره دې ته ده چه په عامو مجلسونو کښې يواځې د خپلې بی بی ذکر په عامو لفظونو سره کول زيات غوره دی لکه زمونږ پښتو کښې هم وئيلې شی چه ، زما کور والؤ داسې وئيلې دی ،

﴿فَلَمَّا جَاءَهَا نُودِيَ أَنْ بُورِكَ مَنْ فِي النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا وَسُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ يَا مُوسَىٰ إِنَّهُ أَنَا اللَّهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝﴾

**د دې تحقيق چه حضرت موسى عليه السلام اوراوليدلو او د هغې نه ئې يو آواز واؤريدلو:** په قرآن کريم کښې د حضرت موسى عليه السلام واقعه په ډيرو سورتونو کښې په مختلفو عنواناتو سره راغلې ده ، په دې سلسله کښې دلته د سورت نمل په دوؤ جملو غور کول دی .
اول ﴿بُورِكَ مَنْ فِي النَّارِ﴾ او بل ﴿إِنَّهُ أَنَا اللَّهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ ، او په سورت طه کښې د دې واقعې په باره کښې دا الفاظ راغلې دی چه تفسير ئې هلته بيان شوې دې الفاظ داسې دی - ، ﴿إِذْ رَأَىٰ نَارًا﴾(۱) نه تر ﴿نُودِيَ يَا مُوسَىٰ ۝ إِنِّي أَنَا رَبُّكَ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ إِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ۝ وَأَنَا اخْتَرْتُكَ فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوحَىٰ ۝ إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدْنِي﴾(۲) په دې آيتونو کښې هم دوه جملې په خاص طور سره د غور کولو جوګه دی يوه ﴿إِنِّي أَنَا رَبُّكَ﴾ او بله ﴿إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ﴾ او په سورت قصص کښې د دې واقعې دا الفاظ دی (۳) ﴿نُودِيَ مِنْ شَاطِئِ الْوَادِ الْأَيْمَنِ فِي الْبُقْعَةِ الْمُبَارَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ أَنْ يَا مُوسَىٰ إِنِّي أَنَا اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ۝﴾ په دې درې وارو موقعو کښې د تعبير عنوان اګر چه مختلف دې خو مضمون تقريبا يو دې ، هغه دا چه په دغه شپه د حضرت موسى عليه السلام اورته ضرورت د څو وجو نه پيښ شوې وو الله تعالى ورته د کوه طور په يوه اونه باندې اور اوښودلو د هغې اور يا اونې نه دا آواز واؤريدې شو - ﴿إِنَّهُ أَنَا اللَّهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝﴾ ﴿إِنِّي أَنَا

(۱) روح المعاني (بالإختصار) [ج: ۱٤ ص:۴۱۲]
(۲) ترجمه:- هرکله چې هغه اور اوليدو نو خپلې بی بی ته اووئيل چې تاسو دلته ايسارشئ بيشکه ما اور اوليدلوکيدې شی چې زه ترې نه ستاسو دپاره يوه شغله راوړم يا داور په خوا کښې د لارې درک اولګوم نوکله چې هلته اورسيدو نو آواز ورته اوشو چې ائې موسى ! بيشکه څه ستا پروردیګار يم نو ته خپلې دواړه پنړې اوباسه بيشکه ته په يو پاک ميدان يعنى په طوى کښې(ولاړ) ئې اوماته منتخب کړې ئې نو څه حکم چې درته کولې شی هغه واوره بيشکه هم زه ستا الله ( پروردیګار) يم زما نه سوا بل معبود نشته دې نو زما عبادت کوه
(۳) ترجمه:-هغوئ ته ددې ميدان د ښى طرفنه په دې مبارک مقام کښې د يوې ونې نه آواز راغلو چې اې موسى ! زه رب العالمين يم.

اللهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ ﴿اِنَّنِيْٓ اَنَا اللهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا﴾ دا هم کیدې شي چه دا آواز بیا بیا شوې وي کله په یو الفاظو سره کله په نورو الفاظو سره د آواز د آوریدو شان په بحر محیط کښې ابو حیان او په روح المعاني کښې علامه محمود آلوسي بغدادي رحمه الله داسې نقل کړې دې چه دغه آواز په یو شان د هر طرف نه آوریدې شو څه اړخ ئې مقرر نۀ وو آوریدل ئې هم یوازې په غوږونو نۀ وو بلکه په لاسونو خپو او په ټولو اندامونو سره په یو انداز وو چه د یوې معجزې شان لرې(¹) دا یو غیبي آواز وو چه څه شان یا طرف ئې مقرر نۀ وو خو د ښکاره کیدو ځائې يې اور یا اونه وه همدغسې موقعې د خلقو د غلطیدو او بت پرستۍ سبب جوړیږي څکه په هر عنوان کښې د توحید مضمون اړخ ته هدایت او خبرداري ورسره ورکړې شوې دې چنانچه هم په دې آیت کښې هم د دې خبردارۍ ورکولو په غرض ﴿سُبْحٰنَ اللهِ﴾ لفظ زیات کړې شو – په سورت طه کښې ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا﴾ او په سورت قصص کښې ﴿اَنَا اللهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ هم د دې مضمون د تاکید د پاره راوړې شوې دې د دې تفصیل حاصل دا دې چه د اور په شکل کښې ورته دا څکه ښکاره کړې شو چه هغوئ ته د اور ضرورت وو ګنی نو د اور یا د اونې د الله تعالی د ذات سره هیڅ تعلق نۀ وو اور خو د الله تعالی د عام مخلوق په شان یو مخلوق وو هم دغه وجه ده چه دلته د ﴿اَنْۢ بُوْرِكَ مَنْ فِي النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ [یعنی مبارک دې هغه چه په اور کښې دې او هغه چه په خواؤ شا کښې ئې دې] په تفسیر کښې د تفسیر د امامانو رحمهم الله مختلف قولونه دي په روح المعاني کښې ئې تفصیل بیان شوې دې(²) یو قول د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ، مجاهد رضي الله عنه او عکرمه رضي الله عنه نه منقول دې چه د ﴿مَنْ فِي النَّارِ﴾ نه مراد حضرت موسی علیه السلام وي ، ولې چه اور خو څه حقیقي [ اصلي ] اور نۀ وو په کومه مبارکه زمکه کښې چه حضرت موسی علیه السلام رسیدلې وو هغه د لرې نه پوره اور معلومیدو څکه حضرت موسی علیه السلام د دې اور دننه شو او د ﴿وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ نه مراد فرشتې دي چه هلته خواؤ شا موجودې وې ، څنو حضراتو د دې په عکس داسې فرمائیلې دي چه د ﴿مَنْ فِي النَّارِ﴾ ، نه مراد فرشتې او د ﴿وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ نه مراد حضرت موسی علیه السلام دې چنانچه د بیان القرآن په خلاصه د تفسیر کښې هم دا اختیار کړې شوې دی د دې آیت په صحیح مطلب باندې پوهیدو د پاره هم دومره کافي دی -

**د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او د حسن بصري رحمه الله یو روایت او د هغې تحقیق:** دلته ابن جریر رحمه الله ابن ابی حاتم رحمه الله او ابن مردویه رحمه الله وغیره د حضرت ابن عباس رضي الله عنه حسن بصري رحمه الله او سعید بن جبیر نه داهم نقل دی چې د ﴿وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ نه د الله تعالی ذات مبارک مراد دې(³) خو په دې باندې غور کول پکار دی چه هر کله اور د الله تعالی مخلوق دې نو په هغې کښې دننه الله تعالی نشي کیدې څنګه چه ډیر بت پرست مشرکان دا عقیده لری چه په بتانو کښې دننه الله تعالی موجود وي چه د توحید نه بیخي خلاف عقیده ده بلکه دې نه مراد ظهور یعنې ښکاریدل دی څنګه چه په شیشه او آئینه کښې څه ښکاري او دا هم ښکاره خبره ده چه دغه خالص د الله تعالی تجلی نۀ وه ګنی نو دې نه پس به د دې سوال کولو ضرورت نۀ وو چه ﴿رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ﴾ [ ای زما ربه ماته خپل ځان اوښائې چه درته اوګورم ] او د الله تعالی د جواب ، ﴿لَنْ تَرٰىنِيْ﴾ [ ما هیچرې نۀ شې لیدې ] به هم

---

¹) روح المعاني تفسير سورة طه [ج: ١٣ ص:١١٦] و[ج:١٤ ص:١٢٢]
²) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٤ ص:٤١٥]
³) تفسير الطبري لابن حرير تحت هذه الآية [ج:١٩ ص:٤٢٨] و تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[١٦٨٨٥]

څه مطلب نۀ وو دې نه معلومه شوه چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په دې قول کښې د الله تعالى ظهور مراد دې يعنې تجلى چه د اور شکل ئې اختيار کړې وو او څنګه چې حلول نه وو داشان ذاتي تجلى ئې هم نۀ وه ، بلکه د ، لن ترانى ، نه خو دا ثابتيږى چه په دې جهان کښې هيڅوک هم د الله تعالى د ذاتي تجلى مشاهده نشى کولې لهذا دلته به د ظهور او تجلى نه مراد مثالى تجلى وى څنګه چه صوفياء کرام فرمائى ، انسان له خو د دې په حقيقت باندې پوهيدل مشکل دى البته په دې باندې پوهيدلو د پاره د نزدې کيدو په غرض احقر په خپل کتاب ، احکام القرآن ، [ عربى ] په سورت قصص کښې د دې څه تفصيل ليکلې دې اهل علم ئې په هغه کښې ليدلې شى د عوامو د ضرورت څيز نۀ دې -

﴿إِلَّا مَن ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًا بَعْدَ سُوٓءٍ فَإِنِّي غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ د دې نه وړاندې آيت کښې د حضرت موسى عليه السلام د همسا د معجزې بيان دې په هغې کښې دا هم دى چه هر کله همسا نه مار جوړ شو نو حضرت موسى عليه السلام تر پخپله هم ويريدلو او ترې په منډه شو ، وروسته هم د حضرت موسى عليه السلام د بلې معجزې، يد بيضاء ، بيان دې په دې منځ کښې دا استثنا څنګه بيان شوه ، بيا دا استثنا متصله ده او که منقطعه ده ؟ په دې کښې د مفسرينو رحمهم الله حضراتو مختلف اقوال دى کومو مفسرينو چه ورته استثنا منقطعه وئيلې ده په هغې بنا باندې به د آيت مضمون دا وى چه په رومبى آيت کښې د پيغمبرانو عليهم السلام د ويرې نيشتوالې بيان شوې وو د ياګيرنې په ډول د هغې خلقو بيان هم دا اوشو چه پرې باندې ويره راتلل پکار دى يعنې کومو خلقونه چه څه خطا اوشى او بيا ترې توبه کړى او نيک عمل اختيار کړى د داسې حضراتو اګر چه الله تعالى خطا معاف کوى خو د معاف کيدو نه پس هم د ګناه ځنې آثار باقى پاتې کيږى چه دغه حضرات ترې هميشه په ويره کښې وى۔ اوداستثنا متصلې په صورت کښې دآيت معنى به دا شى چه ،د الله تعالى رسولان نۀ ويريږى سوا د هغو نه چه وړه ګناه ترې صادره شوې وى خو توبه ئې ترې کړې وى چه ورسره دغه صغيره ګناه معاف کيږى - د ټولو نه زياته صحيح خبره دا ده چه د پيغمبرانو عليهم السلام نه صادر شوى لغزشونه ګناهونه نۀ وى اګر چه صورت ئې د ګناه ښکارى بلکه په حقيقت کښې هغه اجتهادى غلطى وى په دې مضمون کښې دې ته اشاره بيا موندې شوه چه حضرت موسى عليه السلام نه د قبطى د وژلو لغزش اوشو، اګرچه هغه الله تعالى معاف کړو خو بيا هم د هغې اثر په حضرت موسى عليه السلام باندې د ويرې په شکل کښې باقى وو که دغه لغزش ترې نۀ وې شوې نو دا ويره به ئې هم نۀ وه [ قرطبى ] ([1])

| الْحَمْدُ لِلَّهِ | وَقَالَا | عِلْمًا | دَاوُدَ وَسُلَيْمَٰنَ | وَلَقَدْ آتَيْنَا |
|---|---|---|---|---|
| ثناه ده الله لره | او اووئيل دواړو اچې | علم | داود او سليمان ته | اوبه تحقيق سره ورکړې وو مونږه |

اومونږ داؤد عليه السلام او سليمان عليه السلام ته ډير لوئې علم ورکړو او هغوئ دواړو اووئيل چې ټول تعريفونه

| الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٥﴾ | مِّنْ عِبَادِهِ | عَلَىٰ كَثِيرٍ | فَضَّلَنَا | الَّذِي |
|---|---|---|---|---|
| مومنانو نه | د بندګانو خپلو | په ډيرو باندې | چې فضيلت ئې راکړو مونږ لره | هغه الله |

الله جل جلاله لره دى چې مونږ ته ئې په خپلو ډيرو مومنانو بندګانو فضيلت راکړې دې

([1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۱۶۱ ]

وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ وَقَالَ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا

او وارث شو | سلیمان | د داود | او اوویل هغه | اے خلقو | ښودلې شوی دی مونږ ته

او سلیمان ؑ، د داود ؑ وارث شو | او دائې اووئیل چې ائې خلقو ! مونږ ته د مارغانو

مَنْطِقَ الطَّيْرِ وَاُوْتِيْنَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ ۭ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ

خبری [ژبې] د مارغانو | او راکړې شوی دی مونږ ته | هر قسم څیزونه | بیشکه دا | خامخا هم دا

ژبه خودلې شوې ده | او مونږ ته هرقسم څیزونه راکړې شوی دی | واقعی دا هغه ښکاره

الْفَضْلُ الْمُبِيْنُ ۝۱۶ وَحُشِرَ لِسُلَيْمٰنَ جُنُوْدُهٗ مِنَ الْجِنِّ

فضل ښکاره دې | او راجمع کړې شوې | دپاره سلیمان | لښکرې دهغه | د پیریانو نه

فضل دې | او سیلمان دپاره د پیریانو ، بنیادمو او مارغانو لښکرې راجمع کړې شوې

وَالْاِنْسِ وَالطَّيْرِ فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ۝۱۷ حَتّٰٓى

او د انسانانو نه | او د مارغانو نه | پس هغه لښکرې به [په حفاظت سره ساتلې کیدې [تردې] [چې یو ځل]

او دوئ به [د انتظام دپاره] ځائې په ځائې اودرولې راودرولې شوا تردې چې

اِذَآ اَتَوْا عَلٰي وَادِ النَّمْلِ ۙ قَالَتْ نَمْلَةٌ يّٰٓاَيُّهَا النَّمْلُ

کله | ورغلل هغوئ | په میدان د میږو باندې | نو اوویل یو میږی | اے میږو

هغوئ د میږو یو میدان ته اورسیدل | نو یو میږئ اووئیل چې ائې میږو !

ادْخُلُوْا مَسٰكِنَكُمْ ۚ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمٰنُ وَجُنُوْدُهٗ ۙ

ننوځئ | کورونو [سوړو] خپلو ته | چې چخنړی نه کړی تاسو | سلیمان | او لښکرې دهغه

تاسو خپلو خپلو ځایونو ته ننوځئ | هسې نه سلیمان ؑ او دهغه لښکرې مو په بې

وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝۱۸ فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا

او حال دا چې هغوئ | به خبر هم نه وی | نو موسکې شو سلیمان | چې خندیدونکې وو

خبرئ کښې چخنړی نه کړی | نو سلیمان ؑ دهغې په خبره اوخندل | او دائې

مِّنْ قَوْلِهَا وَقَالَ رَبِّ اَوْزِعْنِيْٓ اَنْ اَشْكُرَ

دوینا دهغه میږی نه | اووې وئیل | اے ربه زما | طاقت را کړې ماله | چې زۀ شکر ادا کړم

اووئیل چې ائې زما ربه ! ماهمیشه په داسې حال کښې اوساته | چې ستا د هغې انعامونو

نِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰي وَالِدَيَّ

د نعمت [احسان] ستا | هغه | چې کړې دې تا | په ما باندې | او په مور او پلار زما باندې

شکر ادا کړم | چې تا ما باندې او زما په مور پلار باندې کړی دی

وَاَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَاَدْخِلْنِيْ بِرَحْمَتِكَ

او چې عمل اوکړم زۀ | نیک | داسې چې ته خوښوې هغه | او داخل کړه ما | په رحمت خپل سره

او چې داسې نیکئ اوکړم | چې ته پرې خوشحاله شې | او ماپخپلِ رحمت سره په خپلو

فِيْ عِبَادِكَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۹﴾

په بندګانو خپلو کښې اچې صالحان دی ا

نیکانو بندګانو کښې شامل کړه ا

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ داؤد او سلیمان علیهم السلام ته علم ورکړو، او هغوی اووئیل: ټول تعریفونه د الله پاک دپاره دی چا چه مونږ ته په خپلو ډیرو مومنانو بندګانو باندې فضیلت را کړو او سلیمان علیه السلام ته د داؤد علیه السلام وراثت ملاؤ شو. او هغه اووئیل: اې خلقو! مونږ ته د مارغانو ژبه ښودلې شوې ده او مونږ ته (د ضرورت) هر څیز را کړې شوې دې، یقیناً دا (د الله پاک) ښکاره فضل دې. او د سلیمان علیه السلام دپاره د هغه ټولې لښکرې راجمع کړې شوې کومې چه په جناتو، انسانانو او مارغانو باندې مشتمل وې، پس هغه به په قابو کښې ساتلې شوې تردې چه یو ورځ چه کله ټول د میږو یوې کندې ته راورسیدل نو یو میږی اووئیل: اې میږو! خپلو خپلو سوړو ته داخل شئ، هسې نه چه سلیمان علیه السلام او د هغه لښکر مو د خپو لاندې کړی، او هغوی ته خبر هم اونشي. دهغه په خبره اوریدلو باندې سلیمان علیه السلام اوخندل، او وې وئیل: اې ربه! ما دې خبرې پابند جوړ کړه چه زه ستا د هغه نعمتونو شکر ادا کړم کوم چه تا ماته او زما مور پلار ته را کړی دی، او هغه نیک عمل اوکړم کوم چه ستا خوښ وی او په خپل رحمت سره ما په خپلو نیکانو بندګانو کښې داخل کړه.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ عِلْمًا﴾ [ او مونږ داود] عليه السلام [ او سلیمان] عليه السلام [ته ] دشریعت او حکومت کولو [ علم ورکړو ﴿وَقَالَا الْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ او دې دواړو ] شکر ادا کولو دپاره [ ووئیل چه ټول تعریفونه الله تعالی لره دی ﴿الَّذِيْ فَضَّلَنَا عَلٰى كَثِيْرٍ مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ چا چه مونږ ته په خپلو ډیرو ایماندارو بندګانو باند فضیلت راکړو ﴿وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ﴾ او د داؤد] عليه السلام دوفات نه پس دده [ قائمقام سلیمان] عليه السلام [ شو] یعنی هغه ته حکومت وغیره ملاؤشو ﴿وَقَالَ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ﴾ [او هغه ] دشکر داظهار دپاره [ ووئیل چه اے خلقو مونږ ته دمارغانو دخبرو] په پوهیدو [تعلیم راکړې شوې دې] کوم چه نورو بادشاهانو ته حاصل نه دې ﴿وَاُوْتِيْنَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [او مونږ ته ] دحکومت دسامان متعلق] هرقسم [ضروری] څیزونه راکړې شوی دی لکه فوج لښکر مال او دجنګ سامان وغیره ﴿اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِيْنُ﴾ [ واقعی دا] دالله تعالی [ ښکاره فضل دې ﴿وَحُشِرَ لِسُلَيْمٰنَ جُنُوْدُهٗ﴾ او سلیمان] عليه السلام سره سامان دحکومت هم عجیب وغریب وو] چنانچه هغوئ دپاره چې کوم دهغه لښکر جمع کړې شوې وو په هغې کښې ﴿مِنَ الْجِنِّ﴾ [پیریان هم ] وو ﴿وَالْاِنْسِ وَالطَّيْرِ﴾ [ او انسانان هم او الوتونکی ځناور هم ] کومې چه دیو بادشاه هم نه تابع کیږی [ او] بیاوی هم دومره ډیرې چه ﴿فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ﴾ [ دوی لره ] دتلو په وخت کښې [یوځائ راجمع کولې شول ] چه ګډ وډ نه شی او وروستی هم راورسیږی دا خبره عادتا دډیر والی په وجه سره کیدې شی ځکه چه په کمه مجمع کښې خو اکثرپخپله مخکښې تلونکې ودریږی او په لویه مجمع کښې خو وړاندینو ته دوروستنو خبر هم نه وی په دې وجه

ددي انتظام كول پريوخې يو ځل يې دخپل لښکر سره تشريف وړو ﴿حَتّٰۤى اِذَاۤ اَتَوْا عَلٰى وَادِ النَّمْلِ ﴾ [
تردې چه هرکله دوی دميږو يو ميدان ته ورسيدل ﴿قَالَتْ نَمْلَةٌ يّٰۤاَيُّهَا النَّمْلُ ﴾ نو يوې ميږۍ ] نورو
ميږوته [ ووئيل چه اے ميږو ﴿ادْخُلُوْا مَسٰكِنَكُمْ ﴾ خپلو خپلو استوګنو ته ننو ځئ ﴿لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمٰنُ
وَجُنُوْدُهٗ وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝﴾ هسې نه چه تاسو لره سليمان او دده لښکر په ناخبرۍ کښې ونه چقوي
پس سليمان ] عليه السلام چه ددې خبره واوريده او ﴾[ددې په خبره سره ] په تعجب کښې شو چه دا
وړوکې وجود او دومره هوښياری او احتياط ﴿فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا مِّنْ قَوْلِهَا [مسکې شو وې خندل او
چه داې وليدل چه زه ددې په خبره پوه شوم کوم چه دمعجزې په طور سره يو عظيم نعمت دې
نور نعمتونه ورته هم راياد شول او ﴿وَقَالَ رَبِّ اَوْزِعْنِيْۤ اَنْ اَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِيْۤ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ ﴾[ وې
وئيل چه اے زما ربه ماته په دې هميشوالې راکړه چه زه ستا دهغو نعمتونو شکر وکړم کوم چه
تا په ما او زما په مور او پلار کړی دی ] يعنی ايمان او علم ټولو ته او نبوت خپل ځان او خپل
پلار داؤد عليه السلام ته [ او] په دې هم هميشګی راکړې چه ﴿وَاَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ﴾[ زه نيک کار
وکړم په کوم سره چه ته خوشحاله شې ] يعنی عمل مقبول وی ځکه چه که په حقيقت کښې او د
ادابو او شرائطو دکمی په وجه سره مقبول نه وی نو هغه مقصود نه دې ﴿وَاَدْخِلْنِيْ بِرَحْمَتِكَ﴾ اومالره
په خپل ] خاص [ رحمت سره ﴿فِيْ عِبَادِكَ الصّٰلِحِيْنَ ۝﴾ په خپلو] اعلی درجه [ نيکو بندګانو]
انبياؤ عليهم السلام [ کښې داخل کړې ] يعنی قرب لره په بعد کښې مه بدلوې

## معارف او مسائل

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ عِلْمًا﴾ په ښکاره بانديې دې نه مراد د پيغمبرانو عليهم السلام علوم دی کوم چه
پيغمبرۍ سره تړون لری د دې په عموم کښې که نور علوم او فنون شامل وی نو لرې خبره نه ده
لکه حضرت داؤد عليه السلام ته چه د زغرې جوړلو کاريګری ښودلې شوې وه د پيغمبرانو عليهم السلام په ټولی
کښې د حضرت داؤد عليه السلام او حضرت سليمان عليه السلام يو خاص خصوصيت دا وو چه دوئ ته سره د
پيغمبرۍ نه بادشاهی هم ورکړې شوې وه بادشاهی هم داسې چه نورو بنيادمو ته هډو ورکړې
شوې نه وه چنانچه دوئ ته يواځې په انسانانو نه بلکه په پيريانو او ځناورو هم حکومت او
بادشاهی ورکړې شوې وه د دې ټولو عظيم الشان نعمتونو نه وړاندې دحق تعالی د نعمت يعنی
علم ذکر کولو شايد دې طرفته اشاره وی چه الله تعالی د علم نعمت د نورو ټولو نعمتونو نه زيات
لوړ او زيات غوره نعمت دې [ قرطبی ] (۱)

**په پيغمبرانو عليهم السلام کښې د مال ميراث نه چليږی** ﴿وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ﴾ دلته د ميراث نه مراد دعلم او
پيغمبرۍ ميراث مراد دې د مال ميراث تړې نه دې مراد ځکه چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی ،
نحن معاشر الانبياء لا نرث ولا نورث(۲) ، [ پيغمبران عليهم السلام نه مالی ميراث حاصلوی او نه ئې بل چا
ته مالی ميراث پاتې کيږی ] د حضرت ابی الدرداء رضی الله عنه نه په ترمذی او ابو داؤد کښې روايت دې
﴿العلماء ورثة الانبياء وان الانبياء لم يورثوا دينارا ولا درهما ولكن ورثوا العلم فمن اخذ بحظ وافر﴾(۳)[ د دې مطلب هم
دا دې چه د پيغمبرانو عليهم السلام ميراث علم دې مال دولت نه دې ] د حضرت ابی عبد الله [جعفر

---

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۳ ص:۱۶۵]
(۲) ما وجدت بهذه الألفاظ الا في القرطبي (بالإختصار) [ج:۱۱ ص:۸۱] وفي روح المعاني [ج: ۱۴ ص:۴۲۹]
(۳) جامع الترمذي ، ابواب العلم باب ماجاء في فضل الفقهة علي العبادة [ج:۲ ص:۹۷]

صادق] دا روایت دا مسئله نوره هم واضحه کوي چه حضرت سلیمان علیه السلام د حضرت داؤد علیه السلام او رسول الله ﷺ د حضرت سلیمان علیه السلام وارث شو [ روح د کلیني نه ][1] - په عقلي ډول هم دلته د مالي میراث هم څه گنجائش ځکه نشته چه د حضرت داؤد علیه السلام د وفات په وخت د هغوئ د نولسو ځامنو ذکر راځي ، که دلته د مال میراث مراد وي نو یواځې سلیمان علیه السلام ئې وارث نه بلکه نو لس واړه ځامن ئې وارثان جوړیدل دي سره سره الله تعالی د حضرت داؤد علیه السلام بادشاهي هم حضرت سلیمان علیه السلام ته ورکړه او دا اضافه ئې هم پکښې اوفرمائیله چه د بنیادمو سره د پیریانو ،دیوانو ، ځارؤو ، ځناورو ، درندگانو او مارغانو حکومت هم ورکړو . هوا ئې ور د پاره تابع او گرځوله د دې دلیلونو نه پس د طبرسي هغه روایت غلط ثابتیږي د کوم له مخې چه هغه د اهل بیتو د ځنې امامانو په حواله دلته مالي میراث مراد اخستې دې [روح ][2]

دغه شان د سلیمان علیه السلام د وفات او د رسول الله ﷺ د پیدائش تر منځه د اولسو سوؤ کلونو فاصله ده د یهودو په حساب دا فاصله څوارلس سوه کاله جوړیږي ، د حضرت سلیمان علیه السلام عمر د پنځوسو کالونه څه زیات وو [ قرطبي ][3]

**خپل ځان د پاره د جمع صیغه استعمالول روا دي خو هله چه تکبر نه وي:** ﴿عُلِّمْنَا مَنطِقَ الطَّيْرِ وَأُوتِينَا﴾ الخ ، حضرت سلیمان علیه السلام یواځې خپل ځان د پاره د جمع صیغه په دې غرض استعمال کړه چه په قام باندې ئې د بادشاهئ رعب پریوځي هغوئ د الله تعالی په فرمانبرداري او د سلیمان علیه السلام په تابعداري کښې سستي نهٔ کوي دغه شان که مسلمانان امیران ، حاکمان او افسران د خپل رعیت په موجود گئ کښې خپل ځان د پاره د جمع صیغه استعمالوي نو بدیت ئې نشته خو هله چه سیاست او نعمت ښکاره کول ئې مطلب وي لوئي او بړائي ضباطول ئې غرض نهٔ وي –

**په مارغانو او ځارؤو کښې هم عقل او شعور شته:** د دې واقعې نه ثابتیږي چه مارغان ، ځناور او ټول حیوانات هم تر څه حده پورې عقل او شعور لري خو دومره نهٔ چه د شریعت له مخې پرې مکلف گرځي ، البته پیریان او بنیادم د شریعت له مخې مکلف ځکه دي چه د دوئ عقل او شعور کامل دې امام شافعي رحمه الله فرمائیلي دي چه کوئتره په ټولو مارغانو کښې ډیره هوښیاره ده ابن عطیه رحمه الله فرمائیلي دي چه میږې ډیر ذهین ځناور ځکه دې چه د بوئین طاقت [قوت شامه] ئې ډیر زیات دې یو دانه چه حاصله کړي نو هغه په منځ دوه ځایه کړي چه ټوکه اونکړي [شین نشي] هله ئې د ژمي د خپل خوراک د پاره ذخیره کوي [ قرطبي ][4]

**فائده:** هسې خو حضرت سلیمان علیه السلام ته د ټولو حیواناتو خبرې ښودلې شوې وې په ﴿عُلِّمْنَا مَنطِقَ الطَّيْرِ وَأُوتِينَا﴾ سره د مارغانو په خبرو باندې د پوهیدو تخصیص د هدهد د واقعې په وجه اوکړې شو ورنه راتلونکې آیت کښې صفا بیان راغلې دې چه هغوئ د میږو په خبرو هم پوهیدل ، امام قرطبي په خپل تفسیر کښې په دې مقام د مختلفو مارغانو خبرې او په هغې باندې د حضرت

---

[1]) روح المعاني [ج: ١٤ ص:٤٢٩]
[2]) روح المعاني [ج: ١٤ ص:٤٢٩]
[3]) تفسير القرطبي [ ج:١٣ص:١٦٤، ١٦٥]
[4]) تفسير القرطبي [ ج:١٣ص: ١٦٥]

سلیمان علیه السلام دا فرمائیل چه دا مارغه دا خبره کوی ، په تفصیل سره نقل کړی دی او تقریبا د هر مارغه خبرې د څه نصیحت جمله ده(۱) ﴿وَأُوتِينَا مِن كُلِّ شَيْءٍ﴾ ،د اصل لغت په اعتبار سره د ،کل، لفظ د جنس ټولو افرادو لره شاملیږی اکثر عموم کلی مراد نهٔ وی بلکه د یو خاص مقصد ترحده پورې عموم مراد وی لکه چه دلته د هغې څیزونو عموم مراد دې چه په حکومت او بادشاهۍ کولو کښې ضرورت ورته پیښیږی ورنه ظاهره خبره ده چه هوائی جهاز ، موټر او ریل و غیره هغوئ سره نهٔ وو ﴿رَبِّ أَوْزِعْنِي﴾ ، د ،وزع ، نه مشتق دې چه لفظی معنی ئې ایسارول دی دلته ئې مطلب دا دې چه ماته د دې توفیق راکړې چه هر وخت د دې شکر ادا کوم ، په هیڅ وخت کښې ترې نهٔ جدا کیږم ،مطلب ئې همیشوالې او پابندی کول دی چناچه د دې نه په وړاندې آیت کښې ﴿فَهُمْ يُوزَعُونَ﴾ په دې معنی کښې راغلې دې چه د لښکر د ګنړ والی په وجه به هغه دخوریدو او ګډ وډ کیدو نه د ساتلو په غرض ایسارولې شو -

﴿وَأَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضَاهُ﴾ دلته رضا په معنی د قبلولو ده ، معنی ئې دا ده چه یا الله ،ماته د داسې نیک عمل توفیق راکړې چه ستا په نزد قبلیدونکی وی - روح المعانی(۲) کښې په دې باندې دلیل نیولې شوې دې چه نیک عمل لره قبلیدل لازم او ضروری نهٔ دی بلکه دې د پاره څه نور شرطونه دی او وې فرمائیل چه نیک عمل او قبلیدو کښې هیڅ څه شرعی یا عقلی ضروری تړون نشته چنانچه د پیغبرانو علیهم السلام دا سنت پاتې شوې دی چه هغوئ به د خپلو نیکو عملونو د قبلیدو د پاره هم دعا کوله لکه حضرت ابراهیم علیه السلام او حضرت اسماعیل علیه السلام د بیت الله د تعمیر په موقعه داسې دعا کړې ده ﴿رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾(۳) دې نه معلومه شوه چه صرف نیک عمل کول کافی نهٔ دی بلکه دهغې د قبلیدو دعا کول هم ضروری دی -

**څه نیک عمل قبول هم شی یا هم د الله تعالی د فضل نه بغیر جنت ته داخلیدل نشی کیدې:** ﴿وَأَدْخِلْنِي بِرَحْمَتِكَ فِي عِبَادِكَ الصَّالِحِينَ﴾ نیک عمل که قبول هم شی نو سره د هغې پرې جنت ته داخلیدل خالص د الله تعالی په فضل وکرم باندې اړه لری ،چنانچه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه هیڅوک د خپلو عملونو په اړانړه جنت ته نشی داخلیدې صحابه کرامو عرض اوکړو چه تا سو هم ؟ -

نو وې فرمائیل چه زهٔ هم ، خو مانه د الله تعالی فضل او رحمت چاپیره دې [روح المعانی](۴) حضرت سلیمان علیه السلام هم په دې جملو کښې جنت ته د داخلیدو د پاره د الله تعالی د فضل دعا کوی ،یعنی فرمائی ، ایٔ الله ،ماته هغه فضل هم راکړې چه په هغې سره د جنت حقدار جوړ شم ،

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَا لِيَ | فَقَالَ | الطَّيْرَ | وَتَفَقَّدَ |
| څه وجه ده مالره | نو وې وئیل | دمارغانو | اوالټول اوکړل هغه |
| نو وې وئیل | | او سلیمان علیه السلام دمارغانو حاضری واخسته | |

(۱) تفسیر القرطبي [ج:۱۳ص: ۱۶۵]
(۲) روح المعاني [ج: ۱٤ ص:٤٤٣]
(۳) ترجمه:- اې زمونږ پروردګاره! زمونږ نه قبول کړې.
(٤) روح المعاني [ج: ۱٤ ص:٤٤٣]وصحیح البخاري کتاب المرضي ،باب نهي تمني المریض الموت [ج:۲ص:۸٤٧]

لَآ اَرَى الْهُدْهُدَ ۖ اَمْ كَانَ مِنَ الْغَآئِبِيْنَ ﴿٢٠﴾ لَاُعَذِّبَنَّهٗ

چې نۀ وینم زۀ | هدهد [مارغه] | او که دې هغه | دغائب شوؤ نه | زۀ به خامخا سزا ورکوم هغه له

چې داڅه وجه ده چې زه هدهد نه وینم | یا هغه غائب شوې دې ؟| زۀ به هغه ته ډیره سخته

عَذَابًا شَدِيْدًا اَوْ لَاَاذْبَحَنَّهٗٓ اَوْ لَيَاْتِيَنِّيْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٢١﴾

سزا | سخته | یا به خامخا ذبح کوم هغه | یا به راوړی ماته | دلیل ښکاره [مناسبه وجه]

سزا ورکړم | یا به ئې حلال کړم | او یا به ماته [دخپلې غیرحاضرۍ] ګلګ دلیل پیش کړی

فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيْدٍ فَقَالَ اَحَطْتُّ بِمَا

پس وخت تیر کړو هغه | ډیر نۀ [بلکه زر راغې] | نو وې وئیل | چې احاطه اوکړه ما | په هغه څیز

نولږ ساعت تیر نه وو چې هغه راغلو | نو دائې اووئیل چې ما یو داسې خبره معلومه کړې ده

لَمْ تُحِطْ بِهٖ وَجِئْتُكَ مِنْ سَبَاٍ بِنَبَاٍ يَّقِيْنٍ ﴿٢٢﴾

چې نۀ ده احاطه کړې تا | په هغې باندې | او راغلې یم زۀ تاته | دسبانه | دخبر یقیني سره

چې تاسو ته هم نه ده معلومه | او ما درته دسبا [دقبیلې] نه یو یقیني خبر راوړې دې

اِنِّيْ وَجَدْتُّ امْرَاَةً تَمْلِكُهُمْ

بیشکه زۀ چې یم | او موندله ما | یوه ښځه | چې بادشاهي [حکمراني] کوي دهغوئ

ما یوه ښځه اولیده چې په هغوئ باندې حکومت کوي | او هغې ته

وَاُوْتِيَتْ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ وَّلَهَا عَرْشٌ عَظِيْمٌ ﴿٢٣﴾ وَجَدْتُّهَا

او ورکړې شوی دې هغې ته | دهر څیزنه | او هغې لره | تخت لوئ دې | ما اوموندله هغه

هر قسم اسباب ورکړې شوی دی | او دهغې [دناستې] تخت ډیر لوئې دې | ما هغه او

وَقَوْمَهَا يَسْجُدُوْنَ لِلشَّمْسِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَزَيَّنَ

او قوم دهغې | چې سجدې کوی | نمر ته | په ځائې | دالله | او ښائیسته ښکاره کړل

دهغې قوم اولیدو | چې دالله ﷻ نه بغیر نمر ته سجدې کوی | او شیطان

لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ فَهُمْ

هغوئ ته شیطان | عملونه دهغوئ | نو منع ئې کړل هغوئ | دلارې نه | پس هغوئ |

هغوئ ته داعملونه ښائسته کړې دی | نو دسمې لارې نه ئې منع کړې دی | نو هغوی اوس

لَا يَهْتَدُوْنَ ﴿٢٤﴾ اَلَّا يَسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ يُخْرِجُ الْخَبْءَ

نیغه لار نۀ مومی | ولې نۀ کوی سجده | الله ته | هغه الله ته | چې رااوباسی | پټ څیزونه |

په نیغه لار نه روانیږی | هغه داچې الله ﷻ ته ولې سجدې نه کوی | چې دآسمان او

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُوْنَ

په اسمانونو کښې | او په زمکه کښې | او معلوم دی هغه ته | هر هغه څه | چې تاسو ئې پټوئ |

زمکې پټ څیزونه بهر راوباسی | او څه چې تاسو پټوئ او څه چې ښکاره کوئې | په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | تُعْلِنُونَ۝ | اَللّٰهُ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ |
| او هغه څه | چې تاسو ئې ښکاره کوئ | الله چې دي | نشته دي لائق دعبادت | مګر | هغه |
| هغې تولو خبر دي [او اورئي] هم الله ﷻ هغه ذات دي دکوم نه سوا چې بل معبود نشته دي | | | | | |
| رَبُّ الْعَرْشِ | الْعَظِيْمِ۝ | قَالَ | سَنَنْظُرُ | اَصَدَقْتَ | |
| چې رب دي | دعرش لوئ | اووئيل سليمان | چې ګورو به مونږه | چې آيا رښتيا ويلي دي تا | |
| دعرش عظيم رب دي [سليمان ﷺ اوفرمائيل چې مونږ به ددې خبرې تحقيق کوو] چې نه رښتيا | | | | | |
| اَمْ كُنْتَ | مِنَ الْكٰذِبِيْنَ۝ | اِذْهَبْ | بِّكِتٰبِيْ | هٰذَا | فَاَلْقِهْ |
| يا ئې ته | ددروغژنانونه | لاړ شه | دخط زما سره | چې دادې | اوويې غورزوه |
| وائې [که ته دروغژن يې] | ........لاړ شه او زما دا خط يوسه | | | نو هغوئ ته ئې اوغورزوه | |
| اِلَيْهِمْ | ثُمَّ | تَوَلَّ | عَنْهُمْ | فَانْظُرْ | مَاذَا يَرْجِعُوْنَ۝ |
| هغوئ ته | بيا | يو اړخ ته شه | دهغوئ نه | پس اوګوره | چې څه جواب ورکوي هغوئ |
| بيا ترې نه يو اړخ ته شه | | نو ګوره چې هغوئ څۀ جواب درکوي | | | اچې خط ورته ملاوشو |

## آسان ترجمه قرآن

او هغوی (يو کرت) د مارغانو حاضري واخستله نو وې فرمائيل : څه خبره ده؟ ما ته هُدهُد (ملاچرګک) په نظر نه راځي. آيا هغه چرته غائب شوې دې؟ زه به هغه ته سخته سزا ورکړم. يا به هغه ذبح کړم. مګر دا چې هغه ما ته څه واضح وجه پيش کړي. بيا هدهد زيات وخت اونه لګولو. او (راتلو سره ئې اووئيل چې: ما داسې معلومات حاصل کړي دي چې د هغې تاسو ته علم نشته او ما د ملک سبا نه تاسو ته يو يقيني خبر راوړې دې هلته يو زنانه بيا موندله چې په هغوی پاندې بادشاهي کوله او هغې ته هر قسم سازوسامان ورکړې شوې دې، او د هغې يو لوئې تخت هم دې. ما هغه زنانه اوهغې قوم اوموندلو چې هغوی د الله پاک نه سوا نمر ته سجده کوي. اوشيطان هغوی ته دهغوی اعمال ښائسته کړې دي. پس هغوی ئې د صحيح لارې نه بند کړې دي او دغه شان هغوی د هدايت نه لرې دي چې الله پاک ته سجده نه کوي کوم چې د آسمانونو او زمکو پټ څيزونه بهر راوباسي، او څه چې تاسو پټوئ، او څه چې ښکاره کوئ، په ټولو پاندې پوهيږي. الله پاک هغه ذات دې چې د هغه نه سوا هيڅوک د عبادت لائق نشته (او) هغه د عرش عظيم مالک دې سليمان عليه السلام اوفرمائيل : زر ده چې مونږ به اوګورو چې تا رښتيا وئيلي دي او که ته هم په دروغژنو کښې شامل شوې ئې. زما دا خط يوسه، اوهغوی ته ئې ورګزار کړه. بيا ترې نه يو اړخ ته شه، او اوګوره چې هغوی څه جواب درکوي.

## خلاصه تفسير

اويو ځل داسې قصه وشوه چې ﴿وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ﴾ [سليمان ﷺ د مارغانو حاضري واخسته نو] هدهد يې ونه ليدو ﴿فَقَالَ مَالِيَ لَآ اَرَى الْهُدْهُدَ﴾ [ وې فرمائيل چې څه خبره ده چې زۀ هدهد لره نه وينم ﴿اَمْ كَانَ مِنَ الْغَآئِبِيْنَ۝﴾ وايه چرته غائب شوې دې ؟ ] او هرکله چې معلومه شوه چې په واقع کښې غائب دې نو وې فرمائيل چې [ زۀ به دۀ ته ] په غير حاضرئ باندې ] سخته سزا

ورکوم یا به هغه ذبح کوم یا به هغه څه صفا دلیل [او دغیر حاضرئ عذر [ ماته پیش کړی ] نو خیربیا به یې پریږدم [﴿فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ﴾] [ لږ وخت پس هغه راغې [﴿فَقَالَ أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِ﴾] او سلیمان علیه السلام [ ته یې ووئیل چه داسې خبره مې معلومه کړه راغلم کومه چه تاته معلومه شوې نه ده [﴿وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍ بِنَبَإٍ يَقِينٍ﴾] او] اجمالی بیان دهغې دادې چه [ماتاته دسبا دقبیلې یو پوخ خبر راوړې دې ] تفصیلی بیان یې دادې چه ﴿إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ﴾ [مایوې ښځې لره ولیدهچه دهغه په هغو خلقو بادشاهی کوی ﴿وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ﴾ او هغې ته] دبادشاهۍ د لوازمونه [ هرقسم سامان حاصل دې او ﴿وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ﴾ دهغې سره یولوئ تخت دې] او مذهبی حالت د هغو دادې چه ﴿وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ [ مادې ] ښځې [لره او ددې قوم لره ولیدل چه هغوی ] د [خدای] عبادت لره [ پریږدی نمرته سجدې کوی ﴿وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ﴾ او شیطان ددوی عملونه] دکفر [ددوی په نظرکښې غوره ښکاره کړی دی ] او ددې عملونو دښائسته کولو په سبب یې ﴿فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ﴾ [ دوی لره دلارې حقې [ نه منع کړی دی ﴿فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ﴾ په دې وجه دوی په ] حقه [ لاره نه ځي ﴿أَلَّا يَسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي﴾ چه هغې خدای ته سجده نه کوی کوم چه] داسې قدرت والا دې چه ﴿يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [د آسمانونو اوزمکې پټو څیزونو لره] چه په دې کښې باران او دزمکې اونې بوټې هم دی [بهر راوباسی او] داسې پوهیدونکې دې چه ﴿وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ﴾ [ تاسوخلق] یعنی ټول مخلوقات [ چه څه ] په زړه کښې [پټ ساتئ او څه چه ] په ژبه او دبدن په اندامونو [ظاهروئ هغو ټولو لره پیژنی] په دې وجه ﴿اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا﴾ [ الله تعالی داسې دې چه دهغه نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته ﴿هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ﴾ او هغه دعظیم عرش مالك دې سلیمان علیه السلام چه دا واوریدل نو ﴿قَالَ سَنَنظُرُ أَصَدَقْتَ أَمْ كُنتَ مِنَ الْكَاذِبِينَ﴾ [ وې فرمائیل چه مونږ اوس ګورو چه ته رښتیا وائې یاته په دروغه یې] ښه ده ﴿اذْهَب بِّكِتَابِي هَٰذَا فَأَلْقِهْ إِلَيْهِمْ﴾ [ته زما داخط واخله لاړشه او دا هغوته وغورزوه ﴿ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَانظُرْ مَاذَا يَرْجِعُونَ﴾ بیا] لږ دهغه ځای نه [بیرته شه بیا ګوره چه په خپل مینځ کښې څه سوال جواب کوی ] بیا دلته راځه دغه خلق چه څه کاروائی وکړی په هغې سره به ستا رښتیا او دروغ معلوم شی

## معارف او مسائل

﴿وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ﴾، د ﴿تَفَقَّدَ﴾ لفظی معنی دا ده چه په جمع کښې د حاضر او غیر حاضر تحقیق اوکړې شی خکه ئې ترجمه خبراخستل اوځارنه کول دی حضرت سلیمان علیه السلام لره الله تعالی د انسانانو نه علاوه په پیریانو ،وحشی ځناورو او مارغانو باندې هم حکومت ورکړې وو د حاکم شان دا وی چه د خپل ټول رعیت خبر اخلی د هغې په جوړ حضرت سلیمان علیه السلام هم د مارغانو چیکنګ اوکړو چه په هغوئ کښې حاضر او غیر حاضر معلوم کړی چنانچه رسول الله صلی الله علیه وسلم به هم دا عادت مبارك لرلو چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم چیکنګ به ئې په دې غرض فرمائیلو چه د رنځور تپوس پوښتنه او د یو حاجتمند او تکلیف زپلی حاجت پوره کول او تکلیف لرې کول اوکړې شی۔

**ضروری دی چه حاکم د خپل رعیت اومشائخ د خپلو مریدانو او شاګردانو خبر اخلی ::** د آیت نه معلومه شوه چه حضرت سلیمان علیه السلام به د خپل ټول رعیت خبر اخستو د هدهد خبر اخستو نه هم بې غمه نه وو چه په مارغانو کښې هم په کم شمیر کښې دی چنانچه د دې د زیات خیال لرلو وجه د دې

کمزوري هم کيدې شي څنګه چه به حضرت عمر رضي الله عنه د پيغمبرانو ﷺ د دې سنت ادا کولو په غرض د شپې په وخت د مدينې منورې په کوڅو کښې ګشت ګڅه کولو چه د بې وسو معذورو خلقو خبر هم واخلي هغوئ به فرمائيل چه د فرات په غاړه باندې يو ليوه د چيلۍ بچې مات کړي نو دهغې ذمه واري هم په عمر باندې ده [ قرطبي ] ([1]) د حکومت دا اصول د پيغمبرانو ﷺ چه صحابه کرامو رضي الله عنهم او خلفاءِ راشدينو پرې عمل کول جاري او لرل او د دوئ مسلم او غير مسلم رعيت په امن سره اوسيدل د هغوئ رضي الله عنهم نه پس زمکې آسمان داسې عدل انصاف او د عامې دنيا د امن سکون او اطمينان دا ننداره او نۀ ليدلـه ﴿مَالِيَ لَآ أَرَى الْهُدْهُدَ أَمْ كَانَ مِنَ الْغَآئِبِينَ﴾ حضرت سليمان عليه السلام او فرمائيل چه زۀ په دې جمع کښې هدهد ولې نۀ وينم ؟ -

**خپل ځان سره حساب کتاب کول** : دا موقعه خو د حضرت سليمان عليه السلام د دې فرمائيلو وه چه هدهد ولې په دې ډله کښې حاضر نۀ دې خو دا عنوان بدلول شائد په دې بنا وو چه هدهد او نور مارغان زما په قبضه کښې راوستل د الله تعالى خاص انعام دې په اول کښې خو د هغوئ په زړه کښې دا ويره پيدا شوه چه د دغې نعمت نيشتوالې شائد زما د قصور په وجه وي څکه ئې د خپل ځان نه داسې تپوس اوکړو چه ولې هدهد لره زۀ نۀ وينم چنانچه د صوفيانو مشائخو معمول هم دا دې چه کله د هغوئ په نعمت کښې څه کمې راشي يا څه تکليف او پريشاني ورته راپيښه شي نو مادي اسبابو پسې د مخې اوړلو په ځاءِ اول خپل ځان سره حساب کتاب کوي چه د الله تعالى د کوم نعمت په شکر ادا کولو کښې مونږ نه کوتاهي شوې ده چه دغه نعمت مونږ نه واخستې شو ، قرطبي په حواله د ابن عربي د دغې بزرګانو حال په دې شان نقل کوي ﴿اذا افقدوا آمالهم تفقدوا اعمالهم﴾ [ کله چه دوئ خپل مرادونه پوره کيدل او نۀ ويني نو دوئ د خپلو عملونو حساب کوي ] ([2]) په اول کښې د خپل ځان د حساب کتاب اخستونه پس وې فرمائيل ،ام کان من الغائبين ، دلته ، ام ،د ،بل، معنى ورکوي [قرطبي] په دې بنا معنى ئې دا شوه چه حضرت سليمان عليه السلام او فرمائيل داخبره نه ده چه د هدهد په ليدو کښې زما نظر غلطي اوکړه بلکه هغه دسره حاضر نۀ دې -

**په مارغانو کښې د هدهد د تخصيص وجه او يو ويرلوئ عبرت** : د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه سوال اوکړې شو چه په ټولو مارغانو کښې د هدهد د تفتيش څه وجه راپيښه شوه ؟ هغوئ او فرمائيل چه حضرت سليمان عليه السلام په داسې يو مقام باندې پړاؤ اچولې وو چرته چه اوبه نۀ وې او الله تعالى هدهد ته دا خاصيت ورکړې وو چه هغه د زمکې دننه څيز خصوصا اوبه ويني چه په څومره ژور والي کښې دي دې نه پس به حضرت سليمان عليه السلام ديوانو ته حکم ورکولو چه زمکه او کنئ او اوبه ترې راؤباسئ ،خو د عبرت خبره دا ده چه د زمکې په سر غوړيدلې جال نۀ ويني او په هغې کښې راګيرېږي لکه حضرت ابن عباس ([3]) رضي الله عنهما چه او فرمائيل ﴿قف يا وقاف كيف يري الهدهد باطن

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۳ص:۱۷۸] والمنتظم لابن الجوزي [ج:۳ ص:۲۰۳] في تذكرة سنة خمسة وتسعين ومائة.

[2] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۱۷۹] و احكام القرآن لابن العربي [ج:٦ ص:۲۰٦]

[3] ) دلته په ظاهره معمولي تسامح ده ، د قف يا وقاف الخ جمله دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه ده، د نافع بن الزرق سوال دې ، او ددې په جواب کښې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې: ( اذا جاء القدر عمي البصر) يعنى کله چې تقدير راشي نو سترګې ړندې شي . اوګورئ :- تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۱٦۰]. محمد تقى عثماني ۳ ربيع الثاني ۱٤۳۳ هجرى.

الارض ولایری الفخ حین یقع فیه﴾ [ قرطبی ] [1] . [ ای خبریدونکیه ، خبر شه چه هدهد د زمکي دننه څیزونه وینی خو دزمکي د پاسه هغه جال نه وینی چه په کښي راګیرېږی ] - مقصد دا دي چه د یو بنده راګیریدل او خلاصیدل خالص د الله تعالی په تقدیر باندي کیږی د بنده هیڅ تدبیر په دي کښي پکار نه راځی -

﴿لَأُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا شَدِيدًا أَوْ لَأَاذْبَحَنَّهُ﴾ د ابتدائی غور فکر نه پس دا په حاکمانه سیاست باندي عمل کول وی چه غیر حاضرته سزا ورکړې شی -

**کوم څناور چه په کار کښي سستي کوی هغه ته مناسبه سزا ورکول روا دي** - حضرت سلیمان ﷺ د پاره الله تعالی څناورو ته سزا ورکول حلال کړي وو لکه چه عامو امتونو د پاره د حلالو څارو حلالول او د غوښي پوستکی وغیره نه ئې فائده اخستل روا کړی دی دغه شان کوم د کور ساتلی شوی څناور ، مثلاً غولۍ ، خر ، اس ، اوښ وغیره چه په خپل کار کښي سستی کوی نو د هغې د سمولو د پاره د ضرورت په جوړ هغې ته منځو میانه سزا ورکول اوس هم جائز دی نورو څناورو ته سزا ورکول زمونږ په شریعت کښي منع دی [ قرطبی ] [2]

﴿أَوْ لَيَأْتِيَنِّي بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ﴾ یعنی که هدهد د خپلي غیر حاضرۍ څه ښکاره عذر پیش کړو نو هغه به د دغي سزا نه بچ پاتې شی دي کښي اشاره دي خبري ته ده چي که چاته په څه کار کښي قصور اوشی نو حاکم دي ورته د عذر پیش کولو موقعه ورکړی د عذر په صحیح ثابتیدو دي د هغه سزا معاف کوی

﴿أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِ﴾ یعنی هدهد د خپلي غیرحاضرۍ عذر د اوښودو چه ماته کوم څیز معلوم دی هغه تاسو ته معلوم نه وی یعنی داسي څیز مي تاسو له راوړي دي چه وړاندي پري خبر نه وی -

**پیغمبران ﷺ عالم الغیب نه وی** : امام قرطبی فرمائیلی دی چه د دي نه په ښه شان واضح شو چه پیغمبران ﷺ عالم الغیب نه وی چي د هغه په وجه د هر څیز نه دوئ خبرداره وی [3]

﴿وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍ بِنَبَإٍ يَقِينٍ﴾ سبا په یمن کښي د یو مشهور ښار نوم وو چه ، مارب ، ورته وئیلي شو ، د دي او د یمن د دارالخلافې صنعاء ترمنځه د دري ورځو مزل وو -

**آیا یو کشر خپل مشرته وئیلي شي چه زما علم ستاسو نه زیات دی ؟** د هدهد د دي خبري نه څني خلقو په دي خبره دلیل نیولي دي چه یو شاګرد خپل استاد ته یا غیر عالم ، عالم ته دا وئیلي شی چه زما علم تاسو نه زیات دي یعنی د دي مسئلي په باره کښي زه تاسو نه زیات ښه پوهیږم خو شرط دا دي چه په حقیقت کښي هم دغسي وی خو روح المعانی کښي فرمائي چه خپلو مشرانو ، پیرانو ، استاذانو او عالمانو سره په دي طرز خبره کول بې ادبی ده دي نه ځان ساتل پکار دی دې د پاره د هدهد د خبري نه دلیل نیول ځکه نه دی پکار چه هغه دا خبره خپل ځان د سزا نه د خلاصولو د پاره کړې وه چه د هغه د غیر حاضرۍ عذر په پوره شان د حضرت سلیمان ﷺ مخې ته راشي [4] ، د داسي ضرورت په وخت داسي خبري کولو کښي څه عیب نشته خو هله چه څه بې ادبی پکښي نه وی -

[1] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۳ص: ۱۷۸]
[2] ) تفسیر القرطبي (باختصار) [ ج:۱۳ص:۱۸۰]
[3] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۳ص:۱۸۱]
[4] ) روح المعاني (باختصار) [ج: ۱۹ ص۱۹۹]

﴿إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ﴾ [ يعنى ما داسې يوه ښځه بيا اوليده چه د سبا قوم مالکه [ حکمرانه ] ده په تاريخ کښې د دې ملکې نوم بلقيس بنت شراحيل ښولې شوې دې او ځنې روايتونو کښې راځي چه د دې والده د پيريانو د نسل نه وه چه نوم ئې بلعمه بنت شيصان وو [ روايت کړو وهيب بن جرير د خليل بن احمد نه [ قرطبي ] ([1]) او د دې نيکهٔ هداهد د يمن د ټول ملک بادشاه وو د هغه په اولاد کښې څلويښت نارينه وو چه ټول بادشاهان شو –

د دې پلار شراح يوې پيرئ سره نکاح کړې وه د هغې نه بلقيس پيدا شوې وه پيرئ سره د هغه د نکاح کولو مختلف وجوهات بيان شوې دی يوه وجه ئې دا وه چه هغه به د خپلې بادشاهئ په غرور کښې خلقو ته وئيل چه زما څوک کفو [سيال] نشته څکه .زهٔ چا ښځې سره نکاح نهٔ کوم ولې چه غير کفو [ناسيالې] سره نکاح کول نهٔ خوښوم دهغې نتيجه دا شوه چه خلقو دهغه نکاح يوې پيرئ ښځې سره اوکړه [قرطبي] ([2]) معلوميږی چه د هغه د فخر او د غرور په نتيجه کښې الله تعالى د يو قسم سزا په ډول د هغه نکاح د يوې پيرئ ښځې سره برابر کړو چه کفو او سيال خو لا څه کوې بلکه د هغه جنس او قوم هم نهٔ وه –

**آيا انسان پيرئ ښځې سره نکاح کولې شي؟**: په دې باره کښې خلقو دا شبه کړې ده چه پيريانو نه انسانی نسل نهٔ شی چليدې خو ابن عربی په خپل تفسير کښې دې خيال ته غلط څکه وئيلی دی([3]) چه د صحيح احاديثو له مخې انسانی نسل د پيريانو نه چليدې شی ولې چه پيريانو کښې هم هغه ټول خصوصيات موجود دی کوم چه په بنيادمو کښې موجود دی – بل په دې باره کښې شرعی سوال دا راپورته کولې شی چه پيرئ سره د انسان نکاح روا کيدې شی ؟ -- په دې باره کښې د فقهاؤ اختلاف دې ډيرفقهاء حضرات ورته جائز وائی البته بعض فرمائيلی دی چه هر کله دا غير جنس دې نو ورسره به د نکاح کولو مثال به داسې حرام وی لکه چه څاروو او ځناورو سره حرام دی د دې مسئلې تفصيل په ﴿ آكام المرجان في احكام الجان ﴾، نومې کتاب کښې راغلې دې په هغې کښې داسې واقعات هم ښودلې شوی دې چه د مسلمان نارينه نکاح د مسلمانې پيرئ سره شويدې چه هغې نه ئې اولاد هم شويدې خو دا مسئله د زيات بحث کولو جوګه څکه نهٔ ده چه نکاح کونکې د بلقيس والد مسلمان نهٔ وو څکه پرې د دې مسئلې جواز او عدم جواز نشی بنا کولی هر کله چه په اسلام شريعت کښې د اولاد نسبت پلار ته کولې شی او د بلقيس والد انسان وو څکه به بلقيس انسانه بللې شی ځنې روايتونو کښې چه د بلقيس نکاح کول حضرت سليمان عليه السلام سره راغلې دی نو د هغې د صحيوالی په صورت کښې پيرئ سره د نکاح کولو حکم څکه نشی ثابتيدې چه بلقيس پخپله پيرئ نهٔ وه مور ئې پيرئ وه – والله اعلم ــــ د حضرت سليمان عليه السلام د نکاح په باره کښې به زيات بيان راشی –

**آيا يوه زنانه اميره ، حاکمه ، امامه او ملکه جوړيدل جائز دی**: په صحيح بخاری کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ته دا خبر اورسيدو چه اهل فارس د خپل ملک د بادشاه کسری لور خپله ملکه جوړه کړيده نو وې فرمائيل ،﴿لن يفلح قوم ولوا امرهم امرءة﴾([4]) [ هغه

---

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص: ۱۸۲ ، ۱۸۳]
[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۳ص:۲۱۱][رقم:٤٤]
[3] ) أحكام القرآن لابن العربي [ج: ٦ ص:۲۱۰]
[4] ) صحيح البخاري كتاب المغازي ،باب كتاب النبي صلى الله عليه وسلم إلى كسري و قيصر [ج:۲ص:۶۳۷]

قوم به چرې کامیاب نشی چاچه د مشرۍ واګې د يو زنانه په لاس کښې ورکړې په دې وجه د امت علماء په دې اتفاق لرې چه يوې زنانه ته امامت ، خلافت ، بادشاهی او حکومت نشی سپارلې کيدې ، بلکه د مونځ د امامت په شان امامت کبرې [ بادشاهی ] هم صرف د نارينو سره جوړيږي ، بلقيس که د سبا نومې ملک ملکه وه نو دې نه څه حکم څکه نه ثابتيږي چه اول خو د سليمان عليه السلام نکاح کول دې سره ثابت نه دی که دغه ثابت هم شی نو بيا دا ثابت نه دی چه هغې نه پس حضرت سليمان عليه السلام دې لره په مخه حکومت او سلطنت باندې برقراره اوساتله اودا د صحيح روايت څخه ثابت نه دی چې په احکام شرعيه کښې اعتماد پرې اوکړې شی

﴿وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ﴾ يعنی د دغه وخت د حکومت کولو د پاره چه کوم څيزونه ضروری وو هغه ټول ورکړې شوې وو که جهازونه ، ريلونه ، يا اوسنی ايجاد شوی نور څيزونه ورسره نه وو نو آيت سره هم بې سمونه نه دی –

﴿وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ﴾ د عرش لفظی معنی د بادشاهۍ تخت ده ، د حضر ابن عباس رضی الله عنه د يو روايت مطابق د بلقيس د عرش اوږد والې اتيا لاسه ، پلنوالې خلويښت لاسه او لوړ والې ديرش لاسه وو ، په دې باندې ملغلرې ، سرۀ ياقوت ، شنه زبرجد لګيدلی وو او د دې خپې د ملغلرو او جواهراتو وې ، پردې ئې د ريښمو وې اوو عمارتونو کښې ټول په يو بل پسې بند وو چه جرندې [قلفونه] ورته لګيدلې وې – (۱)

﴿وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ﴾ دې نه معلوميږي چه د دې قوم ستاره پرست وو چه د نمر عبادت ئې کولو څنې وائی چه مجوسيان وو د اور او د هر قسم رڼړا عبادت به ئې کولو [قرطبی] (۲)

د ﴿أَلَّا يَسْجُدُوا﴾ ، تعلق ﴿زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ﴾ يا ﴿وَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ﴾ سره دې يعنی شيطان د دوئ په دماغو کښې کينولې وه چه الله تعالی ته سجده مه کوئ يا دا چه دوئ ئی د الله تعالی د لارې نه په دې شان ايسار کړل چه الله تعالی ته دې سجده نه کوی –

**تحرير او خط هم په عامو معاملو کښې شرعی حجت دې** :: ﴿اذْهَب بِّكِتَابِي هَٰذَا﴾ حضرت سليمان عليه السلام د اتمام حجت د پاره صرف خط ليږل کافی اوګڼړل او په دې ئې عمل او کړو دې نه معلومه شوه چه په عامو معاملو کښې خط او تحرير اعتباری ثبوت دې ، فقهاؤ رحمهم الله هلته خط لره کافی نه دې ګڼړلې چرته چه د شرعی ګواهۍ ضرورت وی ولې چه د ټيلفون او خط په ذريعه ګواهی نشی اخستې ګواهی هغه ده چه ګواه پخپله د عدالت په وړاندې حاضر شی او ګواهی ورکړی چه ډير حکمتونه پکښې دی همدغه وجه ده چه نن صبا د دنيا په هيڅ عدالت کښې د خط او ټيليفون په ذريعه ګواهی اخستل کافی نشی ګڼړلې -

**مشرکانو ته خط ليکل او ليږل روا دی** :: دې نه دويمه مسئله دا ثابته شوه چه د دين تبليغ او اسلامی بلنې د پاره مشرکانو او کافرانو ته خطوط ليکل جائز دی څنګه چه د رسول الله صلی الله عليه وسلم داسې خطونه ليکل هم د صحيح احاديثو نه ثابت دی –

**د انسانی اخلاقو لحاظ ساتل په هر مجلس کښې پکار دی اګر چه دغه مجلس که د کفارو هم وی** :: ﴿فَأَلْقِهْ إِلَيْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ﴾ حضرت سليمان عليه السلام چه د هدهد نه د ډاک [خط] اوړونکی کار واخستو نو ورته

۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۱۸٤]
۲) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۱۸٤]

د مجلس دا ادب هم اوښودلو چه هلته د ملکې په سر مۀ اوسه بلکه ترې یو خوا ته شه کومه چه د بادشاهئ د مجلسونو عامه طریقه ده په دې کښې د انسانی زیست روزګار کولو [ژوند تیرولو] او عام مخلوق سره د انسانی اخلاقو چلولو طریقه او ښودلې شوه –

قَالَتْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ إِنِّىٓ أُلْقِىَ إِلَىَّ كِتَٰبٌ كَرِيمٌ ﴿٢٩﴾

اووئیل بادشهې | اے درباریانو | بیشکه زۀ چې یم | راغورزولې شوې دې | ماته | یو خط عزتمند

نو ملکه سبا] اووئیل چې ائې زما درباریانو|ماته خو یو قیمتی خط راغورزولې شوې دې

إِنَّهُۥ مِن سُلَيْمَٰنَ وَإِنَّهُۥ بِسْمِ ٱللَّهِ

بیشکه دا خط | دسلیمان دطرفنه دې | او بیشکه دا خط | شروع شوې دې دنوم دالله نه |

دا د سلیمان علیه السلام د طرفنه دې | او دانې لیکلی دی چې بسم الله

ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴿٣٠﴾ أَلَّا تَعْلُوا۟ عَلَىَّ وَأْتُونِى

چې ښښونکې |مهربانه دې | چی سرکشئ [لوئې] مۀ کوئ | په مابانديې | او راشئ ماته |

الرحمٰن الرحیم | تاسو زما په مقابله کښې سرکشی مه کوئی | او تابعدار راته

مُسْلِمِينَ ﴿٣١﴾ قَالَتْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ أَفْتُونِى فِىٓ أَمْرِى

په حال دمسلمانئ کښې |اووئیل بادشهې | اے سردارانو | فتوی [مشوره] راکړئ ماله | په کار زما

حاضر شئ | هغې اووئیل چې ائې زما درباریانو ؛ ماته په دې باره کښې رائې راکړئی

مَا كُنتُ قَاطِعَةً أَمْرًا حَتَّىٰ تَشْهَدُونِ ﴿٣٢﴾ قَالُوا۟ نَحْنُ

نۀ یم زۀ فیصله کونکې | دیوکار | تر هغې پورې | چی حاضر شئ تاسو | اووئیل هغوئ | مونږه

زه د هیڅ خبرې خلاصه فیصله تر هغې وخت پورې نه شم کولې |ترڅوچې تاسوحاضر نه ئې

أُو۟لُوا۟ قُوَّةٍ وَأُو۟لُوا۟ بَأْسٍ شَدِيدٍ وَٱلْأَمْرُ إِلَيْكِ فَٱنظُرِى

خاوندان دقوت یو | او خاوندان | دجنګ سخت یو | او حکم [اختیار] | تاته دې | پس اوګوره ته

هغوئ اووئیل مونږ ډیر زور آور او جنګیالی یو | او نور ستا اختیار دې نو ته په خپله

مَاذَا تَأْمُرِينَ ﴿٣٣﴾ قَالَتْ إِنَّ ٱلْمُلُوكَ إِذَا دَخَلُوا۟ قَرْيَةً

چې څه حکم کوې ته | اووئیل هغې | چی بیشکه بادشاهان | کله چې ننوزی | یو کلی ته

اوګوره چې مونږ ته څه حکم راکول غواړې |هغې اووئیل چې څه وخت بادشاهان یو کلی

أَفْسَدُوهَا وَجَعَلُوٓا۟ أَعِزَّةَ أَهْلِهَآ أَذِلَّةً وَكَذَٰلِكَ

نو خرابوی هغوئ هغه کلي | او جوړوی | عزتنمد خلق دهغې | ذلیلان | او همدارنګې |

ته ننوځی |نوهغه تباه کوی|او دهغه ځائې معزز خلق بې عزته کوی | او دغه شان

يَفْعَلُونَ ﴿٣٤﴾ وَإِنِّى مُرْسِلَةٌ إِلَيْهِم بِهَدِيَّةٍ فَنَاظِرَةٌۢ

کارونه کوی هغوئ | او بیشکه زۀ | لیږونکې یم | هغوئ ته | څه تحفې | بیا کتونکې یم زۀ |

به هغوئ هم کوی | او زۀ ورته څه سوغات لیږم | نو ګورم چې زما سفیران

بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٣٥﴾ فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمٰنَ

چي دڅه جواب سره | واپس راځي | استاذي زما | نو هر کله چي | ورغي قاصد | سليمان ته

څهٔ خبر راوړي | نو څهٔ وخت چي [دسبا] سفير سليمان ﷺ ته راغلو | نوهغه ورته

قَالَ اَتُمِدُّوْنَنِ بِمَالٍ فَمَآ اٰتٰىنِۦَ اللّٰهُ

نو اووئيل سليمان | آيا امداد کوئ تاسو زما | په مال سره | پس هغه څه | چي راکړي دي ماته الله

اووئيل چي آيا تاسو په مال باندې زما مدد کول غواړئ نو واورئي الله ﷻ چي ماته

خَيْرٌ مِّمَّآ اٰتٰىكُمْ ۚ بَلْ اَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ

ډير بهتره دي | دهغې نه | چي درکړي ئې دي تاسو ته | بلکه تاسو | په تحفو خپلو سره |

څه راکړي دي | هغه دهغې نه ډير ښهٔ دي اکوم چې هغه تاسو ته درکړي دي | بلکه هم تاسو

تَفْرَحُوْنَ ﴿٣٦﴾ اِرْجِعْ اِلَيْهِمْ فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ بِجُنُوْدٍ

خوشحاليږئ | واپس لاړشه اے قاصده | هغوئ ته | پس وربه ولو مونږ هغوئ ته | داسې لښکرې

پخپلو تحفو خوشحاله اوسئ | ته خپلو خلقو ته واپس لاړ شه | مونږ بهٔ ورپسې داسې فوځونه وراوليږو

لَّا قِبَلَ لَهُمْ بِهَا وَلَنُخْرِجَنَّهُمْ

چې نهٔ به وي طاقت دمقابلې | هغوئ لره | دهغه لښکرو سره | اواوبه باسو مونږ هغوئ لره |

چې دهغوئ به هيڅ مقابله اونکړې شي | او مونږ بهٔ ئې دهغه ځائې نه په ذلت سره اوباسو

مِّنْهَآ اَذِلَّةً وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿٣٧﴾

دهغه [ښارسبا] نه | په داسې ذلت سره | چې هغوئ به خوارو ذليله وي |

اوهغوئ به رسوا شي |

## آسان ترجمه قرآن

(پس هدهد هم دغه شان اوکړل او) ملکې (خپلو درباريانو ته) اووئيل: اې د قوم سردارانو! ماته يو عزتمند خط راچولې شوې دې. هغه د سليمان عليه السلام د طرف نه راغلې دې، اوهغه د الله پاک په نوم سره شروع کړې شوې دې چه رحمٰن او رحيم دې. (په هغې کښې ليکلې دي) چه: زما په مقابله کښې سرکشي مه کوئ، او ماته تابع دار راشئ ملکې اووئيل: اې د قوم سردارانو! کومه مسئله چه زما مخې ته راغلې ده. په هغې کښې ماته فيصله کولکې مشوره راکړئ زه د هيڅ مسئلې حتمي فيصله تر هغه وخته پورې نه کوم ترڅو چه تاسو ماسره موجود نه يئ. هغوی اووئيل: مونږ طاقت ور کلک مقابله کونکی خلق يو، وړاندې معامله تاته سپارلې شوې ده، اوس ته اوګوره چه څهٔ حکم کوئې. ملکې اووئيل: حقيقت دا دې چه بادشاهان خلق چه کله په يو علاقه ورشي نو هغه خرابوي، او د هغه ځائې عزتمند اوسيدونکی ذليله کوي، او هم دا کار به دا خلق هم کوي. او زه هغه ته يو ډالۍ ليږم. بيا به ګورم چه آستاذي (قاصدان) څه جواب سره راځي؟ پس کله چه استاذې سليمان عليه السلام ته لاړو نو هغوی اوفرمائيل آيا تاسو په مال باندې زما امداد کول غواړئ؟ د دې جواب دا دې چه الله پاک ماته څه راکړې دي هغه د دې نه ډير غوره

دی کوم چه تاسو ته درکړې شوې دی، خو تاسو خلق په خپله دالۍ باندې خوشحالیدونکی یئ. هغوی ته واپس لاړ شه، ځکه چه اوس به مونږ هغوی ته د داسې لښکرو سره ورځو چه د هغې د مقابلې به په هغوی کښې طاقت نه وی، او هغوی به د هغه ځائې نه داسې اوباسو چه هغوی به ذلیل وی، او ماتحت به اوسیږی.

## خلاصه تفسیر

حضرت سلیمان ﷺ دهدهد سره دا خبرې وکړې دبلقیس په نوم ئې یو خط ولیکلو چه مضمون ئې مخکښې په قرآن کښې راځی او هدهد ته ئې حواله کړو هغه داخط په مخوکه کښې واخستو لاړو او یوازې یا په مجلس کښې ئې بلقیس ته ور وغورزولو [بلقیس] ولوستلو او خپل سرداران ئې دمشورې دپاره جمع کړل او ﴿قَالَتْ يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ إِنِّي أُلْقِيَ إِلَيَّ كِتَابٌ كَرِيمٌ﴾[اووئیل اے ددربارخلقو ماته یو خط ] چه مضمون ئې ډیر [عزتمند] او عظیم الشان دې [ راغورزولې شوې دې ] عظیم الشان ئې ځکه ووئیل چه حاکمانه مضمون دې په کوم کښې چه سره دانتهائی لنډ والی د اعلی درجې بلاغت دې او﴿إِنَّهُ مِن سُلَيْمَانَ﴾[ او هغه دسلیمان]ﷺ [ دطرف نه دې او په دې کښې دا] مضمون [دې ] اول﴿وَإِنَّهُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ [بسم الله الرحمن الرحیم ] او ددې نه پس داچه [ تاسو خلق ] یعنی بلقیس اوټول ارکان د حکومت دکومو سره چه عوام هم تړلی دی ﴿أَلَّا تَعْلُوا عَلَيَّ وَأْتُونِي مُسْلِمِينَ﴾[زماپه مقابله کښې تکبرمه کوئ اوماته تابعداری کوونکی راشئ] مقصود ټولو ته دعوت ورکول دی او دې خلقو خود سلیمانﷺ حال یاد وړاندنه اوریدلې وو اګر چه سلیمانﷺ دوی لره نه پیژندل او اکثر داسې کیدې شی چه لوئ واړه نه پیژنی او واړه لوئ نه پیژنی او یابه ئې دخط راتلونه پس تحقیق کړې وی او دخط په مضمون دخبرولو نه پس ﴿قَالَتْ يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ أَفْتُونِي فِي أَمْرِي﴾[بلقیس ] دا [ووئیل چه اے د دربار خلقو تاسو ماته زما په دې معامله کښې راې راکړئ ] چه مالره دسلیمانﷺ سره څه معامله پکاردی﴾ ﴿مَا كُنتُ قَاطِعَةً أَمْرًا حَتَّىٰ تَشْهَدُونِ﴾[او زه] چرته [دڅه خبرې قطعی فیصله نه کوم ترڅوپورې چه تاسو ماته موجود شوی نه یئ] او په دې کښې شریك او مشیران نه یئ﴿قَالُوا﴾ [هغو خلقو ووئیل چه مونږ] په خپل ذات سره هرشان حاضریو که مقابله او جنګ کول مصلحت وګنړلې شی ﴿نَحْنُ أُولُو قُوَّةٍ وَأُولُو بَأْسٍ شَدِيدٍ﴾ نو مونږ [ لوئ طاقت ور اولوئ جنګ کوونکی یو] او وړاند ﴿وَالْأَمْرُ إِلَيْكِ﴾[اختیارستادې ﴿فَانظُرِي مَاذَا تَأْمُرِينَ﴾ پس ته] مصلحت ته [ګوره څه چه] تجویز کوې [ حکم کوې ﴿قَالَتْ﴾ بلقیس ووئیل چه] زما په نزد جنګ کول مصلحت نه دې خکه چه سلیمان ﷺ بادشاه دې او﴿إِنَّ الْمُلُوكَ﴾[بادشاهان] داسې کوی قاعده ئې ده چه هغوی﴿إِذَا دَخَلُوا قَرْيَةً أَفْسَدُوهَا﴾ [کله یو کلی ته ] په مخالفانه طور سره [داخل شی نو هغه تباه برباد کړی ﴿وَجَعَلُوا أَعِزَّةَ أَهْلِهَا﴾ او دهغې به وسیدونکو کښې چه کوم عزتمندوی هغوی لره] دهغوی د زور کمولو دپاره ﴿أَذِلَّةً﴾[ ذلیل] او خوار[کړی او] که جنګ ورسره وشی نو ممکنه ده چه دهٔ ته غلبه حاصله شی نو بیا ﴿وَكَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ﴾[دا خلق به هم داسې کوی ] نوبې ضرورته په پریشانئ کښې پریوتل دمصلحت نه خلاف دی په دې وجه فی الحال به جنګ کول ملتوی کړې شی [ او] سردست داسې مناسب ده چه﴿وَإِنِّي مُرْسِلَةٌ إِلَيْهِم بِهَدِيَّةٍ﴾ [ زه هغه خلقو ته څه دالئ] دچا سړی په لاس [لیږم ﴿فَنَاظِرَةٌ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُونَ﴾ بیا ګورو چه هغه لیږلې شوی] دهغه

ځاۍ نه [ څه ] جواب [ راوړي؟ ] هغه وخت به دوباره غور وشي چنانچه ډالۍ او تحفې تيارې شوې او قاصد واخستې روان شو ﴿فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمَٰنَ﴾ [ هر کله چه هغه قاصد سليمان علیه السلام ته راغلو ﴿قَالَ أَتُمِدُّونَنِ بِمَالٍ﴾ نو سليمان [ اوفرمائيل ايا تاسو خلق ] يعنى بلقيس او دبلقيس خلق [ په مال سره زما امداد ] کول [ غواړئ ] په دې وجه مو ډالۍ راوړې [ پس ] پوه شئ چه ﴿فَمَآ ءَاتَىٰنِۦَ ٱللَّهُ خَيْرٌ﴾ [ الله تعالى چه څه ماله راکړي دي هغه ددې نه ډيره غوره دى ﴿مِّمَّآ ءَاتَىٰكُم﴾ کوم ئې چه تاسو ته درکړي دي ] ځکه چه تاسو سره صرف دنيا ده اوماسره دين هم دې او دنيا هم تاسونه زياته ده په دې وجه زه ددې څيزونو حريص نه يم ﴿بَلْ أَنتُم بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُونَ﴾ [ البته تاسو په خپلو درکړې شوو څيزونو باند فخرکوئ ] په دې وجه دا ډالۍ مونږ نه [ تاسو ] دا واخلئ ﴿ٱرْجِعْ إِلَيْهِمْ﴾ [ هغو خلقو ته واپس لاړشئ ] که هغوى اوس هم ايمان راوړي نو ټيك ده ورنه ﴿فَلَنَأْتِيَنَّهُم بِجُنُودٍ﴾ [ مونږ به په هغو خلقو داسې فوجونه ورولېږو ﴿لَّا قِبَلَ لَهُم بِهَا﴾ چه دوى به ئې هيڅ مقابله ونه کړې شي ﴿وَلَنُخْرِجَنَّهُم مِّنْهَآ أَذِلَّةً وَهُمْ صَٰغِرُونَ﴾ اومونږ به هغوى دهغه ځاۍ نه ذليل کړى وباسو او هغوى به ] په ذلت سره دهميشه دپاره [ ماتحت ] او رعيت [ جوړشي ] داسې نه ده چه دويستلو نه پس به ازاد پرېښودې شي چه کوم خوا غواړى ګرځى به بلکه هميشه به ذلت دهغوى دپاره لازمى شي

## معارف او مسائل

﴿قَالَتْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ إِنِّىٓ أُلْقِىَ إِلَىَّ كِتَٰبٌ كَرِيمٌ﴾ د کريم لفظى معنى عزتمن ده خط ته ، کريم ، په هغه صورت کښې وئيلې شى چه په هغې باندې مهر لګيدلې وى ، څنګه چه دلته هم د دې تفسير ابن عباس رضی الله عنه قتاده رضی الله عنه او زبير رضی الله عنه وغيره په ، کتاب مختوم ، [ مهر لګيدلى خط ] سره کړيدې معلومه شوه چه حضرت سليمان علیه السلام په خط باندې خپل مهر هم لګولې وو کله چه رسول الله ﷺ ته د عجمى بادشاهانو دا عادت معلوم شو چه بې مهره خط هغوى نه لولى نو بادشاهانو ته ئې د خط لېږلو د پاره مهر جوړ کړو چنانچه په هغې خطونو ئې هم مهر مبارک اولګولو کوم ئې چه قيصر او کسرى ته لېږلى وو معلومه شوه چه په خط باندې مهر لګول څنګه چه د هغه مکتوب اليه عزت دې د غه شان د خط لېږونکى هم عزت دې نن صبا د خط د عزت يوه طريقه په لفافه کښې بندول هم دى چه د مهر قائمقام دى چرته چه د مکتوب اليه عزت کول منظور وى نو په بنده لفافه کښې ئې لېږل سنت ته نزدې طريقه ده -

**د حضرت سليمان علیه السلام خط په کومه ژبه کښې وو** :: حضرت سليمان علیه السلام اګر چه پخپله عرب نه وو خو په عربۍ باندې پوهيدل هغوى د پاره څه لرې خبره ځکه نه وه چه هغوى علیه السلام د مارغانو او ځناورو په ژبه پوهيدل نو عربى خو د ټولو ژبونه زياته غوره ژبه ده ، په هغې خو به خامخا پوهيدل په دې بنا کيدې شى چه حضرت سليمان علیه السلام دغه خط په عربۍ ژبه کښې ځکه ليکلى وى چه مکتوب اليه [ بلقيس ] عربى نسله وه ، هغې دغه خط اولوستلو او پرې پوه شوه او دا هم کيدې شى چه حضرت سليمان علیه السلام دغه خط په خپله ژبه کښې ليکلې وى او بلقيس د ترجمان په ذريعه په هغې خان پوه کړې وى [ روح ] [1]

[1] ) روح المعاني [ج: ١٤ ص: ٤٦٣]

**د خط لیکلو آداب**:: ﴿إِنَّهُ مِن سُلَيْمَانَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ قرآن کريم د انساني زيست روزګار هر طريقه ښودلې ده تر دې چه د خط ليکلو او ليږلو طريقه ئې هم اوښودله - چنانچه د يو پيغمبر [حضرت سليمان عليه السلام ] خط ئې سراسرى نقل کړو چه مسلمانان دې هم دغه طريقه اختيار کړي.

**خط ليږونکي دې اول خپل نوم ليکي وروسته دې د مکتوب اليه نوم ليکي**:: په دې خط کښې روعبي هدايت دا دې چه حضرت سليمان عليه السلام خپل نوم په اول سر کښې او ليکلو ، د مکتوب اليه يې نوم څنګه اوليکلو هغه طريقه د قرآن کريم په الفاظو کښې نه ده ذکر شوې. مګر دومره معلوم شو چې د خط ليکلو دپاره د انبياء کرامو سنت دادی چې اول دې ټول څخه وړاندې خپل نوم اوليکي. اوددې ډير فوائد دی .مثلا ټولو څخه اول چې خط لوستونکی ته معلومه شی چې زه د چا خط وايم. چې هغه هم د هغې ماحول مناسبت سره د خط مضمون اووائي او غور پرې اوکړي. او چې مخاطب په دې تکليف اونشي چې په خط کښې دليکونکي نوم تلاش کوی چې دا د چا خط دې او د کوم ځايه راغلي دې. چنانچه د رسول الله ﷺ چې څومره خطوط منقول او په دې عالم کښې شائع شوی موجود دی د ټولو خطونو مبارکو کښې يې هم دا طريقه اختيار کړې ده چه د ﴿من محمد عبدالله ورسوله﴾[۱] څخه شروع شوی دی. اوس دلته دا سوال پيدا کيږی چه مشر يا لوئ خپل کشر يا وړوکي ته خط ليکي نو خپل نوم وړاندې ليکلو کښې خو څه اشکال نشته ليکن چه کشر خپل مشر ته ليکي نو خپل نوم به وړاندې ليکل مناسب وي او که نهٔ ؟ په دې باره کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم عمل مختلف داسې پاتې شوې دې خو اکثرو حضراتو هم په ادب بانديې د رسول الله ﷺ طريقې له ئې غوره والې ورکړې دې تر دې چه صحابه کرامو رضي الله عنهم که هغوئ ته هم خط ليکلې دې نو هم ئې خپل نوم وړاندې ليکلې دې لکه روح المعاني چه د بحر محيط په حواله د حضرت انس رضي الله عنه دا قول نقل کړې دې : ﴿وما كان احد اعظم حرمة من رسول الله صلى الله عليه وسلم وكان اصحابه اذا اكتبوا اليه كتابا بدؤا بأنفسهم قلت وكتاب علاء الحضرمي يشهد له على ماروى﴾

يعنی رسول الله ﷺ نه خو څوک د تعظيم زيات وړ نهٔ دې مګر صحابه کرامو رضي الله عنهم چه به هغوئ ﷺ ته هم خط ليکلو نو خپل نوم به ئې د هغې په اول سر کښې ليکلو چنانچه حضرت علاء الحضرمي رضي الله عنه کوم خط چه د هغوئ په نوم ليکلې وو هغه هم د دې ګواهي ورکوی [ چه هغې خپل نوم پکښې وړاندې ليکلې وو] - البته روح المعاني چه دغه روايتونه نقل کړل نو بيا ليکي چه خبره په غور والې کښې ده ، روا والی کښې نهٔ ده يعنی روا ټول دی چه خپل نوم وړاندې ليکي او که روستو چنانچه د فقيه ابی الليث په بستان کښې دی چه که څوک د هغه چا نوم په خط کښې وړاندې ليکي چاته چه خط ليږی نو دا هم جائز ځکه دی چه په امت کښې دا طريقه راروانه ده او دا څه بد نهٔ ګڼړلې کيږی [ روح المعاني وقرطبی ] [۲]

**د خط جواب ورکول هم د پيغمبرانو ﷺ سنت طريقه ده**:: تفسير قرطبی کښې راغلي دی چه د چا د خط جواب ورکول ځکه مناسب دی چه دا يو قسم د سلام جواب ورکول دی چنانچه د يو رايت مطابق حضرت ابن عباس رضي الله عنه به دسلام دجواب پشان دخط جواب ورکول هم واجب ګرځول [قرطبی] [۳]

---

[۱] ) ترجمه:- دالله دبنده او د هغه درسول د طرفنه.
[۲] ) روح المعاني [ج: ۱٤ ص:٤٦٦] و تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۱۹۲ ، ۱۹۳]
[۳] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص: ۱۹۳]

**په خطونو کښې بسم الله ليکل** :: د حضرت سليمان عليه السلام د دغه بيان شوی خط نه او د رسول الله ﷺ د ټولو خطونو مبارکو نه په خط کښې بسم الله ليکل سنت د انبياؤ ثابتيږی اوس دا چه خط ليږونکې دې دخپل نوم نه اول بسم الله ليکی او که روستو؟ نود رسول الله ﷺ ټول خطونه مبارک ددې ګواه دی چه اول دې بسم الله وروسته د ليږونکی نوم اووروسته چه چاته ليږلې شی د هغه نوم ليکل پکار دی قرآن کريم نه هم دا جائز معلوميږی چه اول د ليږونکی نوم اوليکلې شی وروسته بسم الله او ليکلی شی لکه فرمائی ﴿إِنَّهُ مِن سُلَيْمَانَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ ليکن ابن ابی حاتم د يزيدبن رومان نه نقل کړی دی چه په اصل کښې د حضرت سليمان عليه السلام د خط ليکل داسې وو –
﴿بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ من سليمان بن داؤد الى بلقيس ابنة ذي شرح وقومها ان لاتعلوا –الخ﴾ (١)
خو هغې خپل قوم ته چه آؤرولو نو د حضرت سليمان عليه السلام نوم نه وړاندې واؤرولو ، قرآن پاك کښې چې څه راغلی دی هغه د بلقيس قول دې ، قرآن پاك کښې ددې خبرې صداقت نشته دې چې د سليمان عليه السلام په اصل خط کښې بسم الله مقدمه وه که د سليمان عليه السلام نوم؟ او دا هم کيدې شی چه د حضرت سليمان عليه السلام نوم د لفافې د پاسه ليکلې شوې وې او دننه پکښې بسم الله اول ليکلې شوی وی . بلقيس چې کله خپل قوم ته آؤرولو نو د سليمان عليه السلام نوم يې مقدم کړو.
**مسئله** دخط ليکلو اصل سنت طريقه دا ده چه د هغې په شروع کښې بسم الله او ليکلی شی ليکن د قرآن او سنت د نصونو او اشارو په بنياد فقهاؤ حضراتو رحمهم الله دا قاعده کليه ليکلې ده چه چرته د الله تعالی دنوم يا دبسم الله د ادب يقين نۀ وی بلکه هسې اخوا ديخوا يبنوې ، غور خولې شی نو هلته ئې ليکل جائز نۀ دی نن مونږه ګورو چه خطونه اکثر په بې ځايه ګنده ځايونو کښې غور خولې شی څکه دبسم الله ليکلو په ځای صرف د ليکلو په شروع کښې په ژبه سره بسم الله وئيل پکار دی.

**داسې تحرير د چا کافر په لاس کښې ورکول جائز دی چه په کښې څه قرآنی آيت ليکلې شوی وی** :: حضرت سليمان عليه السلام چه خط بلقيس ته ليږلو نو هغه وخت هم کافره وه او په دغې خط کښې بسم الله ليکلې شوې وه څکه داسې کول جائز معلوميږی دغه شان رسول الله ﷺ هم په هغه خطونو کښې قرآنی آيتونه ليکلی دی کوم ئې چه عجمی کافرانو او مشرکانو بادشاهانو ته ليکلی وو خلاصه د خبرې دا شوه چه په کوم خط يا څه کتاب کښې قرآنی آيت يا آيتونه ليکلې شوی وی د هغې حکم د قرآن نۀ دې مشرک کافر يا بې اودسه مسلمان ورته هم لاس وروړې شی خو قرآن دې کسانو ته ورکول او لاس ئې ورته وړ اوړل جائز نۀ دی [عالمګيری کتاب الحظر والاباحة] (٢)
**په مختصر جامع او بليغ اثر ناك انداز کښې ليکل پکار دی** :: د حضرت سليمان عليه السلام په دغې خط مبارک چه نظر واچوئ نو درته به معلومه شی چه هم په يو څو کرښو کښې ئې ټول ضروری مضمونونه راجمع کړل، د بلاغت اعلی معيار ئې هم پکښې قائم اولرلو د کافر په مقابله کښې خپل بادشاهی رعب ئې هم څرګند کړو دې سره ئې د الله تعالی صفات کمال هم بيان کړل او اسلام طرف ته ئې بلنه هم ورکړه د تکبر او لويئ بدی ئې هم بيان کړه په حقيقت کښې دا خط هم د قرآنی اعجاز يو

(١) ترجمه:- شروع کوم په نامه دالله چې بې حده مهربانه او ډير رحم کوونکې دې. دسليمان بن داؤد د طرفنه دذی شرح لور بلقيس او دهغې قوم طرفته.
(٢) عالمګيری کتاب الکراهية ، الباب الخامس في آداب المسجد والقبلة والمصحف وما کتب فيه شئ من القرآن إلخ [ج: ٥ص:٣٢٣] (بالأختصار)

نمونه ده - حضرت قتاده رضي الله عنه فرمائيلي دی چه د ټولو پيغمبرانو عليهم السلام سنت دا دی چه تحرير کښې دې اوږدوالې نۀ وی خو چه څه ضروری مضمون ترې نه پکښې پاتې هم نشی [ روح المعانی ] [1]

**په مهمو کارونو کښې مشوره کول سنت دی په دې کښې د نورو د رائ نه فائده هم حاصلولې شی او د خلقو زړۀ ورې هم ساتلې شی** - ﴿قَالَتْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ أَفْتُونِى فِىٓ أَمْرِى مَا كُنتُ قَاطِعَةً أَمْرًا حَتَّىٰ تَشْهَدُونِ﴾ أَفْتُونِى ، د ،فتوی ، نه مشتق دې د دې معنی د يوې خاصې مسئلې جواب ورکول ده ، دلته مشوره ورکول او خپله رائ ښکاره کول مراد دی کله چه ملکه بلقيس ته د حضرت سليمان عليه السلام خط اورسيدو نو هغې د خپل حکومت غړی راجمع کړل او دا واقعه ئې ورته بيان کړه او مشوره ئې ترې اوغوښته چه اوس موږ له څه کول پکار دی ؟ د هغوئ د رائ معلومولو نه وړاندې ئې د هغوئ د زړه ساتنې او همت زياتولو د پاره ئې ورته اول دا اوئيل چه ؛ ، زۀ به څه فيصله ستاسو د رائ نه بغير نۀ کوم ، نتيجه ئې دا راؤخته چه فوځ او وزيرانو ورته په جواب کښې د خپلې هر قسم قربانئ ورکولو دا ډيرنه پيش کړه:

﴿نَحْنُ أُو۟لُوا۟ قُوَّةٍ وَأُو۟لُوا۟ بَأْسٍ شَدِيدٍ وَٱلْأَمْرُ إِلَيْكِ﴾ حضرت قتاده رضي الله عنه اوفرمائيل چه موږ ته دا بيان کړې شوی دی چه د بلقيس د مجلس شورئ غړی درې سوه ديارلس وو او په هغې کښې هر يو کس د لسو زرو کسانو امير او نمائنده وو [قرطبی ] [2]

دې نه معلومه شوه چه په مهمو کارونو کښې د مشورې کولو دستور پخوانې دې اسلام مشورې ته خاص اهميت ورکړې دې او د حکومت غړی ئې د مشورې پابند جوړ کړې دی تر دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم هم د دې پابند جوړ کړې شو سره د دې چه په حقيقت کښې هغوئ صلى الله عليه وسلم ته د مشورې ضرورت څکه نۀ وو چه په وحی او آسمانی هدايتونو سره د هغوئ صلى الله عليه وسلم حفاظت کولې شو د دې اصلی وجه دا وه چه امت د پاره يو سنت قائم شی څکه ورته الله تعالی داسې اوفرمائيل ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِى ٱلْأَمْرِ﴾ [ يعنی تاسو په مهمو کارونو کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه مشوره اخلئ ] په دې کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم زړۀ ساتل او عزت زياتول هم دی او د حکومت راتلونکو غړو ته پکښې تاکيد کول هم دی چه هغوئ دې په مشورې سره کار کوی -

**د حضرت سليمان عليه السلام د خط مبارک په جواب کښې د ملکه بلقيس عکس العمل** :: ملکه بلقيس د حکومت د غړو د مشورې او امداد حاصلولو نه پس پخپله هم دا يو رائې قائمه کړه چه د حضرت سليمان عليه السلام امتحان به واخلو او تحقيق به اوکړو چه هغوئ واقعی د الله تعالی پيغمبر او نبی دې ؟ او دوئ چه کوم حکم ورکوی هغه واقعی د الله تعالی د اړخه دی يا د ملک او دنيا حاصلولو اراده ئې ده ؟ ددې امتحان څخه ددې مطلب دا وو چې که واقعی هغه نبی او رسول وی نو دهغه د حکم اتباع به کول لازمی وی . او هغه سره د مخالفت هيڅ صورت دې اختيار نه کړې شی . او که بادشاه دې او ملك باندې قبضه کول غواړی او موږ خپل غلامان جوړل غواړی نو بيا به غور کولې شی دهغه مقابله به څنګه کول پکار وی. د امتحان اخستو ئې دا طريقه اختيار کړه چه حضرت سليمان عليه السلام ته به څه ډالئ او تحائف اوليږلې شی که ددې په اخستو هغه راضی شو نو دا به ددې خبرې علامت وی چې هغه بادشاه دې او که واقعی رسول او نبی وی نو دا به څکه

---

[1] ) روح المعاني [ج: ١٤ ص: ٤٦٧]

[2] ) تفسير القرطبي [ ج: ١٣ ص: ١٩٤ ]

قبولي نکړي چه غرض ئې صرف د خلقو ايمان راوړل او په هغې راضي کيدل دي دا مضمون ابن جرير ﷫ په ګڼو سندونو سره د حضرت ابن عباس ﷠، مجاهد ﷫، ابن جريج ﷫ او ابن وهب ﷫ نه نقل کړيدې بيان ئې په دې آيت کښې دې.

﴿وَإِنِّي مُرْسِلَةٌ إِلَيْهِم بِهَدِيَّةٍ فَنَاظِرَةٌ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُونَ﴾ [يعنى زه حضرت سليمان ﷺ او د هغوئ د حکومت غړو ته يوه ډالئ ليږم ګورم به چه زما قاصدان به څه سوال جواب راوړي ؟ - ]

**د بلقيس د قاصدانو په سليمانى دربار کښې حاضريدل** :: په اسرائيلي تاريخي روايتونو کښې د بلقيس د قاصدانو او د راليږلو تحفو ډير تفصيلات بيان شوې دی په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه په ډالئ کښې څه د سرو زرو خښتې وې څه جواهرات يو سل غلامان او يو سل وينځې وې خو غلامان ئې د وينځو او وينځې ئې د غلامانو په لباس کښې ورليږلې وې، ورسره يو خط هم وو چه په کښې د حضرت سليمان ﷺ د امتحان اخستو په غرض څه سوالونه وو د تحفو په چوڼ کولو کښې هم د هغوئ امتحان اخستلو غرض وو حضرت سليمان ﷺ ته الله تعالى د دغې ډالو تفصيل د وړاندې نه بيان کړې وو حضرت سليمان ﷺ پيريانو ته حکم ورکړو چه د دربار نه تر نهو پراؤنو [ تقريبا ديرشو ميلونو ] پورې د سرو او سپينو زرو د خښتو فرش جوړ کړئ او د لارې دواړو غاړو باندې عجيب الخلقت ځناور دې اودرولې شي چه د هغې لوئ او وړې بولى هم په دغې فرش باندې وی دغه شان ئې خپل دربار هم په خاص شان سره ښائسته کړې وو - ښى او ګس اړخ ته ئې څلور څلور زره د سرو زرو کرسئ په قطار کيښوې شوې چه يو اړخ ته پرې عالمان او بل اړخ ته پرې وزيران او د حکومت غړئ به کيناستل ټول دربار په جواهراتو سره ښائسته کړې شو د بلقيس قاصدانو چه د سرو او سپينو زرو فرش باندې ولاړ ځاروی اوليدل نو خپلې تحفې [ ډالئ ] نه اوشرميدل، په ځنې روايتونو کښې راځي چه خپلې د سرو زرو خښتې ئې هلته ګزار کړې چه نور ور تير شو نو دوه اړخيز د وحشى [ ځنګلى ] ځناورو او مارغانو صفونه ئې اوليدل چه د پيريانو صفونه ئې اوليدل نو ډير زيات په رعب کښې شو چه دربار کښې د حضرت سليمان ﷺ خوا ته اورسيدل نو هغوئ ﷺ ورسره په مسکا مسکا ملاقات اوکړو د هغوئ ميلمستيا او خاطر مدار ئې اوکړو خو ډالئ ئې ورته واپس کړې او د بلقيس د ټولو سوالونو جوابونه ئې ورکړل [ د تفسير قرطبى نه په لنډو ] (۱)

**د حضرت سليمان ﷺ د اړخه د بلقيس ډالئ واپس کول** :: ﴿قَالَ أَتُمِدُّونَنِ بِمَالٍ فَمَا آتَانِيَ اللَّهُ خَيْرٌ مِّمَّا آتَاكُم بَلْ أَنتُم بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُونَ﴾ [يعنى کله چې د بلقيس قاصدان د دې تحفو سره سليمان ﷺ ته اورسيدل نو حضرت سليمان ﷺ د دغې تحفو واپس کولو په وخت ورته اوفرمائيل آيا په مال سره تاسو زما مدد کول غواړئ حالانکه ماته د الله تعالى راکړې مال دولت ستاسو د مال نه ډير زيات غوره دې څکه زه دا مال نه قبلوم بيرته ئې يو سئ او په خپله ډالئ باندې هم تاسو خوشحاله اوسئ -

**د چا کافر ډالئ قبلول جائز دی او که نه ؟ د دې تفصيل او تحقيق** :: حضرت سليمان ﷺ چه د بلقيس ملکې ډالئ قبوله نه کړه د دې څخه دا معلوميږي چه د کافر ډالئ قبولول جائز يا غوره نه دی د مسئلې تحقيق دا دې چه د کافر په ډالئ قبلولو سره که خپل يا د مسلمانانو په خيږه کښې څه خلل راځي يا د دوئ په باره کښې د رائ څه کمزوری ترې پيدا کيږي نو دهغوئ تحفه قبلول

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۱۹٦ تا ۱۹۸ ]

درست نۀ دی. [روح المعانی] (۱)
البته که څه دینی بښیګړه او مصلحت د دغې ډالۍ د قبلولو تقاضا کوی مثلا په دغې بنا دغه کافر اسلام ته رامائیږی او د مسلمانانو امید ئې وی یا دهغه څه شر فساد پرې دفع کیدې شی نو د قبلولو څه ګنجائش ئې شته دې، د رسول الله ﷺ سنت په دې معامله کښې هم دا پاتې شوې دې چې د ځنې کافرانو ډالۍ ئې قبوله کړه او ځنو ئې قبوله نۀ کړه - د عمدة القاری شرح بخاری په، کتاب الهبه، کښې او د سیر کبیر، په شرح کښې د حضرت کعب بن مالک نه روایت دې چه د براء ؓ رور عامر بن مالک په مدینه طیبه کښې څه ضرورت د پاره راؤرسیدو هغه کافر او مشرک وو د رسول الله ﷺ په خدمت کښې ئې دوۀ آسونه او دوه جوړه جامې ئې په ډالۍ کښې پیش کړې هغوئ ﷺ ورته د واپس کولو وجه دا اوښوده چه مونږ د مشرک ډالۍ نۀ قبلوو دغه شان کله چه عیاض بن حمار المجاشعی ؓ د هغوئ ﷺ په خدمت کښې یو ډالۍ پیش کړه نو ورته ئې اوفرمائیل چه تۀ مسلمان ئې ؟- هغه اووئیل چه نۀ ـــ نو هغه ډالۍ ئې ورته واپس کړه او وې فرمائیل چه څه الله تعالی د مشرکانو د ډالۍ د قبلولو نه منع کړې یم، خو بل خوا داسې روایتونه هم شته چه رسول الله ﷺ د ځنی مشرکانو ډالۍ قبولې کړې دی په یو روایت کښې دی چه ابو سفیان کله مشرک وو او دڅرمنې یوه ډالۍ ئې د هغوئ ﷺ په خدمت کښې پیش کړه نو هغوئ ﷺ قبوله کړه ـ دغه شان دیو یهودی د داسې جامې ډالۍ ئې قبوله کړه چه دزلیدونکو رینښموه، شمس الائمة ؒ د دې د نقل کولو نه پس فرمائیلې دی چه زما په نزد د دې سبب دا وو چه که د یو کافر د اسلام راوړو امید به ئې نۀ وو هغوئ ته ئې ډالۍ واپس کړې دی او چه امید به ئې وو نو قبولې به ئې کړه [عمدة القاری کتاب الهبة] (۲)
بلقیس چه دا ډالۍ رد کول د حضرت سلیمان علیه السلام د پیغمبر کیدو ننبه اوګرځوله نو د هغې مطلب دا نۀ وو چه پیغمبر له د کافر ډالۍ قبلول جائز نۀ دی بلکه د هغې سبب دا وو چه دغه ډالۍ یو قسم رشوت وو چه په هغې سره ئې د حضرت سلیمان علیه السلام د حملې څخه خان بچ کول وو -

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | يَٰٓأَيُّهَا الْمَلَؤُا | اَيُّكُمْ | يَأْتِيْنِيْ | بِعَرْشِهَا | قَبْلَ |
| اووئیل سلیمان | اے درباریانو | کوم یوله تاسو نه | به راوړی ماته | تخت دهغې | مخکښې |

[سلیمان علیه السلام] اووئیل چې اې سردارانو ! څوک به ماته دهغې [ملکې] تخت ددې نه وړاندې راوړسوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنْ يَّأْتُوْنِيْ | مُسْلِمِيْنَ ﴿۳۸﴾ | قَالَ | عِفْرِيْتٌ | مِّنَ الْجِنِّ |
| ددې نه چې راشی هغوئ ماته | مسلمان [تابع] | اووئیل | یو زور ور پیری | دپیریانونه |

چې هغوئ راته تابع راشی ؟ انو یو مضبوط پیری ورته اووئیل چې څه به ئې درته د دربار

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنَا اٰتِيْكَ | بِهٖ | قَبْلَ اَنْ تَقُوْمَ | مِنْ مَّقَامِكَ | وَاِنِّيْ |
| زۀ به راوړم تاته | دا تخت | مخکښې ددې نه چې ته پاسې | دخائې خپل نه | او بیشکه زۀ |

ختمیدونه وړاندې راحاضر کړم او زۀ ددې طاقت لرم

(۱) روح المعاني [ج: ۱۴ ص: ۴۷٤]
(۲) عمدة القاري كتاب الهبة باب قبول الهبة من المشركين [ج: ۲۰ ص: ۱۵۸] وشرح السير الكبير باب صلة المشرك [ج: ۱ ص: ۱۰۷]

عَلَيْهِ لَقَوِيٌّ أَمِينٌ ۝ قَالَ الَّذِي عِنْدَهُ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ

په راوړلو دهغې | قوي | امانتګر یم | اووئیل هغه سړي | چې دهغه سره | علم وو د کتاب نه

او امانتدار یم | یو بل سړي چې د کتاب علم ورسره وو | هغه اووئیل

أَنَا آتِيكَ بِهِ قَبْلَ أَنْ يَرْتَدَّ إِلَيْكَ طَرْفُكَ ۚ فَلَمَّا

زه به راوړم تاته | دا تخت | مخکښې ددې نه | چې واپس راشي | تاته | نظر ستا | نو هر کله چې

چې زه ئې د سترګو درپولو نه وړاندې راحاضرولې شم | نو چې سلیمان ؑ هغه تخت

رَآهُ مُسْتَقِرًّا عِنْدَهُ قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّي

اولیدو سلیمان هغه | پروت | خپل خواته | نو وې وئیل | داګار دفضل درب زمانه دې |

خپل خان سره پروت اولیدو | نو وې وئیل چې دا زما د رب فضل دې |

لِيَبْلُوَنِي ءَأَشْكُرُ أَمْ أَكْفُرُ ۖ وَمَنْ شَكَرَ

دپاره ددې چې وازمائي مالره | چې شکر اوباسم زه | یا ناشکري کوم زه | او څوک چې شکر کوي |

چې په ما امتحان اوکړي | چې زه ئې شکر اوباسم | او که ناشکري کوم او څوک چې شکر کوي

فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِ ۖ وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ رَبِّي

نو بیشکه | هغه شکر کوي | دپاره دځان خپل | او څوک چې ناشکري کوي | پس بیشکه | رب زما

نو د خپل ځان ګټې له شکر کوي | او څوک چې ناشکري کوي | نو زما رب

غَنِيٌّ كَرِيمٌ ۝ قَالَ نَكِّرُوا لَهَا عَرْشَهَا نَنْظُرْ

بې حاجته دې | کرم والا دې | اووئیل سلیمان | نا آشنا کړئ | هغې ته | تخت دهغې | مونږ ګورو

غني دې | او کریم دې | سلیمان ؑ اووئیل چې ددې دتخت شکل بدل کړئ | چې اوګورو

أَتَهْتَدِي أَمْ تَكُونُ مِنَ الَّذِينَ لَا يَهْتَدُونَ ۝

چې آیا هغه صحیح لاره مومي | یا کیږي هغه | دهغه کسانو نه | چې لارنۀ مومي |

چې هغه پیژندې شي | که په هغه ناپوهه خلقو کښې ده چې څیز پیژندلې نشي

## آسان ترجمه قرآن

سلیمان علیه السلام اوفرمائیل : اې اهل دربارا په تاسو کښې څوک شته چه دهغې زنانه تخت دهغې د تابع کیدو نه مخکښې ماته راوړي؟ یو طاقتور پیری اووئیل: تاسو به د خپل ځائې نه لا نه یئ پاسیدلي چه د هغې نه مخکښې به ئې درته زه راوړم. او یقین ساتئ چه زه په دې کار باندې پوره طاقت لرم. (او) امانت دار هم یم چا سره چه د کتاب علم وو. هغه اووئیل: زه به ئې ستاسو د سترګو د رپولو نه مخکښې تاسو ته راوړم. پس چه کله سلیمان علیه السلام هغه تخت خپل خوا کښې اولیدو نو وې وئیل : دا زما د رب فضل دې، چه هغه په ما باندې ازمیښت اوکړي چه زه شکر کوم یا ناشکري؟ او څوک چه شکر کوي، نو دخپلې فائدې دپاره شکر کوي او څوک چه ناشکري کوي نو زما رب بې نیازه دې، کریم دې. سلیمان علیه السلام (خپلو خادمانو ته) اووئیل: د دې ملکې دا تخت دهغې دپاره نا آشنا کړئ. ګورو چه هغه ئې پیژني، یا که

**هغه د هغه خلقو نه د دې چه حقیقت ته نه رسیږي؟**

## خلاصه تفسیر

غرض دادې چه هغه قاصد خپلې تحفې واخستې واپس لاړو اوټوله قصه ئې بلقیس ته بیان کړه نو دحالاتونه دې ته دحضرت سلیمان ﷺ دعلم او نبوت دکمالاتو یقین وشو او دحاضریدو په اراده دا دخپل ملك نه راروانه شوه [سلیمان ﷺ ] ته په وحی سره یاد مارغه وغیره په ذریعه ددې راتلل معلوم شول نو ﴿قَالَ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ أَيُّكُمْ﴾ دوی ﷺ خپلو درباریانو ته [وفرمائل چه اے د دربار خلقو په تاسوکښې څوك داسې شته ﴿يَأْتِينِى بِعَرْشِهَا قَبْلَ أَن يَأْتُونِى مُسْلِمِينَ﴾ چه دهغې] بلقیس [تخت وړاندد دې نه چه هغه خلق ماته فرمانبردار راشي حاضرکړي] دمسلمین قیدد واقعې د اظهار دپاره دې ځکه چه دغه خلق په دې قصد سره راتلل دتخت راغوښتل غالبا په دې غرض سره دی چه هغه خلق زما معجزه هم ووینی ځکه چه دومره لوئ تخت اوبیا په دومره سختو پهرو کښې په دې طور ناڅاپه راوړل چه څه اطلاع ئې هم نه وی دبشری طاقت نه بهرخبره ده که دپیریانو په تسخیر سره وی بیا هم دپیریانو خود بخود تابع کیدل یوه معجزه ده اوکه دچا ولی دامت په ذریعه وی په کرامت سره نو دولی کرامت هم دنبی معجزه وی اوکه بغیر دڅه واسطې وی نو بیا خو دمعجزې کیدل ظاهره خبره ده په هرحال په هرطور سره دا معجزه او دنبوت دلیل دې په دې وجه مقصود به دا وی چه داندرونی کمالاتو سره دا دمعجزې کمالات هم ووینی چه ایمان او اطمینان ئې زیات راشي ﴿قَالَ عِفْرِيتٌ مِّنَ ٱلْجِنِّ﴾ [یو قوی وجود یو پیری ] په جواب ] کښې [عرض وکړو ﴿أَنَا۠ ءَاتِيكَ بِهِۦ قَبْلَ أَن تَقُومَ مِن مَّقَامِكَ﴾ چه زۀ به داستا په خدمت کښې حاضرکړم مخکښې ددې نه چه ته دخپل اجلاس نه پورته شې او] اګر چه هغه ډیر درونددې مګر ﴿وَإِنِّى عَلَيْهِ لَقَوِىٌّ﴾[زۀ ئې ] په راوړو [طاقت لرم ] او اګر چه ډیرقیمتی او په ملغلروسره جړاؤ دې مګرزۀ ﴿أَمِينٌ﴾[ امانت داریم ] په هغې کښې به هیڅ خیانت نه کوم ﴿قَالَ ٱلَّذِى عِندَهُۥ عِلْمٌ مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ﴾[ دچاسره چه دکتاب ] الهي یعنی دتورات یا دبل وحی کړې شوی کتاب چه دالله تعالی دنومونو تاثیرات په کښې وو دهغې [علم وو] نژدې خبره داده چه دا په خپله حضرت سلیمان ﷺ ترې نه مراد دې غرض [هغه] علم والا هغه پیری ته [ اووئیل چه] بس په تاکښې خو دومره قوت دې او﴿أَنَا۠ ءَاتِيكَ بِهِۦ قَبْلَ أَن يَرْتَدَّ إِلَيْكَ طَرْفُكَ﴾[زۀ به دا ستا په وړاند ستا دسترګو د رپولو نه وړاند راحاضرکړم ] ځکه چه دمعجزې په طاقت سره به ئې راوړم چنانچه دغه شان دوی الله تعالی ته دعا کړه یا دالله تعالی د څه نوم په ذریعه سره تخت فورا په مخکښې موجود شو ﴿فَلَمَّا رَءَاهُ مُسْتَقِرًّا عِندَهُۥ﴾[هرکله چه سلیمان ﷺ ] تخت لره په خپل مخکښې ولیدو نو] خوشحاله شو او په طور دشکرئ ﴿قَالَ هَٰذَا مِن فَضْلِ رَبِّى﴾[اوئ ونیل چه دا زمادپروردګاریو فضل دې ] چه زما په لاس ئې دا معجزه ظاهره کړه ﴿لِيَبْلُوَنِىٓ ءَأَشْكُرُ أَمْ أَكْفُرُ﴾[چه هغه زما ازمائش وکړی چه زۀ شکر کوم یا] خدائ مه کړه [ناشکری کوم اوظاهره ده﴿وَمَن شَكَرَ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِۦ﴾ چه څوك شکرکوی هغه دخپل ځان دفائدې دپاره شکر کوی ] دالله تعالی هیڅ نفع نشته [ او] دارنګ﴿وَمَن كَفَرَ﴾[ کوم چه ناشکری کوی ] هغه هم خپل نقصان کوی دالله تعالی هیڅ نقصان نشته ځکه چه ﴿فَإِنَّ رَبِّى غَنِىٌّ كَرِيمٌ﴾ [ زما رب غنی دې کریم دې] ددې نه پس [سلیمان] ﷺ دبلقیس دعقل ازمائیلو دپاره ﴿قَالَ نَكِّرُوا۟ لَهَا عَرْشَهَا﴾[ حکم وکړو چه ددې

] دعقل د ازمائش [ دپاره ددې دتخت صورت بدل کړئ ] چه ددې ډيرې طريقې کيدې شي مثلا ذملغلرو ځايونه بدل کړئ ياپه څه بله طريقه سره ﴿نَنظُرْ أَتَهْتَدِي أَمْ تَكُونُ مِنَ الَّذِينَ﴾ [چې مونږ اوګورو چه دې ته ئې پته لګی ياددې شمير په هغو کښې دې کومو ته چه] دداسې خبرو ﴿لَا يَهْتَدُونَ۝﴾[پته نه لګی] په اول صورت کښې به معلومه شي چه دا هوښياره ده او دهوښيار نه په حقه خبره دپوهيدو زيات اميد وی او دې چه په حق پوه شی نو اثر ئې هم تر لرې پورې رسيدې شی او په دويم صورت کښې به ددې نه په حق دپوهيدو اميد کم وی

## معارف او مسائل

**په سليمانی دربار کښې د بلقيس حاضريدل:** قرطبی[1] د تاريخی روايتونو په حواله ليکلی دی چه هرکله د بلقيس قاصدان په رعب او حيرانتيا کښې واپس لاړل او د حضرت سليمان عليه السلام اعلان جنګ ئې هم واؤرولو نو بلقيس خپل قوم ته اووئيل چه اول خو ځما هم دا خيال وو چه حضرت سليمان عليه السلام د دنياوی نورو بادشاهانو په شان نۀ دې بلکه د الله تعالی د طرفه ورته يو خاص منصب هم ورکړې شوې دې او د الله تعالی پيغمبر سره جنګ کول ګويا د الله تعالی سره جنګ کول دی چه مونږ ئې طاقت نۀ شولرلې داسې ئې اووئيل او د حضرت سليمان عليه السلام په خدمت کښې دحاضريدو تيارې ئې شروع کړه دولس زره سرداران ئې ځان سره کړل چه ورلاندې يو يو لکهـ فوځيان وو[2] حضرت سليمان عليه السلام ته الله تعالی داسې رعب او جلال ورکړې وو چه د هغوئ عليه السلام په مجلس کښې د خبرې شروع چا نۀ شوه کولې يو ځل حضرت سليمان عليه السلام د لرې نه ګردونه اوچيتيدل اوليدل نو موجود خلقو نه ئې تپوس اوکړو چه دا څه دی خلقو اووئيل چه بلقيس خپلو ملګرو سره راروانه ده په ځنو روايتونو کښې راځی چه دا په دغه وخت د حضرت سليمان عليه السلام د دربار نه يو فرسخ تقريبا درې ميله لرې وه دغه وخت حضرت سليمان عليه السلام خپلو لښکريانو ته اوفرمائيل:

﴿قَالَ يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ أَيُّكُمْ يَأْتِينِي بِعَرْشِهَا قَبْلَ أَن يَأْتُونِي مُسْلِمِينَ۝﴾ هر کله چه حضرت سليمان عليه السلام په دې خبر شو چه بلقيس د تابعدارئ په خيال راروانه ده نو اراده ئې اوکړه چه شاهی رعب، داب سره سره هغه پيغمبری معجزه هم اووينی چه په ايمان راوړو کښې ئې زيات مددګار ثابت شی حضرت سليمان عليه السلام ته الله تعالی دا معجزه هم ورکړې وه چه جنات [پيريان] ئې هم تابع وو معلوميږی چه د الله تعالی د اړخه په اشاره موندلو سره هغوئ اراده اوکړه چه د بلقيس د راسيدو نه وړاندې د هغې تخت دلته راؤرسولې شی ځکه ئې موجود خلقو ته اوفرمائيل چه پيريان هم پکښې وو چه دغه وخت به ئې ماله څوک راوړی ـــ تخت راوړلو کښې حکمت دا وو چه په هغې باندې د هغوئ پيغمبری او معجزه هم څرګنده شی چه کوم تخت په اوو مضبوطو جندره شوو شاهی محلونو کښې بند دې هلته ئې خپل خلق هم نشو ورتلې د هغۀ ځای نه دلته ځنګه بې دزه بې دوزه دومره زر راؤرسيدو ؟ يقينا چه دا خو خدائی طاقت او پيغمبری معجزه کيدې شی چه د يقين راتلو د تولو نه غټه ذريعه جوړيدې شی دې سره دا يقين هم لازم وو چه حضرت سليمان عليه السلام ته د الله

---

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۰۲] وانظر تفسير روح المعاني [ج: ۱٤ ص: ٤٧٧]
[2]) حضرت مصنف داول نه وئيلی وو چې دا اسرائيلی روايات دی، او په دې باندې يقين نه دې پکار، خاص طور دا روايت چې عقل نه هم بهر دې او دعلامه آلوسی د وينا مطابق دروغوته زيات نزدې دې. محمد تقی ۱/۱/۱٤۲۳ هجری.

تعالی د ارخه يو خاص منصب حاصل دې چه د عادت نه داسې خلاف كارونه د هغوئ په لاس مبارك ښكاره كيدل ګنديږي [ ابن جرير ذكر كړل او غوره ئې كړل ] (١)

﴿قَبْلَ أَنْ يَأْتُونِي مُسْلِمِينَ﴾ د مسلم جمع ده لغوي معنى ئې تابعداري او فرمانبرداري ده د شريعت په اصطلاح كښې مؤمن ته مسلم وئيلې شي دلته د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د قول مطابق لغوي معنى مراد ده ځكه چه دغه وخت د ملكه بلقيس اسلام راوړل ثابت نۀ دی بلكه هغه هله مسلمانه شوې وه چه حضرت سليمان عليه السلام سره ئې ملاقات اوشو او خبرې اترې ئې ورسره اوشوې ځنګه چه د قرآن كريم د راتلونكو الفاظو نه چه معلوميږي او ثابتيږي -

﴿قَالَ الَّذِي عِنْدَهُ عِلْمٌ مِنَ الْكِتَابِ﴾ [ يعنى اووئيل هغه چا چه ورسره علم وو د كتاب ځنې ] ځنګه چه د تفسير په خلاصه كښې بيان شو چه دې نه مراد پخپله حضرت سليمان عليه السلام مراد كيدې شي ، ولې چه دغه وخت د ټولو نه زيات د كتاب الله علم هغوئ ته حاصل وو نو دا ټول هر څه په معجزې سره اوشو ځنګه چه مقصود هم دا وو. خو د تفسير اكثرو امامانو رحمهم الله لكه حضرت قتاده رحمه الله وغيره نه چه ابن جرير رحمه الله نقل كړې دی او قرطبی د جمهورو قول ګرځولې دې چه دا د حضرت سليمان عليه السلام يو ملګرې وو(٢) ابن اسحاق د ده نوم آصف بن برخيا خودلې دې چه د حضرت سليمان عليه السلام دوست وو او د ځنو روايتونو له مخې د هغوئ د ترور [ خاله ] ځوئ وو ، هغه د اسم اعظم علم لرلو د(٣) هغې خصوصيت دا دې چه د هغې په بركت هره دعا قبليږي او څه چه غواړې هغه كولې شې دې نه دا نۀ لازميږي چه ګنې حضرت سليمان عليه السلام د اسم اعظم علم نۀ لرلو ، ولې چه دا څه لرې خبره نۀ ده چه حضرت سليمان عليه السلام ته دا ښه ښكاره شوې وی چه دا لويه كارنامه د دوئ د يو امتی په ذريعه ښكاره شی چه په بلقيس باندې د دې اثر نور هم زيات پريوځي - ځكه ئې خپلو ملګرو ته د دې عمل كولو د پاره اوفرمائيل ، ايكم يأتيني؛ [ په حواله دفصوص الحكم ] - په دې صورت كښې دا واقعه د آصف بن برخيا كرامت وی،

**په معجزې او كرامت كښې فرق:** حقيقت دا دې چه ځنګه په معجزې كښې د طبعي اسبابو څه دخل نۀ وی بلكه دا نيغ په نيغه د الله تعالى فعل وی لكه قرآن كريم فرمائی ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَكِنَّ اللَّهَ رَمَى﴾(٤) دغه شان په كرامت كښې هم د طبعي اسبابو څه دخل نۀ وی بلكه نيغ په نيغه د الله تعالى د ارخه څه كار اوشی او پخپله معجزه او كرامت دواړه د معجزې او كرامت د خاوندانو په اختيار كښې هم نۀ وی په دې دواړو كښې فرق صرف دومره دې چه يو خلاف عادت كار معجزه بللې شی كله چه د صاحب وحی [پيغمبر ] په ذريعه وی او كه د غير نبی مؤمن په لاس اوشی نو كرامت بللې شی اوس كه دغه عمل د آصف بن برخيا په ذريعه شوې وی نو د هغه كرامت به بللې شی او د هر ولی كمالونه هر كله چه د هغوئ د پيغمبر د كمالونو عكس او هم د هغې نه راخستې شوې وی په دې بنا دغه ټول كرامتونه د رسول په معجزو كښې حسابيږي -

**د بلقيس د تخت واقعه كرامت وو كه تصرف؟:** شيخ اكبر محی الدين ابن عربی رحمه الله دې ته د آصف بن برخيا تصرف وائي- په اصطلاح كښې تصرف دې ته وائي چه د خيال او نظر په طاقت استعمالولو

١) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ١٩ ص:٤٦٣]
٢) تفسير الطبري [ج: ١٩ ص:٤٦٦]
٣) تفسير القرطبي [ ج:١٣ص: ٢٠٤]
٤) ترجمه:- اوتاسو يو موټی خاوړه نه ده ويشتلې بلكه دا الله تعالى ويشتلې ده.

سره حيرانوونكې كار اوكړې شي دا ولي نبي ، بلكه مسلمان پورې هم خاص نۀ دې ځكه چه دا د مسمريزم په شان يو كار دې صوفيائ كرام د مريدانو د اصلاح كولو د پاره كله كله دا استعمالوي ابن عربي فرمائيلي دي چه هر كله پيغمبران ﷺ د تصرف كولو نه ډډه كوي ځكه حضرت سليمان عليه السلام دا كار د آصف بن برخيا نه واخستو ، خو هر كله چه قرآن كريم دې ته ﴿عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ﴾ او فرمائيل نو معلومه شوه چه دا تصرف نۀ وو بلكه د دعا يا اسم اعظم اثر وو چه د تصرف هيڅ دخل پكښې نشي كيدې ځكه د كرامت په مفهوم كښې داخل دې .

پاتې شوه دا خبره چې د هغوئ دا فرمائيل چې ﴿اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّرْتَدَّ اِلَيْكَ طَرْفُكَ﴾ [ يعنى زۀ به ئې درته د سترګو د رپ نه وړاندې راؤړم ] دې نه معلوميږي چه داسې كول د هغه په اختيار كښې وو ځكه تصرف كيدې شي او كرامت نشي كيدې ولې چه كرامت د ولي په اختيار كښې نۀ وي ، د دې جواب دا دې چه كيدې شي الله تعالى ورته د دې نه وړاندې اطلاع وركړې وي چه ستا په ارادې كولو سره به موږه دغه كار ډير زر اوكړو - دا تقرير حضرت سيدى حكيم الامت مولانا اشرف على تهانوى رحمه الله په احكام القرآن كښې هغه وخت ليكلې دې چه د سورة نمل تفسير ئې ليكلو د تصرف په حقيقت او د دې په احكامو باندې حضرت يو مستقله رساله د ،التصرف ، په نوم په عربي ژبه كښې ليكلې ده د هغې اردو ترجمه احقر د يوې ځان له رسالې په شكل كښې شائع كړې ده

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا جَآءَتْ | قِيْلَ | اَهٰكَذَا | عَرْشُكِ ط | قَالَتْ | كَاَنَّهٗ | | |
| نو هر كله چې راغله هغه | نو ورته اووئيلې شو | ايا دارنګې دې | تخت ستا | اوونيل هغې | الكه چې دا | | |
| نو څۀ وخت چې هغه [ملكه] راورسيده | نو ورته اووئيلې شو | چې ايا ستا تخت ددې په شان دې | هغې اوونيل | | | | |
| هُوَ | وَاُوْتِيْنَا | الْعِلْمَ | مِنْ قَبْلِهَا | وَكُنَّا | مُسْلِمِيْنَ ﴿٤٢﴾ | | |
| هغه دې | او راكړې شوې وۀ موږ ته | علم | مخكښې ددې نه | اووۀ موږ | مسلمانان | | |
| لكه چې هم دا هم هغه دې | اوله دې نه وړاندې موږ ته [ستاد صداقت] علم شوې وو | اوستا تابع شوې يو | | | | | |
| وَصَدَّهَا | مَا | كَانَتْ | تَّعْبُدُ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ط | | | |
| اومنع كړې وه هغې لره | هغه څيز | چې وه هغه | چې عبادت به ئې كولو | بې دالله نه [دنورو معبودانو] | | | |
| اوهغه ښځه دالله تعالى نه سوا دنورو معبودانو عبادت داسلام نه منع كړې وه | | | | | | | |
| اِنَّهَا | كَانَتْ | مِنْ قَوْمٍ | كٰفِرِيْنَ ﴿٤٣﴾ | قِيْلَ | لَهَا | ادْخُلِي | الصَّرْحَ ج |
| بيشكه هغه | وه | دقوم | كافر نه | اووئيلې شو | هغې ته | چې ننوزه | دې محل ته |
| هغه ديو كافرقوم ښځه وه | دې ته اووئيلې شو | چې دې محل ته داخله شه | | | | | |
| فَلَمَّا | رَاَتْهُ | حَسِبَتْهُ | لُجَّةً | وَّكَشَفَتْ | | | |
| پس هركله چې اوليدو هغې هغه محل | نو ګمان ئې اوكړو په هغې | اوبو دتالاب | اواوچتې ئې كړې پانينځې خپلې | | | | |
| څه وخت چې هغې [فرش] ته اوكتل | نو هغه ئې ژورې اوبه اوګڼلې | پينسې ئې اوچتې كړې | | | | | |
| عَنْ سَاقَيْهَا ط | قَالَ | اِنَّهٗ | صَرْحٌ | مُّمَرَّدٌ | مِّنْ قَوَارِيْرَ ﴿٤٤﴾ | | |
| دپنډو خپلونه | اووئيل سليمان | چې بيشكه دا | محل دې | صفا هوار كړې شوې | دشيشې نه | | |
| اوخپلې پنډئ ئې څرګندې كړې | سليمان اوونيل دا خو يو محل دې اچې دشيشې نه جوړ كړې شوې | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَتْ | رَبِّ | إِنِّي | ظَلَمْتُ | نَفْسِي | وَأَسْلَمْتُ |
| اوونیل هغې | اے ربه زما | بیشکه زه چې یم | ظلم کړې دې ما | په خان خپل باندې | او اطاعت قبول کړو ما |
| دې اهغې اوونیل چې ائې زما ربه ا ما تر اوسه پورې په خان ظلم کړې اا و نن مې دسلیمان | | | | | |
| مَعَ سُلَيْمَانَ | لِلّٰهِ | رَبِّ الْعٰلَمِينَ ﴿٤٤﴾ | | | |
| دسلیمان سره | دالله | چې پالونکې دمخلوقاتو دې | | | |
| ؏ سره په الله ﷻ چې رب العالمین دې ایمان راوړوا | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن**

غرض دا چه کله هغه راغله نو د هغې نه تپوس اوکړې شو: آیا ستا تخت د هغه شان دې؟ هغې اوونیل: داسې ښکاری چه دا خو هم هغه دې. اومونږ ته خو د دې نه مخکښې (ستاسو د صدق) علم راکړې شوې وو. او مونږ سر ښکته کړې وو او (تر اوسه پورې) هغه (د ایمان راوړلو نه) دې خبرې منع کړې وه چه هغې د الله پاک نه سوا د نورو عبادت کولو. او د یو کافر قوم سره ئې تعلق لرلو هغې ته اوونیلې شو چه: په دې محل کښې داخله شه. هغې چه دا اوکتل نو دا ئې اوګڼړلې چه دا اوبه دی، په دې وجه هغې (پیلنې اوچتولو سره) خپلې پنډۍ (سهینې) ښکاره کړې. سلیمان علیه السلام اوفرمائیل چه: دا خو محل دې کوم چه د شیشو د وجې نه صفا ښکاره کیږی. ملکې اوونیل: اې زما ربه! حقیقت دا دې چه ما (تر اوسه پورې) په خپل ځان باندې ظلم کړې وو، او اوس ما د سلیمان علیه السلام سره د الله رب العلمین فرمان برداری قبول کړې ده.

**خلاصه تفسیر**

سلیمان ؏ دا ټول سامان برابر کړې وو بیا بلقیس راورسیده ﴿فَلَمَّا جَآءَتْ﴾ [پس هرکله چه بلقیس راغله ﴿قِيلَ﴾ نو دې ته] تخت وښودې شو [وونیلې شو] خواه سلیمان ؏ ورته په خپله وونیل یا ئې ورته په بل چا وونیل ﴿أَهٰكَذَا عَرْشُكِ﴾ [چه ایا ستاتخت داسې دې ؟ ﴿قَالَتْ كَأَنَّهُ هُوَ﴾ هغې وونیل چه هو دې خو داسې] دبلقیس نه په دې طور سره څکه تپوس وکړې شو چه هیئت خوئې بدل کړې شوې وو او دخپل اصل په اعتبار سره خو هم هغه تخت وو او صورت ئې هغه نه وو په دې وجه ئې داسې ونه وئیل چه ایا داستا تخت دې بلکه داسې ئې وونیل چه داسې ستا تخت دې او بلقیس دا وپیژندو او په بدلو لوئې هم پوه شوه په دې وجه جواب ئې دسوال مطابق ورکړو [ او] دائې هم وونیل چه ﴿وَأُوتِينَا الْعِلْمَ مِن قَبْلِهَا﴾ [مونږ خلقوته خوددې واقعې نه وړاند] ستاد نبوت [ تحقیق شوې دې ﴿وَكُنَّا مُسْلِمِينَ﴾ او مونږ] دهغه وخت نه په زړه سره [تابعداری شوې یو] هرکله چه دقاصد نه ستاکمالات معلوم شوې وو ددې معجزې څه دومره ضرورت نه وو [او] چونکه ددې معجزې نه وړاند تصدیق او اعتقاد کول دکمال عقل دلیل دې په دې وجه الله تعالی ددې دعاقلوالی تقریر فرمائی چه په واقع کښې هغه پوه وه مګر ترڅو ورڅو پورې چه ئې ایمان نه وو راوړې د هغې وجه داده چه ﴿وَصَدَّهَا مَا كَانَت تَّعْبُدُ مِن دُونِ اللّٰهِ﴾ [دې لره] دایمان راوړونه [ دغیرالله عبادت ] دکوم چه د عادت وو [ منع کړې وه] او دغه عادت ئې څکه جوړ شوې وو چه ﴿إِنَّهَا كَانَتْ مِن قَوْمٍ كَافِرِينَ﴾ [ هغه دکافرقوم نه وه ] پس چه

دي ټول ليدل نو دي هم هغه کول اوقومي عادتونه اکثر دانسان په سوچ او پوه کښې بنديز جوړېږي مګر چونکه دا هوښياره وه په دې وجه کله چه ورته خبر ورکړې شو نو پوه شوه ددې نه پس سليمان عليه السلام دا راوغوښتل چه علاوه دمعجزو او شان نبوت د ښودلونه دې ته ظاهري شان دسلطنت هم وښودلې شي چه خپل خان ددنيا په اعتبار سره هم عظيم نه ګڼړي په دې وجه يو شيش محل ئې جوړ کړو په غولي کښې ئې ورله حوض جوړ کړو او داوبو او دمهونه ئې ډک کړو شيشه ئې پرې دپاسه فټ کړه اوشيشه داسې شفافه وه چه ظاهر په نظر نه راتله او دغه حوض په داسې موقع باند ووچه دغې محل ته تلونکې به خامخا په دې پورې وتلو چنانچه ددې ټول سامان نه پس ﴿قِيْلَ لَهَا ادْخُلِي الصَّرْحَ﴾ [بلقيس ته ووئيلې شو چه دې محل ته داخله شه ] ممکنه ده چه دغه محل ددې دقيام دپاره تجويز شوی وی غرض دا روانه شوه په لاره کښې حوض راغي ﴿فَلَمَّا رَاَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً﴾ [ نو کله چه ئې ددې غولي وليدو نو داي ] د[اوبو] نه ډك [ وګڼړلو او] چونکه په قرينه سره ئې پرې ګمان دپاياؤ وکړو په دې وجه ئې دپورې وتو دپاره يې پنڅې اوچتې کړې ﴿وَكَشَفَتْ عَنْ سَاقَيْهَا﴾ [ خپلې دواړه پنډۍ ښکاره کړې] دغه وخت﴿ قَالَ اِنَّهٗ صَرْحٌ﴾ [سليمان] عليه السلام [اوفرمائيل چه داخو محل دې کوم چه ] ټول سره دغولي ﴿مُّمَرَّدٌ مِّنْ قَوَارِيْرَ﴾[ دشيشونه جوړ شوې دې] او دحوض هم په شيشه پټ شوې دې د پنڅو پورته کوم ضرورت نشته دغه وخت ﴿قَالَتْ﴾[ بلقيس] ته معلومه شوه چه دلته ددنيوی کاريګرو عجائبات هم داسې دی کوم چه تر ننه پورې ما په سترګو نه دی ليدلی ددې په زړه کښې په هرقسم سره دسليمان عليه السلام عظمت پيدا شو اوبې اختياره ئې [ووئيل﴿رَبِّ اِنِّيْ﴾ چه اے زما پروردګاره ما] تراوسه پورې﴿ظَلَمْتُ نَفْسِيْ﴾ [په خپل نفس ظلم کړې وو] چه په شرك کښې اخته وم ﴿] وَاَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمٰنَ﴾[ او زه ] اوس [ دسليمان ] عليه السلام [ سره ] يعنی دده په طريقه [شوم﴿لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ په رب العلمين مې ايمان راوړو].

## معارف او مسائل

**آيا بلقيس د حضرت سليمان عليه السلام په نکاح کښې راغلې ده؟**: په دې آيت کښې د بلقيس واقعه په دې ختمه شوه چه هغه حضرت سليمان عليه السلام ته راغله او په اسلام باندې مشرفه شوه دې نه پس حالات ئې قرآن کريم نه دی ذکر کړې هم دغه وجه ده چه کله د حضرت عبدالله بن عيينه رحمه الله نه چا تپوس اوکړو چه حضرت سليمان عليه السلام بلقيس سره نکاح کړې وه ؟ نو هغوئ ورته اوفرمائيل چه هر کله قرآن کريم دا معامله په دې ځای ختمه کړې ده چه ، ﴿وَاَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمٰنَ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ نو بيا مونږ د پاره د وروستو حالاتو معلومولو تکل کول خو ددې روايت تحقيق پکار دې چې دا دکومې درجې دې؟ مګر ابن عساکر رحمه الله د حضرت عکرمه نه روايت کړې دې چه دې نه پس بلقيس د حضرت سليمان عليه السلام په نکاح کښې راغلې وه خپلې بادشاهۍ چلولو د پاره ئې يمن ته واپس ليږلې وه هره مياشت به حضرت سليمان عليه السلام هلته تشريف اړلو درې ورځې به ئې ورسره تيرولې ، حضرت سليمان عليه السلام هغې د پاره په يمن کښې درې داسې اعلی محلونه تيار کړې وو چه مثال او نظير ئې نه وو[1] ، والله سبحانه و تعالی اعلم -

[1]) تفصيل دپاره اوګورئ:- تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۰۹ ، ۲۱۰]

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰى ثَمُوْدَ
| او ليږلي ووږ مونږ | ثموديانو ته |
| اومونږ ثموديانو ته

اَخَاهُمْ صٰلِحًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ فَاِذَا هُمْ فَرِيْقٰنِ
رور دهغوئ | صالح | چي بندگي کوئ دالله | نو پس شو | هغوئ | دوه ډلي
دهغوئ رور صالح ﷺ اوليږلوا چي تاسو دالله ﷻ عبادت کوئی | نوهغوئ دوه ټولی شول

يَخْتَصِمُوْنَ ﴿۴۵﴾ قَالَ يٰقَوْمِ لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ
چي يو بل سره ئي جگړې شروع کړې | اووئيل صالح | اے قومه زما | ولې تلوار کوئ تاسو
چې په خپل مينځ کښي به ئي جگړې کولې | [صالح ﷺ] اووئيل چي ائي زما قومه ؛ تاسو ولې دنيکئ

بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ
په بدئ | مخکښی دنيکئ نه | ولې نه غواړئ تاسو بښنه | دالله نه | دپاره ددې چي
کولو نه وړاندې په عذاب راوستو باندې تلوار کوئی | تاسو ولې دالله ﷻ نه معافی نه

تُرْحَمُوْنَ ﴿۴۶﴾ قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ وَبِمَنْ
په تاسو رحم اوکړې شي | اووئيل هغوئ | چي بدفالي نيولی ده مونږه | په تاباندې | او په هغه چا
غواړئی | چي الله ﷻ درباندې رحم اوکړی | هغوئ جواب ورکړو | چې مونږ ته ته او ستاملګری

مَّعَكَ ط قَالَ طٰٓئِرُكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ
چي ستا سره دی | اووئيل صالح | بدفالی ستاسو | دالله سره ده | بلکه يئ تاسو | يو قوم
سپيره ښکاری | صالح اووئيل چي ستاسو سپيره توب دالله ﷻ دطرفنه دې | بلکه تاسو هغه خلق يئ

تُفْتَنُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَكَانَ فِى الْمَدِيْنَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُّفْسِدُوْنَ
چی آزمائيلي کيږئ | اووؤ | په ښار کښی | نهه کسان | چي فساد به ئي کولو |
چې په آزمينبت کښي اخته شوی يئ | او په دې ښار کښې نهه سړی وو | چې په ملک کښي ئي

فِى الْاَرْضِ وَلَا يُصْلِحُوْنَ ﴿۴۸﴾ قَالُوْا تَقَاسَمُوْا بِاللّٰهِ
په زمکه کښي | اونه به ئي کولو کار داصلاح | اووئيل هغوئ | چي قسمونه اوخورئ | په الله باندې |
فساد خورولو | او سم کار به ئي نه کولو | هغوئ اووئيل چي په خپل مينځ کښي په الله ﷻ

لَنُبَيِّتَنَّهٗ وَاَهْلَهٗ ثُمَّ لَنَقُوْلَنَّ لِوَلِيِّهٖ مَا
چي خامخا به دشپې حمله کوؤ په هغه | اوپه کور والو دهغه | بيا به وايو مونږه | ولی دهغه ته |
قسمونه اوخورئی | چې شپه په شپه به صالح ﷺ او دهغه بال بچ مړه کړو | او بيا به دهغه

شَهِدْنَا مَهْلِكَ اَهْلِهٖ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿۴۹﴾
چي حاضر نهٔ ووږ مونږ | په وخت دهلاکت | دخاندان دهغه کښی | او بيشکه مونږه | خامخا رښتينی يو
وارثانو ته اووايو | چې مونږ دهغه دبال بچ دوژلو په وخت کښې موجود نه وو | او بيشکه مونږ

وَمَكَرُوا مَكۡرًا وَّمَكَرۡنَا مَكۡرًا وَّهُمۡ

او اوکړو هغوئ | [فریب] یو پټ تدبیر | اواوکړو مونږه [هم] | یو پټ تدبیر | حال داچې هغوئ

رښتیا وایو | او ثمودیانو یو پټ تدبیر اوکړو | او مونږ هم یوپټ تدبیر اوکړو اچې هغوئ

لَا يَشۡعُرُوۡنَ۝ فَانۡظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكۡرِهِمۡ ۙ اَنَّا

هڅونه پوهیدل په هغې | پس اوګوره | چې څرنګ شو | انجام | دپټ تدبیر دهغوئ | بیشکه مونږه

پرې نه پوهیدل | نو اوګوره چې ددغې خلقو د فریب انجام څۀ شو اچې مونږ هغوئ

دَمَّرۡنٰهُمۡ وَقَوۡمَهُمۡ اَجۡمَعِيۡنَ۝ فَتِلۡكَ بُيُوۡتُهُمۡ خَاوِيَةًۢ

هلاك كړل هغوئ | او قوم دهغوئ | ټول | پس دغه دی | کورونه دهغوئ | چې خالی پراتۀ دی

اودهغوئ ټول قوم هم تباه کړل | نو [اوس] دغه ددوئ کورونه دی............ | اچې ددوئ

بِمَا ظَلَمُوۡا ؕ اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوۡمٍ

په سبب دهغې | چې ظلم کوؤ هغوئ | بیشکه | په دې کار کښې | یوه نښه ده | دپاره دهغه قوم

دکفر په وجه کنډر پراته دی | بیشکه په دې کښې پوهه خلقو دپاره دعبرت نښه ده |

يَّعۡلَمُوۡنَ۝ وَاَنۡجَيۡنَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَكَانُوۡا

چې پوهه لری | اوخلاصې ورکړو مونږ | هغه کسانوله | چې ایمان ئې راوړې وؤ | اوؤ هغوئ

.........او څوک چې ایمان دار او پرهیزګار وو | هغوئ ته مو نجات ورکړو

يَتَّقُوۡنَ۝

چې خان ئې ساتلو دنافرمانئ نه |

..................

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ قوم ثمود ته د هغوی ورور صالح علیه السلام دې پیغام سره اولیږلو چه تاسو د الله پاک عبادت اوکړئ پس ناڅاپه هغوی دوه ډلې شو چه خپل مینځ کښې ئې جهګړې شروع کړې. صالح علیه السلام اوفرمائیل: اې زما د قوم خلقو! دخیر نه مخکښې شر ولې په ګنډئ غواړئ. تاسو د الله پاک نه معافي ولې نه غواړئ چه په تاسو باندې رحم اوکړې شي؟ هغوی اووئیل: مونږ تاسو او ستاسو ملګرو باندې بدفالي ليسو صالح علیه السلام اوفرمائیل: ستاسو بدفال خو د الله پاک په قبضه کښې دې بلکه ستاسو ازمیښت کولې شي او په ښهر کښې نهه کسان داسې وو چه په زمکه کښې به ئې فساد کولو. او د اصلاح کار به ئې نه کولو هغوی (خپل مینځ کښې یو بل ته) اووئیل: ټول یوځائې د الله پاک قسم اوکړئ چه مونږ به په صالح علیه السلام او د هغوی د کور په خلقو باندې د شپې حمله اوکړو، بیا به د هغه وارث ته اووایو چه مونږ د هغوی د کور والو د هلاکت په وخت موجود نه وو. او یقین اوکړئ چه مونږ بالکل رښتیني یو هغوی دا چال اوچلولو. او مونږ هم یو چال داسې اوچلولو چه هغوی ته پته هم او نه لګیده اوس اوګورئ چه دهغوی د چالونو څه انجام شو چه مونږ هغوی او د هغوی ټول قوم تباه کړو. پس دغه د هغوی کورونه

دی کوم چه د هغوی د ظلم د وجې نه شاړ پراته دی یقیناً په دې واقعه کښې دهغه خلقو دپاره د عبرت سامان دې چه د عقل نه کار اخلي. او کومو خلقو چه ایمان راوړې وو، او تقوٰی ئې اختیار کړې وه هغوی ټول مونږ بچ کړل.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا﴾ اومونږ] قوم د [ ثمودته ددوی ] دبرادرۍ [وررور صالح ]ﷺ [ لره] پیغمبر جوړکړو [ولیږلو] دا پیغام مو ورکړو ﴿اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ﴾ [ چه تاسو] شرك پریږدئ [دالله تعالی عبادت کوئ] پکار خو دا وه چه ټولو ایمان راوړې وې مګر دتوقع نه خلاف ﴿فَاِذَا هُمْ فَرِيْقٰنِ يَخْتَصِمُوْنَ﴾[ناڅاپه دوی دوه فرقې شوې کوم چه ددین په باره کښې دیویل سره جنګیدل ] یعنی یوې فرقې ایمان راوړو او یوې ایمان رانه وړو او په دوی کښې چه کومه جګړه او خبرې وشوې ځنې ترې نه په سوره اعراف کښې ذکر دی [ قال الملاء الذين استكبروا من قومه للذين استضعفوا][1] او ځنې ترې نه وړاند راځي [قالوا اطيرنا بك الخ] اوکله چه دغه خلق په کفر باندې ټینګ شول نو حضرت صالحﷺ دانبیاءﷺ دعادت موافق دوی دالله تعالی دعذاب نه وویرول لکه چه په سوره اعراف کښې دی [فياخذكم عذاب اليم ][2] نو هغوی ووئیل چه هغه عذاب دې راوله کوم دی لکه چه په سوره اعراف کښې دی [قالوا يصلح ائتنا بما تعدنا ان كنت من المرسلين][3] په دې خبره ﴿قَالَ يٰقَوْمِ لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ﴾[صالح ]ﷺ [ وفرمائیل چه اې وروڼو تاسو دنیك کار] یعنی توبې او ایمان] نه مخکښې عذاب ولې ژر غواړئ] یعنی پکارخو دا وه چه دعذاب وعده تاسو اوریدلې وې او ایمان موراوړې وې نه داسې چه ایمان خو مو رانه وړو او التیه ددغې عذاب غوښتنه مو شروع کړه ډیره دبې باکۍ خبره ده په ځای د ژر غوښتنو دعذاب ﴿لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ﴾[ تاسو خلق د الله تعالی په وړاندې] دکفرنه [ معافی ولې نه غواړئ چه د رحم توقع ترې کیدې شی ﴿لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ او په تاسو رحم وشی] یعنی دعذاب نه محفوظ شئ ﴿قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ وَبِمَنْ مَّعَكَ﴾[ هغوخلقو ووئیل چه مونږ خو تالره او ستا ملګرو لره منحوس ګڼړو] چه کله نه تادا مذهب راویستلې دې او ستا دا ډله پیدا شوې ده په قوم کښې نااتفاقی جوړشوې ده او دنا اتفاقۍ چه کوم ضررونه اوخرابۍ وی هغه ټولې مرتب شوې بس د ټولو خرابو سبب هم تاسو خلق یئ ﴿قَالَ طٰٓئِرُكُمْ﴾[ صالح]ﷺ په جواب کښې [ وفرمائیل چه ستاسو] داد [بدبختۍ] سبب ﴿عِنْدَ اللّٰهِ﴾ دالله تعالی په علم کښې دې [ یعنی ستاسو دکفر عملونه الله تعالی ته معلوم دی دا خرابۍ په دې عملونو مرتب دی چنانچه ظاهره ده نا اتفاقی مذمومه هغه ده کومه چه دحق په خلاف کولو سره وی نو دهغې الزام په ایماندارو نه شی راتلې بلکه په کافرانو باندوی او په ځنې تفسیرونو کښې دی چه په دوی قحط راغلې وو او ستاسو دکفر ضررونه څه په دې شرونو باند ختم نه شول﴿بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ تُفْتَنُوْنَ﴾[ بلکه تاسو هغه خلق یئ چه] ددې کفر په وجه [ په عذاب کښې اخته شوئ او] هسې خوکافران په دغه قوم کښې ډیر وو لیکن سرغنه ﴿وَكَانَ فِى الْمَدِيْنَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ﴾[ په دغه کلی] یعنی حجر[ کښې نهه سړی

---

[1] ترجمه:دهغوئ په قوم کښې چې کوم تکبر کوونکی سرداران ووهغه د غریبانانو خلقو نه تپوس اوکړو.
[2] ترجمه:- کله به تاسوباندې یو دردناك عذاب راشي.
[3] ترجمه:- وې وئیل چې صالح ته چې مونږ دچا نه ویروې نو هغه راؤبله که ته واقعي پیغمبر یې.

وو ﴿يُفۡسِدُونَ فِي ٱلۡأَرۡضِ﴾ كومو چه په زمكه كښې] يعنى دكلى نه دبهرپورې هم [فسادكولواو] يوه ذره ﴿وَلَا يُصۡلِحُونَ﴾ [اصلاح يې نه كوله ] يعنى ځنې فسادكوونكى داسې وى چه څه فساد اوڅه اصلاح كوى مګر هغه داسې نه وو بلكه خالص مفسدان وو چنانچه يو ځل يې دا فساد وكړوچه ﴿قَالُواْ﴾[دوى ] يوبل ته [ ووئيل چه په خپل مينځ كښې تول] په دې ﴿تَقَاسَمُواْ بِٱللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُۥ وَأَهۡلَهُۥ﴾[ دالله تعالى قسم وكړئ چه مونږ به د شپې په وخت په صالح او د دهٔ په متعلقينو ] يعنى ايماندارو باندې [چاپه ووهو مرهٔ به يې كړو ﴿ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِۦ﴾ بيا] كه دتحقيق نوبت راغې [مونږ به ددوى وارثانوته] كوم چه دخون يعنى ديت دعوى وكړى [ ووايو ﴿مَا شَهِدۡنَا مَهۡلِكَ أَهۡلِهِۦ﴾ چه دوى ددوى دمتعلقينو ] او په خپله ددهٔ [ په مره كولو كښې موجود] هم [ نه وو] وژل خو لاپرېږده [ او] د تاكيد دپاره به داهم ؤوايو چه ﴿وَإِنَّا لَصَٰدِقُونَ﴾[ مونږ بالكل رښتونى يو] اوليدونكې ګواه خو به څوك وى نه بس خبره به دغسې په ځاى پاتې شي [ او] دا مشوره يې وكړه ﴿وَمَكَرُواْ مَكۡرٗا وَمَكَرۡنَا مَكۡرٗا﴾[ دوى يو پټ تدبير وكړو چې د شپې په وخت دې كاروائى دپاره لاړ شي] او يو پټ تدبير مونږ اوكړو] ﴿وَهُمۡ لَا يَشۡعُرُونَ﴾ او هغوى خبر هم نه شول] هغه دا چه ديوغرنه په دوى تره راوغرېده او تول تري نه هلته لاند شول يعنى مرهٔ شول كذا فى الدر المنثور ﴿فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ مَكۡرِهِمۡ﴾ [پس وګورئ چه ددوى دشرارت څه انجام شو ﴿أَنَّا دَمَّرۡنَٰهُمۡ﴾ چه مونږ دغولره ] په ذكر شوې طريقه [ او] بيا ﴿وَقَوۡمَهُمۡ أَجۡمَعِينَ﴾ [ددغو] باقى [ قوم لره ] په اسمانى عذاب سره [ تول هلاك كړل ] چه قصه يې په نورو ايتونو كښې ده [فعقروا الناقة]()الى[فاخذتهم الرجفة واخذ الذين ظلموا الصيحة]() ﴿فَتِلۡكَ بُيُوتُهُمۡ﴾[پس داد هغوى كورونه دى ﴿خَاوِيَةَۢ بِمَا ظَلَمُوٓاْ﴾كوم چه وران پراته دى ددغو دكفر په سبب سره ] كوم چه دمكې خلقو ته دشام په سفر كښې مخې ته راځى ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾[بيشكه په دې ] واقعه [ كښې ﴿لَأٓيَةٗ لِّقَوۡمٖ يَعۡلَمُونَ﴾ لوئ عبرت دې هوښياړانو لره ﴿وَأَنجَيۡنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾و مونږ ايماندارو ﴿وَكَانُواْ يَتَّقُونَ﴾ او تقوى دارو لره ] دهغې قتل نه هم د كوم چه مشوره شوې وه او دقهرى عذاب نه هم [بچ كړل ]

## معارف او مسائل

﴿تِسۡعَةُ رَهۡطٖ﴾ رَهۡط ، د ډلې په معنى راځى ، دلته نهو كسانو څخه يو كس ته رهط يعنى ډله وئيل دا مطلب لرى چه دوئ هر يو كس د لوئ مال دولت او رعب داب خاوندان وو چه ګويا كه د ډلې شان ئې لرلو هر يو د خپل خپل قوم مشران وو او پوره ډله يې ملګرى وو دا خلق د حجر نومې علاقې غټ خلق ګڼرلې شو حجر په شام كښې يو مشهور مقام دې ﴿لَنُبَيِّتَنَّهُۥ وَأَهۡلَهُۥ ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِۦ مَا شَهِدۡنَا مَهۡلِكَ أَهۡلِهِۦ وَإِنَّا لَصَٰدِقُونَ﴾ مطلب ئې دا وو چه تول به په هير[جمع ] په هغوئ عليه السلام او په تعلقدارانو به ئې چپاؤ د شپې په تيارهٔ كښې اوكړو تول به اوژنو د هغوئ كه څوك دعويدار پيدا شو نو مونږ به ورته او وايو چه مونږ خو نهٔ پخپله په دوي كښې څوك وژلى دى او نهٔ مو د دوئ په

() ترجمه:- دا د سورة اعراف دوه آيتونو طرفته اشاره ده. د دواړو آيتونو ترجمه داده:- غرض دا چې دا اوښه يې اوو‌ژله او دخپل رب د حكم نافرمانى يې اوكړه او وې وئيل چې اې صالح! ته چې مونږ دچا نه ويروې نو هغه راؤبله كه ته واقعى پيغمبر يې.نو دوئ لره زلزلې رااونيول او خپلو كورونو كښې پرمخ پراته پاتې شو.

() ترجمه:- او دا ظالمان يو آواز رااونيول.

وژلو څوک لیدلي دي او مونږ په دې خبره کښې رشتني خکه یو چه د شپې په تیارهٔ کښې به څه پته لګي چه څوک چا وژلي دي ؟ -

اوس دې خبرې ته فکر اوکړئ چه دغه خلق کافران ،مشرکان وو سخت بد معاشان وو کفر ، شرک، وژل او ډاکه کول ئې بد نهٔ ګنړل مګر د دروغو نه ځان ساتلو پوره بندو بست يې کولو . دې نه د دروغو اندازه تاسو هم اولګوئ چه څومره لویه او سخته ګناه ده . ، دلته د غور کولو بله خبره دا ده چه چا لره د دغې کافرانو د حضرت صالح عليه السلام ولی بللي دې د هغه د نهٔ وژلو اراده ئې ولې وه سره د دې چه هغه هم د هغوئ په خاندان کښې وو ؟— جواب ئې دا دې چه معلومیږی داسې چه اګر که هغه د صالح عليه السلام په خاندان کښې وو لیکن په کفر کښې د دوئ ملګرې وو یا کیدې شی چه مسلمان وو خو د زیات اثر رسوخ له کبله ئې د هغه د وژلو جرات نشو کولې چه هغه نه به په خپل قوم کښې د سخت اختلاف خطره کیدې شوه . و الله اعلم -

| |
|---|
| وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ |
| \| او[اولیږو مونږ] لوط \| کله چی \| اووئیل هغه \| قوم خپل ته |
| .................. .اومونږ لوط عليه السلام اولیږلو څه وخت چې هغه خپل قوم ته اووئیل |
| اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ۝ اَىِٕنَّكُمْ |
| آیا راځئ تاسو \| د بې حیایئ کار ته [بدکارئ ته] \| او تاسو \| ورته ګورئ \| آیا تاسو |
| چې دا تاسو څه دبې حیایئ کار کوئی \| حال دا چې تاسو وینئ ګورئ \| ......... آیا تاسو |
| لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ؕ بَلْ |
| خامخا راځئ \| سړو ته \| دپاره دشهوت \| په ځای دښځو [یا غیر دښځو نه] \| بلکه تاسو |
| د هلکانو نه خپل شهوت پوره کوئ \| چې ښځې مو پریخودی دی \| حقیقت دا دې چې تاسو |
| اَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ۝ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ |
| یو قوم یئ \| چی سخت دجهالت کار کوئ \| پس نهٔ وۀ \| جواب \| دقوم دهغه \| مګر |
| ډیر جاهل قوم یئ \| انو دهغې قوم نه بل هیڅ جواب اونشو \| خو دا ئې اووئیل |
| اَنْ قَالُوْٓا اَخْرِجُوْٓا اٰلَ لُوْطٍ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ |
| داچی \| وې وئیل \| چی اوباسئ \| اهل خانه دلوط \| دکلی ستاسو نه \| بیشکه دوئ |
| چې دلوط خپلوان دخپل کلی نه بهر اوباسئ \| ......................دوئ خپل ځانونه |
| اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ۝ فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ |
| داسې خلق دی \| چی ځانونه پاك ساتی \| پس خلاصې ورکړو مونږ هغه له \| او کوروالو دهغه ته |
| پاک پاکیزه ښکاره کوی \| ..............نومونږ هغه اودهغه خپلوان بچ کړل \| اسوا ددۀ |
| اِلَّا امْرَاَتَهٗ قَدَّرْنٰهَا مِنَ الْغٰبِرِيْنَ۝ وَاَمْطَرْنَا |
| مګر نهٔ ښځې دهغه ته \| چی فیصله کړی وه مونږه دهغې \| دباقی پاتې کیدونکو نه \| او رااوروۀ مونږ |
| دښځې نه دکومې په حق کښې چې مونږ مقرر کړې وه \| چې ورستو پاتې کیدونکو نه بهٔ وی |

| قُلِ | الْمُنْذَرِيْنَ۝ | مَطَرُ | فَسَآءَ | مَّطَرًا | عَلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووايه اے نبي | د ډېرول کړې شوو | باران | پس ډیر خراب وو | باران د کاڼړو | په هغوئ باندې |

او په هغوئ مو بل قسم باران اوورولو | نو د ډیرولې شوو خلقو څومره خراب باران وو | ته اووايه

| اصْطَفٰى | الَّذِيْنَ | عَلٰى عِبَادِهِ | وَسَلٰمٌ | لِلّٰهِ | الْحَمْدُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې غوره کړي دي الله | هغه | په بندګانو دهغه باندې | او سلام دې | الله لره | ثناده |

ټول تعریفونه د الله ﷻ دپاره دي | او دهغه په منتخب شوو بندګانو دې سلام وي | آیا الله ﷻ غوره دي

| يُشْرِكُوْنَ۝ | اَمَّا | خَيْرٌ | آٰللّٰهُ |
|---|---|---|---|
| چې دوئ ئې شریکوی دهغه سره | که هغه معبودان | بهتر دې | ایا الله |

که هغه څیزونه چې دوئ ئې ورسره دخانه شریکوی

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ لوط علیه السلام پیغمبر جوړولو سره اولیږلو چه کله هغوی خپل قوم ته وئیلي وو چه: آیا تاسو ښکاره د بې حیایئ کار کوئ؟ آیا دا څه د یقین کولو خبره ده چه تاسو د خپل جنسي خواهش دپاره سړو ته راځئ؟ او زنانه پرېږدئ حقیقت دا دې چه تاسو ډیر د جهالت کار کونکي یئ. په دې باندې د هغوی د قوم هیڅ جواب ددې نه علاوه نه وو چه: د لوط علیه السلام د کور خلق د خپل کلي نه اوباسئ، دوی ځان ډیر پاک حسابوی. بیا داسې اوشوه چه مونږ لوط علیه السلام او د هغه د کور خلق بچ کړل، سوا د هغوی د ښځې نه چه د چا دپاره مونږ مقرر کړې وه چه هغه به په روستو پاتې کیدونکو کښې شامله وي. او مونږ په هغوی باندې یو زبردست باران اوورولو، پس ډیر بد باران وو کوم چه په هغه خلقو باندې وروړلې شوې وو څوک چه مخکښې ویرولې شوې وو (اې پیغمبره!) ټول تعریفونه د الله پاک دپاره دی، او سلام دې وی دهغه په بندګانو باندې کوم چه هغه منتخب فرمائیلې دی! اوښایئ آیا الله پاک غوره دې یا هغه څوک کوم چه دې خلقو د الله پاک سره شریک کړې دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلُوْطًا﴾ [ اومونږ لوط] علیه السلام [لره] پیغمبر کړو دده قوم ته مو] ولیږلو ﴿اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ﴾ کله چه دوی خپل قوم ته اوفرمائیل ﴿اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ﴾ آیاتاسو داد بې حیایئ کار کوئ؟ ﴿وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ۝﴾ حال دادې چه پوه یئ [ ایا ددې بدوالې نه ګنړئ وړاند ددغې بې حیایئ بیان دې یعنی ﴿اَىِٕنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً﴾ [ ایاتاسو دسړو سره شهوت پوره کوی ﴿مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ﴾ او ښځو لره پرېږدئ ] ددې هیڅ وجه نه شی کیدې ﴿بَلْ﴾ [بلکه ] په دې معامله کښې ﴿اَنْتُمْ قَوْمٌ﴾ [تاسو] محض ﴿تَجْهَلُوْنَ۝﴾ [جهالت کوئ ] ددې تقریر دپاره ﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ﴾ [ دده دقوم هیڅ ] معقول [جواب جوړ نه شو ﴿اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا﴾ بغیر ددې نه چه په خپل مینځ کښې ئې ووئیل چه ﴿اَخْرِجُوْٓا اٰلَ لُوْطٍ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ﴾ دلوط] علیه السلام [خلقو لره ] یعنی په ده ایمان راوړونکو لره سره دده تاسو دخپل کلی نه او باسئ ] ځکه چه ﴿اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ۝﴾ [ داخلق ډیر پاك صفا جوړیږی پس] کله چه دې ته نوبت ورسیدو ﴿فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ﴾ نو [ مونږه] په دغه قوم عذاب نازل کړو او[لوط] علیه السلام [ لره او دده متعلقینولره] مو ددې عذاب نه [بچ کړل ﴿اِلَّا امْرَاَتَهٗ﴾ بغیر دده علیه السلام د

ښځې نه چه دې لره] په وجه دايمان نه راوړو ﴿قَدَّرْنٰهَا مِنَ الْغٰبِرِيْنَ﴾ [ مونږ په دغو خلقو کښې تجويز کړې وه کوم چه په عذاب کښې پاتې شوی وو او] دغه عذاب کوم چه په هغو نازل شوې وو دا ووچه ﴿وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا﴾ [ مونږ په هغوی يو نوې قسم باران وورولو] چه هغه دګټو باران وو ﴿فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ﴾ [پس ددغو خلقو ډير بدباران وو کوم چه] اول دالله تعالی دعذاب نه [ ويرولې شوی وو] کوم ته چه هغوی ونه کتل [ تاسو] دتوحيد دبيان دپاره دخطبې په طور ﴿قُلِ﴾ [ ووايئ ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ﴾ چه ټول تعريفونه الله تعالی دپاره دی او دهغه په هغه بندګانو دسلام ] نازل [ وی ﴿اصْطَفٰى﴾ کوم چه هغه منتخب فرمائيلي دی ] يعنی انبياء ﷺ او صالحان وړاند مضمون زمونږ دطرف نه بيان کړه هغه داچه اے خلقو دا وښايئ چه ﴿آٰللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ [ ايا ] په کمالاتو او احساناتو کښې [ الله تعالی غوره دې ياهغه څيزونه ] غوره دی [ کوم چه دوئ ] په الوهيت کښې ور سره [شريکوی ] يعنی ظاهر اومنلې شوې ده چه الله تعالی غوره دې پس مستحق دعبادت به هم هغه وی

## معارف او مسائل

د دې قيصې په باره کښې ګڼر بيانونه خصوصا په سورت اعراف کښې ضروری مضمونونه بيان شوې دی هلته ئې اوګورئ ﴿قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ د پخوانو پيغمبرانو ﷺ او د دوئ د امتونو څه حالات او په هغوئ باندې د عذاب راتلو واقعات چه بيان شو نو هغې نه پس په دې جملې سره رسول الله ﷺ مخاطب کړې شو او ورته اوفرمائيلې شو چه تاسو د الله تعالی شکر ادا کوئ چه ستاسو امت د دنيا د عام عذاب نه په امن کړې شو او په پخوانو پيغمبرانو ﷺ او د الله تعالی په غوره بندګانو باندې سلام او ليږی ، جمهورو مفسرينو دا خبره غوره کړې ده او ځنې د دې مخاطب هم حضرت لوط عليه السلام لره ګرځولې دې په دې آيت کښې ﴿اَلَّذِيْنَ اصْطَفٰى﴾ د الفاظو نه دا ښکاری چه پيغمبران ﷺ ترې مراد دی لکه چه په يو بل آيت کښې ، و سلام علی المرسلين(۱)، راغلې دې - او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه په يو روايت کښې راغلی دی چه دې نه مراد رسول الله ﷺ او صحابه کرام رضي الله عنهم دی سفيان ثوری رحمه الله دا خبره غوره ګڼړلې ده [ اخرجه عبدبن حميد والبزار و ابن جرير و غيرهم ]( ۲)که په آيت کښې د ﴿اَلَّذِيْنَ اصْطَفٰى﴾ نه مراد صحابه کرام واخستې شی څنګه چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايت کښې دی نو د پيغمبرانو ﷺ نه علاوه په نورو نيکانو خلقو باندې سلام [يعنی عَلَيْهِ السَّلَامُ] وئيل روا ثابتيږی د دې مسئلې پوره تحقيق به په سورت احزاب کښې د ﴿صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا﴾(۳) په تفسير کښې انشاء الله تعالی راشی -

**مسئله:** دې آيت نه دخطبې آداب داسې هم ثابت شو چه ددې شروع د الله تعالی دحمد او په پيغمبرانو ﷺ باندې د درود او سلام وئيلو نه پکار ده چنانچه د رسول الله ﷺ او د ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم په ټولو خطبو کښې هم دا عمل جاری پاتې شوې دې بلکه د هر يو مهم کار په شروع کښې د الله تعالی حمد او په رسول الله ﷺ باندې درود او سلام وئيل مسنون اومستحب دی [روح المعانی ](۴)

---

(۱) ترجمه:- اوسلام دې وی په پيغمبرانو باندې.

(۲) تفسير الطبري [ج:۱۹ ص:٤٨٢ ، ٤٨٣]

(۳) ترجمه:- تاسو هم په نبی کريم صل الله عليه وسلم باندې رحمت ليږئ او سلام هم پرې ليږئ.

(۴) روح المعاني [ج: ۱۵ ص:٦]

أَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَأَنْزَلَ لَكُمْ
آیا هغه څوک | چې پیدا کړی ئې دی | اسمانونه | او زمکه | او راوې ورولي | ستاسو دپاره
که هغه پاک ذات چې آسمانونه او زمکه ئې پیدا کړی دی | اوچا چې د آسمان نه ستاسو دپاره

مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَنْبَتْنَا بِهِ حَدَائِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ
دآسمان نه | اوبۀ | پس زرغون کړل مونږه | په دغه اوبو سره | باغونه | تازګئ والا [ښائیسته ]
باران اوورولو ا نوبیا مونږ د هغې [د اوبو] په ذریعه ښائسته باغونه رازرغون کړی دی

مَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُنْبِتُوا شَجَرَهَا ۗ أَإِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۚ
نۀ وو | طاقت تاسو لره | چې زرغونې کړئ | ونې دهغې | آیا شته معبود [بل] | دالله سره
داستاسو دطاقت خبره نه وه اچې دهغې باغونو ونې مو زرغون کړې وې ا آیا دالله سره بل معبود هم شته؟

بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَّعْدِلُوْنَ ﴿٦٠﴾ أَمَّنْ جَعَلَ
بلکه دا خلق | داسې قوم دې | چې څنګ کوی دحق نه | آیا هغه څوک دې | چې جوړه ئې کړه |
[نه] بلکه دا هغه خلق دی چې د حق نه ږډه کوی ا ............ بلکه هغه ذات چې زمکه ئې

الْأَرْضَ قَرَارًا وَّجَعَلَ خِلٰلَهَا أَنْهٰرًا وَّجَعَلَ لَهَا
زمکه | ځائې دقرار | او جوړ ئې کړل | په منځ دهغې کښې | نهرونه | او جوړ ئې کړل | دې دپاره زمکې لره
دقرار ځائې ګرځولې دې ا او په دې کښې دننه ئې نهرونه جاری کړل ا او ددې [دمضبوطتیا] دپاره ئې

رَوَاسِيَ وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا ۗ أَإِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۚ
درانۀ غرونه | او جوړه یې کړه | په منځ ددوؤ دریابونو کښې | پرده | آیا شته بل معبود | دالله سره
مضبوط غرونه جوړ کړل او د دوؤ دریابونو ترمینځه ئې پرده اوګرځوله | آیا دالله ﷻ سره بل معبود شته

بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦١﴾ أَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ
بلکه زیات خلق ددوئ | نۀ پوهیږی | آیا څوک دې هغه | چې قبلوی | دعا دبې قراره سړی
[ببیخی نشته ] خو په دوئ کښې زیات خلق نه پوهیږی | که هغه ذات چې د بې قراره بنده دعا اوری

إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوْٓءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَاءَ
کله چې | دعا اوغواړی دهغه نه | او لرې کوی | هغه تکلیف | او جوړوئ تاسو | خلیفګان
کله چې هغه ورته بلنه کوی | او مصیبت لرې کوی | اوتاسو ئې په زمکه کښې خلیفګان جوړ کړې یئ

الْأَرْضِ ۗ أَإِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۗ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٦٢﴾ أَمَّنْ
دزمکې | آیا شته بل معبود | دالله سره | ډیر لږ شان | نصیحت قبلوئ تاسو | آیا هغه څوک دې
...... آیا دالله ﷻ سره بل معبود شته [نه نشته] اخو تاسو ډیر کم نصیحت قبلوئ اکه هغه

يَّهْدِيْكُمْ فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَنْ يُّرْسِلُ
چې لار ښائي تاسو ته | په تیرو داوچې [بیابان] کښې | او ددریاب کښې | او څوک | رالیږی
چې تاسو ته د اوچې او د سمندر په تورو تیارو کښې لارې ښائی | اوهغه ذات چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الرِّيٰحَ | بُشْرًاۢ | بَيْنَ يَدَيْ | رَحْمَتِهٖ ؕ | ءَ اِلٰهٌ | مَّعَ اللّٰهِ ؕ | |
| هواگاني | په طور دزيرى | مخکښي | درحمت خپل نه | آيا شته بل معبود | دالله سره | |

دخپل [باران] رحمت نه وړاندې زيرې ورکونکې هواګانې راليږي آيا دالله سره بل معبود شته [نشته]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَعٰلَى | اللّٰهُ | عَمَّا | يُشْرِكُوْنَ ؕ۶۳ | اَمَّنْ | |
| لوئ [اوچت] دي | الله | دهغه څيزونو نه | چې دوئ ئې شريکوي [دالله سره] | آيا هغه څوک دي | |

الله ﷻ د دوئ جوړو کړو شريکانو نه ډير اوچت دي ..................... که هغه ذات

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَّبْدَؤُا | الْخَلْقَ | ثُمَّ | يُعِيْدُهٗ | وَمَنْ | يَّرْزُقُكُمْ |
| چې ابتداء کوي | دپيداوښت | بيا | اعاده کوي دهغې | اوڅوک دي | چې رزق درکوي تاسو له |

چې مخلوقات ئې په اول ځل پيدا کړل اوبيا به ئې سردوباره پيدا کوي اوهغه ذات چې تاسو ته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّنَ السَّمَآءِ | وَالْاَرْضِ ؕ | ءَ اِلٰهٌ | مَّعَ اللّٰهِ ؕ | قُلْ | هَاتُوْا | بُرْهَانَكُمْ |
| دآسمان نه | او دزمکې نه | آيا شته بل معبود | دالله سره | ورته اووايه | راوړئ | دليل خپل |

د آسمان او زمکې نه روزي درکوي آيا دالله سره بل معبود شته [نشته] ته ورته اووايه چې خپل دليل راوړئ

| | |
|---|---|
| اِنْ كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ ۶۴ |
| که يئ تاسو | رښتينى |

که چرې تاسو رښتونى يئ

## آسان ترجمه قرآن

آيا هغه څوک دې چا چه آسمانونه او زمکه پيدا کړل، او ستاسو دپاره ئې د آسمان نه اوبه راورولې؟ بيا مونږ په هغه اوبو سره ښکلې باغونه راوټوکول. ستاسو په وس کښې نه وه چه تاسو دا اونې راټوکولې وې. آيا (بيا هم تاسو وايئ چه) د الله پاک سره بل خدائې دې؟ نه! بلکه دې خلقو د لارې نه مخ اړولې دې. آيا هغه څوک دې چا چه زمکې ته د قرارى ځائې جوړ کړې دې. او د هغې په مينځ مينځ کښې ئې دريابونه پيدا کړى دى او دهغې (د اودرولو) دپاره ئې (د غرونو) ميخونه وهلې دى، او د دواړو سمندرونو په مينځ کښې ئې يو بنديز کيښودلو؟ آيا (بيا هم تاسو وايئ چه) د الله پاک سره بل خدائې دې؟ بلکه په دوئ کښې اکثر خلق دحقيقت نه خبرنه دى. آيا هغه څوک دې چه کله يو محتاج هغه رابلى نو د هغه دعا قبلوى، او تکليف ترې نه لرې کوى، او کوم چه تاسو نه دزمکې خليفه ګان جوړوى؟ آيا (بيا هم تاسو وايئ چه) د الله پاک سره بل خدائې دې؟ نه! بلکه تاسو ډير کم نصيحت قبلونکى يئ آيا هغه ذات څوک دې چه په خشکۍ او د سمندر په تيږو کښې تاسو ته لاره ښائى. او څوک چه دخپل رحمت (د باران) نه مخکښې هواګانې راليږى کومې چه تاسو ته (د باران) زيرې درکوى؟ آيا (بيا هم تاسو وايئ چه) د الله پاک سره بل خدائې دې؟(نه! بلکه) الله پاک د هغه هرڅه نه ډير اوچت دې د کوم ارتکاب چه دا خلق کوى. آيا هغه څوک دې چا چه ټول مخلوق اول کرت پيدا کړو بيا به ئې دوباره هم پيدا کوى. او څوک چه تاسو ته د زمکې او آسمان نه رزق درکوى؟ آيا (بيا هم تاسو وايئ چه) د الله پاک سره بل معبود دې؟

اووايه: راوړئ خپل دليل، که تاسو رښتيني يئ.

**خلاصه تفسير**

دتير آيت په آخر کښې يې فرمائيلي وو ﴿آللّٰهُ خَيۡرٌ اَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ﴾ [يعني الله تعالى غوره دی يا هغه بتان وغيره کوم چه داخلق يې دالله تعالى سره شريکوی] دا دمشرکانو په بې وقوفئ بلکه په په ناپوهئ باندې انکار وو وړاندې دتوحيد د دليلونو بيان دې لې خلقو دا اوښايئ چه ﴿اَمَّنۡ﴾[هغه ذات ] غوره دې ﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ﴾[کوم چه اسمانونه او زمکه جوړکړل ﴿وَاَنۡزَلَ لَكُمۡ مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً﴾ او هغه آسمان نه اوبه وورولې ﴿فَاَنۡۢبَتۡنَا بِهٖ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهۡجَةٍ﴾ [بيا ددې په ذريعه مونږ رونق دار باغونه زرغون کړل ورنه] ﴿مَا كَانَ لَكُمۡ﴾ [ تاسو نه خو ممکنه نه وه چه تاسو ددې ] باغونو﴿اَنۡ تُنۡۢبِتُوۡا شَجَرَهَا﴾ [ اونو لره زرغوني کړې شئ ] دا مووااوريدل اوس وښايئ چه ﴿ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ﴾[ آيادالله تعالى سره] په عبادت کښې دشريکيدو لائق [څوك بل معبود شته ؟] مګر مشرکان بيا هم نه منی ﴿بَلۡ هُمۡ قَوۡمٌ يَّعۡدِلُوۡنَ﴾ [ بلکه دا داسې خلق دی چه] نورولره [ دالله تعالى سره برابره وی] ښه نو بيا نور کمالونه يې واوري وښايئ چه دا بتان غوره دی ﴿اَمَّنۡ جَعَلَ الۡاَرۡضَ قَرَارًا﴾[يا هغه ذات کوم چه زمکې لره] دمخلوق [ دقرار نيولو ځائ جوړکړو﴿وَّجَعَلَ خِلٰلَهَاۤ اَنۡهٰرًا﴾ او ددې په مينځ مينځ کښې يې ورله نهرونه جوړ کړل [وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ] او ددې ] زمکې دقرار نيوو [دپاره يې غرونه جوړ کړل ﴿وَجَعَلَ بَيۡنَ الۡبَحۡرَيۡنِ حَاجِزًا﴾ او د دوو دريابونو په مينځ کښې يې حد فاصل جوړ کړو] لکه په سوره فرقان کښې [مَرَجَ الۡبَحۡرَيۡنِ](۱) راغلې دې دا مو واوريدل اوس اوښايئ چه ﴿ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ﴾[آياالله تعالى سره] په خدائ کښې د شريکيدو لائق [څوك بل معبود شته ؟] مګر مشرکان نه منی ﴿بَلۡ اَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ﴾[بلکه په دوی کښې زيات خو] په ښه شان [ پوهيږی هم نه] ښه نو بيا نورکمالات يې واوري او وښايئ چه دا بتان غوره دی ﴿اَمَّنۡ يُّجِيۡبُ الۡمُضۡطَرَّ﴾ [ياهغه ذات کوم چه دبې قراره بنده دعا اوري ﴿اِذَا دَعَاهُ﴾ کله چه هغه هغه لره بلي] ﴿وَيَكۡشِفُ السُّوۡٓءَ﴾ اودهغه [مصيبت لره لرې کوی﴿وَيَجۡعَلُكُمۡ خُلَفَآءَ الۡاَرۡضِ﴾ او تاسولره په زمکه کښې دتصرف خاوندان جوړوی] دا مووااوريدل اوس وښايئ چه ﴿ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ﴾[ ايا دالله تعالى سره] په عبادت کښې دشريکيدو لايق [ څوك بل معبود شته؟] مګر﴿قَلِيۡلًا مَّا تَذَكَّرُوۡنَ﴾[ تاسوخلق ډير کم ياد ساتونکی يئ] ښه نو بيا نورکمالات يې واوري چه دا بتان غوره دی ﴿اَمَّنۡ يَّهۡدِيۡكُمۡ فِيۡ ظُلُمٰتِ الۡبَرِّ وَالۡبَحۡرِ﴾[يا هغه ذات کوم چه تاسو لره د وچې او دريابونو په تيارو کښې لار ښائی ﴿وَمَنۡ يُّرۡسِلُ الرِّيٰحَ بُشۡرًاۢ بَيۡنَ يَدَىۡ رَحۡمَتِهٖ﴾اوکوم چه هواګانې د باران نه وړاندې رالیږی کومې چه] دباران په اميد ورکولو زړونو لره [خوشحالوی] دامو واوريدل اوس وښايئ ﴿ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ﴾[ايا دالله تعالى سره] په عبادت کښې دشريکيدو لائق [څوك بل معبود شته؟] هرګز نشته ﴿تَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ﴾[بلکه الله تعالى ددوی دشرك نه اوچت دی ] ښه بيا نور کمالات او احسانات يې واوري اوښايئ چه دابتان غوره دی ﴿اَمَّنۡ يَّبۡدَؤُا الۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيۡدُهٗ﴾[ يا هغه ذات کوم چه مخلوقاتو لره اول وار پيداکوی بيا به دوی لره دوباره پيداکری﴿وَمَنۡ يَّرۡزُقُكُمۡ مِّنَ السَّمَآءِ وَالۡاَرۡضِ﴾ اوکوم چه د آسمان او زمکې نه] اوبه وروی بوټی

(۱) ترجمه:- او هغه داسې ذات دې چې دوه دريابونه يې خپلو کښې يو ځائې کړی دی.

پرې راوباسي او[ تاسوله رزق درکوي ] دا مو واوريدل نو اوس اوښايئ چه ﴿ءَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ﴾[ آيا دالله تعالى سره] په عبادت کښې دشريکيدو لايق [څوک بل معبود شته؟] اوکه دا واوري اوسره ددې هم ووائي چه هو بل معبود هم مستحق د عبادت شته نو ﴿قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾[ ته ووايه چه] ښه ده [ تاسو] دهغو دعبادت په مستحق کيدو باندې [خپل دليل پيش کړئ که تاسو] په دې دعوى کښې رښتونى [يئ]

## معارف او مسائل

﴿أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ﴾، ﴿الْمُضْطَرَّ﴾ د اضطرار څخه مشتق دې. د څۀ ضرورت په وجه مجبوره بنده ته وئيلې شي چې دهغه بنده هيڅ آسره نه وي. پدې بنا به مضطر هغه چاته وئيلې شي چې ټولې آسرې ددنيا ئې ختمې شي ،او داګنړي چې فرياد آوريدونکى صرف الله ﷻ دې او هم هغه ته ئې مخه شي. لکه څنګه چې دا تفسير سدى رحمه الله. ذوالنون مصري رحمه الله، سهيل بن عبد الله رحمه الله وغيره څخه منقول دې. [قرطبى][1] داسې بنده ته نبى اکرم ﷺ ددعا کولو خودنه په دې الفاظو کښې کړې ده چې :

﴿اللهم رحمتك ارجوا فلا تكلني الى نفسي طرفة عين واصلح لي شأني كله لا اله الا انت﴾

[اى الله ﷻ څه ستا درحمت اميدوار يم څکه ما يو ساعت دپاره هم خپل نفس ته حواله نه کړې او هم ته څما ټول کارونه سم کړه، تا نه سوا څوک معبود نشته][2]

**دمضطر دعا داخلاص په وجه خامخا قبليږي** :: امام قرطبى رحمه الله فرمائي چې الله ﷻ د مضطر ددعا قبلولو ذمه داري اخستې ده. څنګه ئې چې په دې آيت مبارک کښې ددې اعلان هم فرمائيلې دې ، ولې چې ددنيا د ټولو آسرونه بې طمع کيدل او خالص الله ﷻ کار ساز ګنړل اودعا کول د اخلاص پنګه ده اود الله ﷻ په نزد داخلاص لويه درجه ده هر يو بنده کښې چې دا بيا موندې شي[پيدا سي] که هغه مؤمن وي او که کافر ، فاسق وي او که فاجر او که متقي وي ، نو ددۀ د اخلاص په برکت سره د الله ﷻ د رحمت ورته مخه شي. لکه الله ﷻ د کافرانو بيان داسې کوي چې کله دا خلق په درياب کښې وي هر طرفته کشتئ په چپو کښې راګيره شي او مرګ ورته دسترګو مخې ته راشي نو دا خلق په پورا اخلاص سره الله ﷻ څخه سوال کوي چې که مونږ دې ددې مصيبت څخه خلاص کړو نو شکر به دې اوباسو ،خو چې الله ﷻ ئې اوچې ته په خير خيرت سره راپورې باسي نو دوئ بيا په شرک کښې اخته شي لکه الله ﷻ فرمائي چې :

﴿دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ﴾[3]

يو صحيح حديث پاک کښې راغلى دى ، نبى اکرم ﷺ فرمائي چې درې قسمه دعاګانې خامخا قبليږي. اوددې په قبليدو کښې هيڅ شک نشته دى. يو د مظلوم دعا ، دويمه د مسافر دعا ، دريمه د پلار اولاد دپاره ښيره کول[4]. قرطبى رحمه الله ددې حديث پاک نقل کولو

---

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۲۳]

[2]) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۲۳] ومسند ابي داود الطيالسي رقم الحديث [۹۰۰]

[3]) ترجمه:- خالص عقيده ساتي او الله لره بلي ، بيا چې کله دوئ نجات ورکړى او اوچې ته اورسي نو بيا شرک شروع کړي.

[4]) جامع الترمذي ، ابواب الدعوات باب ماذكر في دعوة المسافر [ج:۲ ص:۱۸۲] ومسند احمد مسند ابي هريرة رضي الله عنه رقم الحديث:[۷۷۴۱]

څخه روستو فرمائیلی دی چې دې دعاګانو کښې هم هغه صورت دې کوم چې د مضطر د دعا پورته بیان شوی دې. ولې چې یو مظلوم د دنیا تولو آسرو څخه محرومه وی اود ظلم څخه د الله ﷻ په دربار کښې دعا غواړی نو هغه هم مضطر حسابیږی. دغه شان مسافر هم په سفر کښې د خپلو خپلوانو د همدردو څخه بې آسرې وی، هم دغه شان پلار هم بغیر د سختې مجبورئ څخه اولاد د پاره ښیره نه کوی.

د حدیث امام آجری ﷫ یو حدیث پاك نقل کړې دې، فرمائی چې ابی ذر ﷛ څخه روایت دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې د الله تعالی ارشاد دې: زه د مظلوم دعا نه واپس کوم. اګر چې هغه د کافر د خلې ولې نه وی. [قرطبی][1]. که مضطر مسافر یا مظلوم وغیره دا محسوس کړی چې زما دعا نه ده قبوله شوې نو بدګمانی او نا امیدی دې نه کوی، ولې چې ځینې وخت دعا خو قبوله شی خو د الله ﷻ د حکمت تر مخه هغه څه وخت پس ښکاره کیږی یادې هغه خپل ځان ته اوګوری چې په اخلاص ئې د الله ﷻ څخه دعا غوښتلې دې که نه. [والله اعلم].

| |
|---|
| قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ |
| اووایه \| نه پوهیږی \| هغه څوك \| چې په آسمانونو کښې دی |
| .....ورته اووایه چې په آسمانونو او |
| وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ |
| او په زمکه کښې دی \| په غیبو باندې \| ماسوا دالله نه \| او معلومه نه ده دوئ ته \| چې کله به |
| زمکه کښې دالله ﷻ نه بغیر بل څوک په غیبو پوهیږی ؟! او دوئ خودومره هم خبر نه دی |
| يُبْعَثُوْنَ ۝ بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ ۫ بَلْ هُمْ |
| راپاسولې کیږی دوئ \| بلکه ورك شوې دې \| علم د دوئ \| په باره داخرت کښې \| بلکه \| دوئ |
| چې کله به [دوباره] راژوندی کولی شی\| بلکه داخرت په باره کښې د دوئ علم ورک دې\| بلکه داخلق د آخرت باره کښې |
| فِيْ شَكٍّ مِّنْهَا ۫ بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ ۝ ۧ وَقَالَ الَّذِيْنَ |
| په شك کښې دی \| داخرت په حقله \| بلکه دوئ \| دهغې [قیامت] نه \|ړانده دی \| اووائی \| هغه کسان |
| په شک کښې پراته دی \| بلکه دوئ دهغې د راتلو نه ځانونه ړانده کړی دی \| او دا کافران |
| كَفَرُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا وَّاٰبَآؤُنَآ اَىِٕنَّا |
| چې دحق نه منکر دی \| آیا هر کله چې \| شو مونږه \| خاورې \| او پلاران زمونږه \| آیا نو مونږ به \| |
| وائی چې آیا هرکله مونږ اوزمونږ مشران خاورې شو \| نو آیا مونږ به دوباره [د قبرونو نه] راژوندی |
| لَمُخْرَجُوْنَ ۝ لَقَدْ وُعِدْنَا هٰذَا نَحْنُ |
| خامخا رااېستلې کیږو \| خامخا وعدې شوی دی زمونږ سره \| ددې قیامت \| زمونږ سره هم \| |
| کولې شو؟!.........مونږ او زمونږ پلار نیکونو سره هم دا وعدې وړاندې شوې وې |

[1] ) تفسیر القرطبی [ ج:۱۳ص:۲۲۳، ۲۲۴]

وَاٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ ۙ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ۝

او دپلارانو زمونږ سره هم | مخکښې ددې نه | نۀ دی دا | مګر | قیصې دی | درومبنو خلقو

.............................. دا هسې دپخوانو خلقو [جوړې کړې] قیصې دی

قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

ورته اووایه | چې اوګرځئ | په زمکه کښې | پس اوګورئ | چې څرنګې وو | انجام

ورته اووایه چې زمکه کښې اوګرځئ | نو اوګورئ چې د مجرمانو انجام څۀ شو ؟

الْمُجْرِمِيْنَ ۝ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُنْ فِيْ ضَيْقٍ مِّمَّا

دمجرمانو | اوته غم مۀ کوه | په حال دددوئ | اومۀ کیږه ته | په تنګئ کښې | دهغې

.............................. | اوته دوئ په حال غم مه کوه | او د دوئ په سازشونو خپل زړه مه

يَمْكُرُوْنَ ۝ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ

فریبونونه چې دوئ ئې کوی | اووائی دوئ | کله به وی | دا وعده | که یئ تاسو |

تنګوه | اودوئ وائی چې دا [د عذاب] وعده به کله پوره کیږی | که چرې تاسو رینښتونی

صٰدِقِيْنَ ۝ قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ رَدِفَ لَكُمْ بَعْضُ الَّذِيْ

رښتینی | اووایه | کیدې شی | چې وی | نزدې | تاسو ته | یوه حصه دهغه عذاب

یئ [محبوبه] ته ورته اووایه چې کیدیشی چې تاسو کوم عذاب دومره په تلوار غواړئ [د هغې بعضې

تَسْتَعْجِلُوْنَ ۝ وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ

چې غواړئ ئې تاسوپه جلتئ | بیشکه | رب ستا | خاوند دفضل دې | په خلقو باندې | ولیکن

حصه په تاسوپورې لګیدلې وی | اوبیشکه ستا رب په خلقو ډیر مهربان دې | خو زیات

اَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُوْنَ ۝ وَاِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ

اکثر ددوئ | شکر نۀ اوباسی | او بیشکه | رب ستا | خامخا پوهیږی | په هغه څه | چې پټوی ئې

خلق شکر نه اوباسی | اوبیشکه ستا رب ته هغه ټول څه معلوم دی | کوم چې د دوئ زړونه

صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۝ وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ فِي السَّمَآءِ

سینې ددوئ | او هغه | چې ښکاره کوئ ئې دوئ | او نشته یو پټ خیز | په آسمان کښې |

پټوی او کوم چې ښکاره کوی | .............................. او په آسمانونو او په

وَالْاَرْضِ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝

او په زمکه کښې | مګر دی | په کتاب | ښکاره کښې |

زمکه کښې داسې هیڅ پټ خیز نشته | مګر په روښانه کتاب [لوح محفوظ] کښې لیک دی |

**آسان ترجمه قرآن**

اووایه چه : د الله پاک نه سوا په آسمان او زمکې کښې چاته هم د غیب علم نشته او خلقو ته دا هم پته نشته چه هغوی به کله ژوندی کولې شی. بلکه د آخرت په باره کښې د دوی (کافرانو) علم ئې وسه پاتې

هوې دي، بلکه هغوی د هغې په باره کښې په شک کښې پراته دي بلکه د هغې نه ړانده شوي دي. کومو خلقو چه کفر غوره کړي دي، هغوی وائي چه: آیا چه کله مونږ او زمونږ پلار نیکهٔ خاوري شو نو آیا هغه وخت به واقعي مونږ (د قبرونو نه) راویستلي شو؟ مونږ سره او زمونږ پلار نیکهٔ سره د دې قسم وعدې مخکښې هم کړې شوې دی، (خو) د دې حقیقت د دې نه سوا هیڅ نه دې چه دا قصې دی کومې چه د پخوانو خلقو نه نقل کړې راروانې دی اووایه چه: تاسو په زمکه کښې سفر کولو سره اوګورئ چه د مجرمانو انجام څنګه شو. او (اې پیغمبره!) ته په هغه خلقو باندې غم مه کوه، او دوی چه د کومې مکارئ مظاهره کوی، دهغې د وجې نه تنګیږه مه دوی (تاسو ته) داسې وائي چه: دا وعده به کله پوره کیږی، که تاسو رښتنی یئ؟ اووایه چه: هیڅ لرې نه ده چه په کوم عذاب باندې تاسو تلوارې کوئ، د هغې څه حصه تاسو ته بالکل مخامخ راغلې وی او حقیقت دا دې چه ستا رب په خلقو باندې ډیر فضل کونکې دې، خو په هغوی کښې اکثر خلق شکر نه کوی. اویقین ساته چه ستا رب په هغه ټولو خبرو باندې هم پوهیږی کومې چه د دوئ سینو پټې کړې دی، او په هغه خبرو باندې هم کوم چه دوئ ښکاره کوی. او په آسمان او زمکه کښې هیڅ پټ څیز داسې نشته کوم چه په یو واضح کتاب کښې لیکلې شوې نه وی.

**خلاصه تفسیر**

بره دنبوت نه پس دتوحید ذکر وشو وړاندې دقیامت او آخرت ذکر دې دکوم طرف ته چه دتوحید په دلیلونو کښې په دې قول سره اجمالي اشاره هم شوې ده [ ثم یعیده ]([1]) او چونکه کفار ددې دروغژن کولو یوه وجه دا هم مقرروله چه مونږ دقیامت دمقرر وخت تپوس کوو اوښودلې نه شی ددې نه معلومیږی چه قیامت څه شې نه دې یعنی دوی به دمقرر وخت نه ښودل دنه واقع کیدو دلیل جوړولو په دې وجه دا مضمون ئې ددې خبرې نه شروع کړې دې چه علم غیب خاصه دالله تعالی ده فرمائي [قل لایعلم الخ] چه په دې کښې ددغه شبهې جواب هم وشو چه دقیامت دتعین علم دالله تعالی سره مخصوص دې بیا ددوی په شك او انکار باندې تشنیع دې ① [بل اذٰرك] بیا ددوی دیوې انکاری خبرې نقل دې ② [ وقال الذین کفروا] بیا په دې انکار باندې دوی پوهول دی ③ [قل سیروا] بیا دهغوی په انکار باندې نبی کریم ﷺ ته تسلی ده ④ [ ولاتحزن الخ] بیا ددې هدایت متعلق دهغوی دیوې شبهې جواب دې ⑤ [ ویقولون الخ] بیا دهدایت تاکید دې [وان ربك لیعلم الخ] لکه چه د تقریر دترجمې نه به ظاهره شی
دا خلق کوم چه دقیامت په وخت نه ښودلو سره ددې په نه واقع کیدو باندې دلیل نیسی ددې په جواب کښې ﴿قُلْ﴾[ته ووایه چه] دادلیل نیول غلط دی ځکه چه په دې سره خو زیات نه زیات دومره لازمه شوه چه زمانه او ستاسو نه ددې مقرر وخت علم پټ پاتې شو پس په دې کښې ددې څه تخصیص دې دغیبو په باره کښې خو قاعده کلیه دا ده چه﴿لَا یَعْلَمُ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَیْبَ اِلَّا اللّٰهُ﴾ [ څومره مخلوقات په اسمانونو او په زمکه کښې] یعنی عالم کښې [موجود دی ] په دې کښې [هیڅوك هم دغیبو په خبره نه پوهیږی بغیر دالله تعالی نه او] په دې وجه ﴿وَمَا یَشْعُرُوْنَ﴾[دوی] مخلوقاتو [ ته دا خبر] هم نشته ﴿اَیَّانَ یُبْعَثُوْنَ﴾ چه دوی به کله دوباره ژوندی کولې شی] یعنی الله تعالی ته خوبې دښودلو نه هرڅه معلوم دی او بل چاته بغیر

[1]) ترجمه:-دوئ به بیا دوباره پیدا کوی.

دښو دلونه هیڅ هم معلوم نه دی مگر لیدې شی چه ډیر کارونه د کومو چه دمخکښې نه علم نه وی واقع کیږی ددې نه معلومه شوه چه په یو شی علم نه کیدل دانه لازمه وی چه هغه شې موجود نه دې بلکه خبره داده چه الله تعالی ته په خپل حکمت سره دځنو علمونو په غیب کښې ساتل منظور دی دقیامت تعین هم په دغو کارونو کښې دې په دې وجه مخلوق ته ددې علم ورنه کړې شو مگر ددې نه نه واقع کیدل څنگه لازم شو؟ او دادتعین ناخبری خو په ټولو کښې یو مشترك كاردې لیکن په دې کفارو منکرانو کښې صرف دانه ده چه دغه په تعین سره قیامت نه منی ﴿بَلِ ادّٰرَكَ عِلۡمُهُمۡ فِی الۡاٰخِرَةِ﴾ [بلکه] ددې نه زیاته دا خبره ده چه [د آخرت په باره کښې] په خپله [ددوی] نفس [علم] په واقع کیدو باندې [نشته شوې دې] یعنی په خپله ددې د واقع کیدو علم ئې نشته کوم چه دتعین دعلم دنه کیدو نه زیات سخت دې ﴿بَلۡ هُمۡ فِیۡ شَكٍّ مِّنۡهَا﴾ [بلکه] ددې نه زیاته داده چه [داخلق ددې] دواقع کیدو [نه په شك دی بلکه] ددې نه سوا داده چه ﴿بَلۡ هُمۡ مِّنۡهَا عَمُوۡنَ﴾ [دوی ددې نه ړانده شوی دی] یعنی لکه څنگه چه ړوند ته لار په نظر نه راځی په دې وجه مقصود ته رسیدل لرې خبره ده. دغه شان په آخرت دتصدیق چه کومه ذریعه ده یعنی صحیح دلیلونه داخلق د ډیر عناد په وجه سره په دغو دلیلونو کښې غور او فکر نه کوی په دې وجه دغه دلیلونه دوی ته په نظر نه راځی په کومو چه مطلب ته درسیدو امید کیدې شی پس داد شك نه زیات دې څکه چه دشك خاوند څنې وخت په دلیل نظر کوی شك رفع کوی او دې نظر هم نه کوی [او] په کفارو ددې تشنیع نه پس مخکښې ددوی یو انکاری قول نقل کوی چه ﴿وَقَالَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡۤا﴾ [دا کافران داسې وائی ﴿ءَاِذَا کُنَّا تُرٰبًا وَّاٰبَآؤُنَاۤ﴾ آیا مونږ خلق هرکله چه] مړه شو [خاوړې شو او] دغه شان [زمونږ مشران هم ﴿اَئِنَّا لَمُخۡرَجُوۡنَ﴾ نو آیا] بیابه [مونږ] ژوندی شو دقبرونو نه به [راویستلې شو ﴿لَقَدۡ وُعِدۡنَا هٰذَا نَحۡنُ وَاٰبَآؤُنَا مِنۡ قَبۡلُ﴾ ددې خو زمونږ او زمونږ دمشرانو سره] دحضرت محمد ﷺ نه [وړاندې نه وعده کیدل راروان دی] څکه چه دټولو پیغمبرانو دامشهوره خبره ده لیکن نه تر ننه پورې وشوه اونه چا وښودله چه کله به وی ددې نه معلومیږی چه ﴿اِنۡ هٰذَاۤ اِلَّاۤ اَسَاطِیۡرُ الۡاَوَّلِیۡنَ﴾ [دا بل هیڅ ندی هسې بې سنده خبرې دی کومې چه د ړواندو نقل کیږی راروانې دی ﴿قُلۡ﴾ ته ووایه چه] هرکله ددې په امکان باندې عقلی دلیلونه او په وقوع باندې نقلی دلیلونه ځائ په ځائ باربار تاسوته اوږولې شوی دی نوتاسوله پکاردی چه دروغږن کولو نه واپس شئ ورنه دنورو دروغږن کوونکو چه کوم حال شوې دې چه په عذاب کښې گرفتار شول دغه به ستاسو حال وی که دهغوی په حالت کښې شبهه کوئ نو ﴿سِیۡرُوۡا فِی الۡاَرۡضِ﴾ [تاسو په زمکه کښې وگرځئ ﴿فَانۡظُرُوۡا کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَةُ الۡمُجۡرِمِیۡنَ﴾ وگورئ چه دمجرمانو څه انجام شو] څکه چه دهغوی دهلاکیدو او دعذاب راتلو نښې تر اوسه پورې باقی دې [او] که باوجود ددې بلیغو وعظونو بیا هم مخالفت ته ئې ملا ترلې وی نو ﴿وَلَا تَحۡزَنۡ عَلَیۡهِمۡ﴾ [ته ددوی غم مه کوه ﴿وَلَا تَکُنۡ فِیۡ ضَیۡقٍ مِّمَّا یَمۡکُرُوۡنَ﴾ او دوی چه کوم شرارتونه کوی په هغې سره زړه تنگې کیږی مه] څکه چه دنورو پیغمبرانو سره هم داسې معامله شوې ده [او] [قل سیروا الخ] کښې او ددې په مثل په نورو آیتونو کښې چه دوی ته دعذاب کومه وعده اوږولې شی نو چونکه په زړونو کښې ئې تصدیق نشته په دې وجه [داخلق] په بې باکئ سره ﴿وَیَقُوۡلُوۡنَ﴾ [داسې وائی ﴿مَتٰی هٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ کُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ﴾ چه داوعده] دعذاب او قهر [به کله وی که تاسو رښتونی یئ] نو وښایئ ﴿قُلۡ عَسٰۤی اَنۡ یَّکُوۡنَ رَدِفَ لَکُمۡ بَعۡضُ الَّذِیۡ﴾

تَسْتَعْجِلُوْنَ﴾ [ته ووایه چه عجیبه نه ده چه کوم عذاب تاسو ژر غواړئ په دې کښې څه تاسوته رارسیدلې وی او] تراوسه چه لانه راغی ددې وجه داده چه ﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ﴾ [ستارب په خلقو] خپل [الوئ فضل لرى ] ددې عام رحمت په وجه سره ئې لرې شان مهلت ورکړې دې ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ﴾ [ اولیکن اکثر خلق] په دې خبره ﴿لَا يَشْكُرُوْنَ﴾ [ شکرنه کوی] چه تاخیرلره غنیمت وګنړی او په دې مهلت کښې دحق طلب وکړی او قبول ئې کړی چه دعذاب نه ورته ابدی نجات حاصل شی بلکه ددې په عکس انکار او په طور دمسخرو جلد بازی کوی [او] داتاخیر چونکه دمصلحت په وجه دې په دې وجه دې داسې نه ګنړی چه ددې کارونو به چرې سزا نه وی څکه چه ﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ﴾ [ستا رب دهر څه نه خبر دې څه چه ددوی په زړونو کښې پټ دی او کومولره چه دوی په ډاګه کوی او] داصرف په علم خداندی کښې نه بلکه په دفتر خداوندی کښې لیکلې شوی دی چه په دې کښې یوازې ددوی دکارونو تخصیص نشته بلکه [وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ فِى السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اِلَّا فِىْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ] [ په آسمان اوزمکه کښې داسې څه پټ شې نشته کوم چه په لوح محفوظ کښې نه وی] او دفتر خداوندی دغه لوح محفوظ دې اوهرکله چه پټ څیزونه کوم چه چاته معلوم نه وی په دغې کښې موجود دی نو ظاهری څیزونه خویه کښې په درجه اولی موجود دی غرض ددوی دبدو عملونو نه الله تعالی خبر دې او په آسمانی دفتر کښې هم محفوظ دی او داعملونه په خپله دسزا مقتضی هم دی او دسزا په واقع کیدو دټولو پیغمبرانو ﷺ ورکړې شوی رښتونی خبرونه متفق هم دی بیا ددې ګنړلو څه ګنجاتش دې چه سزا به نه وی البته وخت اولګیدل په کښې ممکن دی چنانچه څنې سزا ګانې دې منکرانو ته په دنیا کښې هم ورسیدی لکه قتل قحط قید وغیره او څه قبر اوبرزخ کښې به وی کوم چه لرې نه دې او څه به په آخرت کښې وی.

## معارف او مسائل

﴿قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ﴾ دې کښې نبی اکرم ﷺ ته حکم ورکړې شوې دې چې د آسمانونو مخلوق او دزمکې مخلوق د سره په غیب خبر نه دی ، سوا د الله ﷻ څخه. دې آیت مبارك کښې ښه په ډاګه اوخودلې شو چې علم غیب د الله ﷻ صفت دې چې ورسره په کښې هیڅ یو پیغمبر ،فرښته وغیره نشی شریکیدې. دا مسئله د سورة انعام په آیت نمبر ۵۹ کښې ښه په تفصیل سره بیان کړې شوې ده. دې څخه علاوه د احقر یوه رساله کشف الريب عن علم الغيب د احکام القران د یوې حصې په حیث چاپ شوېده ، دعلم خاوندان ئې کتلې شی.

﴿بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ بَلْ هُمْ فِىْ شَكٍّ مِّنْهَا بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ﴾ په ﴿ادّٰرَكَ﴾ کښې قراء تونه مختلف دی ، او ددې په معنی کښې ئې هم څو قولونه دی ، دعلم خاوندان ددې تفصیل په تفسیرونو کښې کتلې شی. دلته صرف دومره پوهیدل پکار دی چې څینې مفسرینو ددې یوه معنی تکامل کړې ده ، او فی الاخرة ئې ﴿ادّٰرَكَ﴾ سره متعلق منلې دې ، په دې بنا ددې ټولې جملې معنی ئې داکړې ده چې په دې معامله کښې به ددوئ علم په آخرت کښې مکمل شی ، ولې چې د هر څیز حقیقت به په ډاګه مخې ته راشی. خو د دغې وخت علم به ددوئ هیڅ پکار رانشی. ولې چې په دنیا کښې به دوئ د آخرت څخه انکار کولو. څینې مفسرینو ددې معنی ضل او غاب [یعنی ورک او غائب] کړې ده ، او فی الاخرة ئې علمهم سره متعلق ګرځولې

دي. په دې بنا دا دې جملې معنى به داوي چې :د اخرت په معامله كښې د دوئ علم غائب شو په دې پوهه نشو.

| |
|---|
| إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَقُصُّ |
| بيشكه \| دا قرآن \| بيانوي |
| بيشكه دا قران پاک |
| عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَكْثَرَ الَّذِي هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ |
| په بني اسرائيلو باندې \| اكثر هغه خبرې \| چې هغوئ \| په هغې كښې \| اختلاف كوي |
| بنى اسرائيلو ته زياتې هغه خبرې څرګندوي \| چې دوئ په كښې تراوسه اختلاف كوي |
| وَإِنَّهُ لَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ إِنَّ رَبَّكَ |
| او بيشكه دا قرآن \| خامخا هدايت دې \| اورحمت دې \| دپاره دمومنانو \| بيشكه رب ستا \| |
| اودا كتاب د ايماندارو دپاره د هدايت ذريعه اورحمت دې \| ......بيشكه ستا رب |
| يَقْضِي بَيْنَهُمْ بِحُكْمِهِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ |
| فيصله به كوي \| په منځ ددوئ كښى \| په حكم خپل سره \| اوهغه \| غالب \| او پوهه دې |
| به د دوئ په مينځ كښې پخپل حكم فيصله اوكړي \| اوهغه غالب ذات دې \| او پوهه دې |
| فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِينِ |
| پس بروسه كوه \| په الله باندې \| بيشكه ته \| په حق ښكاره باندې ئې \| |
| نوته په الله ﷻ باندې بهروسه كوه \| بيشكه ته په واضحه حق باندې يئ \| |

## آسان ترجمه قرآن

واقعه دا ده چه دا قرآن كريم د بنى اسرائيلو مخكښې دا كثر هغه خبرو حقيقت واضح كوى په كومو كښې چه هغوى اختلاف كولو او يقيناً دا د ايمان راوړلكو دپاره هدايت او رحمت دې. او ستا رب به يقيناً د هغوى ترمينځه په خپل حكم سره فيصله كوى، او هغه ډير د اقتدار والا، او لوئې علم والا دې. لهٰذا (اې پيغمبره) تاسو په الله پاک باندې يقين ساتئ يقيناً تاسو ښكاره ښكاره په حق باندې يئ.

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَقُصُّ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَكْثَرَ الَّذِي هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ﴾ [بيشكه دا قرآن په بني اسرائيلو باندې اكثر] د [ هغو خبرو] حقيقت [الره ښكاره كوى په كومو كښې چه دوى اختلاف كوى ﴿وَإِنَّهُ لَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾او هغه د ايماندارو دپاره] خاص [هدايت او] خاص[رحمت دې] هدايت په اعتبار د طاعاتو او عباداتو او رحمت په اعتبار دثمراتو او نتائجو﴿إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ بِحُكْمِهِ﴾ [په يقين سره به ستا رب ددوى په مينځ كښې په خپل حكم سره] هغه عملى [فيصله ] دقيامت په ورځ [وكړى] هغه وخت به معلومه شي چه حق دين كوم يو وو اوباطل كوم يو نو په داسې خلقو افسوس څه كيدې شى ؟ ﴿وَهُوَ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ﴾[ او هغه زبردست علم والا دې] بغير دهغه دمشيت نه څوك چاته ضرر نه شى رسولې ﴿فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ﴾[ نو ته په الله تعالى

باندې توکل ساته] دالله تعالی مدد به درسره خامخا کیږي چه ﴿إِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِينِ﴾ [ ته په ښکاره حق باندې یې ]

## معارف او مسائل

مخکښې آیتونو کښې د الله ﷻ کامل قدرت په مختلفو مثالونو سره ثابت کړې شو او دا خبره ثابته کړې شوه چې د قیامت په واقع کیدو او بیا په دې کښې د مړو ژوندی کیدلو کښې هیڅ عقلي شك شبه نه شته او دا خبره عقل هم منی او ممکن هم ده. او دا په عقلي امکان سره خامخا د پیغمبرانو ﷺ او د آسماني کتابونو څخه ثابت دي. او د څه خبر صحیح او ثابتیدل په دې باندې اړه لري چې ددې نقل کوؤنکې، خبر ورکوؤنکې او روایت کوؤنکې رېښتینې وی، ځکه چې په دې آیت مبارك کښې دا بیان راغلې دې چې ددې خبر ورکوؤنکې قرآن پاك دې چې درېښتینولئ څخه ئې انکار کیدې نشي. تردې پورې چې د بني اسرائیلو علماء کرامو به په کومو مسئلو کښې یو تر بله سخت اختلاف لرلو او بیا به هم نه حل کیدې، قرآن عظیم الشان په دغه مسئلو کښې حاکم جوړ شو او د صحیح فیصلو هدایت ئې کړې دې او دا ښکاره خبره ده چې د علماء کرامو تر مینځه داختلاف فیصله کوؤنکې بهٔ ضرور د ټولو عالمانو څخه زیات عالم او اعلی وی. ځکه د قرآن عظیم الشان په باره کښې دا ښکاره شو چې دا رېښتینې خبر ورکوؤنکې دې. دې څخه روستو د نبي اکرم ﷺ د تسلئ دپاره اوفرمائیلې شو چې کوم خلق ستاسو مخالفت کوئی نو هغه څخه زړهٔ مه تنګوئی. الله ﷻ پخپله ستاسو فیصله کوؤنکې دې. تاسو به په الله ﷻ باندې بهروسه ساتئی، ځکه چې د الله ﷻ مدد حق سره وی او ستاسو دطریقې حقوالې یقیني دې.

| |
|---|
| إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ |
| بیشکه تهٔ \| نشې اورولې |
| بیشکه ته مړو ته خبرې |
| الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ﴿٨٠﴾ |
| مړو ته \| او نشی اورولې \| کنړو ته \| بلنه [آواز] \| کله چی \| واپس اوګرزی دوئ شاکونکی |
| نه شې آورولې \| اونه کونړ ته آواز آورولې شې \| څه وخت چې هغوئ شاکړی او روان شی |
| وَمَا أَنْتَ بِهَادِي الْعُمْيِ عَنْ ضَلَالَتِهِمْ ۖ إِنْ تُسْمِعُ |
| اونهٔ ئې تهٔ \| لاربنودونکې \| ړندو ته \| چی بچ ئې کړې دګمراهئ دهغوئ نه \| نهٔ شې اورولې تهٔ |
| اوته ړوندو ته چې په ګمراهئ کښې پراته دی لاره نشې خودلې \| ته خو صرف هغوخلقو |
| إِلَّا مَنْ يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا فَهُمْ مُسْلِمُونَ ﴿٨١﴾ |
| مګر \| هغه چاته \| چې ایمان راوړی \| په آیتونو زمونږ \| پس هغوئ \| مسلمانان ] حکم منونکی] دی |
| ته آورول کولې شې \| چې زمونږ په آیتونو باندې ایمان راوړی \| اوهغوی تابعدار وی |

## آسان ترجمه قرآن

یاد ساتئ چه ته مړو ته خپله خبره نه شې اورولې، او نه ته کڼرو ته خپله خبره اورولې شې، چه کله هغوی په شا بانډې روان شی. او نه ته ړانده د گمراهئ نه بچ کولو سره په لاره بانډې راوستلې شې پس تاسو هم هغه خلقو ته خبره اورولې شې کوم چه زمونږ په آیتونو بانډې ایمان لری، پس هم دا خلق فرمانبرداروی.

## خلاصه تفسیر

﴿اِنَّكَ لَا تُسۡمِعُ الۡمَوۡتٰی﴾ [ته مړو ته نه شې اوړولې ﴿وَلَا تُسۡمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ﴾ اونه کڼرو ته خپل آواز اوړولې شې] خاصکر ﴿اِذَا وَلَّوۡا مُدۡبِرِیۡنَ﴾ [هر کله چه دوی شاکړئ روان شی ﴿وَمَاۤ اَنۡتَ بِهٰدِی الۡعُمۡیِ عَنۡ ضَلٰلَتِهِمۡ﴾ اونه ته ړندوته ددوی دگمراهئ نه] بچ کولې [لاربښودلې شې ﴿اِنۡ تُسۡمِعُ اِلَّا مَنۡ یُّؤۡمِنُ بِاٰیٰتِنَا فَهُمۡ مُّسۡلِمُوۡنَ﴾ ته خو صرف هغوته اوړولې شې کوم چه زمونږ په آیتونو یقین لری] او[بیا هغوی منی هم]

## معارف او مسائل

زمونږ درسول کریم ﷺ چې د ټولو انسانانو سره کوم شفقت او همدردی وه دهغه شفقت او همدردئ تقاضو دا وه چې ټولو لره د الله ﷻ دپیغام رسولو په ذریعه دجهنم د اور نه د نجات ورکړی، چا به چې د رسول کریم ﷺ دغه پیغام قبول نه کړو نو رسول کریم ﷺ به داسې زیات غمژن شو لکه د چا اولاد چې دهغه د خبرې نه منلو په وجه په اور کښې ورگذاریږی، ځکه قرآن عظیم الشان ځائې په ځائې د رسول کریم ﷺ د تسلئ دپاره مختلف عنوانات اختیار کړی دی، په تیرو شوؤ آیتونو کښې دا عنوان په د ې الفاظو: ﴿وَلَا تَحۡزَنۡ عَلَیۡهِمۡ وَلَا تَكُنۡ فِیۡ ضَیۡقٍ﴾[1] کښې بیان شوې وو، اوس په دې آیت مبارک کښې تسلئ دپاره ئې بل انداز اختیار کړو نو فرمائی ستاسو ﷺ کار حق پیغام رسول دی چې تاسو پوره کړو، چا چې قبول نه کړو په هغې کښې ستاسو ﷺ هیڅ قصور او کوتاهی نشته چې گڼی تاسو ﷺ پرې غم اوکړئی، بلکه هغوئ د قبلولو استعداد نه لری کوم چې دې دریو مثالونو نه واضح کیږی.
ړومبې مثال دمړی د کالبوت [لاش] دې چې د خبرې آؤریدل او فائده ترې پورته کول نشی کولې. دویم مثال ئې د کوڼ داسې ورکړو چې اول کوڼ خبره نه آؤری اوکه څوک آؤرول غواړی نو هغه مخ په روستو منډې کړی، دریم مثال د ړوند ئې داسې ورکړو چې ړوند د چا د لار خودلو نه فائده ځکه نه اخلی چې هغه وینی نه، ددې مثالونو بیانولو نه پس په آخر کښې فرمائی چې:
﴿اِنۡ تُسۡمِعُ اِلَّا مَنۡ یُّؤۡمِنُ بِاٰیٰتِنَا فَهُمۡ مُّسۡلِمُوۡنَ﴾ یعنی تاسو خو خالص داسې خلقو ته آؤرولې شئ چې د الله ﷻ په آیتونو بانډې ایمان راوړی او تابعداری قبلوی، ددې ټول مضمون نه دا خبره ښکاره ده چې دلته د آؤریدو او آؤرولو نه صرف غوږونو ته آواز رسول نه بلکه دې نه مراد هغه آؤریدل دی چې څه فائده پرې بانډې مرتب کیږی، خو دلته داسې آؤریدل قرآن عظیم الشان نه آؤریدل اوگرځول چې څه فائده پرې نه مرتب کیږی بلکه په آخر د آیت مبارک کښې فرمائی چې:

[1]) ترجمه: او تاسو ددوئ په وجه مه غمژن کیږئ او دوئ چې کوم شرارتونه کوی هغې سره زړه مه تنګوئ.

تاسو خو صرف هغې خلقو ته آؤرولې شئ چې ایمان راؤړي ، که دلته دآؤرولو نه مراد صرف غوږونو ته خبره وررسول وې نو د قرآن عظیم الشان دا ارشاد بهٔ د مشاهدې او د واقع نه خلاف وو، ولې چې دکافرانو غوږونو ته د آواز رسولو د هغوئ د آؤریدلو او جواب ورکولو بې شمیره ثبوتونه دی چې انکار ترې هیڅوک نشی کولې . دلته مړی سره د تشبیه ورکولو مطلب هم دا دې چې که بالفرض مړي یو حق خبر هم واؤري او قبلول ئې هم اوغواړي نو فائده څکه نشته چې هغوئ ددنیا دارالعمل نه تیر شوی دی چرته به چې ایمان او نیک عمل څه فائده ورکولې شی ، د مرګ نه پس په برزخ یا محشر کښې خو ټول کافران منکران د ایمان او نیک عمل آرزو لري خو دغه وخت ایمان او عمل قبلیدونکې نه دې .

څکه ددې آیت مبارک څخه داخبره نه ثابتیږی چې مړی د چا څه خبره نشی آؤریدې ، لهذا د مړو د آؤریدو د مسئلې څخه دا آیت مبارک په حقیقت کښې خاموش دې ، دا مسئله په خپل ځائې کښې قابل غور ده چې مړی خبرې آؤریدې شی او که نه ؟

**د مړو د آؤریدو مسئله** :: دمړو د آؤریدو په مسئله کښې پخپله د صحابه کرامو ﷺ اختلاف دې . عبدالله بن عمر ﷺ د مړو آؤریدل ثابتوی او عائشه صدیقه ﷺ د مړو نه آؤریدل منی . د غه شان نور صحابه کرام ﷺ او تابعین هم په دې باره کښې مختلفې رائې لری څوک ئې آؤریدل منی او څوک ئې نه منی ، قرآن عظیم الشان کښې دلته د سورة نمل کښې دا مضمون داشان راخستې دې ، سورة ورم کښې تقریبا په دې الفاظو سره دا مضمون راغلې دې ، اوپه سورة فاطر کښې په دې الفاظو :

﴿وَمَآ أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِي الْقُبُورِ﴾ [یعنی تاسو ﷺ هغې کسانو ته آؤرول نشی کولې کوم چې په قبرونو کښې دی ]

په دې درې واړو آیتونو کښې داخبره د نظر کولو قابله ده چې په دې کښې هیڅ یو آیت مبارک د مړو د آؤریدو نفی نه کوی ، بلکه فرمائی چې تاسو ورته نشی آؤرولې ، لهذا دې کښې ښکاره اشاره دې ته کیدې شی چې مړی د آؤریدو قابل دی خو مونږ ورته پخپل اختیار سره نه شو آؤرولې .

یو بل آیت مبارک کښې دشهیدانو باره کښې داثابتوی چې هغوئ ته په برزخ کښې یو خاص قسم ژوند ورکولې شی دهغې په جوړ ورته یو خاص قسم روزی هم ورکولې شی او د خپلو پسماندګانو باره کښې هم د الله ﷻ د طرفنه دوئ ته زیرې ورکولې شی .

﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ۚ بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ۝ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝﴾ (۱)

دا آیت مبارک ددې خبرې دلیل دې چې د مرګ نه پس هم په انسانی روح کښې شعور او پوهه پاتې وی ، بلکه ددې نه ثابتیږی چې په شهیدانو کښې دا واقع کیږی هم ، که څوک دا وائی

(۱) ترجمه:- اوتاسو ګمان مه کوئ دهغه خلقو په باره کښې چې دالله په لار کښې شهید شوی وی چې ګنې دامړهٔ دی بلکه دوی ژوندی دی دخپل رب په نیز دوئ ته رزق ملاویږی الله پاک چې کوم فضل پرې کړې دې په هغې دوی خوشحالیږی اوپه هغه مسلمانانو باندې یو بل ته زیرې ورکوی کوم وروستې رسیدلی نه دی بلکه روستو پاتې دی هغوئ هم پدې حالت باندې خوشحالیږی چې به دوئ باندې دې هم هیڅ قسمه ویره نه وی او نه دې دوئ غمژن وی.

چې دا خو شهیدانو سره خاص دی د عوامو مړو دا حالت نشی کیدې نو دهغې جواب دادې چې ددې آیت مبارک نه خو کم نه کم دومره ثابت شو چې د مرګ نه پس هم په انسانی روح کښې شعور ادراک او دې دنیا سره څه تعلق پاتې کیدې شی ، چې الله ﷻ دا حالت شهیدانو کښې پیدا کوی ، دغه شان په عامو مړو کښې هم پیدا کولې شی کله ئې چې غواړی ، عبدالله بن عمر رضي الله عنه چې د مړو آؤریدل منی نو دهغوئ دا منل په صحیح حدیث باندې بنا دی کوم چې دوئ رضي الله عنه نه په صحیح سند سره منقول دې هغه حدیث پاک دادې چې:

﴿ومامن احدان یمربقبراخیه المسلم کان یعرفه فی الدنیا فیسلم علیه الاردالله علیه روحه حتی یردعلیه السلام [ابن کثیرعن ابن عمر رضي الله عنه]﴾[1] [څوک چې د یو مسلمان رور په قبر باندې تیریږی چې په دنیا کښې ئې پیژندلو او سلام ورته اوکړی نو الله ﷻ دغه مړی ته روح راواپس کړی چې د سلام جواب ورکړې شی]

دې نه داخبره ثابتیږی چې کله یو مسلمان د بل مسلمان په قبر باندې تیریږی نو سلام دې اچوی ، نو مړی ئې آؤری او جواب ئې هم ورکوی ، د هغې صورت داوی چې الله ﷻ دغه مړی ته روح راواپس کړی ، دې نه دوه خبرې ثابتې شوې . یوا دا چې مړی آؤری او بله دا چې ژوندی او مړی نه پخپل اختیار سره آؤریدلې شی او نه آؤرولې شی ، دا دواړه د الله ﷻ په اراده باندې انحصار لری ، په دې حدیث پاک کښې خودلې شوی دی چې مړی ته دسلام آؤریدو او دهغې د جواب ورکولو طاقت الله ﷻ ورکوی . د نورو حالاتو او کلماتو په باره کښې څه قطعی فیصله نشی کولې چې مړی به ئې آؤری او که نه ؟ څکه د امام غزالی رحمه الله او د امام سبکی رحمه الله وغیره تحقیق دې چې دصحیح احادیثو او د قرآن عظیم الشان ددې آیت مبارک نه دا ثابتیږی چې کله کله مړی د ژوندو خبرې آؤری ، لیکن دا ثابته نده چې هر مړې هر حال کښې د هر چا خبره آؤریدې شی ، کله چې مونږ ټول آیتونه او ټول روایات رایوځائې کړو نو دهغې ربط داسې راتلې شی چې مړی څه وخت کښې د ژوندو خبرې آؤریدې شی او څه وخت کښې نه شی آؤریدې . دا هم کیدې شی چې د چا خبره آؤری او د چا نه آؤری . داسې هم کیدې شي چې څینې مړی آؤری او څینې نه آؤری ، څکه چې د سورۂ نمل ، سورۂ روم اود سورۂ فاطر د آیتونو نه د اهم ثابت دی چې مړوته آؤرول زمونږ په اختیار کښې نه دی . بلکه دا د الله ﷻ په خوښه دی ، لهذا چرته چې صحیح احادیثو له مخې آؤریدل ئې ثابت دی هلته د هغې عقیده لرل پکار دی او چرته چې ثابت نه دی هلته دواړه احتمالات شته ، یعنی نه آؤریدل یقینی او نه آؤریدل یقینا ثابت دی ، والله سبحانه وتعالی اعلم .

احقر دې مسئلې تحقیق په یو مستقلې رساله کښې کړې دې چې نوم ئې تکمیل الحبور بسماع اهل القبور دې . چې احکام القرآن سورۂ روم ، حزب خامس کښې په عربی ژبه کښې شائع شوې ده ، هغې کښې د آیتونو روایتونو د پخوانو اوروستنو علماء کرامو په اقوالو او د شرح صدور وغیره څخه ډیرواقعات او مخاطبات د اهل قبورو نقل کړی دی ، اهل علم ئې په هغې کښې کتلې شی ، عوامو دپاره دلته دهغې ضروری خلاصه لیکلې شوې ده

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٦ ص:٣٢٥] و کنز العمال رقم الحدیث:[٤٢٥٥٦] وجام الأحادیث للسیوطی رقم الحدیث [٢٠٦٣٢].

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | وَقَعَ | الْقَوْلُ | عَلَيْهِمْ | أَخْرَجْنَا | لَهُمْ |
| او کله چي | راشي | خبر دپوره کيدو دوخت | په هغوئ باندي | نو رااوبه باسو مونږ | دپاره دهغوئ |
| اوهر کله چي [دالله د عذاب] وعده د دوئ په حق کښې پوره شي | | | | نو مونږ به د دوی دپاره د زمکې | |
| دَآبَّةً | مِّنَ الْأَرْضِ | تُكَلِّمُهُمْ | أَنَّ النَّاسَ | كَانُوا | بِأٰيٰتِنَا |
| يو ښناور | دزمکي نه | چي خبرې به کوی دهغوئ سره | چي بيشکه خلق | وو | په آيتونو زمونږ |
| نه يو ښناور راوباسو | | چي خبرې به ورسره کوی | چي دې خلقو زمونږ په آيتونو يقين | | |
| لَا يُوقِنُونَ ﴿۸۲﴾ | | | | | |
| چي يقين به ئې نه کولو | | | | | |
| نه لرلو | ...... | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوکله چه زمونږ د خبرې د پوره کيدلو وخت په هغه خلقو باندې راشی نو مونږ به د هغوی دپاره د زمکې نه يو ښناور راوباسو کوم چه هغوی سره به خبرې کوی چه خلقو زمونږ په نښو باندې ايمان نه راوړلو.

## خلاصه تفسير

﴿وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ﴾ [ اوکله چه وعده] دقيامت [ په دوی ] خلقو [باندې پوره کيدونکې شی] يعنی دقيامت زمانه نزدې شی ﴿أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَآبَّةً مِّنَ الْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ﴾ [ نومونږ به ددوی دپاره دزمکې نه يو] عجيبه [ ښناور راوباسو چه هغه به دوی سره خبره کوی چه] ﴿أَنَّ النَّاسَ كَانُوا بِأٰيٰتِنَا لَا يُوقِنُونَ ﴿۸۲﴾﴾ کافرانو [خلقو زمونږ] يعنی دالله تعالی [ په آيتونو] خصوصا په هغو آيتونو کوم چه دقيامت متعلق دی [ يقين نه راوړلو] مګر اوس قيامت راورسيدو دهغې په علامتو نو کښې يو علامت زما ظهورهم دې.

**دابة الارض خه دې چرته اوکله بهٔ راوځى** :: مسنداحمد د حذيفه رضي الله عنه نه روايت نقل کړې دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې قيامت به تر هغې نه قائمږی تر څو چې تاسو دهغې نه وړاندې لس نخښې اونه وينئ:

① د مغرب نه د نمر راختل ② دخان ③ دابة ④ د ياجوج ماجوج راوتل ⑤ دعيسی عليه السلام رانازليدل ⑥ دجال ⑦ درې ځل خسوف، يو د مغرب طرفنه او بل د مشرق طرفنه، اودريم په جزيرة العرب کښې ⑧ يو اور چې د ژروالی د عدن نه بهٔ راوځی او ټول خلق به ميدان حشر ته شړی، چرته به چې خلق دشپې تيرولو دپاره ايساريږی، دغه اور به هم هلته ايسار وی، بيا به ئې صبا له روان کړی، [داشان روايت اوکړو مسلم، او اهل سنن په ډيرو طريقو سره او وئيلی ئې دی چې ترمذي دې حديث پاک ته حسن وئيلی دی].(۱)

---

(۱) مسند احمد، مسند حذيفة بن اسيد الغفاری رضی الله عنه رقم الحديث:[۱۶۲۴۴] و جامع الترمذي، ابواب الفتن باب ماجاء في الخسف [ج:۲ ص:۴۱] و صحيح مسلم كتاب الفتن، باب في عشر آيات [ج:۲ص:۳۹۳]

د ې حدیث پاک نه د اثابت شو چې قیامت ته نزدې زمانه کښې به دزمکې نه داسې یو ځناور راوځی چې خلقو سره بهٔ خبرې کوی ، د دابة دتنوین نه ددغه ځناور عجیبه کیدو ته اشاره ده ، او دې ته هم اشاره ده چې دغه ځناور بهٔ د نورو ځناورو پشان د ځناورو مور پلار نه نه پیدا کیږی ، بلکه ناڅاپه به د زمکې نه راپیدا کیږی ، او دې حدیث پاک نه د اهم معلومیږی چې دغه ځناور به په ټولو کښې آخره نخښه د قیامت وی ، دې پسې به زر تر زره قیامت راځی ، ابن کثیر رحمه الله په حواله د ابی داؤد طیالسی رحمه الله د طلحه بن عمر رضی الله عنه نه یو اوږد روایت نقل کړې دې چې دغه دابة الارض به په مکه مکرمه کښې د کوه صفا نه راوځی او د خپل سر نه به خساوړې څنډی ، مسجد حرام کښې به د حجر اسود او مقام ابراهیم علیه السلام تر مینځه اورسی ، خلق به ددې په لیدو منډې کړی ، یوه ډله به دغه ځائې کښې پاتې شی ، دغه دابة بهٔ دهغوئ مخونه لکه د ستورو پشان روښانه کړی بیا به بهر ته د زمکې په دوره راوځی . د هر کافر په مخ باندې به د کفر نخښه لګوی ، څوک به ترې په تښتیدو هم نشی خلاصیدې . دا به هر مؤمن او کافر پیژنی [ابن کثیر]([1]).

او مسلم بن حجاج رحمه الله د عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت کړېدې چې هغوئ رضی الله عنه فرمائی چې ما درسول کریم صلی الله علیه وسلم نه یو حدیث آوریدلې وو چې چرې ئې هم نه هیروم ، هغه دا چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې د قیامت په آخری نخښو کښې بهٔ د ټولو نه اول نمر د مغرب نه راختل وی ، چې دغه نمر بهٔ راپورته شی نو دابة الارض به راوځی ، ددې دوؤ نخښو ځینې چې کوم یوهم وړاندې شی هغې پسې بهٔ زر تر زره قیامت راځی ، [ابن کثیر]([2]).

شیخ الاسلام جلال الدین محلی رحمه الله فرمائیلی دی چې د دابة الارض د راوتلو په وخت بهٔ د امر بالمعروف او نهی عن المنکر احکام ختم شی او ددې نه پس به هیڅ یو کافر هم اسلام نه قبلوی ، دا مضمون د ګڼو احادیثو ا وآثارو نه مستنبط کیږی ، [مظهری]([3]).

ابن کثیر رحمه الله وغیره دلته د دابة الارض شکل ، حالات د مختلفو روایاتو په حواله نقل کړی دی چې په کښې اکثر د اعتبار کولو قابل نه دی ، ځکه څومره خبرې چې د قرآنی آیتونو او صحیح احادیثو نه ثابت دی چې دابهٔ یو عجیبه ځناور مخلوق وی ، د چا ځناور نه به نه وی پیدا شوې ، زمکې نه بهٔ راوځی ، په مکه مکرمه کښې به راوځی بیا به ټوله دنیا کښې ګرځی ، کافر او مؤمن به پیژنی ، ورسره به خبرې کوی ، صرف دومره خبرو باندې عقیده لرل پکار دی ، دې نه د باقی خبرو تلاش نه دې پکار ، ولې چې نه خو دا ضروری دی او نه څه فائده په دې کښې شته.

باقی پاتې شوه دا خبره چې دابة الارض به د خلقو سره خبرې کوی، ددې څه مطلب دې؟ د دابة الارض دخبرو کولو مطلب د ځینو حضراتو په نزد دادې چې کوم قرآن کریم داسې بیان کړې دې چې:

﴿أَنَّ النَّاسَ كَانُوا بِآيَاتِنَا لَا يُوقِنُونَ﴾ یعنی د الله جل جلاله د طرفه به خلقو ته دا کلام آوروی چې ډیرو خلقو به

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٦ ص:٢١١ ، ٢١٢] و مسند الطیالسي رقم الحدیث :[١١٥٢]
[2]) صحیح مسلم کتاب الفتن ، باب ذکر خروج الدجال
[3]) تفسیر المظهري تحت هذه الآیة [ج:٧ص:١٣٤]

دنن نه مخکښې زمونږ په آیتونو یقین نه لرلو ، مطلب ئې دادې چې اوس به د ټولو خلقو یقین راشي خو دغه وخت به یقین راوړل د شریعت تر مخه معتبر نه وی ا وداد ابن عباس رضی الله عنهما ، حسن بصری رحمه الله او قتاده رحمه الله نه منقول دی ، یو قول د علی رضی الله عنه نه هم منقول دې ، چې دغه دابه به خلقو سره خطاب او خبرې کوی څنګه چې عامې خبرې وی ، [ابن کثیر] (۱).

وَيَوْمَ | نَحْشُرُ | مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ

او یاده کړئ هغه ورځ | چې راجمعه به کړو مونږ | د هر امت نه

او په کومه ورځ چې مونږ د هر یو امت نه د هغې خلقو یوه ډله راغونډه کړو |

فَوْجًا | مِّمَّنْ | يُكَذِّبُ | بِآيَاتِنَا | فَهُمْ | يُوزَعُونَ ﴿٨٣﴾

یوه ډله | د هغه چانه | چې دروغ به ئې ګڼړل | آیتونه زمونږ | بیا به هغوئ | په ترتیب کړې شی

چې زمونږ آیتونه ئې دروغ ګڼړل | ..........نو هغوئ به ډلو کښې تقسیم کړې شی

حَتَّىٰ | إِذَا | جَاءُوا | قَالَ | أَكَذَّبْتُم

تر هغې پورې | کله چې | راشي هغوئ ټول یو ځائې ته | نو اوبه وائی الله | آیا دروغ ګڼړلی وو تاسو

تردې چې کله هغوئ [زمونږ دربار ته] راشي نو الله ﷻ به اوفرمائی چې آیا تاسو زما آیتونه دروغ ګڼړل

بِآيَاتِي | وَلَمْ تُحِيطُوا | بِهَا | عِلْمًا | أَمَّاذَا

آیتونه زمونږ | او حال دا چې تاسو احاطه نه وه کړې | په هغې باندې | په لحاظ د علم سره | یا څه کار وو

حالانکه تاسو پرې خان پوه کړې هم نه وو [بلکه بغیرد علم نه انکار کولو] آیا [ددې نه علاوه]

كُنتُمْ | تَعْمَلُونَ ﴿٨٤﴾ | وَوَقَعَ | الْقَوْلُ | عَلَيْهِم | بِمَا

چې وئ تاسو | چې کوو به مو | او رابه شی | خبره د عذاب | په هغوئ باندې | په سبب د هغې

مو نور څه [خراب] کارونه کول | او د هغوئ د ظلم په وجه به د هغوئ په حق کښې به [زمونږ د

ظَلَمُوا | فَهُمْ | لَا يَنطِقُونَ ﴿٨٥﴾ | أَلَمْ يَرَوْا | أَنَّا

چې ظلم اوکړو هغوئ | پس هغوئ | به څه وئیلې نه شی | آیا نه ګوری دا خلق | چې بیشکه مونږه

د عذاب وعده پوره شی | او هغوئ به خبرې هم نشی کولې | آیا دوئ اونه لیدل چې مونږ

جَعَلْنَا | اللَّيْلَ | لِيَسْكُنُوا | فِيهِ | وَالنَّهَارَ | مُبْصِرًا

جوړه کړه | شپه | دپاره ددې چې آرام اوکړی | په هغې کښې | او ورځ | روښانه

د دوی د آرام دپاره شپه جوړه کړه ده | او ورځ مو [د کار کسب دپاره] روښانه جوړه کړې ده

إِنَّ | فِي ذَٰلِكَ | لَآيَاتٍ | لِّقَوْمٍ | يُؤْمِنُونَ ﴿٨٦﴾ | وَيَوْمَ

بیشکه | په دې کښې | خامخا نښې دی | دپاره دهغه قوم | چې ایمان راوړی | او یادکړه هغه ورځ

بیشکه په دې کښې هغو خلقو دپاره نخښې دی چې ایمان راوړی | او په کومه ورځ چې

(۱) تفسیر ابن کثیر (باختصار) [ج: ٦ ص: ٢١٤]

يُنفَخُ فِي الصُّورِ فَفَزِعَ مَن فِي السَّمٰوٰتِ
چې پوکې به او وهلې شي |په صور [شپېلۍ] کښې|نو اوبه يريږي | هغه څوك | چه په آسمانونو كښې دي
شپېلۍ پوک وهلې شي | ...........نو څوک چې په آسمانونو او په

وَمَن فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَن شَاءَ اللّٰهُ ۚ وَكُلٌّ
او هغه څوك | چې په زمكه كښې دي | بغير دهغه چانه | چې اوغواړي الله [بچ كول دهغه] | او ټول به
زمكه كښې موجود دی هغه ټول به اوويريږي | مګر هغه څوک چې الله ﷻ ئې اوغواړي | او ټول به ورته

أَتَوْهُ دٰخِرِينَ ۝ وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً
راشي هغه ته | عاجزه | او [ته] وينې ته | غرونه | ته ګمان کوې په هغې | دمضبوطوالي
د فکر نه زوړند راروان وی |او ته چې غرونو ته ګورې نو دا خيال به کوې |چې په ځائې ولاړ دی

وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ۚ صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيٓ
حالانکه دا غرونه | به تيريږي [الوزي] | پشان دالوتلو دوريځې | دا کار نامه ده دالله | دهغه الله
حال دا چې دا غرونه به لکه د وريځو غوندې الوزي |............ دا د الله ﷻ کاريګری ده

أَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ ۚ إِنَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَفْعَلُونَ ۝
چې محکم ئې جوړ کړې دې | هر څيز | بيشکه هغه | خبر دې | په هغه کارونو | چې تاسو ئې کوئ
چې هر څيز ئې ډير مضبوط جوړ کړې دې | هغه ستاسو په کارونو ښه خبر دې

مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَهُم
هغه څوك | چې راشي | دنيکۍ سره | نو مقرر ده هغه لره | بهتره بدله | دهغې نه | او دغسې خلق به
څوک چې [زمونږ دربار ته] نيکی راوړی |نو هغه ته به د هغې نه غوره اجر ورکړې شي |او داسې خلق به

مِّن فَزَعٍ يَوْمَئِذٍ اٰمِنُونَ ۝ وَمَن جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ
ديرې دهغه ورځې نه | محفوظ وی | او هغه څوک | چې راشي | دبدۍ سره
د دغې ورځې دويرې نه په امن کښې وی | ..............اوڅوک چې ګناه اوکړی

فَكُبَّتْ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ ۗ هَلْ تُجْزَوْنَ
نو نسکور به او غورزولې شي | مخونه دهغوئ | په وور کښې | نه درکړې کيږی تاسو ته
نو پر مخې به په دوزخ کښې غوزار کړې شي| [او وئيلې به شي] چې تاسو ته صرف دهغو

إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝
مګر | هغه | چې وئ تاسو | چې کول به مو
عملونو سزا درکولې شي کوم چې تاسو دنيا کښې کول|

## آسان ترجمه قرآن

او هغه ورځ مه هيروه چه کله به مونږ دهغه خلقو پوره فوج راګير کړو چا چه به زمونږ د آيتونو تکذيب کولو، بيا به د هغوی جماعت بندی کولې شي تردې چه کله ټول راشي نو الله پاک به اوفرمائي چه: آيا

تاسو زمونږ د آيتونو بغير د ځان پوهه كولو نه تكذيب كړې وو يا تاسو څه كول؟ او هغوی چه كوم ظلم كړې وو، د هغې په وجه بانديږ به په هغوی باندې دعذاب خبره پوره شي، پس هغوی به هيڅ څه هم نشي وئيلې آيا دوئ كوری نه چه مونږ شپه د دې دپاره جوړه كړې ده چه دوئ په دې كښې سكون حاصل كړی، او ورځ مو داسې جوړه كړې ده چه په هغې كښې څيزونه ښكاره شي؟ يقينًا په دې كښې د هغه خلقو دپاره ډيرې نخښې دی كوم چه ايمان راوړی او په كومه ورځ باندې چه شپيلۍ پوك وهلې شي، نو د آسمانونو او زمكې ټول اوسيدونكی به اوبريږی، سوا د هغوی نه چه الله پاک ئې اوغواړی . او ټول به هغه ته ښكته كيدونكی حاضريږی. ته جو (لن) غرونه وينې نو پوهيږې چه دا به خپل ځائې باندې كلک دی، حال دا چه (هغه وخت) به هغه داسې ګرځی لكه وريځې چه ګرځی. دا ټوله د الله پاک كاريګری ده چا چه هر څيز په مستحكم طريقې سره جوړ كړې دې. يقينًا هغه ته پوره خبر دې چه تاسو څه كاركوئ. څوک چه نيكی راوړی هغه ته به د هغې غوره بدله ملاويږی . او داسې خلق به د هغه ورځې د ويرې نه محفوظ وی. او څوک چه د ګناه سره راشی، نو داسې خلق به پرمخې په اور كښې واچولې شي. تاسو ته د بل هيڅ خبرې نه، د هم هغه اعمالو سزا دركولې شي كوم چه به تاسو كول.

## خلاصه تفسير

﴿وَيَوْمَ نَحْشُرُ﴾[په كومه ورځ چه] دقبرونو نه دژوندی كولو نه پس ﴿مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا﴾[مونږ دهر امت نه ] يعنی دتيرو امتونو نه هم او ددې امت نه هم [ يوه يوه ډله دهغو خلقو] دحساب دپاره [جمع كړو﴿مِمَّنْ يُكَذِّبُ بِآيَاتِنَا﴾ كومو چه زما آيتونه دروغژن كول ] بيا به دوی موقف طرف تـه دحساب دپاره روان كړې شی او چونكه دوی به ډير وی په دې وجه [﴿فَهُمْ يُوزَعُونَ﴾﴾ دوی لـره] په تلو كښې د وروستو سره د يوځائ كيدو دپاره [ به ودرولې شی ] چه وړاندو وروستونه وی ټول يو ځائ شی موقف ته دحساب دپاره لاړ شی مراد ددې نه بيان د ډيروالی دې خكـه چـه پـه لويـه ګنړه كښـې عادتـا داسې كيږی خواه څه ستغې سپورې ورتـه كـولې شـی يـا نـه ﴿حَتَّىٰ إِذَا﴾[تردې پورې چه كله ] په تلوتلو كښـې موقـف تـه ﴿جَاءُوا﴾[ حاضرشی نـو] حساب بـه شروع شی او﴿قَالَ أَكَذَّبْتُمْ بِآيَاتِي﴾[الله تعـالی بـه ارشاد وفرمائی چه آيا تاسو زما ايتونو لره دروغژن كړی وو؟ ﴿وَلَمْ تُحِيطُوا بِهَا عِلْمًا﴾حال دادې چه تاسو هغې لره دخپل علم په احاطه كښـې هم نه وو راوستلی] چه په دې سره به درته دغور كولو موقع ملاويده او چه غور موكړې وې نو څه رائ به مو قائمه كړې وه مطلب دادې چه د اوريدو سره مو بغير دڅه غور او فكر نـه هغو لره دروغژن كړل او يوازې په دروغژن كولو مو بس ونه كړو [بلكه ] يا دخو كړئ چه ددې نـه عـلاوه ﴿أَمَّاذَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾[نور هم څه څه كارونه تاسوكړی دی ] مثلا پيغمبرانو او ايمانداروتـه مو ازار ورسولوكوم چه د دروغژن كولو نـه هم ډير زيات دی دغـه شان نور دكفر په عقيدو او فسق فجور كښې اخته وئ ﴿وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ﴾[ او] اوس هغه وخت دې چه [ په هغوی ] په وجه دقائم كيدو دجرم [ وعده] دعذاب [پوره شوه] يعنی دسزا مستحق كيدل پرې ثابت شول ﴿بِمَا ظَلَمُوا فَهُمْ لَا يَنْطِقُونَ﴾[ په وجه ددې چه] په دنيـاكښې [دوی] لوئ لوئ [ زياتی كړی وو] دكومو چه نن ظهور ثابت شو [ پس ] چونكـه ثبوت قوی دې په دې وجـه [ هغـه خلق بـه] دعـذر وغيره متعلق [خبره هم نه شی كولې ] او په څنو آيتونه كښې چه كوم ددوی عـذر پيـش كـول ذكر دی

دابه په ابتداء کښې وی بیاچه پرې حجت قائم شی نو څه خبره به نه شی کولې او داخلق کوم چه دقیامت دامکان نه منکر دی نو دا محض حماقت دې ځکه چه علاوه دریښتونو نقلی دلیلونو نه په دې خو عقلی دلیل هم قائم دې مثلاً ﴿اَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا الَّيْلَ لِيَسْكُنُوْا فِيْهِ﴾ [ ایا دوی دی ته نه ګوری چه مونږ شپه جوړه کړه چه خلق په دې کښې آرام وکړی ] او دا آرام مشابه دمرګ دې ﴿وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا﴾ [ او ورځ مو جوړه کړه چه دوی په کښې وینی ګوری ] کوم چه موقوف دې په بیدارئ باندې او دا پس دمرګ نه دژوندی کیدو سره مشابه دې پس ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ﴾ [ بیشکه په دې ] روزانه خوب اوبیدارئ [ کښې ] په امکان دبیا ژوندی کیدو او ددې ایتونو په حقوالی کوم چه په دې دلالت کوی [ لوئ دلیلونه دی ] ځکه چه دمرګ حقیقت دادې چه د روح تعلق دجسم نه جداشی او د دوباره ژوندی کیدو حقیقت دادې چه دا تعلق بیا واپس راشی او خوب هم په یو حیثیت سره زوال دې ددې تعلق ځکه چه په خوب کښې داتعلق کمزورې شی اوکمزوری هله راځی کله چه د وجود په مرتبو کښې یوه مرتبه زائله شی او بیداری د وجود ددې زائلې شوې مرتبې د واپسئ نوم دې په دې وجه مشابهت په دواړو کښې تمام شو او دخوب نه پس په بیدارئ باندې د الله تعالی قدرت روزانه لیدلې شی نو دمرګ نه پس ژوند هم ددې یو مثال دې دغه به څنګه دالله تعالی دقدرت نه بهر وی او دا عقلی دلیل دهر سړی دپاره عام دې مګر په اعتبار دنفع سره ﴿لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ﴾ [ دهغو خلقو دپاره ] دې [ کوم چه ایمان لری ] ځکه چه هغوی غور اوفکر کوی او دغه نور غور او فکرنه کوی او نتیجې ته درسیدو دپاره نظر او فکر ضروری دې په دې وجه نور ددې نه نفع نه شی اخستې [ او ] یوه هیبتناکه واقعه به دقیامت نه وړاندې وی چه ذکر ئې راروان دې د هغې حالت هم دیادساتلو قابل دې ﴿وَيَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ﴾ [ په کومه ورځ چه به په شپیلئ کښې پوکې ووهلې شی [ دا اوله شپیلئ ده او ذکر شوې حشر خو ددویمې شپیلئ نه پس وو ] ﴿فَفَزِعَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ﴾ [ پس څومره چه په آسمان او زمکه کښې ] فرښتې او بنیادم وغیره [ دی ټول به وویریږی ] او بیا به مړه شی اوکوم چه مړه شوی وی دهغوی روحونه به بې هوشه شی ﴿اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ﴾ [ مګر چاله چه الله تعالی غواړی ] هغوی به ددې ویرې اومرګ نه محفوظ وی مراد ددې نه دمرفوع حدیث مطابق حضرت جبرائیل ﷺ میکائیل ﷺ اسرافیل ﷺ او ملك الموت ﷺ او حاملان دعرش دی بیا به دا ټول هم بغیر داثر دشپیلئ نه وفات شی لکه داسې په درمنثور او په سوره زمر کښې دی [ او ] په دنیا کښې چه څنګه عادت دې چه خلق دڅه نه ویریږی نو ترې تښتی هلته به الله تعالی نه هیڅوك نه شی تښتیدې بلکه ﴿وَكُلٌّ اَتَوْهُ دٰخِرِيْنَ﴾ [ ټول به دهغه په وړاندې په عاجزئ سره ټیټ شوی حاضریږی ] تردې چه ژوندی به مړه او مړه به بې هوشه شی [ او ] دشپیلئ دا تاثیر او تغیر به په جاندارو کښې وی او وړاندې په بې جانه څیزونو کښې چه کوم تاثیر وی دهغې بیان دې هغه داچه اے مخاطبه ﴿وَتَرَى الْجِبَالَ﴾ [ ته ] دا وخت [ خوغرونو لره په داسې حالت کښې وینې په کوم سره چه ] ددغو دظاهری محکموالی په سبب په بادی النظر کښې ﴿تَحْسَبُهَا جَامِدَةً﴾ [ تاته خیال راځی چه دابه ] همیشه دغه شان وی او چرې به دځپل ځائ نه [ حرکت ونه کړی حال دادې چه ] هغه وخت به دغرونو داحالت وی چه ﴿وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ﴾ [ هغه به دوریځو په شان ګډ وډسپك او اجزاء به ئې منتشر شی د آسمان په فضا کښې به [ الوتونکی ګرځی ] لکه چه

داقول دالله تعالی دي [وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ۙ فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنۢبَثًّا ۙ]( ۱ ) او په دې څه تعجب نه دی کول پکار چه دداسې درونـد او سخت شی بـه دا حـال څنګـه شـي وجـه داده چـه ﴿صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ﴾ [ دا دالله تعالی کاردې کوم چه چا هرشی لره مناسب انداز سره [جوړ کړې دې] اوپـه اول کښې پـه هـيڅ شـی کښـې څـه مـضبوطيا نـه وه څکـه چـه پـه خپلـه ددغـه شـی ذات نـه وو نـو دمضبوطيا صفت خو په کښې هډو وو نه پس څنګه چه هغه دنشت نه شته او دضعيف نه قوی کـړل دغـه شـان ددې عکـس هـم کـولې شـی څکـه چـه د ذاتـی قـدرت نـسبت دټولـو مقدوراتو[مخلوقاتو] سره يوشان دې او خاصکر کوم څيزونه چه يو بل سره مثل او مشابه دی په دوی کښې خو زيات واضح دې دغه شان په نورو مضبوطو مخلوقاتو لکه آسمان او زمکه کښې لوئې لوئې تبديلۍ راتلل په نورو روايتونو کښې ذکر دی

[وَّحُمِلَتِ الْاَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً ۙ فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ۙ وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ الخ ]( ۲ ) بيا ددې نه پس بـه دويمه شپيلۍ وی چه په دې سره به روحونه په هوش کښې راشی دخپلو بدنونو سره بـه پيوست شی اوټول عالم به دنوی سره نه درست کړې شی او بره چه کوم دحشر ذکر وو هغه به ددې دويمې شپيلۍ نه پس وی اووړاندې داصل مقصود يعنی په قيامت کښې دجز اوسزا بيان دې پس اول ددې د تمهيد په طور ارشاد دې چه ﴿اِنَّهٗ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَفْعَلُوْنَ﴾ [دا يقينی خبره ده چه الله تعالی ستاسو داټولو کارونو نـه پـوره خبرداردې ] کوم چه دجزاء اوسزا اولنې شرط دې بـس دمجازاتو ممکـن کيـدل خـو پـه دې سـره ظـاهر دی او بياحکمت مقتضی دې د واقـع کيـدو دمجازاتو په دې سره دجزاء او سزا واقع کيدل ثابت شول د تمهيد نه پس وړاندې دهغې واقع کيدل سره دهغې دقانون او طريقې بيان فرمائی چه ﴿مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ﴾ [ څوك نيكی ] يعنی ايمان [راوړی پس ] هغه په ايمان راوړو چه دکوم اجر مستحق دې ﴿فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا﴾ [هغه سړی ته به ددۀ ] دنيکۍ د ذکر شوی اجر [ نه غوره] اجر [ملاويږی ﴿وَهُمْ مِّنْ فَزَعٍ يَّوْمَئِذٍ اٰمِنُوْنَ﴾ او هغه خلق به دلوئې ويرې نه په دغه ورځ په امن وی ] لکه چه په سوره انبياء کښې دی [لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَكْبَرُ الاية]( ۳ ) ﴿وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ﴾ [اوکوم سړې چه بدی ] يعنی کفر او شرك [ راوړی ﴿فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ﴾ نو هغه خلق به پرمخې اور ته وغورزولې شی ﴿هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ او دوی ته به ووئيلې شی چه تاسوته خود هغو عملونو سزا درکولې شی کوم چه تاسو] په دنيا کښې [ کړی وو] دا عذاب بې وجهې نه دې

## معارف او مسائل

﴿فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ﴾ د وزع څخه مشتق دې چې معنی ئې ايسارول دی مراد دادې چې ړومبئ ډلې بۀ څکه ايسارولې شی چې روستو پاتې خلق ورسره يو ځائې شی او څينې حضراتو د وزع معنی دفع سره کړيده. مطلب دادې چې په ديکو ورکولو سره به د حساب کتاب ځائې ته وروستلې شی.

---

۱ ) ترجمه:- او غرونه به بالکل ريزه ريزه شی او بيا ترې نه گرد پورته شی.
۲ ) ترجمه:- اوزمکې او آسمانونه به اوچت کړې شی ، او بيا به دواړه په يو ځل ريزه ريزه شی او په هغه ورځ به هغه کيدو والا څيز نمودار شی او آسمان به اوشليږی.
۳ ) ترجمه:- اودوئ به په ډيره ويره او غم کښې نه اچوی.

﴿وَلَمْ تُحِيطُوا بِهَا عِلْمًا﴾ دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې دروغژن بلل پخپله يو لوئې جرم دې، خاص کر دغور وفکر طرفته توجه کولو بغير دروغژن کوی نو دهغې جرم دوچند شی. دې څخه معلومه شوه چې څوك دغور ، فکر کولو باوجود حق بيا نه مومی اودا غوروفکر ئې ګمراهئ ته بوځی نو دهغوئ جرم څه قدرې سپك شی اګر چې د الله ﷻ د وجود اود توحيد وغيره دروغژن کول به بيا هم دکفر ، ګمراهئ او دائمی عذاب څخه ئې نه بچ کوی. ولې چې دا داسې خراب څيزونه دی چې د نظر اوفکر غلطی په کښې معاف نه ده .

﴿وَيَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ فَفَزِعَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ﴾ د فزع معنی ويريدل دی ، په يو بل آيت کښې د فزع په ځائې صعق راغلې دې چې معنی ئې بې هوشه کيدل دی ، که دا دواړه آيتونه رومبی پوکي وهلو سره متعلق اوګرځولې شی نو حاصل بۀ ئې دا وی چې په شپيلئ کښې پوکي وهلو سره خو به اول ټول په ويره شی ، اوترې به شی ، بې هوشه بۀ شی ، اوبيا به مړۀ شی ، خو د تفسير امامانو قتاده رحمه الله وغيره دا آيت مبارك د دويم ځلې پوکي وهلو سره متعلق ګرځولې دې چې ټول مړی به ورسره دوباره ژوندی شی . او د آيت مبارك مطلب به داشی چې ټول مړی به ويريدونکی راپاسی . او ځينې حضراتو فرمائيلی دی چې شپيلئ به درې ځل پوك وهلې شی ، رومبئ بۀ دفزع وی چې ټول بۀ ورسره پريشانه ، ويريدونکی اوترشی . دويم ځل پوك وهل به دصعق وی چې ټول به ورسره مړۀ شی . دريم ځل پوك وهل به دحشر نشر وی چې دې سره به مړی ژوندی شی . خود قرآنی آيتونو او صحيح احاديثو څخه صرف دوه ځله پوك وهل ثابتيږی . [قرطبی ، ابن کثير] (۱).

ابن مبارك رحمه الله د حسن بصری رحمه الله څخه مرسل روايت کړې دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل چې : د دواړو پوك وهلو تر مينځه به د څلويښتو کالو موده وی . [قرطبی] (۲).

﴿إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ﴾ دا استثناء د فزع څخه ده ، ددې معنی ويريدل دی ، مطلب دادې چې څه خلق به داسې وی چې د حشر په موقعه به پرې هيڅ ويره نه وی ، د ابی هريره رضی الله عنه د يو روايت مطابق د اخلق به شهيدان وی چې دحشر د دوباره ژوندی کيدلو په موقعه به پرې هيڅ ويره نه وی . دا حديث ابن العربی صحيح ګرځولې دې . [قرطبی] (۳)

سعيد بن جبير رحمه الله هم دا فرمائی چې ددې څخه مراد شهيدان دی چې د حشر په موقعه به دوی توری ترلې وی او دعرش څخه ګير چاپيره به راجمع وی . او قشيری رحمه الله فرمائی چې پيغمبران ﷺ خو يقينا چې په دې کښې داخل دی ولې چې د شهيدګئ د مقام څخه علاوه دوئ ته د پيغمبرئ مقام هم حاصل دې . [قرطبی] (۴)

---

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٢١٦] و تفسير القرطبي [ ج:١٣ص:٢٤٠] و مسند اسحاق بن راهويه ، رقم الحديث [١٠]

(۲) تفسير القرطبي [ ج:١٣ص:٢٤٠]

(۳) تفسير القرطبي [ ج:١٣ص:٢٤١] و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[٣٦٠] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[٣٠٠٠]

(۴) تفسير القرطبي [ ج:١٣ص:٢٤١]

او په سورة زمر کښې به راشي چې : ﴿وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ﴾ (۱) دې کښې د فزع په ځائې د صعق لفظ راغلې دې ، ددې معنی بې هوشه کیدل دی . او دلته ترې مراد بې هوشه کیدل او بیا مړهٔ کیدل دې او په دې کښې هم د ﴿إِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ﴾ استثناء راغلې ده چې ددې څخه مراد د یو مرفوع حدیث پاک مطابق څلور مقربې او عرش نیوونکې فرښتې دی چې په شپیلئ پوك وهلو سره به نه مری . خو بل حدیث پاك کښې راغلی دی چې دې څخه روستو به دغه ټولې فرښتې هم مری . چا چې فزع او صعق یو ګڼړلې دې نو د سورة زمر پښان دلته ئې هم ترې مراد دغه مخصوصې فرښتې اخستی دی څنګه چې د تفسیر په خلاصه کښې مونږ دا اختیار کړی دی او چا چې فزع او صعق دواړه جدا جدا ګڼړلی دی دهغوئ په نزد د فزع څخه مستثنی شهیدان دی لکه چې پورته نقل کړی شو .

﴿وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَّهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ﴾ ددې څخه مراد دادې چې غرونه به د خپلو ځایونو څخه جدا شوی وی په داسې شان روان وی چې څنګه وریځ روانه وی . او کتونکې دا ګنړی چې ګنی دا په ځائې ولاړ دی . حالانکه دا په ډیرې تیزئ سره روانې دی . داسې غټې ځیز چې د هغې اول او آخر سر چاته نه ښکاری او هغه د خپل ځائې څخه حرکت شروع کړی که هغه ډیر تیز هم وی کتونکی ته په ځائې ولاړې ښکاری څنګه چې وریځې هم دغسې ښکاری حالانکه هغه روانې وی خو ددې حرکت هغه وخت کتونکو ته محسوس شی چې د افق غاړې څخه ټولې بیرته شی .

خلاصه دا شوه چې کتونکی ته به دا په ځائې ولاړ ښکاری ، خو حقیقت کښې به دا روان وی . عامو مفسرینو د آیت مبارك مطلب هم دا ګرځولې دې او د تفسیر په خلاصه کښې دا اختیار کړې شوې دې چې دا حال د دوؤ وختونو داسې دې چې کتونکی به داسې ګنړی چې دا به چرې هم دخپل ځائې څخه نه خوځی . خود قیامت په ورځ به د ﴿تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ﴾ په شان وی ، چې د وریځو پشان به الوځی او تیز تیز به منډې وهی ، ځینې علماء کرامو فرمائیلی دی چې د قیامت په ورځ د غرونو مختلف حالتونه بیان شو یدی . رومبی حالت ذره ذره کول . اوزلزله ده چې د ټولې زمکې په غرونو به وی لکه فرمائی چې : ﴿إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا﴾ او ﴿إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ زِلْزَالَهَا﴾ . بل ځائې کښې فرمائی چې : ﴿وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوْشِ﴾ [غرونه به د وهلې شوې [وهلې شوې] مالوچ [پمبوو] په شان وی او دا به هغه وخت وی چې ] ﴿يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ كَالْمُهْلِ وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ﴾ [آسمان به لکه د ویلې کړې شوې تانبې په شان وی او دزمکې څخه به غرونه لکه د مالوچو بره څې پورته څخه به آسمان لاندې راشی او دواړه به یو ځائې شی ] .

بل ځائې کښې فرمائی چې : ﴿وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنْبَثًّا﴾ [دا به تار تار او ریشه ریشه شی یعنی غرونه به ذره ذره شی یو ځائې به پاتې نشی] .

بل ځائې کښې فرمائی چې : ﴿فَقُلْ يَنْسِفُهَا رَبِّيْ نَسْفًا﴾ [دا به ریزه ریزه خواره واره شی ]

بل ځائې کښې فرمائی چې : ﴿وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَّهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ﴾ [ یعنی ریزه ریزه شوی دا

(۱) ترجمه :- او شپیلئ به اووهلې شی پس ټول آسمان والا اور زمکې والا به حیران شی مګر چا لره چې الله تعالی اوغواړی .

غرونه چې د ورئې په شان به په زمکه خواره شوي وي هوا به ئې پورته اوړي ، هر کله چې دغه دوره به په ټوله زمکه خوره وي خکه به ددې هغه تیز حرکت به هم خلقو ته حرکت نه ښکاری بلکه په خائې ولاړ به ورته ښکاری ، په دې کښې به څینې حالتونه د اولې شپیلئ پوک وهلو په وخت وي او څینې حالتونه به د دویم پوک وهلو په وخت وي چې زمکه بیخې خوره کړې شي، څه غار ، غر ، عمارت او ونه وغیره به پرې پاتې نشي لکه فرمائي : ﴿فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا ۞ فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ۞ لَا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا﴾ [قرطبی و روح المعانی] والله سبحانه وتعالی اعلم بحقیقة الحال] ([1])

﴿صُنْعَ اللَّهِ الَّذِي أَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ﴾ د صنع معنی کاریګری ده . اتقن د اتقان څخه مشتق دې ، معنی ئې د یو څیز مضبوطول او محکم کول دی ، په ظاهره داجمله د ټولو مضمونو سره تعلق لري چې په کښې د الله ﷻ دکامل قدرت او دعجیبه کاریګرئ ذکر دې ، په دې کښې د شپې ورځې بدلیدل هم دی او د شپیلئ پوکی وهلو څخه تر حشر نشر پورې ټول حالات هم دی او مطلب دادې چې دا څیزونه حیرانوونکی څکه نه دی چې ددې کاریګر د یو محدود اندازې د علم او قدرت والا انسان یا فرښته نه ده بلکه رب العالمین دې اوکه دا د : ﴿وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً﴾ نزدې جملې سره متعلق اوګنړلې شي نو مطلب به ئې دا وي چې د غرونو دا حال چې خلقو ته به په څائې ولاړ ښکاری خو هغه به په واقع کښې روان وي . دا څه لرې او د تعجب خبره نه ده څکه چې دا د الله ﷻ کاریګری ده کوم چې هر څنګه او په هر څه قدرت لري .

﴿مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ خَيْرٌ مِّنْهَا﴾ دا دانجام بیان دې کوم چې د حشر نشر او حساب کتاب څخه روستو به وي. حسنة څخه مراد د لااله الاالله کلمه ده . [لکه ابراهیم رحمه الله اوفرمائیل] یا اخلاص ترې مراد دې [څنګه چې قتاده رحمه الله فرمائیلی دی] او څینې ترې مراد مطلق عبادت اخلی ، معنی ئې داشوه چې څوك نیك عمل کوی او عمل ته بۀ هغه وخت نیک وئیلې شي چې د نیک عمل رومبې شرط ایمان موجود وی. نو هغه ته به ددې زیاته غوره بدله ورکولې شي ، مراد ترې د جنت نه بندیدونکی او نه ختمیدونکی نعمتونه او د هر عذاب او هر تکلیف څخه همیشه دپاره خلاصیدل دی ، او څینو حضراتو فرمائیلی دی د خیر څخه مراد دادې چې د یوې نیکئ بدله به د یو په لس څخه واخله تر یو په اوۀ سوه ملاویږی .[مظهری] ([2]).

﴿وَهُم مِّن فَزَعٍ يَوْمَئِذٍ آمِنُونَ﴾ فزع څخه مراد ،هرلوئې مصیبت اوپریشانی ده ، مطلب دادې چې دنیا کښې خو هر متقی اوپرهیزګار هم دانجام څخه ویریږی چې هم داسې پکار دی لکه د قرآن عظیم الشان ارشاد دې چې : ﴿إِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَأْمُونٍ﴾ ([3])

یعنی د الله ﷻ عذاب داسې نه دې چې دهغې څخه خلق بې فکره شي . همدغه وجه ده چې پیغمبران ﷺ او دامت اولیاء کرام همیشه ویریدونکی وو مګر په دغه ورځ به دهر غم فکر څخه خلاص ښه په آرام شي . [ والله اعلم].

[1] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۰۲، ۲۴۳] و روح المعاني [ج: ۱٤ ص:٦٠]
[2] ) تفسیر المظهري[ج:۷ص:۱٤۰، ۱٤۱]
[3] ) ترجمه:- وافعي ددوئ د رب د عذاب نه بې ویرې کیدل نه دی پکار.

إِنَّمَآ أُمِرْتُ

| بیشکه هم دا خبره ده | چې ماته حکم شوې دې

| ماته خو صرف دا حکم شوې دې

أَنْ أَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِي حَرَّمَهَا

چې زهٔ بندگی اوکرم | درب | ددې ښار | هغه رب | چې حرم ئې جوړ کړې دهغې نه

چې زه د دې ښار [مکې] د مالک عبادت اوکړم | چا چې دې ښار ته عزت ورکړې دې

وَلَهٗ كُلُّ شَيْءٍ وَّأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ۝

او هغه لره دې | هر څیز | او ماته حکم شوې دې | چې شم زهٔ | دمسلمانانو [غاړه ایښودونکو] نه

او هر څه د هغه دی | ............ اوماته دا حکم شوې دې چې [دهغه] د تابعدارو څنی شم

وَأَنْ أَتْلُوَا الْقُرْآنَ ۚ فَمَنِ اهْتَدٰى فَإِنَّمَا

او چې اوروم [خلقوته] | قرآن | پس هغه چا | چې صحیح لار بیا موندہ | نو بیشکه

او دا دې حکم راته هم شوې دې | چې دا قرآن پاک دې آوروم | نو څوک چې په نیغه لار روان شی | نو د

يَهْتَدِي لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ ضَلَّ فَقُلْ

هغه صحیح لار مومی | دپاره دفائدې دخان خپل | او هغه څوک | چې بې لارې شوا | نو اووایه

خپلې فائدې دپاره به ئې وی | اوڅوک چې گمراه پاتې شی | نو ته اووایه چې زهٔ خو صرف [

إِنَّمَآ أَنَا مِنَ الْمُنْذِرِينَ ۝ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ

چې بیشکه | زهٔ | دخبردارونکو نه یم | او اووایه | چې ثنا خاص الله لره ده

دالله ﷻ د نافرمانئ دانجام نه] ویرونکې یم | او دا اووایه چې ټول تعریفونه د الله ﷻ دپاره دی

سَيُرِيكُمْ اٰيٰتِهٖ فَتَعْرِفُونَهَا ۭ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ

زر به اوښائی تاسو ته | نښې خپلې | پس او به پیژنئ تاسو هغه | او نهٔ دې رب ستا | ناخبره

او هغه به درته ډیر زر خپلې نخښې اوښائی | نو تاسو به ئې ښې اوپیژنئ | او ستا رب ستاسو

عَمَّا تَعْمَلُونَ ۝

دهغه کارونو نه | چې تاسو ئې کوئ |

دکارونو نه بې خبره نه دې

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره! دوی ته اووایه چه:) ماته خو هم دا حکم ملاؤ شوې دې چه د دې ښهر د رب عبادت اوکړم چا چه دې ښهر ته حرمت ورکړې دې، او د هر څیز مالک هم هغه دې، او ماته دا حکم ملاؤ شوې دې چه زهٔ په فرمانبردارو کښې شامل شم. او دا چه زهٔ د قرآن کریم تلاوت اوکړم. اوس چه کوم سړې د هدایت په لاره بانديې راځي، هغه به د خپلې فائدې دپاره په هدایت بانديې راځي، او څوک چه گمراهي

اختیاروي، نو اووایه چه: زه خو به د هغه خلقو نه یم کوم چه خبردارولکی دي او اووایه چه: ټول تعریفونه دالله پاک دپاره دي، هغه به تاسو ته خپلې نخښې ښائي، بیا به تاسو هغه پیژنئ هم او ستاسو رب ستاسو د عملونو نه بې خبره نه دې.

## خلاصه تفسیر

اے پیغمبر ﷺ ته خلقو تـه ووایه چه ﴿إِنَّمَآ أُمِرۡتُ أَنۡ أَعۡبُدَ رَبَّ هَٰذِهِ ٱلۡبَلۡدَةِ ٱلَّذِي حَرَّمَهَا﴾[ماته خو داحکـم ملاوشوې دې چه زه ددې ښار] مکې [د مالك حقیقي عبادت وکړم کوم چه دې] ښار[لره محترم جوړکړې دې ] چه حرم والې ئې په دې احترام باندې مرتب دې مطلب دادې چه په عبادت کښې ورسره څوك شریك نه کړم [او] دهغه عبادت به ولې اونکړې شی هرکله چه ﴿وَلَهُۥ كُلُّ شَيۡءٖۖ﴾[ټول څیزونه دهغه ] ملك [دی ﴿وَأُمِرۡتُ أَنۡ أَكُونَ مِنَ ٱلۡمُسۡلِمِينَ﴾ اوماته دا] هم [حکـم شـوې دې چـه زه ] پـه عقیـدو او عملونـو ټولـو کښـې [ فرمـانبردار وسیـړم ] دا خـو دتوحیدحکم شو [او] ماتـه [دا] هم حکم ملاوشوې دې ﴿وَأَنۡ أَتۡلُوَاْ ٱلۡقُرۡءَانَۖ﴾[چه زه ] تاسوته [ قرآن لولوم اوړوم ] یعنی دالله تعالی دحکمونو تبلیغ کوم کوم چه دلوازمودنبوت نه دی [پس] زما دتبلیغ نه پس ﴿فَمَنِ ٱهۡتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهۡتَدِي لِنَفۡسِهِۦۖ﴾ [ چه کوم سړې په لار شی نو دخپلې فائدې دپاره به پرې پـه لاره شی ] یعنی دهٔ تـه بـه دعذاب نـه نجات او دجنت لازوال نعمتونه ملاویږی زه ددهٔ نه دځان دپاره دځه مالی نفع یا مرتبې خواهان نه یم ﴿وَمَن ضَلَّ فَقُلۡ﴾[ اوکوم سړې چه ګمراه پاتې شی نـو تـه ووایـه چه] زما هیڅ ضرورت نشـته ځکـه چـه ﴿إِنَّمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلۡمُنذِرِينَ﴾[زهٔ خـو صـرف دویرونکـو ] یعنـی حکـم اوړونکـو [پیغمبرانـو نـه یـم ] یعنـی زماکارخوحکم رسول دی ددې نه پس زما ذمه واری ختمه ده که ونه منئ نو وبال بـه ئې په تاسو وی ﴿وَقُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ﴾[ اوتـه] داهـم [ ووایـه چـه ] تاسـو کـوم فـی الحـال دقیامت نـه راتلل ددې دنشتوالی دلیل ګنړئ او انکارکوئ داستاسو بې وقوفی ده دیو شی په واقع کیدو کښې وخت اوختل [څنډ راتلل] ددې دلیل نه شی کیدې چه ګنی هغه به چرې نه واقـع کیـږی ددې نـه عـلاوه چه تاسو ماته کوم وایئ چه زهٔ ژر قیامت راولم دادویمه غلطی ده ځکه چه ماکلـه دادعوی کړې ده چه دقیامت واقع کول زما پـه اختیـارکښې دی بلکه [ټول ثناء صفت خالص الله تعالی لره ثابت دې] قدرت هم علم هم حکمت هم هغه چه کله دهغـه دحکمت تقاضاشی قیامت بـه واقـع کـړی البتـه دومره خبره مونږ تـه ښودلې شوې ده چـه قیامت تـه ډیر وخت نـه دې پاتې بلکه ﴿سَيُرِيكُمۡ ءَايَٰتِهِۦ﴾[هغه به تاسو ته ډیر ژر خپلې نښې ] یعنی دقیامت واقعات [ وښائی] د وقوع په وخت کښې ﴿فَتَعۡرِفُونَهَاۚ﴾ [تاسو بـه ئې وپیژنئ] چه بیابـه ئې داپیژندونه هیڅ فائده نـه وی [او] صرف دښنو په ښودلو باندې به بس نه وی بلکه دخپلو بدو عملونو سزا ځکـل بـه درلـه هـم وی ځکه چه ﴿وَمَا رَبُّكَ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُونَ﴾[ستاسو رب دهغـو کـارونو نـه بې خبـره نـه دې کـوم چـه تاسو ټول خلق ئې کوئ]

## معارف او مسائل

﴿رَبَّ هَٰذِهِ ٱلۡبَلۡدَةِ﴾ دبلدة څخه مراد د جمهورو مفسرینو پـه نزد مکه مکرمـه ده الله ﷻ خورب العالمین او رب السماوات دې ، دلته صرف دمکې مکرمې په رب سره یاد کړې شوې دې ولې چې دا د مکې مکرمې دشان لوئی ښکاره کول دی.

حرم لفظ د تحریم څخه مشتق دې ، ددې معنی مطلق احترام او اکرام دې او ددې احترام او اکرام په وجه چې کوم خاص شرعی احکام د حرم زمکې سره تعلق لري هغه هم په دې کښې داخل دی . لکه څوك چې په حرم کښې پناه واخلی هغه به په امن شي په حرم کښې هیڅ دښمن څخه بدله اخستل او وژل ئې جائز نه دی ، دغه شان د حرم په زمکه کښې ښکار وژل هم جائز نه دی ددې ونې پریکول هم جائز نه دی نو دا احکام دآیت مبارك ﴿وَمَنْ دَخَلَهُ كَانَ اٰمِنًا﴾(۱) لاندې څه دسورة مائده په شروع کښې او څه د آیت ﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ﴾(۲) په ضمن کښې وړاندې بیان شوي دی.[۳]

| آیاتونه | | سورة القصص مکیة وهي ثمان وثمانون اٰیة وتسع رکوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۸۸ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ۹ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| طٰسٓمّٓ ﴿١﴾ | تِلْكَ اٰيٰتُ | الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿٢﴾ | نَتْلُوْا | عَلَيْكَ |
| ط.س.م | دا آیتونه | دکتاب مبین دی | او روؤ مونږه | تاته |

طسم | دا د یو داسې کتاب آیتونه دی چې ښکاره بیانونکې دې | مونږ تا ته د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ نَّبَاِ مُوْسٰى | وَفِرْعَوْنَ | بِالْحَقِّ | لِقَوْمٍ | يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٣﴾ | اِنَّ |
| دقیصې دموسی | او دفرعون نه | په حقه سره | دپاره دهغه خلقو | چې ایمان راوړی | بیشکه |

مونږ دموسی ﷺ او د فرعون رښتونی واقعات د هغو خلقو دپاره بیانوو چې ایمان راوړی | بیشکه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِرْعَوْنَ | عَلَا | فِي الْاَرْضِ | وَجَعَلَ | اَهْلَهَا | شِيَعًا |
| فرعون | لوئي اوکړه | په زمکه کښې | او کړل ئې | اوسیدونکی دهغې | ادلې دلې |

چې فرعون [دمصر] په زمکه کښې ډیر تکبر کړې وو | او د هغې خلق ئې ډلې ډلې کړي وو | چې یوه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَّسْتَضْعِفُ | طَآئِفَةً | مِّنْهُمْ | يُذَبِّحُ | اَبْنَآءَهُمْ |
| چې کمزوري [ذلیله] کوله به ئې | یوه ډله | دهغوئ نه | ذبحه کول به ئې | خامن دهغوئ |

ډله [بنی اسرائیل] به ئې کمزوري کوله | [په دې طریقه چه] د هغوئ خامن به ئې ذبح کول

---

۱) ترجمه:- او کوم کس چې په دې کښې داخل شوه هغه امن بیاموندو.
۲) ترجمه:- وحشی ښکار مه اوولئ هرکله چې تاسو په حالت د احرام کښې یئ.
۳ الحمد لله د سورة نمل تفسیر نن د دوشنبې په ورځ په ۲۴ نیټه ۱۳۹۱ هجری کښې ختم شو ، او خوارلسم شوال نه دهندوستان هندوانو په مغربی پاکستان باندې ښه میدانی ، بحری او هوائی حملې کړې دی ، او خاص طور سره کراچۍ ددوئ نخښه وه ، هره شپه بمباری کیږی ، دښار په علاقه باندې بمونه راغورزوی ، ټوله شپه تیاره وی . او د بمونو دهماکو سره کورونه خوزی. خو دالله تعالی فضل دې چې په دې حالاتو کښې ئې هم د تفسیر سلسله جاری اوساتله ، او ددې جنګ په لسو ورځو کښې هم د تفسیر تقریبا څلویښت صفحې اولیکلې شوې.

وَيَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ ۭ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ ۝

او ژوندي به ئې پريښودلې ابنځې [جينكۍ] دهغوئ |بيشكه هغه | وۇ | دفساد كونكونه

اوجينكۍ به ئې [د خدمت دپاره] ژوندئې پريښودې |هغه ډير د فساد كونكو څخه وو

وَنُرِيْدُ اَنْ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا

اواراده لرله مونږه |چې احسان اوكړومونږه |په هغه كسانو باندې|چې كمزوري[ذليله]ساتلې شوي وۇ

اومونږ دا غوښتل چې دكومې ډلې زور كمولې شي هغې باندې مهرباني اوكړو

فِي الْاَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ اَىِٕمَّةً وَّنَجْعَلَهُمُ الْوٰرِثِيْنَ ۝

په زمكه كښې | او جوړ كړل مونږ هغوئ لره | امامان | او جوړ كړل مونږه هغوئ | وارثان [دزمكې]

اودوئ [دملك] سرداران جوړ كړو | اوهم دوئ [د دې زمكې] وارثان جوړ كړو

وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْاَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ

او چې اقتدار وركړو مونږ | هغوئ لره | په زمكه كښې | اواوښايو مونږ | فرعون ته | او هامان ته

او په ملك كښې ورته اقتدار وركړو |.............. ..............اوفرعون اوهامان

وَجُنُوْدَهُمَا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَحْذَرُوْنَ ۝

او لښكرو دهغوئ ته | دطرفه دهغوئ نه | هغه څيز | چې وو هغوئ | چې يريدل به دهغې نه |

اوددوئ لښكرو ته د دې [كمزورو خلقو ] دلاسه هم هغه انجام اوښايو دكوم نه چې دوئ ويريدل

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّ مُوْسٰٓى اَنْ اَرْضِعِيْهِ ۚ فَاِذَا خِفْتِ

او اشاره اوكړه مونږه | مور دموسى عليه السلام ته | چې تې وركړه دهٔ ته | نو هر كله چې | اوويريږې تهٔ |

اومونږ دموسى عليه السلام مور ته الهام اوكړو | چې ته دهٔ ته تې وركوه | نو كله چې پرې ته اوويريږې

عَلَيْهِ فَاَلْقِيْهِ فِي الْيَمِّ وَلَا تَخَافِيْ وَلَا تَحْزَنِيْ ۚ اِنَّا

په دهٔ باندې| نو اوغورزوه دې | په دریاب كښې | اومه يريږه تهٔ | اومهٔ غمژنه كيږه تهٔ | بيشكه مونږه

نو په دریاب كښې ئې واچوه | اوويريږه مه | او غمژنه كيږه مه | ..............مونږ به دا

رَآدُّوْهُ اِلَيْكِ وَجَاعِلُوْهُ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۝ فَالْتَقَطَهٗٓ

به واپس راولو دې | تاته | اوجوړونكي يو دهٔ لره | درسولانو نه | پس راپورته كړو دهٔ لره

بچې تاته واپس دركوو| او دې به د خپلو پيغمبرانو نه يو پيغمبر جوړوو| نود فرعون د كور خلقو

اٰلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا وَّحَزَنًا ۭ اِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ

كوروالو دفرعون | چې شي هغه | دپاره دهغوئ | دشمن | او [سبب] دغم | بيشكه فرعون او هامان

موسى عليه السلام [ددریاب نه] راواوچت كړو | چې د هغوئ د دښمنئ اودغم سبب شي| بيشكه فرعون هامان

وَجُنُوْدَهُمَا كَانُوْا خٰطِـِٕيْنَ ۝ وَقَالَتِ امْرَاَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ

او لښكرې ددواړو | وۇ | غلط كار كونكي | اواووئيل | ښځې | دفرعون | يخوالي

او د دوئ لښكرې ټول غلطكار وو | اود فرعون ښځې اووئيل چې دا [هلك] زما او ستا دواړو دپاره

عَيْنٍ لِّي وَلَكَ لَا تَقْتُلُوهُ عَسَىٰ أَن يَنفَعَنَا

دسترګو دي | ما لره | او تا لره | مه وژنئ دې | کیدې شي | چي فائیده به راکړي مونږ ته |

دسترګو یخوالي دي | دې مه قتلوئ | .......... کیدیشي چي مونږ ته فائده راکړي

أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ۝٩ وَأَصْبَحَ

یا به اونیسو مونږ دهٔ لره | خوئي | او هغوئ | نهٔ پوهیدل [په انجام] | اوشو

یائي په خویتوب اونیسو | اوهغوئ [په اصل حال] نه پوهیدل | ..........اود موسی علیه السلام

فُؤَادُ أُمِّ مُوسَىٰ فَارِغًا ۖ إِن كَادَتْ لَتُبْدِي بِهِ

زړهٔ دمور دموسی | خالي دصبر نه [بې قراره] | نزدې وه | چي ښکاره کړې وې هغې راز دهغې |

د مور زړهٔ ناقلاره شو | نزدې وه چي د موسی علیه السلام حال ئې [دفرعون خلقو ته] ښکاره کړې وې

لَوْلَا أَن رَّبَطْنَا عَلَىٰ قَلْبِهَا لِتَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝١٠

که چرې نهٔ وې | مضبوط کړې مونږ | زړهٔ دهغې | دپاره ددې چي شي | دباور کونکونه

که مونږ د هغې زړهٔ مضبوط کړې نه وې | د دې دپاره چي هغه دې په مونږ کلک یقین اوساتي

وَقَالَتْ لِأُخْتِهِ قُصِّيهِ ۖ فَبَصُرَتْ بِهِ عَن جُنُبٍ

او وې وئیل | خور دهغه ته | چي ځه روستو په دهٔ پسي | نو کتل هغې هغه ته | دلرې نه

اوهغې د موسی علیه السلام خور ته اووئیل | چې ته ورپسې روستو ځه | نوهغې موسی ته دلرې نه [پټ پټ] کتل

وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ۝١١ وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ

اوهغوئ [خلق] | نهٔ پوهیدل | او حرام کړې وې مونږه | په هغه باندې | تي ورکونکې ښځې |

اود فرعون خلق پرې نه خبریدل | اومونږ داول نه په هغه باندې دائې ګانې منع کړې وې

مِن قَبْلُ فَقَالَتْ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ أَهْلِ بَيْتٍ يَكْفُلُونَهُ

دمخکښې نه | نواووئیل [خورئې] | آیا خبر درکړم زهٔ تاسو ته | په اهل دیو کور | چي پالنه به کوی ددهٔ

[چي دهیچا تي ئې نه اخستو] نود موسی خور اووئیل | آیا زهٔ درته یوداسې کورنئ اوښایم | چې د ده پالنه

لَكُمْ وَهُمْ لَهُ نَاصِحُونَ ۝١٢ فَرَدَدْنَاهُ إِلَىٰ أُمِّهِ

ستاسو دپاره | او هغوئ به | دپاره دهغه | خیر خواهان وي | اواپس راوستو مونږ هغه | مور دهغه ته

به ستاسو دپاره کوی | اوهغوی به ددهٔ خیرخواه وی | نو مونږ هغه خپلې مور ته په واپس کړو

كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ وَلِتَعْلَمَ أَنَّ

دپاره ددې | چي خوږې شي | سترګې دهغې | او غمژنه نشي | او چي پوهه شي | چي بیشکه

چي د هغې سترګې پرې یخې شي | او چي غمژنه نه وی | ..........او چي په دې پوهه شي چي

وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝١٣

وعده دالله | ربښتیني ده | ولیکن | زیات خلق ددوئ | نهٔ پوهیږي |

د الله جل جلاله وعده حقه ده | خو زیات خلق په دې [خبرو] نه پوهیږي |

## آسان ترجمه قرآن

طسٓمٓ. دا د هغه کتاب آیتونه دي کوم چه حقیقت لره واضح کونکی دي. مونږ دا یمان والا خلقو د فائدې دپاره تاته د موسٰی علیه السلام او فرعون حالت صحیح صحیح لولو. واقعه دا ده چه فرعون په زمکه کښې سرکشي اختیار کړې وه او هغه د هغه ځائې خلق په بیلو بیلو ډلو کښې تقسیم کړي وو چه په هغوی کښې یوه ډله هغه دومره کمزوري کړې وه چه د هغوی ځامن به ئې ذبح کول، او د هغوی ښځې به ئې ژوندۍ پریخودلې. یقینًا هغه د هغه خلقو نه وو چه فساد کوي او مونږ دا غوښتل چه کوم خلق په زمکه کښې کمزوري کړې شوې دي، په هغوی باندې احسان اوکړو، هغوی ته مشران جوړ کړو، هم هغوی (د ملک او مال) وارثان جوړ کړو، او هغوی ته په زمکه اقتدار ورکړو، او فرعون، هامان او د هغوی لښکرو ته هم هغه څه اوښایو چه د هغې نه د بچ کیدو دوی تدبیرونه کول او مونږ د موسٰی علیه السلام مور ته الهام اوکړو چه: ته دې (ماشوم) ته پئ ورکوه، بیا چه کله تا ته د دهٔ په باره کښې څه خطره شي نو دې په دریاب کښې واچوه، او ویریږه مه، او مه غم کوه، یقین ساته مونږ به دې تاته واپس راستوو، او دې به د پیغمبرانو نه یو پیغمبر جوړ کړو. دغه شان د فرعون کسانو دغه ماشوم (یعني موسٰی علیه السلام) اوچت کړو، چه آخر هغه د هغوی دپاره دشمن او د غم ذریعه جوړه شي. بیشکه فرعون، هامان او دهغوی لښکر ډیر خطاکار وو او د فرعون ښځې (فرعون ته) اووئیل چه: دا ماشوم زما او ستا د سترګو یخ والې دې، دې مه قتل کوه، هیڅ لرې نه ده چه دې به مونږ ته فائده راورسوي، یا به مونږ د دهٔ نه ځوئې جوړ کړو. او (دې فیصله کولو په وخت) هغوی ته د انجام پته نه وه بل طرف ته د موسٰی علیه السلام د مور زړه بې قرار وو. نزدې وه چه هغې دا ټول راز ښکاره کړې وې، که مونږ د هغې زړه نه وې مضبوط کړې، چه هغه (زمونږ په وعدې باندې) یقین اوساتي. او هغې د موسٰی علیه السلام خور ته اووئیل چه: د دې ماشوم خبر واخله، پس هغې د لرې نه ماشوم داسې لیدو چه هغه خلقو ته پته او نه لګیده. او مونږ په موسٰی علیه السلام باندې دا بندیز لګولې وو چه پئ ورکونکې هغې ته پئ ورنکړې شي، په دې وجه دهغوی خور اووئیل آیا زهٔ تاسو ته د داسې کور خبر درکړم چه د هغې خلق د دې ماشوم پالنه ستاسو دپاره اوکړي، او د دهٔ خیرخواه وي؟ دغه شان مونږ موسٰی علیه السلام د هغه مور ته واپس کړو، چه دهغې سترګې یخې وي، اوهغه غمژنه نه وي. او ددې دپاره چه هغې ته پته ولګي چه د الله پاک وعده رښتینې ده، خو اکثر خلق نه پوهیږي.

## خلاصه تفسیر

[طسٓمٓ] ددې په معنی صرف الله تعالی پوهه دې ﴿تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ﴾ [دا] مضامین کوم چه په تاوحی کیږي [د واضح کتاب] یعنی قرآن [آیتونه دی] په کومو کښې چه په دې موقع ﴿نَتْلُوْا عَلَيْكَ مِنْ نَّبَاِ مُوْسٰى وَفِرْعَوْنَ بِالْحَقِّ﴾ [مونږ تاته دموسی ﷺ او فرعون څه قصه ټیک ټیک لولو] یعنی نازلوو [ اوزوو ﴿لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ﴾ دهغو خلقو د نفع دپاره کوم چه ایمان لری ] ځکه چه دقصو مقصدونه یعنی عبرت او په دې سره په نبوت دلیل نیول وغیره دادمؤمنانو سره خاص دی خواه دا وخت مؤمنان وی او یا دایمان اراده لری او اجمال خو ددې قصې دادې چه ﴿اِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِي الْاَرْضِ﴾ [فرعون په زمکه ] د مصر [کښې ډیر اوچت شوې وو ﴿وَجَعَلَ اَهْلَهَا شِيَعًا﴾ او دهٔ دهغه ځائې په اوسیدونکو کښې مختلف قسمونه جوړکړی وو] داسې چه قبطیان

یعنی دمصر خلق یٔ عزتمند جوړ کړی وو او سبطیان یعنی بنی اسرائیل یٔ ذلیل او خوار کړی وو چه بیان یٔ مخکښې راځی ﴿يَسْتَضْعِفُ طَآئِفَةً مِّنْهُمْ﴾ [ چه په دوی ] اوسیدونکو [کښې یٔ دیوې ډلې ] یعنی بنی اسرائیلو [زور کم کړې وو] داسې چه ﴿يُذَبِّحُ أَبْنَآءَهُمْ﴾ [ ددوی ځامن] کوم چه به نوی پیداکیدل د جلادیانو په لاس ] به یٔ ذبح کول ﴿وَيَسْتَحْيِ نِسَآءَهُمْ﴾ او ددوی ښځو] یعنی جینکو [لره به یٔ ژوندیٔ پریښودلې ] چه په دوی خپل خدمتونه وکړی دارنګ ددوی نه ویره هم نه وه ﴿إِنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُفْسِدِينَ﴾ [ واقعی هغه لویٔ فساد کوونکې وو] غرض فرعون خوبه دې خیال کښې وو ﴿وَنُرِيدُ أَنْ نَمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ﴾ [ اومونږ ته دا منظوره وه چه دکومو خلقو په زمکه ] دمصر [ کښې زور کمولې شی مونږ په هغوی ] دنیاوی او دینی [ احسان اوکړو او] هغه احسان داچه ﴿وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً﴾ مونږ [دوی لره ] په دین کښې [پیشوایان جوړ کړو او] په دنیاکښې ﴿وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ﴾ مونږ [دوی لره ] ددې ملك [مالکان جوړ کړو او] دمالك کیدو سره ﴿وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ﴾ [دوی لره ] بادشاهان هم جوړ کړو یعنی [ په زمکه کښې حکومت ورکړو ﴿وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُمْ مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ﴾ او فرعون او هامان او ددوی تابعدارانو ته ددوی ] بنی اسرائیلو [ دطرف نه هغه ] ناګواره [واقعات وښایو دکومو نه چه دوی ځان بچ کولو] مراد ددې نه دحکومت زوال او هلاکت دې چه ددې نه دځان بچ کولو دپاره یٔ دبنی اسرائیل بچې دیو خوب دتعبیر په بناکوم چه فرعون لیدلې وو او نجومیانویٔ تعبیر ورکړې وو قتلول [لکه داسې په درمنثور کښې دی] پس زمونږ دتقدیر په وړاندې ددغو خلقو تدبیر هیڅ په کار نه شو دادقصې اجمال شو [ او] تفصیل ددې داول نه دادې چه کله موسیٰ عليه السلام په دغه دفتنو نه ډکه زمانه کښې پیدا شونو ﴿وَأَوْحَيْنَا إِلَى أُمِّ مُوسَى أَنْ أَرْضِعِيهِ﴾ [مونږ دموسیٰ عليه السلام [ مورته الهام وکړو چه ] ترڅو پورې د دهٔ پټول ممکن وی [ ته دهٔ ته تې ورکوه ] ﴿فَإِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ﴾ بیا چه کله ته دهٔ په باره کښې ] دجاسوسانو دخبریدونه [ په ویره کښې شې نو] بې خوف او خطر ﴿فَأَلْقِيهِ فِي الْيَمِّ﴾ [دهٔ لره ] په صندوق کښې کیده [دریاب] یعنی رودنیل ته یٔ وغورزوه ﴿وَلَا تَخَافِي﴾ اونه خو ] یٔ په غرقیدو [ ویره کوه ﴿وَلَا تَحْزَنِي﴾ اونه ] یٔ په جدایئ [غم کوه ] ځکه چه ﴿إِنَّا رَآدُّوهُ إِلَيْكِ﴾ [ مونږ به خامخا دهٔ لره بیا تاته واپس راورسوو او] بیا په خپل وخت به ﴿وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ [ دهٔ لره پیغمبر جوړ کړو غرض هغې ورله دغه شان تې ورکولو بیا چه هرکله د راز ښکاره کیدو ویره شوه نو په صندوق کښې یٔ بند کړو او دالله تعالی په نوم یٔ رودنیل ته ورپریښودو ددې دریاب یو شاخ دفرعون محل ته وو یا د سیل دپاره دفرعون دکور خلق دریاب ته راوتلی وو غرض هغه صندوق غاړې ته راغې ﴿فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ﴾ [ نو دفرعون خلقو موسیٰ عليه السلام [ لره ] یعنی دصندوق سره [ اوچت کړو ﴿لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا﴾ چه هغه ددغو خلقو دپاره د دښمنیٔ او غم باعث جوړ شی ﴿إِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا كَانُوا خَاطِئِينَ﴾ بیشکه فرعون او هامان او ددهٔ تابعدارانو ] په دې باره کښې [ډیره خطا وکړه] چه خپل دښمن یٔ په خپل بغل کښې وپاللو [ او] کله چه هغه دصندوق نه راویستلې شواو دفرعون مخې ته راوړې شو نو ﴿وَقَالَتِ امْرَأَتُ فِرْعَوْنَ﴾ [ دفرعون بی بی] حضرت اسیې فرعون ته [ ووئیل چه دا] بچې ﴿قُرَّتُ عَيْنٍ لِي وَلَكَ﴾ [زما او ستا دسترګو یخوالې دې ] یعنی دهٔ په لیدو به زمونږ زړهٔ خوشحالیږی نو ﴿لَا تَقْتُلُوهُ﴾ [ دهٔ لره مه قتلوه عجیبه نه ده چه] لویٔ شی ﴿عَسَى أَنْ﴾

يَنْفَعَنَآ اَوْنَتَّخِذَهٗ وَلَدًا﴾ [مونږ ته څه فائده ورسوي يا به مونږ دهٔ لره ] خپل [ خوئ جوړ کړو ﴿وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾ او دې خلقو ته ] دانجام [خبرنه وو] چه داهغه بچې دې دکوم دلاسه چه به دفرعون حکومت تباه شي [او ] بل خوا دا قصه وشوه چه ﴿وَاَصْبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوْسٰى فٰرِغًا﴾ [دموسى] ﷺ [دمور زړهٔ] دمختلفوخيالاتو په جمع كيدو سره [ بې قراره شو ] اوبې قرارى هم داسې اخوا ديخوا نه وه بلكه داسې سخته بې قرارى وه چه ﴿اِنْ كَادَتْ لَتُبْدِيْ بِهٖ﴾ [نژدې وه چه ] د ډيرې بې قرارئ نه [هغې د موسى] ﷺ [حال ] په ټولو باندې [ ښكاره كړې وې ﴿لَوْلَآ اَنْ رَّبَطْنَا عَلٰى قَلْبِهَا﴾ كه مونږ ددې زړهٔ په دې غرض سره مضبوط كړې نه وې چه دا] زمونږ په وعده ﴿لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [يقين كونكې شي ] غرض په مشكله دې خپل زړهٔ كلك كړو او تدبير ئې داسې شروع كړو چه ﴿وَقَالَتْ لِاُخْتِهٖ قُصِّيْهِ﴾ [داسې دموسى] ﷺ [خور] يعنى خپلې لور[ ته ووئيل چه لږ دموسى] ﷺ [تلاش وكړه پس] دالاړه معلومه ئې كړه چه صندوق په محل كښې بيرته شوې دې محل ته ورسيده ياخو به داتله راتله او ياخو په څه حيله سره ورسيده او ﴿فَبَصُرَتْ بِهٖ عَنْ جُنُبٍ وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾ [دې موسى] ﷺ لره دلرې نه وليدو او هغه خلق ددې نه خبرنه وو] چه ګنى دادده خور ده او په دې فكر كښې راغلې ده [ او مونږ د وړاندې نه ] يعنى دكله نه چه دصندوق نه راوتلې وو ﴿وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ مِنْ قَبْلُ﴾ [ په موسى] ﷺ باندې دايانې بندې كړې وې ] يعنى دهيچا تې ئې نه اخستلو [ پس هغې ] چه دا حال وليدو نو موقع ئې بيا مونده ﴿فَقَالَتْ هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰٓى اَهْلِ بَيْتٍ يَّكْفُلُوْنَهٗ لَكُمْ﴾ [وې وئيل چه ايا زهٔ تاسو خلقو ته ديو داسې كور پته وښايم كوم چه تاسو دپاره ددې بچى پرورش وكړى﴿وَهُمْ لَهٗ نٰصِحُوْنَ﴾ او هغوئ] دخپل طبيعت او جبلت موافق په زړهٔ سره [ددهٔ سره خير خواهى كوى] هغه خلقو په داسې وخت كښې چه په تې وركولو كښې ورته مشكلات راپيښ وو دا مشوره غنيمت وګڼړله او دداسې كور تپوس ئې ترې نه وكړو هغې ورته دخپلې مور پته وښودله نو هغه راوغوښتلې شوه اوموسى ﷺ ورته په غيږ كښې واچولې شو دورتلوسره هغه تې رودل شروع كړل او ددغو خلقو په اجازت سره ئې ښه په آرام خپل كورته راوړو او كله كله به ئې وړو هغوته به ئې ښودلو ﴿فَرَدَدْنٰهُ اِلٰٓى اُمِّهٖ﴾ [غرض مونږ موسى] ﷺ لره دغه شان [ددهٔ مورته] دخپلې وعدې مطابق [واپس ورسولو ﴿كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ﴾ چه ] خپل اولاد وينى [ستركې ئې پرې يخې وى او چه] دفراق [ په غم كښې نه وى او دې دپاره چه ] په ليدو سره ﴿وَلِتَعْلَمَ اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ﴾ [په دې خبره] ښه په يقين سره [ پوه شى چه دالله تعالى وعده رښتونې وى ليكن] دافسوس خبره ده چه ﴿وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ [ اكثرخلق] په دې [يقين نه لرى ] دا تعريض يعنى اشاره ده په كفارو باندې.

## معارف او مسائل

سورة قصص د ټولو نه آخرى مكى سورت دې. دهجرت په موقعه د مكې مكرمې او جحفې تر مينځه نازل شوې وو. ځينې روايتونو كښې راغلى دى چې كله د هجرت د سفر په دوران كښې نبى اكرم ﷺ جحفې ته نزدې اورسيدو نو جبرائيل ﷺ تشريف راوړو او نبى اكرم ﷺ ته ئې اووئيل چې آيا تاسو ﷺ ته خپل پيدائشى وطن يادېږى ؟ نو نبى اكرم ﷺ اوفرمائيل چې آؤ يادېږى. په دغه موقعه ورته جبرائيل ﷺ دا سورت واؤرولو چې په آخر كښې ئې دا زيرې وركړې شوې دې چې په انجام كښې به مكه مكرمه فتح شى او ستاسو ﷺ

په قبضه کښې به راشي ، هغه دا آيت مبارك دې چې : ﴿إِنَّ الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لَرَادُّكَ إِلَىٰ مَعَادٍ﴾[۱] سورة قصص کښې دټول نه ړومبې د موسى ﷺ قيصه اجمالي طور اوبيا تر نيم سورت پورې د فرعون سره او په آخر د سورت کښې ئې د قارون سره بيان شوې ده.

د موسى ﷺ قيصه قرآن عظيم الشان کښې بار بار راغلې ده. ځينې ځايونو کښې مختصر ده او ځينو کښې تفصيل سره بيان شوې ده. سورة کهف کښې په تفصيل سره راغلې ده چې خضر ﷺ سره ئې پيښنه شوې وه. او بيا وروسته په سورت طٰه کښې د پوره قيصې تفصيل بيان شوې دې. اودغه تفصيل څه خو په سورة نمل کښې راغلې دې او په سورت قصص کښې بيا بيا راغلې دې. سورة طٰه کښې د قرآن عظيم الشان ددې آيت مبارك ﴿وَفَتَنَّاكَ فُتُونًا﴾[۲] په تفصيل کښې محدثينو امام نسائي وغيره ددې قيصې پوره تفصيل ليکلې دې.

احقر هم د ابن کثير په حواله مکمل تفصيل په سورة طٰه کښې بيان کړې دې. ددې قيصې د ځينې حصو ټول بحثونه ، ضروري مسئلې او فائدې څه خو په سورة کهف کښې او پاتې نورې حصې ئې په سورة طٰه کښې بيان کړې شوې دې. مسئلو او بحثونو دپاره دهغې کتل به کافي وي ، دلته به صرف د آيتونو د الفاظو مختصر تفسير بيانولې شي.

﴿وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ﴾ دلته د الله ﷻ د تقدير په مقابله کښې فرعوني تدبيرهم نه صرف ناکام شو بلکه فرعون او فرعوني درباريان ئې ټول بيوقافان او رانده کړخولي وو دهغه ذکر دې کوم هلك څخه چې د خوب ليدلو اودهغې د تعبير اوښکلو په بنا فرعون ته خطره پيدا شوه. اود هغه ماشوم په تپس کښې ئې چې نور ډير نوي پيدا کړې شوي ماشومان ذبح کړل. هم دغه ماشوم الله ﷻ په خپل حکمت سره د فرعون کورته وراورسولو هم د هغه په کور کښې هم دهغه په خرچ لوئې شو. په يو حيرانونکې طريقې سره ئې دغه ماشوم د خپلې مور بي بي غيږ ته اورسولو چې هغې ته تسلي وي. هم د فرعون په خرچ به ئې ورته پئ ورکول. ځينې روايتونو کښې رازي چې روزانه به ئې يو دينار ورکولو. هرکله چې دا فيس او معاوضه د يو کافر حربي په رضا مندئي سره حاصله کړې شوې وه. څکه ددې په روا والي کښې هم هيڅ اشکال نشته دې. آخر هم دغه ماشوم ددهٔ دپاره تندر جوړ شو. او الله ﷻ ورته په خپلو سترګو هر څه اوخودل.

﴿وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ﴾

﴿وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّ مُوسَىٰ﴾ دلته د وحى لفظ په لغوي معنى سره راغلې دی چې الهام ترې مراد دې ، پيغمبري وحي ترې مراد نه ده ، څنګه چې په سورت طٰه کښې تفصيل سره تير شوې دی.

....

[۱] ترجمه: کوم الله تعالى چې په تا باندې قرآن پاك فرض کړې دې هغه ذات به تا بيا خپل وطن ته واپس کړي.
[۲] ترجمه:- او مونږ ته په ډيرو مشقتونه کښې واچولې.

وَلَمَّا

او هر کله چې

او کله چې.........................

بَلَغَ　اَشُدَّهٗ　وَاسْتَوٰۤى　اٰتَيْنٰهُ　حُكْمًا　وَّعِلْمًا ؕ

اورسیدو موسی | خوانۍ خپلې ته | او برابر شو په عقل | نو ورکړو مونږ هغه ته | حکمت | او علم

موسیٰ ؑ خپلې خوانۍ ته اورسیدو | او ښه تکړه شو | نومونږ ورته حکمت اوعلم ورکړو

وَكَذٰلِكَ　نَجْزِى　الْمُحْسِنِيْنَ ۝　وَدَخَلَ　الْمَدِيْنَةَ　عَلٰى حِيْنِ

او دارنګې | بدله ورکوو مونږه | نیکانو خلقو له | اوننوتو هغه | ښار ته | په وخت

اومونږ نیکانو خلقو ته هم دغسې بدله ورکوو | او [یوه ورځ] موسیٰ ؑ د خلقو د غفلت په وخت کښې

غَفْلَةٍ　مِّنْ اَهْلِهَا　فَوَجَدَ　فِيْهَا　رَجُلَيْنِ　يَقْتَتِلٰنِ ۗ　هٰذَا

دغفلت | داهل دهغې | نو بیا ئې موندو | په هغې کښې | دوه سړی | چې جګړه ئې کوله | دایو |

ښار ته داخل شو | ............نو هلته ئې دوه سړي په جنګ اولیدل | .............................دا [یو]

مِنْ شِيْعَتِهٖ　وَهٰذَا　مِنْ عَدُوِّهٖ ۚ　فَاسْتَغَاثَهُ　الَّذِىْ

دډلې دهغې نه وؤ | او دا بل | ددښمنانو دهغه نه وؤ | نو امداد اوغوښتو دهغه نه | هغه سړی

خو د دهٔ دقوم ځنی وو | او بل د ده د دښمنانو ځنی وو | نوکوم سړې چې ددهٔ دقوم وو | هغه د دښمن

مِنْ شِيْعَتِهٖ　عَلَى الَّذِىْ　مِنْ عَدُوِّهٖ ۙ　فَوَكَزَهٗ　مُوْسٰى

چې دډلې دهغه نه وؤ | خلاف دهغه سړی | چې ددشمن دهغه نه وؤ | نو سوك ورکړو هغه له | موسی

د سړی په مقابله کښې دموسی ؑ نه مدد اوغوښتلو | نو موسی ؑ ورته یو سوک ورکړو

فَقَضٰى عَلَيْهِ ۗ　قَالَ　هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ؕ　اِنَّهٗ　عَدُوٌّ

نو کار ئې تمام کړو دهغه | اووئیل موسی | دا کار دعمل دشیطان نه دې | بیشکه هغه | دشمن دې

نوهغه مړ شو | موسی ؑ اووئیل چې دا خو یو شیطانی کار اوشو | ..................بیشکه هغه

مُّضِلٌّ　مُّبِيْنٌ ۝　قَالَ　رَبِّ　اِنِّىْ　ظَلَمْتُ

ګمراهه کونکې دې | ښکاره | اووئیل موسی | اے ربه زما | بیشکه زهٔ چې یم | ظلم اوکړو ما |

ښکاره بې لاره کونکې دشمن دې | موسی ؑ اووئیل چې ائې زما ربه ! ما په خپل

نَفْسِىْ　فَاغْفِرْ لِىْ　فَغَفَرَ　لَهٗ ؕ　اِنَّهٗ　هُوَ

په ځان خپل | نو ښښنه اوکړه ماته | نو ښښنه اوکړه الله | هغه ته | بیشکه هغه | خاص هم هغه |

ځان ظلم اوکړو | نوته راته معافی اوکړه | نو الله ورته معافی اوکړه | ......بیشکه هغه

الْغَفُوْرُ　الرَّحِيْمُ ۝　قَالَ　رَبِّ　بِمَاۤ اَنْعَمْتَ　عَلَىَّ

ښښونکې | مهربانه دې | اووئیل موسی اے ربه زما | په سبب دهغه انعام | چې تاکړې دې په مابانډې

بخښونکې مهربان دې | موسی ؑ اووئیل چې ائې زما ربه ! تاچې په ماکومه مهربانی کړې ده

فَلَنْ اَكُوْنَ ظَهِيْرًا لِّلْمُجْرِمِيْنَ ⑰ فَاَصْبَحَ فِي الْمَدِيْنَةِ

نو هر گز به نهٔ کیږم زهٔ | مددگار | دپاره دمجرمانو خلقو | پس صبا کړو موسی | په هغه ښار کښې |

نو زه بهٔ هیچرې د مجرمانو مددگار جوړنشم | ............نو موسی عليه السلام په ښار کښې

خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ فَاِذَا الَّذِي اسْتَنْصَرَهٗ

یریدونکې | چې خطره ئې محسوسوله | نو ناساپه | هغه سړې | چې امداد ئې غوښتې وو د هغه نه |

د ویرې او انتظار په حالت کښې صبا کړو | څهٔ گورې چې پرون ترې نه کوم سړي امداد غوښتلې وو

بِالْاَمْسِ يَسْتَصْرِخُهٗ ؕ قَالَ لَهٗ مُوْسٰۤى اِنَّكَ لَغَوِيٌّ

پرون | ابیا ئې فریاد کوؤ هغه ته | اووئیل هغه ته | موسی | بیشکه تهٔ | خامخا بې لارې ئې |

هغه ورته نن بیا [دمدد دپاره] آوازونه کوی | موسی عليه السلام ورته اووئیل چې ته خو ښکاره بې

مُّبِيْنٌ ⑱ فَلَمَّاۤ اَنْ اَرَادَ اَنْ يَّبْطِشَ بِالَّذِيْ هُوَ عَدُوٌّ

ښکاره | پس هر کله چې | اراده اوکړه موسی | چې اونیسی | هغه سړې | چې هغه | دشمن وؤ |

لارې سړې یئ | نو څهٔ وخت چې موسی عليه السلام هغه سړی ته لاس وراوږد کړو | کوم چې د دواړو په شریکه

لَّهُمَا ۙ قَالَ يٰمُوْسٰۤى اَتُرِيْدُ اَنْ تَقْتُلَنِيْ كَمَا

ددواړو | نو اووئیل هغه اسرائیلي | اے موسی | آیا تهٔ غواړې | چې اووژنې ما | لکه څنگه

دشمن وو | نو هغې [اسرائیلي] اووئیل چې اے موسی عليه السلام ! آیا ته ما هم هغسې قتل کول غواړې | لکه

قَتَلْتَ نَفْسًا بِالْاَمْسِ ۖ اِنْ تُرِيْدُ اِلَّاۤ اَنْ تَكُوْنَ جَبَّارًا

چې تاوژلې دې | یو سړې | پرون | نهٔ غواړې تهٔ | مگر | چې شې تهٔ | زورور

چې پرون دې یو سړې وژلې وو | ته خو بس په دې زمکه کښې زوراور کیدل غواړې

فِي الْاَرْضِ وَمَا تُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ ⑲ وَجَآءَ

په زمکه [دمصر] کښې | او نهٔ غواړې تهٔ | چې شې تهٔ | داصلاح کونکونه | او راغې

............اودا نه غواړې چې د روغې کونکو څنې شې | ............ او یو سړې

رَجُلٌ مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ يَسْعٰى ۡ قَالَ يٰمُوْسٰۤى

یوسړې | داخرسر | دهغه ښار نه | چې رامنډې ئې وهلې | اووئیل هغه | اے موسی

د ښارد بلې غاړې نه په منډه منډه راغلو | ............وې وئیل چې اے موسی عليه السلام

اِنَّ الْمَلَاَ يَاْتَمِرُوْنَ بِكَ لِيَقْتُلُوْكَ فَاخْرُجْ اِنِّيْ

بیشکه سرداران | مشوره کوی | خلاف ستا | چې اووژنی تا | نو اوځه تهٔ | بیشکه زهٔ

درباریان ستا په باره کښې مشورې کوی | چې تا اووژنی | نو ته د [ملک نه] بهر لاړشه | بیشکه زه

لَكَ مِنَ النّٰصِحِيْنَ ⑳ فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ ۡ

تاته | دنصیحت کونکونه یم | نو اووتو موسی | دهغه ښارنه | یریدونکې | چې کتل به ئې هر طرفته

ستا خیر خواه یم | نو موسی عليه السلام د هغه ځائې نه د ویرې او پریشانئ په حالت کښې اووتلو

| قَالَ | رَبِّ | نَجِّنِيْ | مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| اوونیل موسی | اے ربه زما | نجات راکړې ماته | دقوم ظالم نه |
| دا ئې وئیل چې ائې زما ربه ! ما د دې ظالمانو نه خلاص کړه | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او چه کله موسٰی عليه السلام خپل طاقت ته اورسیدو، او پوره ځوان شو نو مونږ هغهٔ ته حکمت او علم ورکړو، او نیکانو خلقو ته مونږ هم داسې صله ورکوو. او (یوه ورځ) هغه په ښهر کښې په داسې وخت کښې داخل شو چه کله د هغه ځائې اوسیدونکی په غفلت کښې وو نو هغوی (عليه السلام) اوکتل چه هلته دوه سړی په جهګړه وو، یو د هغوی (عليه السلام) د خپلې ډلې نه وو، او دویم د هغوی (عليه السلام) د دشمن د قوم. اوس چه کوم سړې د هغوی عليه السلام د قوم وو. هغه موسٰی عليه السلام لره د دشمن د قوم د سړی په مقابله کښې د مدد دپاره راوغوښتلو په دې بانديې موسٰی عليه السلام هغه ته یو سوك ورکړو، چه د هغه کار ئې تمام کړو (بیا هغوی (پښیمانتیا سره) اووئیل چه دا خو د شیطان کار دې حقیقت دا دې چه هغه یو ښکاره دشمن دې چه انسان په غلطه لاره بانديې اچوی. موسٰی عليه السلام اووئیل: اې ربه! ما په خپل ځان بانديې ظلم اوکړو، ته ما معاف کړه پس الله پاک هغه معاف کړو، یقینًا هغه ډیر بخښنه کونکې، لوئې مهربان دې. موسٰی اوفرمائیل: زما ربه! تا چه کوم انعام په ما بانديې کړې دې نو زه به د بیا دپاره کله هم د مجرمانو مددګار نه جوړیږم بیا هغوی عليه السلام د سحر په وخت ښهر کښې په ویره ویره بانديې د حالاتو جائزه اخستله، په دې کښې ئې اوکتل چه کوم سړی پرون د هغه نه امداد غوښتلې وو، هغه بیا هغوی ته د فریاد دپاره چغې وهی، موسٰی عليه السلام هغه ته اووئیل: معلومه شوه چه ته ښکاره شرې انسان ئې بیا چه کله هغوی عليه السلام د هغه سړی د نیولو اراده اوکړه کوم چه د دوی دواړو دشمن وو نو هغه (اسرائیلی) اووئیل: موسٰی! آیا ته ما هم دغه شان قتل کول غواړې لکه تا چه پرون یو سړې قتل کړې وو؟ ستا مقصد خو د دې نه سوا هیڅ نشته چه ته په زمکه کښې خپله زبردستی مضبوطه کړې، او ته مصلح جوړیدل نه غواړې او (د هغې نه روستو دا اوشوه چه) چه د ښهر د یو لرې علاقې نه یو سړې په منډه راغلو، هغه اووئیل چه: اې موسٰی! سرداران خلق ستا په باره کښې مشوره کوی چه تا قتل کړی، په دې وجه ته د دې ځائې نه اوځه، یقین اوساته چه زه ستا خیرخواه یم پس موسٰی عليه السلام په ویره ویره، د حالاتو جائزه اخستلو سره د ښهر نه اووتلو. وې وئیل: اې زما ربه! ما د ظالمانو خلقو نه بچ کړه.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَمَّا﴾ [ اوهر کله چه] وپاللې شو او ﴿بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَاسْتَوٰى﴾ [خپلې ] د مضبوطې [ځوانۍ] عمر [ته ورسیدو او] په بدنی او عقلی قوت سره [برابرشو ﴿اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا﴾ نو مونږ دهٔ ته حکمت او علم ورکړو ] یعنی دنبوت نه وړاندې برابر پوه او درست عقل په کوم سره چه په ښه بد کښې فرق کولې شی ورکړو ﴿وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ۝﴾ [ اومونږ نیکو کارو ته هم دغسې بدله ورکوو] یعنی په نیك عمل سره په علمی فیضان کښې ترقی کیږی په دې کښې اشاره ده چه د فرعون طریقه موسی عليه السلام چرې هم نه وه اختیار کړې بلکه بچ به ترې نه اوسیدو [او] په دې زمانه کښې یوه واقعه داسې وشوه چه یوخل ﴿وَدَخَلَ الْمَدِيْنَةَ عَلٰى حِيْنِ] غَفْلَةٍ مِّنْ اَهْلِهَا﴾ [ موسی] عليه السلام [ښارته

] يعنى مصر ته [كذافي الروح(۱)عن ابن اسحاق] چرې دبهر نه [داسې وخت راورسيدو چه دهغه خاىٔ ] اكثر [اوسيدونكى بې خبره] پراته اوده [وو] په اكثرو روايتونو كښې دا وخت دغرمې معلوميږي او دځنې روايتونو نه دشپې دځه حصې دتيريدو نه پس وخت معلوميږي لكه په درمنثور(۲)كښې دى ﴿فَوَجَدَ فِيهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلَانِ﴾[نو دوى هلته دوه سړو لره په جنگ وليدل ﴿هَٰذَا مِن شِيعَتِهِ وَهَٰذَا مِنْ عَدُوِّهِ﴾ يو خو دده دقوم] يعنى بنى اسرائيلو [نه وو او دويم دمخالفينو ] يعنى فرعونيانو [نه وو] دواړه په څه خبره په جنگ وو او زياتې د فرعونى وو ﴿فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِي مِن شِيعَتِهِ عَلَى الَّذِي مِنْ عَدُوِّهِ﴾[پس هغه كوم چه دده دقوم نه وو] چه [موسى] لره وليدو نو ده [نه دهغه په مقابله كښې كوم چه ددوى دمخالفينو نه وو مدد وغوښتلو] موسى اول هغه پوه كړو چه په دې منع نه شوه ﴿فَوَكَزَهُ مُوسَىٰ فَقَضَىٰ عَلَيْهِ﴾[نو موسى] په طور د ادب دظلم دفع كولو دپاره [هغه لره په] يو [سوك ووهلو پس دهغه كارې په دې سره تمام كړويعنى اتفاقا هغه مړشو ﴿قَالَ هَٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ﴾[موسى] په دې خلاف توقع نتيجه ډيرپشيمانه شو او[ وې وئيل چه داخوشيطانى حركت وشو﴿إِنَّهُ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِينٌ﴾ بيشكه شيطان] هم د بنده [ښكاره دښمن دې په څه غلطىٔ كښې ئې اچوى] اوپښيمانه شو الله تعالى ته ئې ﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي فَاغْفِرْ لِي فَغَفَرَ لَهُ ۚ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ﴾[عرض وكړو چه اے زما پروردگاره مانه قصور وشو ته راته معافى وكړې پس الله تعالى معاف كړو بيشكه هغه بخښونكې او مهربانه دې ] اگرچه ظهور او علم ددې معافىٔ په قطعى طور سره دنبوت د وركولو په وخت كښې وشو لكه چه په سوره نمل كښې دى [﴿إِلَّا مَن ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًا بَعْدَ سُوءٍ فَإِنِّي غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾(۳)]او دا وخت خواه په الهام سره معلومه شوې وى يا بالكل معلومه شوې نه وى [موسى] ﴿قَالَ رَبِّ بِمَا أَنْعَمْتَ عَلَيَّ﴾[دتيرې گناه نه دتوبې سره ] دراتلونكې زمانې متعلق داهم [عرض وكړو چه اے زماپروردگاره چونكه تاپه ما] لوىٔ لوىٔ [انعامات فرمائيلى دى] چه ذكرئې په سوره طه كښې [﴿وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً أُخْرَىٰ﴾](۴) تردې قول پورې [ولاتحزن ] ﴿فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِّلْمُجْرِمِينَ﴾[پس زه به چرې دمجرمانو مدد ونه كړم ] دلته دمجرمانو نه مراد هغه دى كوم چه په نورو دگناه كاركول غواړى څكه چه په بل گناه كول داهم يو جرم دې پس په دې كښې شيطان هم داخل شو چه دې په خلقو گناه كوى اوگناه كوونكې دده مدد كوى خواه قصدا وى اوكه په خطاء سره لكه چه په دې ايت كښې دى [ وكان الكافر على ربه ظهيرا(۵)اى للشيطان] يعنى دشيطان دپاره مطلب داشو چه زه به دشيطان خبره چرې ونه منم يعنى كوم خاىٔ چه دخطا كيدو احتمال وى هلته به داحتياط نه كاراخلم او اصل مقصود خو دومره دې مگر دحكم دشمول دپاره ئې مجرمين دجمع صيغه راوړه چه نورو لره هم عامه شى غرض په دغه وخت ددې چرچه وشوه مگر بغير داسرائيلى نه بل هيڅوك د راز نه خبرنه وو او چونكه دا

۱) روح المعاني [ج: ۱۵ ص:۹۱]
۲) الدرالمنثور [ج:۷ ص:۴۷۷]
۳) ترجمه:خو دچانه چې خطا اوشى بيا دخطا نه پس دې نيك كارونه اوكړى نو زه مغفرت والا اور رحمت والا يم.
۴) ترجمه:- او مونږ خو په تا باندې نور نور احسانونه كړى دى.
۵) ترجمه:- اوكافر خو د خپل رب مخالف دې.

واقعه ددۀ په حمایت کښې شوې وه نو ځکه ئې ددۀ اظهار ونه کړو نو چاته ئې اطلاع ونه شوه مګر دموسیٰ علیه السلام سره ویره وه تردد چه شپه تیره شوه ﴿فَاَصْبَحَ فِي الْمَدِيْنَةِ خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ﴾ [بیا موسیٰ علیه السلام [صباکړو په ښار کښې په ویره ترهه سره ﴿فَاِذَا الَّذِي اسْتَنْصَرَهٗ بِالْاَمْسِ يَسْتَصْرِخُهٗ﴾ چه ناځاپه [ څه ګوري چه [هغه سړې کوم چه پرون ددۀ څخه امداد غوښتلې وو هغه بیادۀ ته ] دمدد دپاره [ چغې وهي چه] دبل سره په جنګ وو ﴿قَالَ لَهٗ مُوْسٰى﴾ [ موسیٰ] علیه السلام دا ولیدل او پرونې حال ئې رایاد شو نو خفه شو او [دۀ ته ئې وفرمائیل ﴿اِنَّكَ لَغَوِيٌّ مُّبِيْنٌ﴾ بیشکه ته ښکاره بې لارې ] سړې [ ئې] چه روزانه دخلقو سره جنګونه کوې موسیٰ علیه السلام ته به دقرائنونه معلومه شوې وی چه ددۀ دطرف نه به هم څه غصه شوې وی لیکن دفرعوني زیاتې ئې ولیدو او دهغه دمنع کولو اراده ئې وکړه ﴿فَلَمَّآ﴾ [پس کله چه موسیٰ] علیه السلام ﴿اَنْ اَرَادَ اَنْ يَّبْطِشَ بِالَّذِيْ هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا﴾ [ هغه ته لاس ور اوږده کړل کوم چه د دواړو دښمن وو] مراد فرعوني دې چه هغه داسرائیلي هم مخالف وو او دموسیٰ علیه السلام هم ځکه چه موسیٰ علیه السلام دبنی اسرائیلونه وو او دغه خلق ټول دبنی اسرائیلو مخالف وو اګر چه په تعین سره هغوی موسیٰ علیه السلام لره اسرائیلي نه ګڼړلو او یاموسیٰ علیه السلام چونکه دفرعون دطریقې نه نفرت کوونکې وو او دا خبره مشهوره شوه په دې وجه فرعونیان ددۀ نه مخالف شوی وو په هرحال هرکله چه موسیٰ علیه السلام په دې فرعونی باندې لاسونه ور اوچت کړل او ددې نه وړاندې ئې داسرائیلي نه خفګان ښکاره کړې وو نو په دې سره اسرائیلي شکمن شو چه شاید نن په ما باندې حمله کوی نو وویریدو ﴿قَالَ يٰمُوْسٰٓى﴾ [ هغه اسرائیلي اووئیل اے موسیٰ ایا] نن ﴿اَتُرِيْدُ اَنْ تَقْتُلَنِيْ﴾ [ مالره قتل کول غواړې ﴿كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًا بِالْاَمْسِ﴾ لکه چه پرون تا یو سړې قتل کړې دې ] معلومیږی چه ﴿اِنْ تُرِيْدُ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ جَبَّارًا فِي الْاَرْضِ﴾ [پس ته په دنیا کښې خپل زور قائمول غواړې ﴿وَمَا تُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ﴾ او صلح ] او ملاوول [ کول نه غواړې] دا خبره دې فرعوني واؤریده او دقاتل تلاش کیدو دومره پته لګیدل پوره وو فرعون ته ئې فورا خبر ورسولو فرعون دخپل سړی په مرګ خفه وو چه داې واؤریدل نو غصه شو او شایدچه په دې سره ددۀ دخوب هغه ویره قوی شوی وی چه هسې نه هغه سړې دانه وی خاصکرکه د موسیٰ علیه السلام دفرعون دطریقې نه نفرت کول هم فرعون ته معلوم وی نو څه دښمني به ئې په دغه سبب سره وه او دا پرې دپاسه شوه په هرحال دۀ خپل دربایان دمشورې دپاره جمع کړل او اخر چه دموسیٰ علیه السلام دقتلولو راې مقرر شوه [او] په دې مجمع کښې ﴿وَجَآءَ رَجُلٌ﴾ [یوسړې ] دموسیٰ علیه السلام خیرخواه وو هغه ﴿مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ﴾ [دښارد] دې [غاړې نه] کوم ځاې چه دامشوره کیده په موسیٰ علیه السلام پسې په لنډو کوڅو باندې ﴿يَسْعٰى﴾ [ په منډه راغې] او ﴿قَالَ يٰمُوْسٰٓى﴾ [ وې وئیل چه اے موسیٰ] علیه السلام ﴿اِنَّ الْمَلَاَ يَاْتَمِرُوْنَ بِكَ لِيَقْتُلُوْكَ﴾ [ د دربارخلق ستاپه باره کښې مشورې کوی چه تالره قتل کړی پس ته] ددې ځاې نه ﴿فَاخْرُجْ اِنِّيْ لَكَ مِنَ النّٰصِحِيْنَ﴾ [ وځه زۀ ستاخیر خواهی کوم پس] چه داې واؤریدل نو ﴿فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ﴾ [موسیٰ علیه السلام [دهغه ځاې نه] یوطرف ته [ووتلو دویرې ترهې په حالت کښې ] او چونکه لار ورته معلومه نه وه نو ددعا په طور ﴿قَالَ رَبِّ نَجِّنِيْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ﴾ [ وې وئیل چه اے زما پروردګاره مالره ددې ظالمانو خلقو نه بچ کړې ] او دامن ځاې ته مې ورسوې .

## معارف او مسائل

﴿وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ وَاسْتَوَىٰ﴾ د اشد لفظي معنى داده چې طاقت او مضبوطې انتها ته اورسيږي. مطلب دا چې انسان په دمه دمه طاقت او مضبوطې اخلي داسې يو وخت پرې راشي چې دغه طاقت او مضبوطې ئې پوره شي دغې ته اشد وئيلې شي. خو دا د مختلفو علاقو او قومونو په اعتبار سره مختلف وي. په چا باندې اشد زمانه ډير زر راشي او په چا باندې زر نه رازي. خو د ابن عباس رضي الله عنهما او مجاهد رحمه الله نه د عبد بن حميد رحمه الله په روايت دا منقول دي چې د اشد هغه وخت يعني عمر دې چې د درې ديرشو کالو شي کوم ته چې د کمال يا وقوف عمر وئيلې شي، کله چې د بدن وده خپل آخر ته اورسيږي، بيا تر څلويښتو کالو عمر پورې د وقوف زمانه وي. دغې عمر ځخه ئې په استوى لفظ سره تعبير اوکړو، د څلويښتو کالو د عمر ځخه روستو بيا کمزوري کيدل شروع شي. دې ځخه معلوم شو چې د عمر اشد د درې ديرشو کالو عمر ځخه تر څلويښتو کالو پورې جاري وي. [روح وقرطبي] (۱)

﴿آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا﴾ حکم ځخه مراد نبوت او رسالت دې او د علم ځخه مراد د الله جل جلاله د شرعي حکمونو علم دې.

﴿وَدَخَلَ الْمَدِينَةَ عَلَىٰ حِينِ غَفْلَةٍ مِّنْ أَهْلِهَا﴾ دلته د المدينة ځخه مراد د اکثرو مفسرينو په نزد د مصر ښار دې، په دې کښې د داخليدو د لفظ ځخه معلوم شو چې موسى عليه السلام د مصر ځخه چرته بهر وتلې وو. بيا يو ورځ په ښار کښې په داسې وخت کښې داخل شو چې د عامو خلقو د غفلت وخت وو. مخکښې د قبطي د قتل په قصه کښې ددې هم ذکر دې چې دا هغه زمانه وه چې موسى عليه السلام کله خپل پيغمبري ښکاره کول شروع کړې وو هم د هغې په نتيجه کښې خلق، د هغوئ تابعدار شوي وو. ځنګه چې د ﴿مِن شِيعَتِهِ﴾ لفظ په دې ګواه دې. ددې ټولو قرينو ځخه د هغه روايت تاکيد کيږي چې د ابن اسحاق رحمه الله او ابن زيد رحمه الله ځخه داسې منقول دې چې کله موسى عليه السلام ستريعنى لوې شو او د حق دين ځه خبر ئې خلقو ته کول شروع کړل نو فرعون د موسى عليه السلام مخالف شو او د موسى عليه السلام د وژلو اراده ئې اوکړه، خو د فرعون د بي بي آسيه په خواست د هغوئ د قتل اراده ئې پريخودله. البته دا حکم ئې جاري کړو چې د ښار ځخه ئې بهر اوباسئ. دې ځخه پس به موسى عليه السلام د ښار ځخه بهر اوسيدو او کله به په پټه د مصر ښار ته راتلو.

﴿عَلَىٰ حِينِ غَفْلَةٍ مِّنْ أَهْلِهَا﴾ ځخه مراد د اکثرو مفسرينو په نزد د غرمې وخت دې چې خلق به په کښې اوده کيدل [قرطبي] (۲).

﴿فَوَكَزَهُ مُوسَىٰ﴾ وکزه سوک وهلو ته وئيلې شي.

﴿فَقَضَىٰ عَلَيْهِ﴾ قضاه او قضى عليه محاوره هغه وخت وئيلې شي چې د چا کار بالکل ختم کړې شي. او فارغ شي ځکه دلته ددې معنى وژل دي [مظهري] (۳).

﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي فَاغْفِرْ لِي فَغَفَرَ لَهُ﴾ ددې آيت مبارک حاصل دا دې چې د قبطي کافر وژل

---

(۱) روح المعاني [ج: ۱۵ ص: ۸۹] و تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۵۸]
(۲) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲٦۰]
(۳) تفسير المظهري [ج:۷ص:۱۵۲]

موسی ﷺ نه بې د قصد نه شوی وو خو موسی ﷺ دا هم خپلې مرتبې دنبوت او د پیغمبرئ د لوئي شان په لحاظ سره د شیطان عمل اوخپله گناه اوبلله او الله ﷻ څخه ئې دهغې معافي اوغوښتله چې الله ﷻ معاف کړه دلته اول سوا خو پیدا کیږئ چې دا قبطي خو حربي کافر وو او قصداً وژل ئې هم مباح وو ځکه چې دا د یو اسلامي حکومت ذمي نه وو ، اونه موسی ﷺ سره ددې څه معاهده وه. او بیا چې په مسلمان ئې زیاتې کولو اودهغه خلاصول ترې ضروري او د اجر باعث وو.

ددې جواب دادې چې معاهدې یا خو قولي او تحریري وی څنگه چې عموما اسلامي حکومتونو کښې ذمیانو سره کولې شي یا دصلح معاهده چې غیرمسلم حکومتونو سره کولې شي اودا معاهده په اتفاق سره واجب العمل او خلاف ورزی کول ئې تکی او د عهد ماتولو په وجه حرامه ده. دغه شان عملي معاهده هم یو قسم معاهده وی چې پابندی کول ئې لازمي او خلاف ورزی کول ئې گویا عهد ماتول دی.

د عملي معاهدې صورت دادې چې چرته مسلمانان او غیر مسلم خلق د یو بل چا په حکومت کښې یو بل سره په امن او آرام اوسیږی ، یوبل باندې حمله کول یا لوټ مار کول ئې غداری بولی ، نو داسې زیست روزگار اومعاملې کول هم یو قسم عملي معاهدې وی چې خلاف ورزی کول ئې روانه دی ، ددې دلیل د مغیره بن شعبه رضي الله عنه هغه اورد حدیث پاك دې چې امام بخاری رحمه الله په کتاب الشروط کښې په تفصیل سره روایت کړې دې ، دهغې واقعه دا وه چې مغیره بن شعبه رضي الله عنه د اسلام راوړلو څخه مخکښې دجاهلیت په خپله زمانه کښې د کافرانو د یوې ډلې سره یو ځائې ژوند تیرولو کولو بیا یې هغوئ اووژل ، او دهغوئ په مالونو ئې قبضه اوکړه. او د نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او اسلام یې قبول کړو او دهغوئ نه اخستې مال ئې د نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې پیش کړو. نبی اکرم ﷺ ورته اوفرمائیل چې ﴿اما الاسلام فاقبل واما المال فلست منه فی شیء﴾ اود ابی داؤد په روایت کښې د هغې الفاظ دادی چې : ﴿اما المال فمال غدر لاحاجة لنا فیه﴾ [ یعنی ستا اسلام راوړل قبلوؤ خو په تکئ او په عهدشکنئ سره حاصل کړې شوې دې مال دې نشي قبلولې][1]

دبخاری شارح ابن حجر عسقلاني رحمه الله لیکي چې دې حدیث پاك څخه دا مسئله ثابتیږی چې د امن په حالت کښې د کافرانو مال لوټ کول حلال نه دی ولې چې دیوې آبادئ استوگن یا یو ځائې کار کوونکی خلق ، پخپل مینځ کښې یو بل څخه ځان په امن گڼری د دوئ دا عملي معاهده هم یو امانت دې چې د امانت خاوند ته ئې واپس کول فرض دی. که هغه مسلمان وی او که کافر وی. دکافرو مال د جنگ په صورت کښې یا دغلبې کولو په صورت کښې حلالیږی البته د امن په صورت کښې چې یو کس د بل نه خپل ځان په امن کښې گڼری نو هیڅ کله نه حلالیږی[2].

امام قسطلاني رحمه الله د بخاری په شرح کښې لیکلی چې :

﴿ان اموال المشرکین ان کانت مغنومة عند القهر فلا یحل اخذها عند الامن فاذا کان الانسان

[1]) صحیح البخاري کتاب الشروط ،باب الشروط في الجهاد [ج:۱ص:۳۷۹]

[2]) فتح الباري کتاب الشروط ،باب الشروط في الجهاد [ج:۸ ص:۲۸۳]

مصاحبا لهم فقد امن كل واحد منهم صاحبه فسفك الدماء واخذ المال مع ذلك غدر حرام الا ان ينبذ اليهم عهدهم على سوآء﴾

[بیشکه د مشرکانو مالونه دجنګ او جهاد په موقعه غنیمت او مباح دي خو د امن په حالت کښې نه حلالیږي ، په دې وجه کوم مسلمان چې کافرو سره یو ځائې اوسیږي په عملی ډول یو بل نه په امن وي نو په داسې حالت کښې د یو کافر وژل یا په زور ترې مال اخستل دهوکه کول دي او حرام دي تر څو چې د دغه عملي معاهدې نه دلاس اخستلو په څرګنده اعلان اونه کړي].

خلاصه دا ده چې هر کله قبطي سره د موسی علیه السلام عملي معاهده ده نو دده په قصد سره وژل جائز نه وو ، موسی علیه السلام دده د وژلو اراده نه وه کړې بلکه مطلب دا وو چې اسرائیلي لره د دهٔ د زور زیاتئ نه خلاص کړي ولې چې عام طور انسان صرف د لاس په یو ګذار او سوک وغیره نه مري ، کله چې قبطي مړ شو نو هغوئ علیه السلام خفه شو چې دا ماسره مناسب نه وو ، پکار دا وو چې هغه مې ترې ددې نه په نرمه طریقه خلاص کړې وې ، ځکه ئې ورته د شیطان کار اووئیلو او الله ﷻ نه ئې ددې بخښنه او غوښتنه .

**فائده** :: دا تحقیق د حکیم الامة سیدي مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله قدس سره دهغه موقعې دې چې دسورۂ قصص احکام القرآن ئې په عربي ژبه کښې لیکلو ، دا د هغوئ رحمه الله آخري علمي تحقیق دې چې احقر ترې هم ددې استفاده اوکړه ، ولې چې هغوئ دا ارشاد په دویم رجب کال ۱۳۶۲ هجرئ کښې فرمائیلي وو او دې نه پس ئې بیمارتیا نوره ه زیاته شوه ، او په شپاړسم رجب باندې د عالم دغه نمر ډوب شو ، ﴿اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَیْهِ رٰجِعُوْنَ﴾ .

اوځینې مفسرینو لیکلي دي چې اګر که د قبطي وژل مباح وو خو پیغمبران ﷺ په مباحو هغه ځیزونو کښې چې مهم وي تر هغې پورې څه اقدام نه کوي چې په خصوصي شان ورته د الله ﷻ د طرفه اجازت یا څه اشاره ورنکړې شي ، په دغې موقعه چونکه هغوئ علیه السلام د الله ﷻ د خصوصي اجازت د انتظار کولو نه بغیر قدم پورته کړي وو ځکه د خپل شان په جوړ یې ورته ګناه اوفرمائیله او د هغې بخښنه ئې اوغوښتله [کذا في الروح وله وجه] (۱).

﴿قَالَ رَبِّ بِمَآ اَنْعَمْتَ عَلَیَّ فَلَنْ اَكُوْنَ ظَهِیْرًا لِّلْمُجْرِمِیْنَ﴾ کله چې الله ﷻ د موسی علیه السلام دغه لغزش معاف کړو نو هغوئ علیه السلام د دغې نعمت په شکر کښې دا عرض اوکړو چې زه به بیا چرې هم دچا مجرم مدد اونه کړم. دې نه معلومیږي چې موسی علیه السلام د کوم اسرائیلي د مدد دپاره دغه کار کړې وو . د بلې واقعې نه ثابت شو چې هغه پخپله جګړمار وو او جګړې کول ئې عادت وو ځکه ئې ورته مجرم اوفرمائیلو او په آئینده کښې ئې د دغسې کس د مدد نه کولو لوظ اوکړو ، دلته ابن عباس رضي الله عنهما د مجرمین تفسیر په کافرین سره کړې دې ځنګه چې قتاده رحمه الله نه هم دغسې تفسیر منقول دې ، ددې تفسیر په بنا واقعه دا معلومیږي چې دغه اسرائیلي هم مسلمان وو د کوم مدد چې موسی کړې وو دهغه مدد ئې صرف د مظلوم په حیثیت کړې وو بنا په دې د هغوئ علیه السلام ددې ارشاد نه دوه مسئلې ثابتیږي .

**مسئله نمبر۱** :: د مظلوم مدد کول پکار دي اګر چې هغه فاسق یا کافر وي.

**مسئله نمبر۲** :: یو مجرم مدد کول جائز نه دي ، د علماء کرامو ددې آیت مبارک نه په دلیل نیولو

(۱) روح المعاني [ج: ۱۵ ص:۹۴]

سره فرمائيلي دی چې د ظالمانو حاکمانو ملازمت کول ناجائز دی ځکه چې دې سره هم ورسره په ظلم کولو کښې شريک شمارل کيږی او په دې بنا باندې د پخوانو بزرګانو نه ګڼړ روايتونه نقل کړې دی [روح المعانی] (١).

دکافرانو يا ظالمانو د لاس او مدد کولو مختلف صورتونه دی او ددې احکام د فقهې په کتابونو کښې په تفصيل سره بيان شوی دی ، احقر په احکام القرآن کښې په عربی ژبۀ ددې آيت د لاندې ددې مسئلې پوره تحقيق ليکلې دې ، اهل علم ئې کتلې شی

وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ قَالَ عَسٰى رَبِّيْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِيْ

اوهر کله چی توجه اوکړه [روان شو] هغه طرف د مدين ته | نو وې ونيل | اميد دې رب زما | چی اوبه ښائی ماته

او څۀ وخت چې موسی ﷺ د مدين طرف ته روان شو | ......نو وې وئيل | اميد دې چې زما رب به راته

سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿٢٢﴾ وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ

نيغه لار | او هر کله چی | اورسيدو | اوبو [کوهی] دمدين ته | نو وې مونده |

نيغه لار اوښائی | .........اوکله چې د مدين اوبو [دکوهی غاړې] ته اورسيدو | نو هلته ئې

عَلَيْهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ ۫ۖ وَوَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ

په هغې باندې | يوه ډله | دخلقو نه | چی اوبه کول ئې څاروی | اووې ليدلې | په ډډه دهغوئ نه

د خلقو يوه ډله بيامونده چې [څاروی] څړوبوی | اود هغوئ نه ئې يوې ډډې ته ئې دوه

امْرَاَتَيْنِ تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ۭ

دوه ښځې | چی رامنع کولې به ئې [ګډې خپلې ] | اووئيل موسی | څه دې حال [کار] ستاسو |

ښځې اوليدې چې ][خپلې ګډې ئې] منع کړې ولاړې وې | موسی ﷺ اووئيل چې تاسو څه غواړئی

قَالَتَا لَا نَسْقِيْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ ۫

اووئيل هغوئ دواړو | چی اوبۀ نۀ ورکوؤ مونږ | تر هغې پورې | چی اوباسی څاروی | دا شپانۀ

هغوئ اووئيل چې مونږ ترهغه وخته [خپلو ګډو ته] اوبه نه ورکوو ترڅو چې ګډبانه [خپل کنډکونه] اوبه ورنکړی

وَاَبُوْنَا شَيْخٌ كَبِيْرٌ ﴿٢٣﴾ فَسَقٰى لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰٓى

او پلار زمونږ | بوډا دې ډير | نو اوبۀ ئې کړل څاروی | دهغوئ دواړو | بيا | واپس لاړو

اوزمونږ پلار ډير بوډا دې انوموسی ﷺ د هغوئ دپاره [په ګډو] اوبۀ اوڅکولې | بيا يو اړخ ته

اِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ اِنِّيْ لِمَآ اَنْزَلْتَ اِلَيَّ

سوری ته | پس وې ونيل | اے ربه زما | بيشکه زۀ | هر هغه څيز ته | چی نازل ئې کړې تۀ ماته

په سوری کښې کيناستو | نودعائې اوکړه چې اې زما ربه اچې څه نعمت دې راوليږلو نو

---

(١) روح المعاني [ج: ١٥ ص:٩٦]

مِنْ خَيْرٍ فَقِيْرٌ ﴿٢٤﴾ فَجَآءَتْهُ إِحْدٰىهُمَا تَمْشِيْ عَلَى اسْتِحْيَآءٍ

دخير نه | محتاج يم | پس راغله هغه ته | يوه ښځه ددواړو نه | چې تله | په حياء سره

زۀ ورته ډير محتاج يم | بيا دې دوؤ جينکو کښې يوه ورته [واپس] راغله | چې په حيا سره رارowانه وه

قَالَتْ إِنَّ أَبِيْ يَدْعُوْكَ لِيَجْزِيَكَ أَجْرَ مَا

اووئيل هغې | بيشکه پلار زما | غواړي تالره | دپاره ددې چې درکړي تاته | مزدوري | دهغې

هغې اووئيل چې زما پلار تا غواړي | ............چې تاته زمونږ په دې کنډک باندې داوبو

سَقَيْتَ لَنَا ۚ فَلَمَّا جَآءَهٗ وَقَصَّ عَلَيْهِ

چې اوبۀ کړل څاروی تا | مونږ لره | پس هر کله چې | راغلو موسی هغه ته | او بيان ئې کړه | هغه ته

ښنولو بدله درکړي | نوڅه وخت چې هغه شعيب عليه السلام ته ورغلو | او هغه ته ئې خپله قصه بيان

الْقَصَصَ ۙ قَالَ لَا تَخَفْ ۫ نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢٥﴾

قيصه [خپله] | اووئيل هغه | مه يريږه | خلاص شوې ته | دقوم ظالم نه |

کړه | ............نو هغه [شعيب] ورته اووئيل چې مه ويريږه | تا دظالمانو نه خلاصي بيامونډلو

قَالَتْ إِحْدٰىهُمَا يٰٓاَبَتِ اسْتَأْجِرْهُ ۫ إِنَّ خَيْرَ

اووئيل | يوې ښځې ددواړو نه | اے پلاره | مزدور اونيسه دۀ لره | بيشکه غوره

په دې جينکو کښې يوې اووئيل چې ائې زما بابا جانه! | دې په مزدورۍ سره اونيسه | ځکه

مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِيْنُ ﴿٢٦﴾ قَالَ

دهغه چاچې ته ئې مزدور کوې | هغه څوک دې چې قوي وي | امانتدار وي | اووئيل پلار دهغې

چې ښه مزدور کار هغه دې چې قوي او امانتدار وي! | ............هغه ورته اووئيل چې

إِنِّيْٓ أُرِيْدُ أَنْ أُنْكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هٰتَيْنِ

بيشکه زۀ غواړم | چې په نکاح درکړم تاله | يوه | ددې دواړو لونړو نه | په دې شرط

زۀ دا غواړم چې په خپلو دوؤ لونړو کښې ديوې تاسره نکاح اوکړم | خو په دې شرط

عَلٰٓى أَنْ تَأْجُرَنِيْ ثَمٰنِيَ حِجَجٍ ۚ فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا

چې تۀ به مزدوري کوې زما سره | اتۀ | کاله | پس که پوره کړل تا | لس کاله

چې تۀ به | تۀ کاله ما سره مزدوري کوې | او که چرې تا لس کاله پوره کړل

فَمِنْ عِنْدِكَ ۚ وَمَآ أُرِيْدُ أَنْ أَشُقَّ عَلَيْكَ ۗ

نو هغه به دطرفه ستا نه وي | او نۀ غواړم زۀ | چې سختي اوکړم زۀ | په تا باندې |

نو دا بۀ ستا دطرفه احسان وي | او زۀ تا په مشقت کښې د اچولو څۀ اراده نه لرم | چې سخت کارونه در باندې کوم |

سَتَجِدُنِيْٓ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٢٧﴾ قَالَ ذٰلِكَ

زر ده چې تۀ به بيا مومې ما لره | که اوغواړي الله | دصالحانو نه | اووئيل موسی | چې همدا

تۀ به انشاء الله ما په معامله کښې ډير ښه بيامومې | موسی عليه السلام اووئيل چې دا خبره زما

بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ ط اَيَّمَا الْاَجَلَيْنِ قَضَيْتُ

وعده شوه په منځ زما | او په منځ ستا کښې | هره یوه د دې دواړو نیتو | چې پوره کړه ما |

او ستا په مینځ کښې فیصله شوه | په دواړو کښې هره یوه نیته چې زه پوره کړم

فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ ط وَاللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ ﴿۲۸﴾ ع

نونه به وی زیاتې | په ما باندې | او الله | په هغه خبرو | چې وایو ئې مونږ | ساتونکې نګهبان دې

نو په ما به څه زور نه وی | ..........او څه چې مونږ وایو الله ﷻ په هغې باندې ګواه دې .

## آسان ترجمه قرآن

اوچه کله هغوی علیه السلام د مدین په طرف روان شو نو وې وئیل چه: زما پوره امید دې چه زما رب به ما په نیغه لاره باندې روان کړی او کله چه هغه د مدین کوهی ته اورسیدو نو وې کتل چه په هغې باندې د داسې خلقو یو مجمع ده چه خپلو څاروو ته اوبه ورکوی، او وې کتل چه د هغوی نه مخکښې دوه زنانه دی چه خپل څاروی ئې منع کړی ولاړې دی موسٰی علیه السلام هغوی ته اووئیل: تاسو څه غواړئ؟ هغوی دواړو اووئیل: مونږ خپلو څاروو ته تر هغه وخته پورې اوبه نه شو ورکولې ترڅوچه ټول شپونکی اوبه ورکولو سره لاړ نه شی، او زمونږ پلار ډیر بوډا سړې دې په دې باندې موسٰی علیه السلام د هغوی څاروو ته اوبه ورکړې بیا واپس د یو سوری ځائې ته لاړو، او وې وئیل: اې زما ربه! څه خیر چه ته په ما باندې نازل کړې، زه هغې ته محتاج یم. لږ ساعت پس په هغې دواړو کښې یوه زنانه هغوی ته په شرم او حیاء سره راغله، وې وئیل: زما پلار صاحب تاسو غواړی، چه تاسو ته د دې خبرې انعام درکړی چه تاسو زمونږ څاروو ته اوبه ورکړې دی. پس چه کله هغوی د هغه زنانو پلار صاحب ته راغلو او هغوی ته ئې ټوله قصه بیان کړه، نو هغوی اووئیل: هیڅ ویره مه کوه! ته د ظالمانو خلقو نه خلاص شوې ئې په دې دواړو کښې یوې زنانه اووئیل: بابا جانه! تاسو دوی ته په اُجرت باندې څۀ کار ورکړئ. تاسو چه د چا نه په اجرت باندې کار اخلئ نو د هغې دپاره بهترین سړې هغه دې چه طاقتور هم وی. امانت دار هم د هغوی پلار صاحب اووئیل زه غواړم چه په دې دواړو جینکو کښې د یوې سره ستا نکاح اوکړم. په دې شرط چه ته ما سره په اجرت باندې اته کاله کار اوکړې بیا که ته لس کاله پوره کړې نو دا ستا خپله فیصله ده. او زما هیڅ اراده نشته چه په تا باندې څه مشقت واچوم. ان شاء الله ته به ما د هغه خلقو نه بیا مومې چه د نیکۍ معامله کوی. موسٰی علیه السلام اووئیل: دا خبره زما او ستاسو ترمینځه مقرر شوه. په دواړو مودو کښې چه کومه هم زه پوره کړم، نو په ما باندې به هیڅ زیاتې نه وی. او کومه خبره چه مونږ کوو، الله پاک د هغې ساتونکې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَمَّا﴾ [ اوکله چه موسی] ﷺ دادعا وکړه نو د الله تعالی په توکل یو طرف ته روان شو او په غیبی تائید سره ﴿تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ﴾ [ مدین طرف ته ئې مخ شو] چونکه لار ورته معلومه نه وه په دې وجه زړه قوی کولو او توکل او نفس له دتسکین ورکولو دپاره ئې دخان سره ﴿قَالَ عَسٰى رَبِّيْٓ﴾ [اووئیل امید دې چه زما رب ما لره ] دامن دیو مقام ﴿اَنْ يَّهْدِيَنِيْ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿۲۲﴾﴾ [ په نیغه

لاره روان کړی] نوهم داسې وشوه اومدین ته ورسیدو ﴿وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدۡيَنَ﴾[او هرکله چه دمدین اوبو] یعنی کوهی [ته ورسیدو ﴿وَجَدَ عَلَيۡهِ أُمَّةٗ مِّنَ ٱلنَّاسِ﴾نو په دې باندې د] مختلفو[ خلقو یوه ګنړه ولیده کومو چه] دکوهی نه اوبه راویستلې ﴿يَسۡقُونَ﴾[ خپلو څاروو باندې اوبه اوڅاڅکویې] ﴿وَوَجَدَ مِن دُونِهِمُ ٱمۡرَأَتَيۡنِ﴾ او ددغوخلقو نه یوطرف ته] جدا [دوه ښځې یې ولیدې ﴿تَذُودَانِۖ﴾ چه هغوی] خپلې بیزې [ منع کړی دی﴿قَالَ﴾ موسی] ﷺ دهغوی نه [ تپوس وکړو﴿مَا خَطۡبُكُمَاۖ﴾ چه ستاسو څه مطلب دې؟ ﴿قَالَتَا لَا نَسۡقِي﴾هغو دواړو ووئیل چه] زمونږ معمول دادې چه [ مونږ] خپلو څاروو له [ترهغه وخته پورې اوبه نه ورکوو﴿حَتَّىٰ يُصۡدِرَ ٱلرِّعَآءُۖ﴾ ترڅو چه داد شپونکی] کوم چه د کوهی نه څاروؤ ته اوبه ورکوی [اوبه ورکړی ] څاروو لره [بوځي] یو خو دحیاء په سبب دویم دسړو په تیل کښې ورتلل دکمزورو نه چرته کیدې شی [ او] په دې حالت کښې به مونږ راتلو هم نه مګر ﴿وَأَبُونَا شَيۡخٞ كَبِيرٞ﴾[زمونږ پلاریدډیر بوډا دې ] او په کور کښې بل څوك کار کوونکې نشته اوکار ضروری دې دې مجبورئ په وجه مونږ راځو[ پس] چه دائې واوریدل نو﴿فَسَقَىٰ لَهُمَا﴾[ موسی] ﷺ ته پرې رحم راغې او هغه [ ددوی دپاره اوبه ] راوویستلې په څاروو یې [وڅښولې] او هغوی لره یې دانتظار او اوبو راوستلو دتکلیف نه بچ کړې ﴿ثُمَّ تَوَلَّىٰٓ إِلَى ٱلظِّلِّ﴾ [بیا] دهغه ځائ نه [بیرته شو په ] یو [یوسوری] ځائ [کښې کښیناستلو] خواه دیوغر سورې وو یا دیوې اونې ﴿فَقَالَ رَبِّ﴾ [بیائ ] په دربار دباری تعالی کښې دعا [ وکړه چه اے زما پروردګاره] دا وخت ﴿إِنِّي لِمَآ أَنزَلۡتَ إِلَيَّ مِنۡ خَيۡرٖ فَقِيرٞ﴾ [چه کوم نعمت هم] لږ یاډیر[ ته ماته راولیږې زۀ دهغې] سخت [حاجتمند یم] ځکه چه په دې سفر کښې ورته څه خوراك څښاك نه وو ملاؤ شوې الله تعالی ددې دا انتظام وکړو چه دغه دواړه بیبیانې خپل کور ته واپس شوې نو پلارترې نه ژر واپس کیدو دوجهې تپوس وکړو هغوی دموسی ﷺ پوره قصه بیان کړه نو پلار یئ یوه جینئ ولیږله چه لاړه شه هغه راوله ﴿فَجَآءَتۡهُ إِحۡدَىٰهُمَا تَمۡشِي عَلَى ٱسۡتِحۡيَآءٖ﴾ نو [موسی] ﷺ [ ته یوه جینئ راغله چه شرمیدونکې راتله] کوم چه دشریفو خلقو طبعی حالت دې او راغله ﴿قَالَتۡ إِنَّ أَبِي يَدۡعُوكَ﴾[ وئ ونیل چه زما پلار تاسولره بلی﴿لِيَجۡزِيَكَ أَجۡرَ مَا سَقَيۡتَ لَنَاۚ﴾ چه تاسولره دهغې بدله درکړی کوم چه تاسو زمونږ په خاطر] زمونږ څارووته [اوبه ورکړې وې] دا به دې صاحبزادګئ ته دخپل پلار دعادت نه معلومه شوی وی چه داحسان بدلې به یئ ورکولې موسی ﷺ ورسره روان شو اګر چه مقصود دموسی ﷺ په یقین سره دخپل خدمت معاوضه اخستل نه وو مګر دامن دځائ اودیومشفق ملګری دوخت دضرورت مطابق خامخا لټوونکې وو اوکه دلوږې سخت والې هم ددې تلو یو علت وی نو هم باك نشته او داجرت سره ددې څه تعلق نشته او دمیلمستیا دعوت هم خاصکر د حاجت په وخت کښې او خاصکر دکریم او شریف سړی نه څه ذلت نه دې بیا دبل په بلنه باندې میلمستیا کښې به څه باك وی په لاره موسی ﷺ دې بی بی ته وفرمائیل چه ته زمانه وروستو شه زۀ دحضرت ابراهیم ﷺ د اولاد نه یم پردئ ښځه بې وجهې قصدا لیدل هم نه خوښوم غرض دغه شان دغې بزرګ ته ورسیدل ﴿فَلَمَّا جَآءَهُۥ وَقَصَّ عَلَيۡهِ ٱلۡقَصَصَ﴾[پس هرکله چه هغه ته ورسیدل اوټول حال یئ ورته بیان کړونو هغوی] تسلی ورکړه او﴿قَالَ لَا تَخَفۡۖ﴾[ وئ ونیل چه] اوس [فکر مه کوه﴿نَجَوۡتَ مِنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ ته دظالمانو نه بچ شوې] ځکه چه دلته دفرعون حکم نه چلیږی

[كذا في الروح] ﴿قَالَتْ إِحْدٰىهُمَا يٰٓأَبَتِ﴾ [يوې جينئ ووئيل چه اباجان] تاته دسړي ضرورت دې او مونږ اوس لوئ شوي يو اوس په كوركښې مونږ له پاتې كيدل مناسب دى نو ﴿اسْتَأْجِرْهُ إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِيْنُ﴾ [ته دهٔ لره نوكر كړه ځكه چه ښه نوكر هغه سړې دې كوم چه مضبوط] وى او [امانتدار] هم [وى] او په دهٔ كښې دواړه صفتونه دى چنانچه قوت ئې دابو راويستلو نه او امانت ئې دسلوك نه خاصكر په لاره كښې دښځې د ورستوكولو نه ظاهريدو او خپل پلار ته ئې هم بيان كړې وو په دې باندې ﴿قَالَ إِنِّيْٓ أُرِيْدُ أَنْ أُنْكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هٰتَيْنِ﴾ [هغه ] بزرګ موسى ﷺ ته [ ووئيل زهٔ غواړم چه په دې دواړوجينكو كښې يوه تاته وادهٔ كړم ﴿عَلٰٓى أَنْ تَأْجُرَنِيْ ثَمٰنِيَ حِجَجٍ﴾ په دې شرط چه ته اته كاله زما نوكرى وكړې] او ددې نوكرئ بدله دغه نكاح ده مطلب دادې چه داتو كالو خدمت ددې نكاح مهر دې ﴿فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا فَمِنْ عِنْدِكَ﴾ [بيا كه تالس كاله پوره كړل نو داستا دطرف نه ] احسان [دې] يعنى زما دطرف نه زور نه دې ﴿وَمَآ أُرِيْدُ أَنْ أَشُقَّ عَلَيْكَ﴾ [اوزهٔ ] په دې معامله كښې [ په تاځه مشقت غورزول نه غواړم ] يعنى په كاراخستو او دوخت دپابندئ وغيره په معامله كښې به آسانى كوم او ﴿سَتَجِدُنِيْٓ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ﴾ [ ته به مالره انشاء الله چه ښه معامله كوونكې بيامومې موسى ﷺ] رضامندشو او ﴿قَالَ﴾ [ ووئيل چه] بس خو ﴿ذٰلِكَ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ﴾ [داخبره زما او ستاپه مينځ كښې ] پخه [وشوه ﴿أَيَّمَا الْأَجَلَيْنِ قَضَيْتُ فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ﴾ زهٔ په دې دواړو مودو كښې چه كومې مودې [ لره هم پوره كړم په مابه څه زور نه وى ﴿وَاللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ﴾ اومونږ چه] دمعاملې [كومه خبره اتره كوو الله تعالى ددې ] كافى [ ګواه دې ] هغه لره حاضر ناظر ګڼړل عهدپوره كول پكار دى.

## معارف او مسائل

﴿وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ﴾ مدين په شام ملک كښې د يو ښار نوم دې چې مدين بن ابراهيم ته منسوب دې ، دا علاقه د فرعونى حكومت نه بهروه ، د مصر او مدين ترمينځه اته منزله پراؤ وو ، كله چې موسى ﷺ ته دا ويره پيدا شوه چې د فرعون سپاهيان به مې ګرفتارولو پسې دى نو مصر نه ئې د هجرت كولو اراده اوكړه ، داسې قسم طبعى ويره پيغمبرئى او معرفت سره بې سمونه نه وه . شايد مدين ته ئې مخه ځكه اوكړه چې دغه ښار هم د ابراهيم ﷺ د اولاد آبادى وه او موسى ﷺ هم د هغوئ اولاد كښې وو.

دغه وخت موسى ﷺ داسې د بې انتظامئ په حالت كښې اووتلو چې څه خرچ ، خوراک او سامان ورسره نه وو. اونه ورته لار معلومه وه ، دپريشانئ په دغې حالت كښې ئې الله ﷻ ته مخه يعنى توجه اوكړه او وې فرمائيل چې :

﴿عَسٰى رَبِّيْٓ أَنْ يَّهْدِيَنِيْ سَوَآءَ السَّبِيْلِ﴾ [يعنى اميد دې چې زمارب به راته سمه لار اوښائى] الله ﷻ دا دعا قبوله كړه ، د مفسرينو بيان دې چې په دې سفر كښې د موسى ﷺ خوراكه د ونو پاڼړې وې ، ابن عباس ﷛ اوفرمائيل چې دا د موسى ﷺ د ټولو نه رومبې امتحان آزمېښت وو. دموسى ﷺ امتحان او آزمېښتونه په تفصيل سره د سورة طه په تفسر كښې د يو اوږد حديث پاک په حواله بيان شوى دى.

﴿وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ أُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ﴾ د ﴿مَآءَ مَدْيَنَ﴾ نه مراد هغه كوهې دې چې ددغې

خاني خلقو به تري نه خپلو ځاروؤ له اوبه ورکولې.
﴿وَوَجَدَ مِن دُونِهِمُ امْرَأَتَيْنِ تَذُودَانِ﴾ [ دوه زنانه ئي داسې اوليدلې چې خپلې چيلئ ئي اوبو ته د ورتلو نه راايسارولې چې پردو چيلو سره يوځائې نه شي]
﴿قَالَ مَا خَطْبُكُمَا قَالَتَا لَا نَسْقِي حَتَّىٰ يُصْدِرَ الرِّعَاءُ وَأَبُونَا شَيْخٌ كَبِيرٌ﴾ خطب ، لفظ د شان اود حال معنى ورکوی ، کله چې د ا مهم کار وی ، مطلب دا شو چې موسی ﷺ دغې دوارو بيبيانو نه دحال تپوس اوکړو چې خپلې چيلئ مو ولې راايسارې کړې دی ، او لکه د نورو خلقو ورته په کوهی اوبه ولې نه ورکوئی ؟ هغوئ جواب ورکړو چې مونږ دخپل عادت مطابق پردو نارينو سره ګډون نه ځان ساتلو دپاره خپلو ځاروؤ ته تر هغه پورې اوبه نه ورکوؤ تر څو چې دا خلق په کوهی باندې وی کله چې دوئ د کوهی نه رخصت شی. هله مونږ خپلوچيلو ته اوبه ورکووؤ و دلته چې کوم سوال راپورته کيدو چې ستاسو څوک نارينه نشته چې چيلو ته اوبه ورکوی؟ چې دې کار دپاره يې زنانه راويستی دی. نو ددې جواب هم هغوئ دا ورکړو چې زمونږ والد صاحب کور کښې شته خو هغه د ډير عمر کمزورې دې څکه زمونږ مجبوری ده.
ددې واقعې نه څو فوائد راوځی:
① کمزورو سره لاس مدد کول د پيغبرانو ﷺ سنت دی کله چې موسی ﷺ دغه دوه بيبيانې دمجبورئی په حالت کښې يو طرفته ناستې وی نو د حال تپوس ئې ترې او کړو.
② پردئ زنانه سره خبرې کول څه بديت نه لری خو چې د فتنې څه انديښنه نه وی.
③ اګر چې په دغه زمانه کښې په زناناؤ باندې پرده کول لازم نه وو څکه چې د اطريقه د اسلام تر شروع پورې جاری وه . د پردې احکام مدينې منورې ته د هجرت نه پس نازل شوی دی ، خو بيا هم دغه زمانه کښې دپردې اصل مقصد د زناناؤ په طبيعت کښې دشرافت او حيا په شان کښې موجود وو چې سره د ضرروت ئې هم نارينه‌ؤ سره د ګډون نه ځان ساتلو او تکليف ته ئې غاړه ايښې وه .
④ په دغې وخت کښې هم زناناؤ سره داسې کارونو دپاره بهر وتل نشو خوښيدلې څکه دغې بيبيانو دخپل والدمحترم ﷺ د معذورئی عذر بيان کړو .
﴿فَسَقَىٰ لَهُمَا﴾ دموسی په دغې بيبيانو باندې رحم راغلو څکه ئي کوهی نه اوبه راوښکلې او دهغوئ ځاروی ئې اوبه کړل ، په څينو رواياتو کښې راغلی دی چې نارينه‌ؤ بڼ کله خپلو ځاروؤ ته اوبه ورکړې نو بيا بڼ ئې په کوهی يو غټ کاڼړئی کيخودو لسو کسانو به هغې نه پورته کولې شو. دغې بيبيانو به په پاتې اوبو خپل ځاروی اوبه کړل خو په دغه موقعه موسی ﷺ په يوازې ځان هغه کاڼړئی لرې کړو او کوهی نه ئې نورې اوبه راوښکلې اودهغوئ چيلو ته ئې ورکړې ، شائد په دغې ليدو يو بی بی خپل باباجی ﷺ ته وئيلی وو چې دا ځوان قوی او تندرست هم دې [قرطبی] ([1])
﴿ثُمَّ تَوَلَّىٰ إِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ إِنِّي لِمَا أَنزَلْتَ إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيرٌ﴾ موسی ﷺ د اوؤ ورځو راسې هيڅ خوراک نه وو کړې. دغه وخت د ونې سيوری ته په راتلو ئې په يوه لطيفه طريقه خپل حاجت پيش کړو ، او دعا ئې اوکړه ، خير کله د مال معنى ورکوی لکه قرآن عظيم الشان فرمائی چې : ﴿إِن تَرَكَ

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۳ص:۲۶۹]

﴿خَيْرًا ۖ الْوَصِيَّةُ﴾(١) کله د قوت معنى ورکوی ، لکه قرآن عظیم الشان فرمائی چې :﴿أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ﴾(٢) او کله د خوراک معنى ورکوی لکه دلته چې مراد دی [قرطبی](٣)

﴿فَجَاءَتْهُ إِحْدَاهُمَا تَمْشِي عَلَى اسْتِحْيَاءٍ﴾ د قرآنی طرز په مطابق دلته قیصه مختصر کړې شوې ده ، پوره واقعه داسې اوشوه چې دغه بیبیانې د خپل مقرر وخت نه مخکښې کور ته اورسیدې نو باباجی ﷺ ترې ددې تپوس اوکړو ، هغوئ ورته ټوله قیصه بیان کړه . باباجی ﷺ ئې اراده اوکړه چې دغه محسن ته څه اجر ورکړی . څکه ئې د رابللو دپاره ورپسې یوه بی بی اولیږله. دا په حیاناک انداز کښې ورته راغله ، په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې اګر که دغه وخت زنانئو دپاره دپردې احکام نه وو نازل شوی خو بیا به هم نیکو او شریفانو بیبیانو په بیباکئ سره پردو سړو سره ګډون او خبرې نه کولې ، څینې مفسرینو د هغې د حیا کولو صورت دابیان کړېدې چې خپل لستونړې ئې مخ ته نیولې وو او خبره ئې ورسره اوکړه. په تفسیری روایاتو کښې راغلی دی چې کله موسی ﷺ دغې بی بی سره روان شو نو ورته ئې اووئیل چې ماپسې روستو رازه اوپه ویناً راته لار ښایه. مطلب ئې دا وو چې په دغې بی بی مې نظر اونه لګی ، شاید هم په دې وجه دغې بی بی باباجی ته وئیلی وو چې موسی ﷺ امین دې ، په دې کښې د مفسرینو اختلاف دې چې ددغې بیبیانو باباجی ﷺ څوک وو؟ خو د قرآنی آیتونو نه ظاهریږی چې باباجی ئې شعیب ﷺ وو لکه قرآن کریم فرمائی چې : ﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا﴾(٤) [قرطبی](٥).

﴿إِنَّ أَبِي يَدْعُوكَ﴾ دلته داسې هم کیدې شی چې دغې بی بی دخپل طرف هغوئ ﷺ ته بلنه ورکړې وې خو د حیا نه خلاف خبره وه څکه ئې د باباجی د طرفه بلنه ورکړه.

﴿إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِينُ﴾ د شعیب ﷺ یوې لور بی بی خپل باباجی ﷺ ته عرض اوکړو چې د کور د کارونو دپاره د یو نوکر ساتل ضرورت دې تاسو ده له نوکر جوړ کړئی څکه نوکر کښې دوه صفات پکار وی ، یو دا چې په کار کولو ښه پوهیږی او طاقتور وی . او بل دا چې امانتدار وی . نو د دوئ ﷺ طاقتور کیدل خو دې نه معلوم شو چې کوهی نه هغه غټ ګټ په یوازې خان اوچت او امانتګری ئې دې نه معلومه شوه چې ماته ئې خان پسې پسې د راتلو دپاره اوفرمائیل .

**د څه ملازمت یا عهدې سپارلو دپاره مهم شرطونه دوه دی:** د شعیب ﷺ د لور بی بی په خله باندې الله ﷻ د لوئې حکمت خبره جاری کړه ، نن سبا په سرکاری ملازمتونو او عهدو کښې دګریانو اود کار صلاحیتونو ته کتلې شی مګر دیانت او امانت ته نشی کتلې . ددې نتیجه دا وی چې دعامو دفترونو او عهدو په کاروایانو کښې د پوره کامیابئ په ځائې د رشوت ، خپلوئ پاللو

(١) ترجمه:- ددې پوره آیت مبارك ترجمه داده:- په تاسو فرض دی چې کله دچا مرګ رانزدې شی په دې شرط چې څه مال یئ په میراث کښې پریښودې وی نو والدین اور خپلوانو دپاره دې په معقوله توګه څه وصیت اوکړی څوك چې دالله نه ویریږی نو دهغوئ په ذمه دا ضروری دی.
(٢) ترجمه:- دا خلق زیات بوداګان دی یا دتبع قوم والا.
(٣) تفسیر القرطبي [ ج:١٣ص:٢٧٠]
(٤) ترجمه:- اوموږ مدین طرفته د هغه رور شعیب اولیږلو.
(٥) تفسیر القرطبي [ ج:١٣ص:٢٧٠]

وغيره دور دي او قانون بالكل په نشته دې. کاش چې خلق ددې قرآنی هدايت قدر اوکړی نو ټول نظام به سمدم شي.

﴿قَالَ إِنِّيٓ أُرِيدُ أَنۡ أُنكِحَكَ إِحۡدَى ٱبۡنَتَيَّ هَٰتَيۡنِ﴾ ددغې بيبيانو باباجي شعيب ﷺ پخپله موسی ﷺ ته دخپلې يوې لور بی بی دنکاح کولو پيشکش اوکړو. دې نه معلوم شو چې کله يو نيک او صالح سړې ملاؤ شي نو د هغه د طرفه د نکاح د پيغام ورکولو انتظار دې نشی کولې ، بلکه پخپله ورته پيغام ورکول د پيغمبرانو ﷺ سنت دی ، څنګه چې عمر بن الخطاب ﷺ پخپله صديق اکبر ﷺ او عثمان ﷺ ته د خپلې لور بی بی د نکاح پيشکش هغه وخت اوکړو کله چې هغه کنډه شوه [قرطبی][1].

﴿إِحۡدَى ٱبۡنَتَيَّ هَٰتَيۡنِ﴾ شعيب ﷺ دواړو جينکو کښې يوه جنيۍ هم د خبرو کولو دپاره نه وه معين کړې. بلکه دا خبره يې پټه اوساتله چې زما اراده ده چې په دوئ تاته يو په نکاح کړم. خو چونکه دا خبرې اترې د نکاح دپاره نه وې چې په کښې ايجاب و قبول د ګواهانو په وړاندې شرط دی ، بلکه د يو معاهدې خبرې اترې وې چې که تاته دا منظور وی چې اته کاله به نوکری کوې او بيا تاته لور په نکاح کوم. موسی ﷺ پدې باندې معاهده اوکړه . وړاندې دا پخپله ښکاره ده چې نکاح به يې شوې وی. ولې چې قرآن کريم ټکې په ټکې قيصه نه بيانوی بلکه هغه حصې په کښې پريږدی چې دهغې واقع کيدل د سياق و سباق نه يقينی معلوميږی ، او ددې تحقيق په وجه دلته دا شبه نشی کيدې چې د زوجه منکوحه د متعين کولو څخه بغير نکاح څنګه اوشوه يا دګواهانو څخه بغير څنګه اوشوه [ کذا فی الروح وبيان القرآن ][2].

﴿عَلَىٰٓ أَن تَأۡجُرَنِي ثَمَٰنِيَ حِجَجٖۖ﴾ دا د اتوکالو خدمت او ملازمت د نکاح مهر مقرر کړې شو ، په دې کښې د فقهاء کرامو امامانو اختلاف دې چې د خاوند خدمت او ملازمت مهر دنکاح ټاکلې شی يا نه ؟ ددې مکمل تحقيق سره د دليلونو نه احکام القرآن سورۀ قصص کښې په تفصيل سره ليکلې شوې دې ، اهل علم دې ئې هلته اوګوری ، د عوامو د پوهيدو دپاره دومره قدرې کافی دی چې که د شريعت محمديه تر مخه داسې کول درست نه وی نو کيديشی چې د شعيب ﷺ په شريعت کښې داسې وی او د انبياء ﷺ په شريعتونو کښې داسې قسم فروعی فرق د قطعی نصونو نه ثابت دې.

د امام اعظم ابی حنيفه ﷫ نه په ظاهر روايت کښې هم داصورت منقول دې چې د خپلې ښځې خدمت کول مهر نشی ګرځولې ، مګر په يو روايت باندې چې په هغه باندې متاخرينو علماء کرامو فتوی ورکړې ده، دادې چې د خپلې ښځې خدمت کول مهر مقررول خو اګر چې د خاوند بې عزتی او سپکاوې دې ، خو داسې کاروبار چې د کور نه بهر کولې شی لکه څاروی څرول او ساتل يا څه تجارت او کاروبار کول ، مهر ګرځول په دې شرط جائز دی چې نيته په کښې ټاکلې شوی وی ، لکه چې دلته اته کاله ټاکلې شوی وو ، ددې صورت به دا وی چې هغه تنخواه او مزدوی بهٔ مهر ګرځولې شی کوم چې ددې خدمت کاروبار او مزدورۍ بدله جوړيږی ، [ذکره البدائع عن نوادر ابن سماعه][3].

---

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۷۱] وصحيح البخاري كتاب المغازي ،باب [ج:۲ص:۵۷۱]

[2]) روح المعاني [ج: ۵ ص:۱۱٤] وبيان القرآن [ج: ۲ ص:۱۰۷]

[3]) بدائع الصنائع كتاب النكاح ، فصل بيان ما يصح تسميته مهرا ومالا يصح [ج: ۵ ص:٤٧٩]

البته د لته يو بل سوال دا پيدا کيږي چې مهر خود ښځې حق دی . د ښځې پلار يا بل رشته دار ته بغير د ښځې د اجازت نه د ښځې د مهر رقم که ورکړې شي نو دا مهر نه ادا کيږي. دلته په دې واقعه کښې د ﴿عَلَىٰٓ أَن تَأْجُرَنِى﴾ الفاظ چې د ملازمت چې کومه معاوضه وه هغه والد ته ملاويدلو سره دا مهر څنګه شو؟ جواب ئې دادې چې کيدې دغه چيلئ هم ددغې لونړه وی ، صرف خبره ورله باباجی خلاصه کړې وه اوپه دې حيثيت سره فائده هم دغې بی بی ته رسيدلی وی ، اوکه د باباجی کار ئې کړې وی نو دهغه په ذمه ددې عوضانه د لور بی بی مهر به ئې شی چې د لور بی بی په اجازت سره ئې دوئ لره هم داستعمالول جائز وی ، څنګه چې ظاهريږی چې دا معامله ددغې بی بی په اجازت سره شوې ده .

**مسئله:** د ﴿أُنكِحَكَ﴾ لفظ نه ثابتيږی چې د نکاح معامله ئې باباجی کړې ده ، څنګه چې دفقهاء کرامو په اجماع سره داسې کول پکار دی چې د جينئ ولی دې د نکاح کولو انتظام کوی پخپله دې جينئ نه کوی ، دا بله خبره ده چې يوه جينئ دڅه مجبورئ يا ضرورت په وجه پخپله د نکاح معامله سره اورسوی نو نکاح به ئې اوشی اوکه نه ؟ په دې کښې د فقهاء کرامو امامانو اختلاف دې ، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد نکاح ئې کيږی ، اودا آيت مبارک ددې باره کښې هيڅ فيصله نه ورکوی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | قَضَىٰ | مُوسَى | الْأَجَلَ | وَسَارَ | بِأَهْلِهِۦٓ | ءَانَسَ | |
| پس هر کله چی | پوره کړه | موسی | نيته | او روان شو | دتبر خپل سره | نووې ليدو | |

نوڅه وخت چې موسى عليه السلام نيته پوره کړه | او د خپل کوروالا سره [مصرته واپس] روان شو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِن جَانِبِ الطُّورِ | نَارًا | قَالَ | لِأَهْلِهِ | امْكُثُوٓا | إِنِّىٓ |
| دطرفه د طور نه | وور | اووئيل موسی | کور والو خپلو ته | چی ايسار شئ دلته | بيشکه ما |

نودطور [نومې غر] طرف نه ئې اور اوليدو | خپل کور والا ته ئې اووئيل چې تاسو دلته ايسار شئ إما

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ءَانَسْتُ | نَارًا | لَّعَلِّىٓ | ءَاتِيكُم | مِّنْهَا | بِخَبَرٍ | أَوْ جَذْوَةٍ |
| اوليدوما | وور | شايد چی | راوړم تاسو ته | دهغه ځائې نه | څه خبر | يا سکروټه |

اور ليدلې دې | کيدې شی چې تاسو دپاره د هغې نه څه خبر راوړم | يا د اور يوه شعله چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنَ النَّارِ | لَعَلَّكُمْ | تَصْطَلُونَ ﴿٢٩﴾ | فَلَمَّآ | أَتَىٰهَا |
| دهغه وور نه | دپاره ددې چی تاسو | ورته تاوده شئ | پس هر کله چی | راغې موسی هغې وور ته |

تاسو ورته خانونه توده کړئ | ............... څه وخت چې موسى عليه السلام اور ته نزدې اورسيدو

| | | | |
|---|---|---|---|
| نُودِىَ | مِن شَٰطِئِ الْوَادِ الْأَيْمَنِ | فِى الْبُقْعَةِ الْمُبَٰرَكَةِ | مِنَ الشَّجَرَةِ |
| آواز اوشو | دطرفه دميدان ښی نه | په ځائ مبارك کښی | دونې نه |

نو د هغې ميدان د ښی طرفنه په هغه مبارک ځائې کښې ديوې ونې نه ورته آواز اوشو

اَنۡ یّٰمُوۡسٰۤی اِنِّیۡۤ اَنَا اللّٰہُ رَبُّ الۡعٰلَمِیۡنَ ۙ﴿۳۰﴾ وَ اَنۡ اَلۡقِ

چې لے موسی | بیشکه زهٔ چې یم زهٔ الله یم | رب د مخلوقاتو | او حکم اوشو چې اوغورزوه |

چې ائې موسی ! بیشکه زه هغه الله ﷻ یم چې د ټول مخلوق پروردګار یم | او خپله

عَصَاکَ ؕ فَلَمَّا رَاٰہَا تَہۡتَزُّ کَاَنَّہَا جَآنٌّ

همسا خپله | پس هر کله چې | اولیده موسی هغه | چې خوزیږي | الکه چې هغه | نرۍ مار دې |

همسا اوغورزوه | نو څه وخت چې هغه اولیدل چې همسا لکه د مار غوندې حرکت کوي

وَّلّٰی مُدۡبِرًا وَّ لَمۡ یُعَقِّبۡ ؕ یٰمُوۡسٰۤی اَقۡبِلۡ

نو اوګرزیدو هغه | شاکونکې | او په شائې اونهٔ کتل | حکم اوشو اے موسی | رامخکښې شه |

نو شا طرف ته ئې منډه کړه | او په روستو ئې اونه کتل | [مونږ اووئیل] چې ائې موسی ! راوړاندې شه

وَ لَا تَخَفۡ ۟ اِنَّکَ مِنَ الۡاٰمِنِیۡنَ ﴿۳۱﴾ اُسۡلُکۡ یَدَکَ فِیۡ جَیۡبِکَ

اومهٔ یریږې | بیشکه تهٔ | دامان موندونکونه ئې | ننباسه | لاس خپل | په ګریوان خپل کښې |

او ویریږه مه | ځکه چې ته په امن کښې یې | ........ او خپل لاس ګریوان ته ورداخل کړه

تَخۡرُجۡ بَیۡضَآءَ مِنۡ غَیۡرِ سُوۡٓءٍ ۫ وَّ اضۡمُمۡ اِلَیۡکَ جَنَاحَکَ

راووبه وزی | سپین ځلیدونکې | بې د عیب [تکلیف] نه | او جوخت کړه | ځان ته | لاس خپل |

نو بغیر د څه عیب نه به ځلنده سپین راوځی | ............... او دویرې [دلرې کولو] د پاره

مِنَ الرَّہۡبِ فَذٰنِکَ بُرۡہَانٰنِ مِنۡ رَّبِّکَ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ

دیرې نه د بچکیدو د پاره | پس دا دواړه | ]نښې دلیلونه دی | د طرفه د رب ستا نه | فرعون ته |

خپل لاس بیا خپل ځان سره یوځائې کړه [نو اولنی حالت ته به واپس شي] دا ستا د رب د طرفنه فرعون

وَ مَلَا۠ئِہٖ ؕ اِنَّہُمۡ کَانُوۡا قَوۡمًا فٰسِقِیۡنَ ﴿۳۲﴾ قَالَ

او درباریانو د هغه ته | بیشکه چې هغوئ | دی | قوم [خلق] فاسقان [نافرمان] | اووئیل موسی |

او د هغه سردارانو د پاره دوه نښې دی | یقینا هغوئ ډیر نافرمانه خلق دی | موسی ؑ اووئیل

رَبِّ اِنِّیۡ قَتَلۡتُ مِنۡہُمۡ نَفۡسًا فَاَخَافُ

اے ربه زما | بیشکه زهٔ چې یم | وژلې دې ما | دهغوئ نه | یو کس | پس زهٔ یریږم |

ائې زما ربه ! ما د هغوئ نه یو سړې وژلې وو | ............ زه د دې نه ویریږم

اَنۡ یَّقۡتُلُوۡنِ ﴿۳۳﴾ وَ اَخِیۡ ہٰرُوۡنُ ہُوَ اَفۡصَحُ مِنِّیۡ لِسَانًا

چې قتل به کړې ماله | او رور زما هارون | هغه زیات فصیح دې | زمانه | په لحاظ دژبې سره |

چې ما به قتل کړي | او زما د رور هارون ؑ ژبه زما نه زیاته روانه چلیږي | په دې وجه ته هغه

فَاَرۡسِلۡہُ مَعِیَ رِدۡاً یُّصَدِّقُنِیۡۤ ۫ اِنِّیۡۤ اَخَافُ

پس اولیږه هغه | زما سره | مددګار | چې تصدیق کوي زما | بیشکه زهٔ | یریږم

ماسره زما مددګار جوړ کړه | چې هغه زما تصدیق اوکړي | ماسره داویره ده چې هغوئ به

أَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ﴿۳۴﴾ قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِأَخِيْكَ

چي هغوئ به دروغ اوګنړي ما لره | اوونيل الله | محكم به كړو مونږه | متي [لاس] ستا | په رور ستا سره

ما دروغژن اوګنړي | الله ﷻ اوفرمائيل چې مونږ به ستا د رور په ذريعه ستا متې مضبوطې كړو

وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطٰنًا فَلَا يَصِلُوْنَ إِلَيْكُمَا

او دربه كړو مونږ | تاسو لره | طاقت | پس نه به شي رسولي | تاسو ته [څه نقصان] |

اوتاسو دواړو ته به غلبه دركړو | .............نو هغوئ به درته په نقصان سره نشي دررسيدي

بِأٰيٰتِنَا أَنْتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا الْغٰلِبُوْنَ ﴿۳۵﴾

په سبب د ايتونو زمونږ | تاسو دواړو | او هغه څوك | چې پيروی ئې اوكړه ستاسو | به غالب وی |

زمونږ د نخښو په وجه به تاسو دواړه اوچې چا ستاسو د دواړو تابعداري اوكړه غالب راځي |

## آسان ترجمه قرآن

بيا چه كله موسٰى عليه السلام هغه موده پوره كړه، او خپله بي بي ئې ځان سره بوتله، نو هغوی د كوه طور د طرف نه يو اور اوليدو هغوی خپلې بي بي ته اووئيل: اودريږئ ! ما يو اور ليدلې دې، كيدې شي چه زه د هغه ځائې نه تاسو ته څه خبر راوړم، يا د اور څه سكروټه راوچته كړم، چه تاسو ورته ګرم شئ. پس چه كله هغوی هغه اور ته راغلل نو د ښي ميدان په غاړه باندې كوم چه د بركت والا علاقه كښې واقع وو، د يوې اونې نه آواز راغلو چه: اې موسٰى! زه الله يم د ټولو جهانونو رب! او دا چه: خپله همسا لاندې ګزار كړه. بيا داسې اوشوه چه كله هغوی هغه همسا اوليده چه هغه داسې حركت كوی لكه چه هغه مار وی، نو هغوی په شا باندې اوتختيدل، او په شا ئې هم او نه كتل (هغوی ته اووئيلې شو:) اې موسٰى! رامخكښې شه او يَريږه مهٔ، ته بالكل محفوظ ئې. اوخپل لاس په خپل ګريوان كښې واچوه، هغه به بغير د څه عيب نه پرقيدونكې راوځي، او د ويرې لرې كولو دپاره خپل لاس د خپل بدن سره يو ځائې كړه پس دا دوه زبردست دليلونه دی كوم چه ستاسو د رب د طرف نه فرعون او د هغه درباريانو ته ليږلې شي. هغوی ډير نافرمان خلق دی. موسٰى عليه السلام اووئيل: اې زما ربه! ما د هغوی يو سړې قتل كړې دې، په دې وجه زما ويره ده چه ما قتل نه كړی. او زما د ورور هارون ژبه زما نه زياته صفا ده ، په دې وجه هغه هم ما سره مددګار جوړولو سره اوليږه چه زما تائيد اوكړی. زما ويره ده چه هغه خلق به زما تكذيب اوكړی. ارشاد اوشو: مونږ ستا د ورور په ذريعه ستا لاس نه مضبوطوو، او تاسو دواړو ته داسې رعب دركوو چه هغوی به زمونږ د نخښو په وجه باندې تاسو باندې غلبه نه شي حاصلولې تاسو او ستاسو تابعدار به غالب وی.

## خلاصه تفسير

﴿فَلَمَّا قَضٰى مُوْسَى الْأَجَلَ﴾ [غرض هركله چه موسی] عليه السلام [دې مودې لره پوره كړله او] د شعيب عليه السلام په اجازت ئې ﴿وَسَارَ بِأَهْلِهٖٓ﴾ [خپله بی بی راونه كړه ] مصر ته يا شام ته [روان شونو] يوه شپه داسې اتفاق وشو چه يخني هم وه او لار تړې نه هم وركه شوه دغه وخت ﴿اٰنَسَ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ نَارًا﴾ [دهٔ ته د كوه طور د طرف نه يو] رنړا په شكل د [اور وځليدو] ﴿قَالَ لِأَهْلِهِ امْكُثُوْٓا إِنِّيْٓ اٰنَسْتُ نَارًا﴾ هغوی عليه السلام خپل كور والؤ ته ووئيل چه تاسو] دلته [كښينئ ما يو اور ليدلې دې] زهٔ هلته خم

﴿لَّعَلِّيٓ ءَاتِيكُم مِّنْهَا بِخَبَرٍ﴾ [شايد زهٔ تاسوله دهغه ځائ نه] دلارې [څه خبر راوړم ﴿أَوْ جَذْوَةٍ مِّنَ النَّارِ لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُونَ﴾ يا داور] بليدونكي [سكروټه راوړم چه تاسوورته ګرم شئ: ﴿فَلَمَّآ أَتَىٰهَا﴾ [پس هركله چه هغه اورته ورسيد ﴿نُودِيَ مِن شَٰطِيِٕ الْوَادِ الْأَيْمَنِ فِي الْبُقْعَةِ الْمُبَٰرَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ﴾ نو هغه ته دهغې ميدان دښي جانب نه] كوم چه دموسى عليه السلام ښى جانب ته وو [ په هغه مبارك مقام كښې ديوې اونې نه آواز راغې ﴿أَن يَٰمُوسَىٰٓ﴾ چه اے موسى عليه السلام ﴿إِنِّيٓ أَنَا اللَّهُ رَبُّ الْعَٰلَمِينَ﴾ [ زهٔ رب العلمين يم او دا] آوازهم راغې ﴿وَأَنْ أَلْقِ عَصَاكَ﴾ چه ته خپله همسا [عصا] وغورزوه] چنانچه دوى عليه السلام وغورزوله او هغه مار جوړ شو روان شو ﴿فَلَمَّا رَءَاهَا تَهْتَزُّ كَأَنَّهَا جَآنٌّ وَلَّىٰ مُدْبِرًا﴾ [پس دا چه هركله دې لره چه كوونكې وليدو لكه نرې مار چه ] تيز [ وى نو شاڼ كړه وتښتيدو ﴿وَلَمْ يُعَقِّبْ﴾ او په بيرته ئې كتل هم نه] حكم ورته وشو چه ﴿يَٰمُوسَىٰٓ﴾ [ اے موسى عليه السلام ﴿أَقْبِلْ وَلَا تَخَفْ﴾ [ راوړاندې شه او ويريږه مه ﴿إِنَّكَ مِنَ الْءَامِنِينَ﴾ په هرشان ته په امن ئې ] او دا څه د ويرې خبره نه ده بلكه ستا معجزه ده او دويمه معجزه به درته دركړې كيږي چه ﴿اسْلُكْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ﴾ [ ته خپل لاس په ګريوان كښې دننه كړه] او بيائې راوباسه ﴿تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوٓءٍ﴾ [ هغه به بغير دڅه مرض نه ډير روښانه راوځى او] كه دهمساد بدليدو په شان ددې معجزې نه هم طبعا ستا څه ويره او حيرانى پيداكيږى نو ﴿وَاضْمُمْ إِلَيْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ﴾ [ دويرې ] لرې كولو [دپاره خپل] دغه [ لاس] بيا [دخپل ځان ] ګريوان او ترخ [ سره] دتير په شان [ پيوست كړه] چه هغه به بيا په اصلى حالت شى اوبيا به طبعي ويره هم نه وى ﴿فَذَٰنِكَ﴾ [ پس دا] ستادنبوت ﴿بُرْهَٰنَانِ مِن رَّبِّكَ﴾ [ دوه دليلونه] او سندونه [دى ستادرب دطرف نه ﴿إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِيْهِۦٓ﴾ فرعون او ددهٔ سردارانوته دتللو دپاره] دكوم چه تاته حكم كولې شى ځكه چه ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فَٰسِقِينَ﴾ [هغوى ډير نافرمانه خلق دى ﴿قَالَ رَبِّ﴾ هغوى عرض وكړو چه اے زما ربه ] زهٔ دتلو دپاره حاضريم خوستا د خاص امداد ضرورت دې ځكه چه ﴿إِنِّي قَتَلْتُ مِنْهُمْ نَفْسًا فَأَخَافُ﴾ [ماد هغوى نه يوسړې قتل كړې وو پس زما ويره ده چه ] هسې نه داول نه ﴿أَن يَقْتُلُونِ﴾ [هغه خلق مالره قتل كړى] او تبليغ هم ونه شى [ او] دويمه خبره داده چه ژبه مې هم زياته روانه نه ده او ﴿وَأَخِي هَٰرُونُ﴾ [زما دورور هارون] عليه السلام ﴿هُوَ أَفْصَحُ مِنِّي لِسَانًا﴾ [ژبه زما نه زياته روانه نه ده ﴿فَأَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْءًا﴾ نو هغه هم زما مددګار جوړكړه ماسره ورلره رسالت وركړه چه] هغه زما دتقرير تائيد او ﴿يُصَدِّقُنِيٓ﴾ [تصديق] په مفصل اومكمل طور سره [كوى] ځكه ﴿إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ﴾ [زما ويره ده چه دغه خلق] فرعون او دهغه درباريان [به ما دروغژن كړى ] نو دغه وخت به دمناظرې ضرورت وى او دزبانى مناظرې دپاره عادتاهغه سړې زيات فائده مند وى دكوم چه ژبه روانه وى ﴿قَالَ﴾ [ ارشاد وشو چه] غوره ده ﴿سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِأَخِيكَ﴾ [مونږ اوس ستاپه ورور ستامټې مضبوطوو] يو درخواست خو دامنظور شو [ او] د دويم درخواست منظورى يې داسې وشوه چه ﴿وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطَٰنًا فَلَا يَصِلُونَ إِلَيْكُمَا﴾ [مونږ تاسو دواړو لره يو خاص شوكت ] او هيبت [دركوو په كوم سره چه به دهغو خلقو په تاسو وس نه رسيږى ] پس ﴿بِـَٔايَٰتِنَآ أَنتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا الْغَٰلِبُونَ﴾ [زمونږ معجزې واخلئ لاړ شئ تاسو دواړه او څوك چه ستاسو تابعدار وى] په هغو خلقو [به غالب يئ]

## معارف او مسائل

﴿فَلَمَّا قَضٰى مُوْسَى الْاَجَلَ﴾ [کله چې موسی ﷺ د ملازمت تاکلې موده پوره کړه] چې اته کاله لازمي وه او دوه کاله اختیاري وه. اوس سوال دا پیدا کیږي چې موسی ﷺ صرف اته کاله پوره کړل که لس کاله؟ د صحیح بخاری شریف په حواله ابن عباس ﷺ څخه چې دا سوال اوکړې شو نو هغوئ ﷺ اوفرمائیل چې لس کاله ئې څکه پوره کړې وو چې د پیغمبرانو شان سره جوړیږي چې څه وائي نو هغه پوراً کوي(۱)، نبی اکرم ﷺ به هم د خپل عادت شریف مطابق حقدار ته دهغه څخه زیات ورکول او امت ته ئې ددې تعلیم ورکړی دې چې په ملازمت، اجرت او اخستلو خرڅولو کښې د آسانئ او قربانئ څخه کار واخلئ.

﴿نُوْدِيَ مِنْ شَاطِئِ الْوَادِ الْاَيْمَنِ فِي الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ اَنْ يّٰمُوْسٰۤى اِنِّيْۤ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ دا مضمون د موسی ﷺ د قیصې په ترڅ کښې په سورة طه او سورة نمل کښې تیر شوېدې، سورة طه کښې په ﴿اِنِّيْۤ اَنَا رَبُّكَ﴾ او په سورة نمل کښې په ﴿نُوْدِيَ اَنْۢ بُوْرِكَ مَنْ فِي النَّارِ﴾ الفاظو سره اوپه دې سورت کښې په ﴿اِنِّيْۤ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ الفاظو سره راغلې دې اګر چې الفاظ مختلف دی خو معنی ئې تقریبا یوه ده، د واقعې حکایت دهر مقام په مناسبو الفاظو سره کړې شوې دې. [کذا قال الامام] او د اور په شکل دا تجلی مثالی څکه وه چې د ذاتی تجلی مشاهده په دې دنیا کښې هیڅکله نشی کیدې، پخپله موسی ﷺ ته ددې ذاتی تجلی اعتبار سره اوفرمائیلې شو چې ﴿لن ترانی﴾ [ته ما لره هیڅکله نشی لیدلې] یعنی زما ذات مبارك نشی لیدلې.

**په نیک عمل سره ځائې هم برکتی کیږي** :: ﴿فِي الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ﴾ قرآن عظیم الشان د کوه طور دغې مقام ته مبارك او برکتی اوفرمائیلو چې دغه ځائې الله ﷻ خپله تجلی د اور په شکل کښې کړې وه، دې نه معلومه شوه چې کوم ځائې کښې یو اهم نیك عمل واقع شی او ځائې هم برکتی شی.

**په وعظ کښې ښکلې خطابت او فصاحت پکار دې** :: ﴿هُوَ اَفْصَحُ مِنِّيْ لِسَانًا﴾ دې څخه معلومه شوه چې په وعظ او تبلیغ کښې د کلام فصاحت او بلاغت او مقبول طرز خطابت غوره او مطلوب دې، ددې په حاصلولو کښې کوشش کول هم څه بدیت نه لري.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | جَآءَهُمْ | مُّوْسٰى | بِاٰيٰتِنَا | بَيِّنٰتٍ | قَالُوْا | |
| پس هر کله چې | ورغې هغوئ ته | موسی | دنښو زمونږ سره | چې څرګندې دی | نو اووئیل هغوئ | |
| نو هر کله چې موسی ﷺ هغوئ ته زمونږ ښکاره دلیلونو سره لاړل نو هغوئ اووئیل | | | | | | |
| مَا هٰذَاۤ | اِلَّا | سِحْرٌ | مُّفْتَرًى | وَّمَا سَمِعْنَا | بِهٰذَا | |
| نه دې دا | مګر | جادو دې | دخانه جوړ کړې شوې | اونه دی اوریدلې مونږه | دا خبرې | |
| چې دا خودخانه جوړشوې جادو دې او مونږ داسې خبرې چرته د پلار نیکه | | | | | | |
| فِيْۤ اٰبَآئِنَا | الْاَوَّلِيْنَ | وَقَالَ | مُوْسٰى | رَبِّيْۤ | اَعْلَمُ | بِمَنْ جَآءَ |
| په پلارانو زمونږ | د رومبنو کښې | او اووئیل | موسی ﷺ | رب زما | ښه خبر دې | دحال دهغه چا نه |
| په وختونو کښې هم نه وې اوریدلې | اوموسی ﷺ اووئیل چې زمارب هغه څوك ډیر ښه پیژنی | | | | | |

(۱) صحیح البخاري کتاب الشهادات ،باب من امر بإنجاز الوعد [ج:۱ص:۳۶۸]

بِالْهُدٰى مِنْ عِنْدِهٖ وَمَنْ تَكُوْنُ لَهٗ

چې راوړې دې هدايت | دطرفه دهغه نه | او هغه څوك ښه پيژني | چې وى به هغه لره |

چاچې د هغه [الله] د طرفنه هدايت [نيغه لاره] راوړې دې | اوهغه څوک هم ښه پيژني چې د هغه دپاره د

عَاقِبَةُ الدَّارِ ۭ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ۝ وَقَالَ فِرْعَوْنُ

ښه انجام ددنيا | بيشكه | خلاصي نه مومي | ظالمان | او اوونيل | فرعون

آخرت ښكلې انجام دې | بيشكه ظالمان چرې كاميابيدې نشي | ......... او فرعون اووئيل

يٰٓاَيُّهَا الْمَلَاُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرِيْ ۚ فَاَوْقِدْ

اے درباريانو | نه دې معلوم ماته | ستاسو دپاره | يو خدائې | غير زمانه | پس بل كړه وور |

چې ائې درباريانو ! ماته ستاسو دپاره د خپل ځان نه سوا بل خدائې نه دې معلوم | نوائې هامانه زما دپاره

لِيْ يٰهَامٰنُ عَلَى الطِّيْنِ فَاجْعَلْ لِّيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ

زما دپاره | اے هامانه | په خته باندې | او جوړ كړه | مالره | مانړئ دنگه | شايد چې زۀ

په خته باندې اور اولگوه [چې پخه شي] اويوه مانړئ راته جوړه كړه | كيدې شي

اَطَّلِعُ اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى ۙ وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۝

اوخيژم | خدائې دموسى ته | او بيشكه زۀ | خامخا گمان كوم په دۀ | ددروغژنانو نه

چې زۀ په هغې دموسى ﷺ خدائې اوليدې شم | .............اوزه خودې [موسى] دروغژن گنړم

وَاسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُوْدُهٗ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَظَنُّوْٓا

او تكبر اوكړو | هغه | او لښكرو دهغه | په زمكه كښې | په ناحقه | او خيال اوكړو هغوئ

او فرعون او د هغه لښكرو په ناحقه په زمكه كښې تكبر اوكړو | اودا ئې خيال وو

اَنَّهُمْ اِلَيْنَا لَا يُرْجَعُوْنَ ۝ فَاَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ

چې بيشكه هغوئ به | مونږ ته | نۀ واپس كړې كيږي | پس رااونيوۀ مونږ هغه | او لښكرې دهغه

چې چرې به هم مونږ ته پش نشي | ............نومونږ هغه اودهغه لښكرې اونيول

فَنَبَذْنٰهُمْ فِى الْيَمِّ ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

پس اوغورزول مونږ هغوئ | په درياب كښې | پس اوگوره | څه رنگې وۀ | آخرى انجام

اوبيا مو په درياب كښې اوغورزول | ............ نو ته گوره چې ددغې ظالمانو آخره

الظّٰلِمِيْنَ ۝ وَجَعَلْنٰهُمْ اَئِمَّةً يَّدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ ۚ

دظالمانو | او جوړ كړل مونږه دهغوئ | مشران | چې رابلي خلق | وور ته

خاتمه څنگه شوه | اومونږ هغوئ پيشوايان جوړ كړي وو چې هم د دوزخ طرفته به ئې خلق رابلل

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ لَا يُنْصَرُوْنَ ۝ وَاَتْبَعْنٰهُمْ

او په ورځ دقيامت به | امداد ونكړې شي دهغوئ سره | او روستو اولگوۀ مونږه په هغوئ پسې |

اود قيامت په ورځ به هم د هغوئ څۀ مدد نشي كولې | اوپه دې دنيا كښې مو ورپسې

| فِىْ هٰذِهِ الدُّنْيَا | لَعْنَةً | وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ | هُمْ | مِّنَ الْمَقْبُوحِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| په دې دنيا كښې | لعنت | او په ورځ دقيامت به | وى هغوئ | دقبيح كړې شوؤ نه [دبدحالونه] |
| لعنت اولګولو | .............او دقيامت په ورځ به هم د هغوئ حال ډير خراب وى | | | |

## آسان ترجمه قرآن

پس کله چه موسٰی عليه السلام هغوى ته زمونږ د ښکاره نخښو سره اورسيدو نو هغوى اووئيل: دا هيڅ نه دى، بس جوړ کړې شوې جادو دې، او مونږ دا خبره په خپل مخکښې پلار نيکۀ کښې نه ده اورېدلې او موسٰی عليه السلام اووئيل: زما رب ته ښه معلومه ده چه چا د هغه د طرف نه هدايت راوړې دې، او آخر کښې به ښه استوګنه [انجام] د چا لاس ته راځى دا يقينى خبره ده چه ظالمان خلق به کامياب نه شى. او فرعون اووئيل: اې دربار والو! زه خو د خپل ځان نه سوا ستاسو دپاره د بل خدائې نه خبر نه يم. نو اې هامانه! ته داسې اوکړه چه زما دپاره خټه په اور پخه کړه، او زما دپاره يو اوچته آبادى جوړه کړه، چه زه په هغې سره د موسٰی عليه السلام خدائې اوګورم، او زه خو پوره يقين سره وايم چه دا سړې دروغژن دې. غرض دا چه هغه او د هغه لښکرو په زمکه کښې ناحق غرور اوکړو، او هغوى دا اوګنړله چه هغوى به مونږ ته نه شى واپس کولې. په دې وجه مونږ هغه او د هغه لښکرې اونيولې او په سمندر کښې مو اوغورځول. اوس ګوره چه د ظالمانو انجام څنګه شو. مونږ د هغوى نه قائدين (مشران) جوړ کړې وو چه خلق ئې د دوزخ طرف ته رابلل، او د قيامت په ورځ بانديې به د هغوى هيڅ امداد نه شى کولې. په دنيا کښې مونږ په هغوى پسې لعنت اولګولو، او د قيامت په ورځ به هغوى په هغه خلقو کښې شامل وى چه د هغوى بد حالت کيدونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿فَلَمَّا جَآءَهُمْ مُّوْسٰى بِاٰيٰتِنَا بَيِّنٰتٍ﴾ [غرض هر کله چه دې خلقو ته موسى ﷺ زمونږ واضح دليلونه راوړل او دغو خلقو ] معجزې وليدې ﴿قَالُوْا مَا هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ﴾ [وئ وئيل چه داخو محض جادو دې چه] خامخا په الله تعالى ﴿مُّفْتَرًى﴾ [دروغ جوړوى] چه داد هغه دطرف نه معجزې او دليلونه درسالت دى ﴿وَمَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِىْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ﴾ [او مونږ داسې خبره چرې نه ده اوريدلې چه زمونږ د ورومبو پلارانونيکونو په وخت کښې هم شوى دى ﴿وَقَالَ مُوْسٰى﴾ او موسى ﷺ ددې په جواب کښې [وفرمائيل چه] هر کله سره دصحيح دليلونو قائميدو او په دې کښې دڅه معقولې شبهې دنه راويستلو نه پس هم نه منئ نو دا ضد دې او ددې اخرى جواب دادې چه ﴿رَبِّىْٓ اَعْلَمُ بِمَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى مِنْ عِنْدِهٖ﴾ [زما پروردګار هغې چالره ښه پيژنى کوم چه صحيح دين ئ دده دطرف نه راوړې وى ﴿وَمَنْ تَكُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ﴾ او د چا انجام ] يعنى خاتمه [چه ددې عالم] دنيا [نه ښه کيدونکې دې ] او ﴿اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ﴾ [په يقين سره ظالمان خلق ] کوم چه په هدايت او صحيح دين باندې نه وى [به چرې فلاح بيانه پيدا نه کړل] ځکه چه دهغوى انجام به ښه نه وى مطلب دادې چه الله تعالى ته ښه معلومه ده چه په مونږ کښې او په تاسو کښې څوک بد دى څوک ظالمان او څوک ښه انجام والادى اوڅوک محروم دى دکاميابئ نه پس دهريو دحالت او ثمرې به دمرګ سره ډير زر ظهور وشى اوس نه منئ تاسو پوه شئ [او] چه دموسئ

دليلونه يې وليدل واوريدل [فرعون] سره ويره پيداشوه چه هسې نه زما معتقدين دوی طرف ته مائيل نه شي نو خلق يې جمع كړل [او وئيل ﴿وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَأُ مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِى﴾ اے د دربار خلقو ماته خو دځان نه سوا ستاسو بل خدائ نه معلوميږی] ددې خلقو نه پس يې دخلقو دوکه كولو دپاره خپل وزيرته ووئيل چه كه په دې سره ددې خلق اطمينان نه وی نو ﴿فَأَوْقِدْ لِى يَٰهَٰمَٰنُ عَلَى ٱلطِّينِ﴾ [اے هامان ته ما لره ] د[خاورې] خښتې جوړې كړه [ په اور كښې پخې كړه ﴿فَٱجْعَل لِّى صَرْحًا لَّعَلِّىٓ﴾ بيا ددغو پخوخښتونه [زما دپاره يوه اوچته آبادی جوړه كړه ﴿أَطَّلِعُ إِلَىٰٓ إِلَٰهِ مُوسَىٰ﴾ ددې دپاره چه ] زۀ دې ته اوخيژم [دموسى ﷺ] [خدائ لره وګورم وينم ﴿وَإِنِّى لَأَظُنُّهُۥ مِنَ ٱلْكَٰذِبِينَ﴾ او زۀ خو] په دې دعوی كښې چه څوك بل خدائ شته [موسى ﷺ] [لره درغژن ګڼړم ﴿وَٱسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُودُهُۥ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ﴾ او فرعون او ددۀ تابعدارانو ناحق په دنيا كښې سر پورته كړې وو ﴿وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُمْ إِلَيْنَا لَا يُرْجَعُونَ﴾ او داسې يې ګڼړل چه دوی لره مونږ ته واپس راتلل نشته نو مونږه] ددې تكبر په سزا كښې ﴿فَأَخَذْنَٰهُ وَجُنُودَهُۥ فَنَبَذْنَٰهُمْ فِى ٱلْيَمِّ﴾ [ دۀ لره او ددۀ تابعدارولره ونيول په درياب كښې مووغورزول ] يعنى غرق مو كړل ﴿فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ [ پس وګورئ دظالمانو انجام څنګه شو؟] او دموسى ﷺ دقول ظهور وشو[1] ﴿مَن تَكُونُ لَهُۥ عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ ۗ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ ﴿وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى ٱلنَّارِ﴾ [او مونږ هغه خلق داسې مشران جوړكړی وو كوم چه ] خلقو لره [ دوزخ طرف ته بلې او] په دې واسطه ﴿وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ لَا يُنصَرُونَ﴾ [ دقيامت په ورځ به] داسې بې آسرې پاتې شی چه [څوك به هم ددوی مدد ونه كړی او] دا خلق په دواړه جهانه تاوان كوونكی او زيانكاره شول چنانچه ﴿وَأَتْبَعْنَٰهُمْ فِى هَٰذِهِ ٱلدُّنْيَا لَعْنَةً﴾ [ په دنياكښې هم مونږ په دوی پسې لعنت لګولې دې ﴿وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ هُم مِّنَ ٱلْمَقْبُوحِينَ﴾ او دقيامت په ورځ به هم دبدحاله خلقو نه وی ].

## معارف او مسائل

﴿ فَأَوْقِدْ لِى يَٰهَٰمَٰنُ عَلَى ٱلطِّينِ﴾ فرعون د ډير لوړ محل جوړولو اراده اوكړه ، ځكه ئې خپل وزير هامان ته اووئيل چې د خټو خښته جوړ كړې خښتې په اور پخې كړه ، ځكه چې دكچه خښتو څخه دومره لوړ عمارت نشي جوړيدې. ځينې حضراتو فرمائيلی دی چې ددې څخه مخكښې پخې ښختې سره د آبادئ كولو رواج نه وو. دا د ټولو څخه ړومبې فرعون ايجاد كړو. تاريخې روايتونو كښې راغلی دی چې هامان ددې محل تعمير كولو دپاره پنځوس زره ګلكاران راجمع كړل . مزدوران ، تركاڼان ، لوهاران ددې څخه علاوه وو. دغه محل دومره لوړ كړې شو چې په دغه زمانه كښې د هغې څخه بل لوړ عمارت نه وو. كله چې دغه محل مكمل شو نو جبرائيل ﷺ د الله ﷻ په حكم دغه محل درې ټوټې كړو او دا راګذار شو او په زرګونو فرعونيان ددې لاندې راغلل او مړه شو. [قرطبی][2].

﴿وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى ٱلنَّارِ﴾ يعنى د فرعون درباريانو لره الله ﷻ ددغې قوم پيشوايان جوړ كړی وو. خو دغې غلط كارو پيشوايانو به خپل قوم اور د جهنم ته راغوښتل ، دلته اكثرو مفسرينو اور طرفته بلل يوه استعاره اومجاز وئيلې ده . يعنى د اور څخه ئې مراد

[1]) ترجمه: دچا انجام چې په دې عالم كښې ښه كيدو والا دې ، يقيناً ظالمان خلق بۀ كله هم كاميابی اونه مومی.
[2]) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۸۸ ، ۲۸۹]

کفری عملونه اخستی دی. چې نتیجه ئې د جهنم اور ته تلل وو مگر استاد محترم یکتائې زمانه مولانا محمد انورشاه کشمیری رحمه الله د هغه تحقیق دا وو چې دابن عربی تابعداری ئې په کښې اختیار کړې وه چې د آخرت جزا صرف او صرف عمل دې. یعنی د انسان عملونه به په برزخ او محشر کښې شکل بدل کړی چې نیك عملونه به گل گلزار جوړ شی او د جنت د نعمتونو شکل به اختیار کړی. دغه شان کفری عملونه به د اور ، مارانو ، لړمانانو ، او د قسماقسم عذابونو شکلونه اختیار کړی ، په دې بنا څوك چې په دې دنیا کښې چالره کفر اوظلم ته رابلی هغه په حقیقت کښې هم دې اور ته رابلی ، ددې مطابق په آیت کښې څه مجاز او استعاره نشته ، خپل حقیقت ترې مراد دې ، ددې تحقیق په اختیارولو سره به د قرآن عظیم الشان په بې شمیره آیتونو کښې د مجاز او استعارې تکلف کول نه راپیښیږی لکه په ﴿وَوَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا﴾[1] او په ﴿فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ﴾[2] وغیره کښې.

﴿وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ هُمْ مِّنَ الْمَقْبُوْحِيْنَ﴾ ، ﴿الْمَقْبُوْحِيْنَ﴾ د مقبوح جمع ده چې معنی ئې وران کړې شوې ده ،مطلب دادې چې د قیامت په ورځ به ددغې خلقو مخونه وران او تور شی او سترگې به ئې نیلا رنگې شی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ | اٰتَيْنَا | مُوْسَى | الْكِتٰبَ | مِنْۢ بَعْدِ | مَآ اَهْلَكْنَا | |
| او په تحقیق سره | ورکړو مونږ | موسی ته | کتاب | پس دهغې نه | چې هلاك کړل مونږه | |
| اومونږ موسی علیه السلام ته د پخوانو امتونو د تباه کولو نه پس کتاب [تورات] ورکړو | چې دهغې | | | | | |
| الْقُرُوْنَ | الْاُوْلٰى | بَصَآئِرَ | لِلنَّاسِ | وَهُدًى | | |
| خلق | اولنی | چې سبب درنړا کولو دزړونو وو | دپاره دخلقو | او لاربنودونکې وو | | |
| زمانې د خلقو دپاره د هوښیارتیا ذریعه وه | ..........اوسراسر هدایت | | | | | |
| وَّرَحْمَةً | لَّعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُوْنَ | وَمَا كُنْتَ | بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ | | |
| او رحمت وو | دپاره ددې چې خلق ترې | نصیحت واخلی | او نه وې ته | په طرف دمغرب | | |
| اورحمت وو | چې دوئ ترې نصیحت حاصل کړی | او ته دکوه طور غربی طرف ته موجود نه وې | | | | |
| اِذْ | قَضَيْنَآ | اِلٰى مُوْسَى | الْاَمْرَ | وَمَا كُنْتَ | مِنَ الشّٰهِدِيْنَ | |
| کله چې | ورکړو مونږ | موسی ته | کار درسالت | اونه وې ته | دحاضرینو نه | |
| څه وخت چې مونږ موسی علیه السلام ته حکم کولو | او ته په هغو خلقو کښې شامل نه وې کوم چې حاضر وو | | | | | |
| وَلٰكِنَّآ | اَنْشَاْنَا | قُرُوْنًا | فَتَطَاوَلَ | | | |
| ولیکن مونږه | راپورته کړل | خلق [نسلونه ډیر دزمانې پورې] | پس اوږده شول [تیر شول] | | | |
| بیا مونږ ډیر قومونه پیدا کړل | ..........بیا په هغوئ اوږده زمانه تیره شوه | | | | | |

---

[1] ترجمه:- او څه چې دوئ کړی وی هغه به ئې مخکښې موجود وی.
[2] ترجمه:- کوم یو کس چې ذره برابر نیکی هم اوکړی هغه به هم اووینی.

عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ۚ وَمَا كُنْتَ ثَاوِيًا فِيٓ اَهْلِ مَدْيَنَ

په هغوئ باندي| عمرونه [زمانه] | اونه وې ته | اوسيدونکې | په خلقو دمدين کښي |

اوته دمدين په خلقو کښې هم ډيره نه وې چې زمونږ ايتونه دي ورته

تَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۙ وَلٰكِنَّا كُنَّا

چې ګني اورول به دا | په هغوئ باندي | آيتونه زمونږ | وليکن | دا خو مونږه يو |

اورولي | بلکه دا خو هم مونږ يو چې رسولان مو ورته ليږل

مُرْسِلِيْنَ ۝ وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّوْرِ اِذْ نَادَيْنَا

چې درليږونکي يو [دهغه وخت خبرونه] | اونه وې ته | په طرف دطور کښې اکله چې آواز اوکړو مونږه |

او نه ته دغه وخت د طور غر په لمنه کښې موجود وې اکله چې مونږ [موسی ﷺ] ته آواز کړې وو

وَلٰكِنْ رَّحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ قَوْمًا

وليکن [دامعلومات ښودل] ارحمت دي | دطرفه درب ستانه | دپاره ددې چې ته اويروي | هغه قوم [خلق]

خو دا ستا د رب د طرفنه يو رحمت دي | چې ته هغه قوم [دنافرمانئ دنتيجونه] اوويروي | چا ته

مَّآ اَتٰىهُمْ مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ۝

چې نه دي راغلي هغوئ ته | يو يرونکې | مخکښې ستانه | دپاره ددې چې هغوئ نصيحت قبول کړي

چې ستانه وړاندې څوک ويرونکي نه دې راغلي | د دې دپاره چې دوی ستا نصيحت قبول کړي

وَلَوْلَآ اَنْ تُصِيْبَهُمْ مُّصِيْبَةٌۢ بِمَا

اوکه چرې نه وې داخبره | چې اوبه رسيږي دوئ ته | مصيبت | په سبب دهغو ګناهونو |

اوکه چرې داخبره نه وې | چې په دوئ باندې به د خپلو عملونو په وجه مصيبت راغلي وې

قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ فَيَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَوْلَآ اَرْسَلْتَ

چې مخکښې ليږلي دی | لاسونو ددوئ | نو اوبه وائي | اے ربه زمونږه | ولې رااونه ليږوتا

نوبيا به ئې دا وينا ګاني کولي | چې ائې زمونږه ربه ! تا مونږ ته په دنيا کښې

اِلَيْنَا رَسُوْلًا فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝

مونږ ته | يو رسول | چې پيروي کړې وې مونږ | دآيتونو ستا | او شوي وې مونږ | دمومنانونه |

ولې پيغمبر نه وو راليږلي | چې مونږ ستا په حکمونو عمل کړې وې | اومومنان شوې وې

فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوْا لَوْلَآ اُوْتِيَ

پس هر کله چې | راغي هغوئ ته | حق | دطرفه زمونږ نه | اووې وئيل | ولې ورنه کړې شو ده ته |

خو کله چې دې خلقو ته زمونږ طرف نه حق اورسيدو | نو دوئ وائي چې دې نبي ته هم هغه څه ولې ورنکړې شو

مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى ؕ اَوَلَمْ يَكْفُرُوْا بِمَآ

په شان دهغې | چې ورکړې شوې وو | موسی ته | آيا نه دي کړې انکار دې خلقو | په هغې

چې موسی ﷺ ته ورکړې شوې وو | آيا څه چې ددې نه وړاندې موسی ﷺ ته ورکړې شوې وو

أُوْتِيَ مُوْسٰى مِنْ قَبْلُ ۚ قَالُوْا سِحْرٰنِ تَظٰهَرَا ۣ

چې ورکړې شوې وې | موسی ته | مخکښې ددې نه | اووئیل هغوئ | دواړه جادو دي | چې دیو بل امداد کوي

نو دوئ د هغې نه انکار اونکړو | څه وخت چې دوئ وئیلي وو چې دادواړه یو بل سره مدد کونکي جادوګردي

وَقَالُوْٓا اِنَّا بِكُلٍّ كٰفِرُوْنَ۝ قُلْ فَاْتُوْا بِكِتٰبٍ

اواووئیل هغوئ | بیشکه مونږه | هر یولره | نهٔ منونکي یو | ورته اووایه | پس راوړئ | یو کتاب

اودا وائي چې مونږ د ټولو نهٔ انکاریان یو | ............[ائې پیغمبره] ته ورته اووایه که چرې تاسو

مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ هُوَ اَهْدٰى مِنْهُمَآ اَتَّبِعْهُ

دطرفه دالله نه | چې هغه | زیات لاربنودونکي وي | ددې دواړونه | زهٔ به هم پیروی اوکړم دهغې |

دعوی کښې ریښتوني يئ اِنو تاسو دالله دطرفه یوداسې کتاب راوړئ اِچې ددې دواړو کتابونو [قران اوتورات]

اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ۝ فَاِنْ لَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَكَ فَاعْلَمْ

که چرې يئ تاسو | ریښتیني | پس که قبوله نهٔ کړه هغوئ | داخبره ستا | نوپوهه شه

نه په هدایت کښې زیات ښه وي اِنو زهٔ به هم دهغې پیروی او کړم اِبیا که دوئ تاته جواب درنه کړو نوپوهه شه

اَنَّمَا يَتَّبِعُوْنَ اَهْوَآءَهُمْ ۗ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنِ

چې بیشکه | پیروی کوي دوئ | دخواهشاتو خپلو | او څوك دې | ډیر ګمراهه | دهغه چانه |

چې دوئ صرف پخپلو خواهشاتو پسې روان دی | او د هغه سړي نه به زیات ګمراه

اتَّبَعَ هَوٰىهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي

چې روان شو | په خواهشاتو خپلو پسې | بغیر دهدایت | دالله نه | بیشکه الله | لار نه ښائي |

بل څوك وي | چې دالله ﷻ د هدایت نه بغیر دخپل خواهش تابعداري کوي | بیشکه الله ﷻ

الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ۝ ع وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ الْقَوْلَ

قوم[خلقو] | ظالمانوته | په تحقیق سره رسولی ده مونږه | دوئ ته | خبره دنصیحت |

ظالمانو خلقو ته لار نه ښائي | اومونږ خلقو ته پرله پسې خپل حکمونه رالیږو

لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ۝ ۭ

دپاره ددې چې دوئ | نصیحت قبول کړي |

د دې دپاره چې هغوئ نصیحت قبول کړي|

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ د مخکښې اُمتونو د هلاکولو نه پس حضرت موسٰی علیه السلام ته داسې کتاب ورکړې وو چه د خلقو دپاره د بصیرت په خبرو باندې مشتمل وو، او ټول هدایت او رحمت وو. دپاره ددې چه هغوی نصیحت حاصل کړی او (اې پیغمبره!) ته هغه وخت (د کوه طور) په مغربي طرف باندې موجودنه وې کله چه مونږ حضرت موسٰی علیه السلام ته احکام سپارلي وو اونه ته په هغه خلقو کښې وې چه دهغوی مشاهده دې کوله بلکه د هغوی نه پس مونږ ډیر نسلونه پیدا کړی دی. په چا باندې چه اوږده زمانه تیره شوه او ته

د مدین په اوسیدونکو کښې هم مقیم نه وې چه هغوی ته زمونږ آیتونه لولې، بلکه (تالره) رسول جوړونکی مونږ یو. او نه ته هغه وخت د طور په غاړه باندې موجود وې چه کله مونږ (موسٰی) راپللې وو، بلکه دا ستا د رب رحمت دې (چه تا ته د وحی په ذریعه دا خبرې بیانولې شی) چه ته هغه قوم لره خبردار کړې چا ته چه ستا نه مخکښې څوک خبردار کونکې نه دې راغلې کیدې شی چه هغوی نصیحت قبول کړی. او د دې دپاره چه کله په هغه خلقو باندې د هغوی د عملونو په وجه څه مصیبت راشی نو دا به نه شی وئیلې: چه اې زمونږ ربه! تا مونږ ته یو رسول ولې نه رالیږلو چه مونږ ستا د آیتونو تابعداری کړې وې او په ایمان والو کښې به شامل شوې وې؟ بیا چه کله هغوی ته زمونږ د طرف نه حق راغلو نو وې وئیل چه: دې پیغمبر ته هغه شان څیزونه ولې ورنکړې شو څنګه چه موسٰی علیه السلام ته ورکړې شوې وو؟ حال دا چه کوم څیزونه موسٰی علیه السلام ته ورکړې شوې وو، آیا دوی مخکښې د هغې نه انکار نه ووکړې؟ هغوی وئیلې وو چه: دا دواړه جادو دې کوم چه دیو بل تائید کوی او مونږ په دې کښې د هر یو نه انکار کوو. (دوئ ته) اووایه: که تاسو رشتینی یئ نو د الله پاک د طرف نه یو داسې کتاب راوړئ کوم چه د دې نه زیات په هدایت باندې مشتمل وی، زه به د هغې اتباع اوکړم. پس که دوی ستا فرمائش پوره نه کړی نو پوهه شه چه دا خلق په خپل خواهش پسې روان دی. او د هغه چا نه زیات ګمراه څوک دې چه د الله پاک د طرف نه د راغلی هدایت نه بغیر بس په خپل خواهش پسې روان وی؟ بیشکه الله پاک ظالمانو ته هدایت نه ورکوی. او واقعه دا ده چه مونږ د دوئ د فائدې دپاره د یو نه پس بل (د نصیحت) خبرې رالیږو، چه دوئ خبردار شی.

## خلاصه تفسیر

[او] درسالت سلسله دخلقو داصلاح د احتیاج په سبب دهمیشه نه راروانه ده چنانچه ﴿وَلَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسَی الْکِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِ مَآ اَهْلَکْنَا الْقُرُوْنَ الْاُوْلٰی﴾ [مونږه موسی] ﷺ [لره] چه قصه ئې اوس وشوه [د وړاندې امتونو] یعنی قوم دنوح ﷺ او عاد او ثمود [دهلاکیدونه وروستو] کله چه دهغو زمانو دپیغمبرانو تعلیمات نایابه شوی وو او خلق دهدایت سخت حاجتمند وو [کتاب] یعنی تورات [ورکړې وو ﴿بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًی وَّرَحْمَةً﴾ کوم چه دخلقو] یعنی بنی اسرائیلو [دپاره دپوهیدو سبب او هدایت او رحمت وو ﴿لَّعَلَّهُمْ یَتَذَکَّرُوْنَ﴾ ددې دپاره چه هغوی] په دې سره [نصیحت حاصل کړی] دحق دطلب کوونکی اول پوهه برابریږی دا بصیرت دې بیا احکام قبلوی دا هدایت دې بیا دهدایت ثمره او فائده یعنی نزدیکت او قبولیت ورته عنایت کیږی دارحمت دې [او] دغه شان کله چه دا دوره هم ختم شوه او خلق بیانوی هدایت ته محتاج شول دخپلو جاری سنتو مطابق مونږ تالره رسول جوړ کړو چه ددې په دلیلونو کښې یوه دا واقعه دموسی ﷺ یقینی خبر ورکول دی ځکه چه دقطعی خبر ورکولو دپاره څه طریقه دعلم ضروری ده او دغه طریقه په څلورو امورو کښې منحصره ده په عقلی امورو کښې عقل، پس دا واقعه خو دعقلی امورو نه نه ده او په نقلی امورو کښې یا اوریدل داهل علمو نه کوم چه دویمه طریقه ده پس داهم په وجه دنه خلط کیدو اود نه لوستلو داهل خبرونو نه نشته او یا خپله مشاهده کومه چه دریمه طریقه ده پس ددې نشتوالې خو ډیر ظاهر دې چنانچه ظاهره ده چه ﴿وَمَا کُنْتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِیِّ﴾ [ته] دطور [په مغربی جانب کښې موجود نه وې ﴿اِذْ قَضَیْنَآ اِلٰی مُوْسَی الْاَمْرَ﴾ کله چه

مونږ موسی ﷺ [ ته احکام ورکړي وو] یعني تورات ورکړې وو [او] هلته خاص ته څه موجود وې ﴿وَمَا كُنْتَ مِنَ الشّٰهِدِيْنَ﴾ [ ته] خو[په هغه خلقو کښې] هم [نه وې کوم چه] په هغه زمانه کښې [موجود وو] پس احتمال دمشاهدې هم پاتې نه شو ﴿وَلٰكِنَّا﴾ [ اولیکن ] خبره داده چه [مونږه] دموسی ﷺ نه پس ﴿اَنْشَاْنَا قُرُوْنًا فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ﴾ [ډیر نسلونه پیدا کړل بیا په دوی اوږده زمانه تیره شوه] چه په دې سره بیا صحیح علمونه نایابه شول او بیا خلق د هدایت محتاجه شول او اګرچه په مینځ مینځ کښې انبیاء ﷺ هم څو راغلل مګر دهغو علمونه هم دغسې نایاب شول په دې وجه زمونږ رحمت مقتضي شو چه مونږ تالره په وحی درسالت سره مشرف کړلو کومه چه څلورمه طریقه ده دیقیني خبر او نورې طریقې دعلم ظني دی کومې چه دبحث نه خارجې دی ځکه چه ستا داخبرونه بالکل یقیني او قطعي دی مطلب دادې چه دعلم یقیني څلور طریقې دی او درې نشته دی پس څلورمه متعینه او هم دامطلوب ده [او]﴿وَمَا كُنْتَ ثَاوِيًا فِيْ اَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا﴾ ځنګه چه تاد تورات ورکول نه دی لیدلی او صحیح او یقیني خبر ورکوې دغه شان تا دحضرت موسی ﷺ دمدین اوسیدل هم نه دی لیدلی چنانچه ظاهره ده چه [ته په مدین کښې اوسیدونکې هم نه وې چه تا] دهغه ځائ حالات لیدلی وی او دهغو حالاتو متعلق [ زمونږ ایتونه] خپلو[دې ] زمانې [خلقو ته لولوې اوروې ]﴿وَلٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ﴾ [او لیکن مونږ] تالره [ رسول جوړونکی یو] چه رسول مو جوړ کړې دا واقعات مو درته په وحی وښودل [او] ﴿وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّوْرِ﴾ دغه شان [ ته دطور په] مغربي ذکر شوی [طرف کښې هغه وخت هم موجود نه وې ﴿اِذْ نَادَيْنَا﴾ کله چه مونږه ] موسی ﷺ ته [ آواز کړې وو] چه ﴿اَنْ يّٰمُوْسٰۤى اِنِّيْۤ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ وَاَنْ اَلْقِ عَصَاكَ﴾ (۱) کوم چه دا ته دنبوت ورکولو وخت وو ﴿وَلٰكِنْ رَّحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ﴾ [او لیکن] دهغه علم هم داسې حاصل شو چه [ته د خپل رب په رحمت سره نبی جوړ کړې شوې ﴿لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّاۤ اَتٰىهُمْ مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ﴾ چه ته داسې خلقو لره وویروې کومو ته چه ستا نه وړاندې څوك ویرونکې] نبي [ نه دې راغلې څه عجیبه ده چه نصیحت قبول کړي] ځکه چه د نبی کریم ﷺ دزمانې خلقو بلکه ددوی ﷺ نژ دې پلارانو هم چانبی لره نه وولیدلې اګر چه ځنې شریعتونه خاصکر توحید په واسطو سره دوی ته هم رسیدلی وو پس [ ولقد بعثنا في كل امة رسولا] (۲) سره ئ تعارض پاتې نه شو [او] که دا خلق لږ شان فکر وکړي نو پوهه به شي چه په پیغمبرلیږلو سره زمونږ څه فائده نشته بلکه ددغو خلقو فائده ده چه داخلق په ښه بد باندې خبریدلو سره دعذاب نه بچ کیدې شي ورنه دکومو کارونو ناکاروالې چه په عقل سره معلومیدې شي په هغې عذاب درسولانو د رالیږلو نه بغیر هم کیدل ممکن وو لیکن هغه وخت به دوی یو قسم له افسوس کولو چه هائ که رسول راغلې وی نو مونږ به زیات پوهه شوی وو او په دې مصیبت کښې به نه وو پریوتی په دې وجه مونږ رسول هم راولیږلو چه ددې افسوس نه بچ کیدل دوی ته آسان وی ورنه احتمال وو چه [مونږ رسول لیږلې هم نه ﴿وَلَوْلَاۤ اَنْ تُصِيْبَهُمْ مُّصِيْبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ﴾ که دا خبره نه وې چه په دوی دعملونو په سبب ] کوم چه په عقل سره قبیح دی [څه مصیبت] په دنیا یا په آخرت کښې [نازل شوې وې ] دکوم په نسبت چه دوی ته په عقل یا

---

(۱) ترجمه:- اې موسی ! زه رب العالمین یم او دا چې ته خپله همسا اوغورزوه.

(۲) ترجمه:- او مونږ په هر امت کښې یو نه یو پیغمبر لیږلو.

دفربنتي په ذريعه يقين شوې وي چه دا دعملونو سزا ده ﴿فَيَقُولُوا رَبَّنَا لَوْلَا أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ﴾[نو دوى به وئيل چه اے زمونږ پروردګاره تامونږ ته څوك پيغمبر ولې نه راليږلو چه مونږ ستا داحكامو تابعداري كړې وې ﴿وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ او] په دغو احكامو او رسولانو [ د سايمان راوړونكو سره شوى وې پس] ددې كار مقتضا خو دا وه چه درسول راتلل دوى غنيمت ګنړلې او د دۀ حق دين ئې قبلولې ليكن د دوى دا حالت شو چه ﴿فَلَمَّا جَاءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا﴾[ هركله زمونږ دطرف نه دې خلقو ته حق كار] يعنى حق رسول او حق دين [ راورسيدونو] په دې كنبې دشكونو كولو دپاره ئې داسې ﴿قَالُوا لَوْلَا أُوتِيَ مِثْلَ مَا أُوتِيَ مُوسَىٰ﴾[ ووئيل چه دوى ته داسې كتاب ولې ملاؤنه شو لكه چه موسى ﷺ [ته ملاؤشوې وو] يعنى قرآن په يوځائ د تورات په شان ولې نازل نه شو وړاندې جواب دې چه ﴿أَوَلَمْ يَكْفُرُوا بِمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ مِنْ قَبْلُ﴾ [آيا كوم كتاب چه موسى ﷺ [ته ملاؤشوې وو ددې نه وړاندې داخلق دهغې نه نه دى منكر شوى] چنانچه ظاهره ده چه مشركانو موسى ﷺ او تورات هم نه منلو ځكه چه دوى خو په اصل كنبې دنبوت نه منكر وو [ داخلق خو] دقرآن او تورات دواړو په نسبت ﴿قَالُوا سِحْرَانِ تَظَاهَرَا﴾[ داسې وائى چه دا دواړه جادو دې كوم چه ديوبل موافق دى] دا ځكه وائى چه په اصولو دشريعت كنبې دواړه متفق دى ﴿وَقَالُوا إِنَّا بِكُلٍّ كَافِرُونَ﴾[او داسې هم وائى چه مونږ خو په دواړو كنبې يو لره هم نه منو] خواه كه دا عبارت ددوى خبره وى اوكه ددوى دخبرونه لازميږى او خواه په يو ځائ ئې د دواړو نه انكار كړې وى يا ددوى مختلفې خبرې جمع كړې شوې وى نو ددې نه صفا معلوميږى چه د دې شبهې منشاء قصد دايمان په قرآن باندې په صورت دمثل كيدو د تورات نه دې چه ګوند كه دې دتورات په شان وى نو مونږ به پرې ايمان راوړې وو بلكه داهم يوه حيله او شرارت دې وړاندې ددې جواب دې چه اے محمد ﷺ ﴿قُلْ﴾ [ ته ووايه چه ښه نو] علاوه دتورات او دقرآن نه ﴿فَأْتُوا بِكِتَابٍ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ هُوَ أَهْدَىٰ مِنْهُمَا أَتَّبِعْهُ﴾ [تاسو څه بل كتاب دالله تعالى دطرف نه راوړئ كوم چه په هدايت كولو كنبې ددې دواړو نه غوره وى زۀ به دهغې پير وى شروع كړم ﴿إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ﴾ كه تاسو] په دې دعوى كنبې [ربنتونى يئ] چه [ سحران تظاهرا] چه په دې سره مقصود ددې دواړو كتابونو نعوذ بالله دځانه جوړول او غلطول دى يعنى مقصود خو دحق تابعدارى ده پس كه دالله تعالى كتابونه حق نه منئ نو ددې پير وى وكړئ د قرآن خو مطلقا او دتورات په توحيد او په خوشخبرئ وركولو دمحمد ﷺ كنبې او كه دا حق نه منئ نو تاسو څه حق پيش كړئ او دهغې حقوالې ثابت كړئ داځ په اهدى سره ځكه تعبيركړې دې چه مقصود دحق نه دهغې وسيله دهدايت ګيدل دى كه فرضا ئې ثابت كړئ نو زۀ به دهغې پيروى كوم غرض دادې چه زۀ حق ثابتوم نو تاسو ئې تابعدارى كوئ اوكه تاسو حق ثابتوئ نو زۀ به ئې دتابعدارئ دپاره تياريم او چونكه په قضيه شرطيه كنبې محض حكم د اتصال وى په دې وجه تابعدارى دهغو كتابونو چه غير الهيه وى په هغه اشكال نه لازميږى ﴿فَإِنْ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَكَ﴾ [بيا] ددې دليل نيولو نه پس [كه داخلق ستا] دا [ خبره ] چه [ فأتوابكتب الخ ] [ونه كړې شى] او ظاهره ده چه نه ئې شى كولې لكه دا قول دالله تعالى دى [فان لم تفعلواولن تفعلوا](۱) او بيا هم ستا تابعدارى نه كوى ﴿فَاعْلَمْ﴾[ نوته پوه شه چه] ددې سوالونو منشاء څه اشتباه او دحق

۱) ترجمه:- اوته دا كار نشې كولې او تر قيامته به يې اونه كړې شې.

لتولو کښې تردد نه دې بلکه ﴿اَنَّمَا یَتَّبِعُوْنَ اَهْوَآءَهُمْ﴾ [ داخلق محض په خپلو نفساني خواهشونو باندې چليږي] د دوی نفس وائی چه هرڅنګه وی انکار کول غواړي پس دوی هم داسې کوی اګر چه حق واضحه هم شی ﴿وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنِ اتَّبَعَ هَوٰىهُ بِغَیْرِ هُدًى مِّنَ اللّٰهِ﴾ [او دداسې سړی نه زيات ګمراه به څوك وی کوم چه په خپلو نفساني خواهشاتو باندې چليږي بغير ددې نه چه دالله تعالى دطرف نه څه دليل] دده سره [وی] او ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ﴾ [ الله تعالى داسې ظالمانو خلقو ته] کوم چه دحق واضح کيدو نه پس بغير دڅه صحيح دليل نه هم دخپلې ګمراهۍ نه واپس نه شی [هدايت نه کوی] چه سبب ئې دهغې سړی په خپله قصد کول دی دخپل ګمراه پاتې کيدلو د قصد نه پس فعل پيدا کول عادت دې دالله تعالى په دې وجه داسې سړې هميشه ګمراه وی تردې پورې خو الزامی جواب وو ددوی ددې قول چه [لولااوتی مثل مااوتی موسی] [او] وړاندې تحقيقي جواب دې چه په دې کښې دقرآن په جمع يو ځائې د نه نازليدو حکمت بيانوی چه ﴿وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ الْقَوْلَ﴾ [ مونږه دې کلام] يعنی قرآن [لره د دوې خلقو دپاره وقتا فوقتا په يو بل پسې راوليږلو ﴿لَعَلَّهُمْ یَتَذَكَّرُوْنَ﴾ چه خلق] بار بار په تازه تازه اوريدو سره [ نصيحت ومنی] يعنی مونږ خوئ په يو ځائ په جمع نازلولو باندې هم قادريو مګر ددوی دمصلحت په وجه سره ئې لږلږ نازلوو خودا خلق دخپل مصلحت مخالفت کوی.

## معارف او مسائل

﴿وَلَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِ مَاۤ اَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ الْاُوْلٰى بَصَآىِٕرَ لِلنَّاسِ﴾ دلته د قرون اولی څخه مراد د نوح ﷺ، هود ﷺ، صالح ﷺ او لوط ﷺ قومونه دی چې د موسی ﷺ څخه مخکښې د خپلې سرکشۍ په وجه هلاك کړې شوی وو. او بصائر د بصيرت جمع ده چې لفظی معنی ئې پوهه او د سترګو نظر دې. او دلته دې څخه مراد هغه نور دې کوم چې الله ﷻ دانسانانو په زړونو کښې پيدا کوی چې په هغې سره دوئ د څيزونو حقيقتونه ليدلې شی او د حق او باطل تر مينځه فرق کولې شي. [مظهری][1]

﴿بَصَآىِٕرَ لِلنَّاسِ﴾ کښې که د ناس څخه مراد د موسی ﷺ امت وی نو خبره صفا ده چې هغوئ دپاره خو د تورات کتاب دبصيرتونو مجموعه وو او که دناس څخه مراد ټول انسانان واخستې شی چې په کښې امت محمد ﷺ هم شامل دې نو سوال دا پيدا کيږی چې د امت محمديه ﷺ په زمانه کښې چې کوم تورات موجود دې هغې کښې ډير زيات بدلون راوستې شوې دې او منسوخ شوې هم دې. نودې امت دپاره هغه بصائر څنګه کيدې شی؟ بله دا چې دې څخه دا معلوميږی چې مسلمانان دې هم د تورات څخه فائده اخلی حالانکه حديث پاك کښې مشهوره واقعه ده چې کله فاروق اعظم ﷺ د نبی اکرم ﷺ څخه دا اجازت اوغوښتلو چې د تورات نصيحتونه لولم چې په علم کښې مې اضافه اوشی نو نبی اکرم ﷺ په غصه شو او وې فرمائيل چې که په دې وخت کښې موسی ﷺ ژوندې وې نو هغوئ ﷺ به هم زما تابعداری کوله. يعنی د نبی اکرم ﷺ مقصد دا وو چې صرف زما تعليماتو پسې ځې، تورات او انجيل پسې مه ځئ.

---

[1]) تفسير المظهري [ج:۷ص:۱٦۷]

خو ددې په جواب کښې دا وئيلې شي چې په دغه وخت کښې د تورات کومه نسخه وه اهل کتاب سره چې هغه نسخه کښې بدلون راوستې شوې وو اود اسلام ابتدائی زمانه وه چې قرآن عظيم الشان نازليدل په کښې جاري وو. پدغه زمانه کښې د قرآن عظيم الشان د حفاظت په غرض نبی اکرم ﷺ لره څينې صحابه کرامو ﷺ دخپلو احاديثو د ليکلو څخه هم منع کړی وو چې هسې نه خلق قرآن عظيم الشان سره احاديث ګډوډ کړي. نو داسې حالاتو کښې د بل منسوخ شوی آسمانی کتاب لوستل ښکاره خبره ده چې احتياط څخه خلاف وو، دې څخه دا نه لازميږی چې مطلق د تورات او انجيل دمطالعې او لوستلو څخه منع کړې شوې ده .نو هم ددې کتابونو هغه حصې مطالعه کول او نقل کول د صحابه کرامو ﷺ څخه ثابتې او مشهور دی کومو کښې چې د نبی اکرم ﷺ په باره کښې پيشنګويانې راغلی دی. عبدالله بن سلام او کعب بن احبار په دې معامله کښې د ټولو څخه زيات مشهور او نورو صحابه کرامو ﷺ هم په دوئ څه نکير نه وو کړې، په دې بنا د آيت مبارك حاصل به دا شی چې په تورات او انجيل کښې اوس هم چې کوم مضمونو نه دی بدل شوی او موجود دی نو بيشکه چې هغه بصائر دی، هغې څخه فائده اخستل درست دی خو ښکاره خبره ده چې دې څخه هغه څوك فائده اخستلې شی چې د بدليدونکو اونه بدليدونکو مضمونونو ترمينځه فرق کولې شی. صحيح او غلط پيژندلې شی چې هغوئ صرف ماهرين علماء کيدې شی بيشکه عوام دې دې څخه څان ساتی هسې نه چې غلطئ کښې پريوزی. دا حکم داسې ټولو کتابونو کښې دې چې په کښې د حق اوباطل سره ګډون وې، عوام دې دهغه د مطالعې نه خان ساتی، ماهرين علماء کرام ئې چې ګوری نو څه بديت ئې نشته.

﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّا أَتَاهُم مِّن نَّذِيرٍ﴾ دلته ددې قوم څخه مراد عرب دی چې د اسماعيل ﷺ اولاد دی او د هغوئ ﷺ څخه روستو د خاتم الانبياء ﷺ تر زمانې پورې په دوئ کښې څوك پيغمبر نه وو راليږلې شوې.دامضمون په سورۀ ياسين کښې هم را تلونکې دې، دې څخه معلومه شوه چې د قرآن عظيم الشان په يو بل آيت مبارك کښې دی: ﴿وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ﴾ يعنی [داسې څه امت نشته چې پيغمبر به ورته نه وی راغلې] هغه دې سره به بې سمونه څکه نه دې چې ددې آيت مطلب دادې چې تر ډيرې زمانې پورې د اسماعيل ﷺ څخه روستو په دې امت کښې څوك پيغمبرنه وو راغلې خوديو نبی او رسول د راتلو څخه بالکل خالی دا امت هم نه دې پاتې شوې.

﴿وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ الْقَوْلَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ﴾، ﴿وَصَّلْنَا﴾ د توصيل څخه مشتق دې چې اصلی لغوی معنی ئې يو پړې د نورو تارونو په يو ځائې کولو سره مضبوطول ده، مراد دادې چې په قرآن عظيم الشان کښې الله ﷻ د خلقو دهدايت سلسله په مخه جاري لرلې ده، او د نصيحت د ډيرو مضمونونو بيا بيا بيان ئې هم فرمائيلې دې چې آوريدونکی ئې اثر قبول کړي.

**د تبليغ او بلنې آداب**: دې څخه معلومه شوه چې د پيغمبرانو د تبليغ زيات ضروری طرف دا وو چې هغوئ ﷺ به حق خبره په مخه فرمائيله او په مخه به ئې خلقوته رسوله، په دوئ به د خلقو انکار کولو او دروغژن کولو هيڅ اثر نه شو غورځولې چې ګنی خپل دغه کار به ئې بندولو يا به ئې په مخه جاري نه لرلو، بلکه بيا بيا به ئې سره ددې هم خلقو ته بيانولو اورسولو ولې چې د چا په زړه کښې اچول خود يو همدرد نصيحت کوونکی په وس کښې نه

وی البته کوشش کول ئې په وس کښې وو چې په هیڅ شان به ئې په کښې سستی یا بندیز نه راوستو، نن دې هم هغه حضرات ددې څخه عبرت واخلی کوم چې د تبلیغ او بلنې کار کوی.

اَلَّذِيْنَ　اٰتَيْنٰهُمُ　الْكِتٰبَ

| هغه کسان | چی ورکړې وو مونږ هغوی ته | کتاب

| چا ته چې مونږ [دقرآن مجید] نه مخکښې کتاب ورکړی دی

مِنْ قَبْلِهٖ　هُمْ　بِهٖ　يُؤْمِنُوْنَ۝　وَاِذَا　يُتْلٰى　عَلَيْهِمْ　قَالُوْٓا

مخکښې ددې نه | هغوی | په دې قرآن | ایمان راوړی | او کله چی | اوروليې کیږی | هغوی ته | نو وائی

........هغوی په دې [قرآن] باندې هم ایمان راوړی | او کله چې ورته قرآن لوستلې شی | نو دوی وائی

اٰمَنَّا　بِهٖٓ　اِنَّهُ الْحَقُّ　مِنْ رَّبِّنَآ　اِنَّا كُنَّا

چی ایمان راوړو مونږه | په دې باندې | بیشکه چی دا حق دې | د طرفه د رب زمونږ نه | بیشکه وو مونږه

چې مونږ په دې ایمان راوړې دی | چې دا زمونږ د رب د طرفه حق دې | مونږ خو [ددې دراتلو نه]

مِنْ قَبْلِهٖ　مُسْلِمِيْنَ۝　اُولٰٓئِكَ　يُؤْتَوْنَ　اَجْرَهُمْ

مخکښې ددې نه | مسلمانان | دا کسان چی دی | ورکړې کیږی به دوی ته | اجر ددوی

وړاندې تابعدار وو | ............دغه خلقو ته به د دوئ د صبر به وجه دوه خله

مَّرَّتَيْنِ　بِمَا　صَبَرُوْا　وَيَدْرَءُوْنَ　بِالْحَسَنَةِ

دوه خله | په سبب دهغې | چی صبر اوکړو دوئ | او منع کوی دوئ | په نیکئ سره |

خله ثواب ورکولې شی | ............او دوی د نیکئ په ذریعه بدی لرې کوی

السَّيِّئَةَ　وَمِمَّا　رَزَقْنٰهُمْ　يُنْفِقُوْنَ۝　وَاِذَا

بدئ لره | او دهغه رزق نه | چی ورکړې دې مونږ دوئ ته | خرچ کوی دوئ | او کله چی |

او مونږ چې دوئ ته څه ورکړی دی د هغې نه خرڅ کوی | ............او هر کله چې

سَمِعُوا　اللَّغْوَ　اَعْرَضُوْا　عَنْهُ　وَقَالُوْا　لَنَآ　اَعْمَالُنَا

واوریده هغوئ | عبث خبره | نو مخ ئې واړوو | دهغې نه | او وې وئیل | مونږه لره دی | عملونه زمونږه

عبث خبره واوری | نو مخ ترې نه اوګرځوی | او وائی چې زمونږ دپاره خپل عملونه دی

وَلَكُمْ　اَعْمَالُكُمْ　سَلٰمٌ　عَلَيْكُمْ　لَا نَبْتَغِي

او دی تاسو لره | عملونه ستاسو | سلامتیا دوی | په تاسو باندې | نهٔ غواړو مونږه

او ستاسو دپاره ستاسو عملونه دی | زمونږ د طرفنه په تاسو سلام دې | مونږ د جاهلانو [ملګرتیا]

الْجٰهِلِيْنَ۝

طریقه دجاهلانو |

نه غواړو |

## آسان ترجمه قرآن

چا ته چه مونږ د قرآن نه مخکښې آسمانی کتابونه ورکړی دی، هغوی په دې (قرآن) باندې ایمان راوړی او کله چه هغوی ته په لوستلو سره اورولې شی نو وائی چه : مونږ په دې باندې ایمان راوړو، یقینًا دا حق کلام دې کوم چه زمونږ د رب د طرف نه راغلې دې. مونږ خو د دې نه مخکښې هم دا منلو. داسې خلقو ته به د هغوی ثواب دوچنده ورکولې شی ځکه چه هغوی د صبر نه کار واخستلو ، او هغوی په نیکئ سره بدی ختموی ، او مونږ چه څه هم هغوی ته ورکړې دی، په هغې کښې (د الله پاک په لاره کښې) خرچ کوی. او کله چه څه فضول خبره اوری نو دهغې نه اعراض کوی، او وائی چه : زمونږ د دپاره زمونږ اعمال دی، او ستاسو دپاره ستاسو اعمال، مونږ تاسو ته سلام کوو مونږ د ناپوهه خلقو سره اینختل نه غواړو.

## خلاصه تفسیر

او دنبی کریم ﷺ رسالت دهغو خوشخبریو نه هم ثابت دې دکومو چه هغو عالمانو تصدیق کړې دې کوموته چه په تورات او انجیل کښې د دغوخوشخبریو علم دې چنانچه ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِن قَبْلِهِ﴾[کومو خلقو ته چه مونږ دقرآن نه اول ] آسمانی [ کتابونه ورکړی دی] په هغو کښې چه کوم انصاف دار دی ﴿هُم بِهِ يُؤْمِنُونَ﴾[ هغوی په دې ایمان راوړی ﴿وَإِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ قَالُوا آمَنَّا بِهِ إِنَّهُ الْحَقُّ﴾اوکله چه قرآن دهغوی په وړاندې لوستلې شی نو وائی چه مونږ په دې ایمان راوړو بیشکه دا حق دې ] کوم چه ﴿مِن رَّبِّنَا﴾[زمونږ د رب دطرف نه] نازل شوې دې او﴿إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلِهِ مُسْلِمِينَ﴾ [مونږ خو ددې ] دراتلو[ نه وړاندې هم ] دخپلو کتابونو د خوشخبریو په بنا باندې [منلو] اوس دنزول نه پس خپل عهدتازه کوو یعنی مونږ دهغوخلقو په شان نه یو کومو چه دقرآن دنزول نه وړاندې خو ددې تصدیق کولو بلکه ددې دراتلو په انتظار او په شوق کښې وو مګر کله چه قرآن راغې نو ددې نه منکرشول [ فلماجاءهم ماعرفواکفروابه](۱) ددې نه صفا ظاهره شوه چه د تورات او انجیل د خوشخبریو مصداق خاص نبی کریم ﷺ وو لکه چه دسوره شعراء په اخر کښې فرمائی [اولم یکن لهم اٰیة ان یعلمه علماء بنی اسرائیل](۲) تر دې ځایه چه د بنی اسرائیلو دعلماؤ شهادت درسالت محمدی په حقله بیان شو وړاندې داهل کتابو مؤمنانو دفضیلت بیان دې چه ﴿أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوا﴾[ هغو خلقو ته به دهغوی دپوخوالی په وجه سره دوچندثواب ملاویږی] ځکه چه هغوی په اولنی کتاب دایمان ساتلو په ضمن کښې هم په قرآن ایمان لرلو او پس دنزول نه هم په دې قائم پاتې شول او ددې تجدید ئې وکړو دا خو ددوی د اعتقاد او جزا بیان وو وړاندې دعملونو او اخلاقو ذکر دې چه ﴿وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾[او هغه خلق په نیکئ] او آزار[الره دفع کوی [سره بدئ] او تحمل ﴿وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ﴾ اومونږ چه څه هغوی ته ورکړی دی په هغې کښې ] دالله تعالی په لاره کښې [خرچ کوی او] ځکه چه په عملی آزار رسیدوسره صبر کوی دغه شان ﴿وَإِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ﴾[هر کله چه دچانه] دخان متعلق [څه لغوه خبره واوری] کوم چه قولی ازار دې ﴿أَعْرَضُوا عَنْهُ﴾[نو دغې لره] هم [نظر انداز کوی او] په طور دسلامت روئ ﴿وَقَالُوا لَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ﴾[وائی چه ] مونږ هیڅ جواب نه

---

(۱) ترجمه:- بیا چې کله هغه څیز راغلوکوم لره چې دوئ پیژندو نو هغوئ انکار اوکړو.
(۲) ترجمه:- آیا ددې خلقو دپاره دا دلیل نه دې چې ده لره د بنی اسرائیلو عالمانو پیژندو.

درکوو [ زمونږ عمل به مونږ ته راپیښیږی او ستاسو عمل به تاسو ته] وروره ﴿سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ﴾[مونږ خو تاسو ته سلام کوو] مونږ دجگړې نه معاف کړئ ﴿لَا نَبْتَغِي الْجٰهِلِيْنَ﴾[مونږ دناپوهه خلقو سره نښتل نه غواړو]

## معارف او مسائل

﴿اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ﴾ دې آیت مبارک کښې دهغې اهل کتابو خلقو بیان دې چې د رسول کریم ﷺ په پیغمبرئ او د قرآن پاک په نازلیدو باندې د دواړو یعنی تورات او انجیل د زیرو په بنیاد یقین لرلو ، بیا کله چې هغوئ پیغمبر شو نو هم ددغې مخکښینی یقین په بنیاد ئې ایمان راوړو . د ابن عباس رضی الله عنهما د یو روایت مطابق چې د حبشې بادشاه نجاشی څلویښت درباریان هغه وخت مدینه طیبه کښې حاضر شو چې رسول کریم ﷺ د خیبر په غزا کښې مصروف وو. د غه حضرات هم ورسره په جهاد کښې شریک شو، څینې په کښې اګر چې زخمیان شو خو شهیدان هیڅوک هم نه شو. کله چې هغوئ د صحابه کرامو رضی الله عنهم معاشی تنګی اولیده، نورسول کریم ﷺ ته هغوئ درخواست اوکړو چې مونږ د الله ﷻ په فضل سره مالدار او د جائیداد خاوندان یو نو چې خپل ملک ته لاړ شو صحابه کرامو رضی الله عنهم دپاره به څه مال راوړو تاسو راته اجازت راکړئی ، په دې باندې دا آیت مبارک نازل شو : ﴿اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ﴾ تر ﴿وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ پورې[اخرجه ابن مردويه والطبرانی فی الاوسط، مظهری][1]

او د سعیدبن جبیر رضی الله عنه په روایت کښې راغلی دی چې کله جعفر رضی الله عنه د مدینې منورې د هجرت نه وړاندې خپلو ملګرو سره حبشې ته تلې وو او د نجاشی په دربار کښې ئې اسلامی تعلیمات پیش کړل نو د نجاشی او د هغه د دربار والو په زړونو کښې الله ﷻ ایمان واچولو ولې چې هغوئ اهل کتاب وو او په تورات او انجیل کښې ئې درسول کریم ﷺ باره کښې زیری او نخښې لیدلې وې [مظهری][2].

**دمسلمین لقب خالص د امت محمدیه دپاره دې او که د ټولو امتونو دپاره عام دې ؟ :** ﴿اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ﴾ [یعنې دغه اهل کتابو حضراتو ووئیل چې مونږ خود قرآن کریم دنازلیدو نه مخکښې هم مسلمانان وو].

دلته که د مسلم نه لغوی معنی فرمانبرداری شی نو خبره صفا ښکاره ده چې د خپلو کتابونو په وجه دوئ په نبی آخرالزمان او په الله ﷻ باندې یقین لرلو ځکه ئې خپل ځان ته مسلمین اووئیل او که مسلمین ورته په هغې معنی سره واخستې شی چې دا د امت محمدیه رضی الله عنهم لقب دې نو ددې نه دا ثابتیږی چې دا اسلام او مسلمین لفظ یوازې امت محمدیه دپاره مخصوص نه دې ، بلکه د ټولو پیغمبرانو علیهم السلام دین اسلام وو ، او هغوئ ټول مسلمین وو او خو د قرآن کریم د څینې آیتونو نه دا د امت محمدیه خاص لقب معلومیږی ځکه چې قرآن کریم هم په دې باره کښې د ابراهیم علیه السلام قول داسې نقل کوی .

[1] ) تفسير المظهري[ج:۷ص:۱۷۱] والمعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث :[۷۶۶۲۰]
[2] ) تفسير المظهري[ج:۷ص:۱۷۲]

﴿هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ﴾(۱) او علامه سیوطی ددې خصوصیت قائل دې او په دې مضمون باندې د هغوئ يوه مستقله رساله ده دهغوئ په نزد په دې آيت كښې د مسلمين نه مراد دادې چې مونږ خو ړومبې نه اسلام قبلولو دپاره تړې وو. خو په غور كولو سره ددې دواړو ترمينځه څه بې سمونې نشته چې اسلام د ټولو پيغمبرانو ﷺ شريک دين هم وی او ددې امت دپاره مخصوص لقب هم وی ځکه دا کیدیشی چې اسلام د خپلې وصفی معنی په اعتبار سره په ټولو كښې شريك وی مګر د مسلم لقب صرف ددې امت دپاره خاص دې څنګه چې صديق او فاروق وغيره القاب دی چې ددې معنی په وجه هر يو داسې كس ته وئيلې شی چې هغه كښې دا صفتونه وی ليكن ددې خاص مصداق په دې امت كښې ابوبكر رضی الله عنه او عمر فاروق رضی الله عنه دی(۲).

﴿أُولٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُمْ مَّرَّتَيْنِ﴾ [اهل كتابو مؤمنانو ته به دوه ځل اجر وركولې شی] په قرآن كريم كښې داشان وعده د ازواجو مطهراتو په باره كښې هم راغلې ده فرمائی چې ﴿وَمَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُّؤْتِهَآ أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ﴾(۳). او په صحيح بخاری كښې د يو حديث پاک تر مخه دريو كسانو دپار د دوچند اجر بيان راغلې دې. يو هغه اهل كتاب چې پخپل ړومبی پيغمبر ئې ايمان راوړې وی او بيا ئې په رسول كريم ﷺ هم، دويم هغه كس چې د چا په ملک كښې غلام وی او هغه د خپل مالک هم تابعدار او فرمانبردار پاتې كيږی او د الله تعالى او درسول ﷺ هم. دريم هغه كس چې خپله وينځه آزاده كړی او بيا ورسره نكاح اوكړی حالانكه د وينځتوب په حال ی هم دغه مالک ورسره بې نكاح كوروالې كولې شی(۴).

دلته په دې باندې غور كول دی چې دغه قسمه خلقو ته د دوچند اجر وركو علت څه دې؟ كه دلته دا اووئيلې شی چې دوئ د دوؤ عملونو دوه اجرونه دی لكه د اهل كتابو مؤمنانو يو عمل دادې چې پخپل نبی او پخپل كتاب ايمان راوړی او بيا په بل نبی او د هغه په كتاب باندې ايمان راوړی داشان د ازواج مطهرات دوه عملونه دادی چې دوئ رسول كريم ﷺ سره د رسول په حيثيت هم محبت كوی او د خاوند په حيثيت هم، او دمملوک غلام دوه عملونه دادی چې اول د الله ﷻ اود خپل آقا تابعدار پاتې كيږی، وينځې سره دنكاح كوؤنكی دوه عملونه دادی چې خپله وينځه آزاده كی، دويم دا چې بيا ورسره نكاح هم اوكړی خو په دې باندې دا سوال پيدا كيدې شی چې دا خو د عدل او انصاف تقاضا هم داده چې د دوؤ عملونو اجرونه وركړې شی لكه چې دا طريقه ټولو دپاره عامه ده په دې كښې د اهل كتابو مؤمنانو او ازواجو مطهراتو څه خصوصيت شو، د دوؤ عملونو هر يو خاوند به دوه اجرونه بيان مومی، ددې سوال جواب مكمل تحقيق احقر په احكام القرآن سورة قصص كښې ليكلې دې، كومه خبره چې په دې كښې پخپله د قرآن عظيم الشان د الفاظو د دلالت نه ثابتيږی هغه داده چې په دغې ټولو قسمونو كښې مراد صرف دوه اجرونه مراد نه دی چې هر عمل كوؤنكی دپاره دا د قرآن عظيم الشان عام ضابطه ده لكه فرمائی چې:

---

(۱) ترجمه:- هغه تاسو ته د مسلمان لقب دركړو.

(۲) ترجمه:- اودا خبره زما په ذهن كښې راغله او الله تعالى ته زيات معلوم دی.

(۳) ترجمه:- او څوک چې په تاسو كښې د الله تعالى او دهغه درسول تابعدار اوكړی نو مونږ به هغه دوچند اجر وركړو.

(۴) صحيح البخاري كتاب العلم ،باب تعليم الرجل وامته واهله [ج:۱ص:۲۰]

﴿لَآ أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنكُم﴾(۱) [يعنی الله ﷻ په تاسو کښې د هيڅ يو عمل کوؤنکی عمل نه ضائع کوی بلکه هر يو ته د هغه د عمل په حساب سره اجر ورکولې شی]
بلکه په دغې قسمونو کښې د دوؤ اجرونو مراد ادې چې دغې خلقوت به دهر عمل دوچند ثواب ورکولې شی ، په هر مونځ ، هره روژه ، په هره صدقه ، عمرې او حج باندې به دوچند ثواب ورکولې شی . د قرآن عظيم الشان په الفاظو باندې غور کولو سره معلوميږی چې دوؤ اجرونو ورکولو دپاره مختصر الفاظ اجرين پکار وو خو قرآن عظيم الشان ددې په ځائې ﴿أَجْرَ مَرَّتَيْنِ﴾ اوفرمائيل چې په کښې صفا اشاره دې ته موندې شی چې د دوئ هر يو عمل به مکرر ليکلې شی او په هر عمل به دوچند ثواب ورکولې شی .
که څوک د دې معاملې د دومره لوئې فضيلت او خصوصيت وجه معلومول غواړی نو د هغې واضح جواب دادې چې الله ﷻ ته اختيار دې چې يو خاص عمل دنورو عملونو نه زيات غوره بولی او دهغې اجر زيات کړی څوک ددې سوال راپورته کولو حق نه لری چې الله ﷻ د روژې ثواب دومره زيات ولې مقرر کړو ، د زکوٰة او صدقې ثواب ئې ولې دومره اونه ګرځولو . کيدې شی چې په آيت مبارک او د بخاری شريف په حديث پاک کښې د بيان شوؤ عملونو درجه د نورو عملونو نه زياته وی ځکه ئې پرې د االنعام ذکر کړې دې او ځينې لويو علماء کرامو چې ددې وجه ددې د مشقت زياتوالې خودلې دې نو دهغې احتمال هم شته او ددې آيت مبارک په آخر کښې ﴿بِمَا صَبَرُوا﴾ ددې دليل جوړيدې شی چې ددې ډبل اجر علت دادې چې ددوئ په مشقت باندې صبر کوی ، والله اعلم.
﴿وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾ دا خلق د ښيګړې په ذريعه خرابی لرې کوی ، ددې ښيګړې او خرابئ په تعبير کښې د تفسير د امامانو ډير اقوال دی ، ځينو فرمائيلی دی چې ښيګړې نه مراد فرمانبرداری او د خرابئ نه مراد نافرمانی ده ، ولې چې نيکی ، بدئ لره دمينځه اوباسی لکه د يو حديث پاک ترمخه رسول کريم ﷺ معاذ بن جبل رضی الله عنه ته اوفرمائيل چې : ﴿اتبع الحسنة السيئة تمحها﴾(۲)[بدئ پسې نيکی ځکه کوئ چې هغه دبدئ جرړه اوباسی]اوځينې حضراتو فرمائيلی دی چې د حسنه نه مراد علم ، حلم او دسيئه نه مراد جهل او غفلت دې . يعنی دا خلق د نورو خلقو د جهالت جواب د جهالت په ځائې په حلم او زغم سره ورکوی ، او حقيقت دادې چې دې اقوالو کښې څه تضاد ځکه نشته چې لفظ د حسنه اوسيئه دې ټولو څيزونو لره شامليږی .
**دې آيت مبارک کښې دوه ډير مهم هدايات:** اول دا چې د چا نه ګناه اوشی نو دهغې علاج دادې چې ورپسې دې د نيک عمل کولو تکل کوی چې دغه نيک عمل ئې کفاره شی څنګه چې د معاذ رضی الله عنه دحديث پاک په حواله ئې اوس وړاندې بيان اوشو . دويم دا چې اګر که مظلوم ته د شريعت د مخه د بدل اخستلو اجازت شته خو هله چې بدله سر په سر وی ، مګر اولی او احسن دادی چې د بدلې اخستلو په ځائې زياتی کؤنکی سره احسان او نيکی اوکړی چې دا د اعلی درجې نيک خوئی ده ، او د دنيا او آخرت بې شميره فائدې لری ، د قرآن عظيم الشان په بل آيت مبارک کښې دا هدايات په ښکاره الفاظو کښې د اسې راغلی دی .

---

(۱) ترجمه:-او په تاسو کښې چې يو کس يو کار اوکړی نو زه هغه نه ضائع کوم.
(۲) مسند احمد ، معاذ بن جبل رضی الله عنه رقم الحديث:[۲۱۰٤۷]

﴿اِدْفَعْ بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِیْ بَیْنَكَ وَبَیْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِیٌّ حَمِیْمٌ﴾[1] [یعنی ورانکاری او ظلم په داسې طریقه تمبوه چې زیاته غوره وی] مطلب دا چې د ظلم په بدله کښې احسان کوه نو کوم کس چې ستا او د هغه ترمینځه دښمنی ده هغه به دې مخلص دوست جوړ شی.

﴿سَلٰمٌ عَلَیْكُمْ لَا نَبْتَغِی الْجٰهِلِیْنَ﴾ [یعنې ددې خلقو ښکلې خوئی دادې چې کله د یو جاهل دښمن نه بیکاره خبره آوری نو دهغې جواب د ورکولو په ځائې دا وائی چې زما دې سلام وی، مونږ جاهلانو سره انختل نه خوښوؤ] امام جصاص رحمه الله فرمائی چې د سلام دوه قسمونه دی یو سلام د تحیه چې مسلمانان ئې پخپل مینځ کښې یو بل ته کوی، بل هم چا پسې د مخې نه اوړلو سلام دې، ددې مطلب داوی چې هغه دبدو بدله اخستل نه غواړی، دلته د سلام نه دا دویم قسم سلام مراد دې[2].

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّكَ | لَا تَهْدِیْ | مَنْ | اَحْبَبْتَ |
| بیشکه ته چې ئې | نشې ښودلې لارته | هغه چاته | چې خوښوې ئې ته |
| ... [ائې محبوبه] ته چې چاته غواړې [پخپلې خوښې] سره هدایت نشې کولې | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلٰكِنَّ اللّٰهَ | یَهْدِیْ | مَنْ | یَّشَآءُ | وَهُوَ | اَعْلَمُ |
| ولیکن الله | ښائی لار | هغه چاته | چې غواړی ئې هغه | او هغه | ښه عالم دې |
| بلکه الله ﷻ چې چاته هدایت کول اوغواړی نو هدایت ورته کوی | | | | اوهدایت قبلوؤنکی هغه ته | |
| بِالْمُهْتَدِیْنَ | | | | | |
| په هدایت موندونکو باندې | | | | | |
| ښه معلوم دی | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

(ای پیغمبره!) حقیقت دا دې چه ته چاته خپله غواړې، هدایت ته نه شې رسولې، بلکه الله پاک چه چالره غواړی، هدایت ته رسوی او هدایت قبلونکی هغه ښه پیژنی.

### خلاصه تفسیر

﴿اِنَّكَ لَا تَهْدِیْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ یَهْدِیْ مَنْ یَّشَآءُ﴾ [ته چه چالره غواړې هدایت ورته نه شې کولې بلکه الله تعالی چه چالره غواړی هدایت ورته کوی] او دهدایت کولو قدرت به چاته څنګه وشی چه دالله تعالی نه سوا چاته ددې علم هم نشته چه کوم کوم هدایت موندونکی دی بلکه ﴿وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِیْنَ﴾ [دهدایت موندونکو علم هغه ته دې]

### معارف او مسائل

د هدایت لفظ ګڼری معنی لری. یوه معنی ئې صرف لار خودل دی، په دې صورت کښې مقصود ته رسیدل ضروری نه دی، دویمه معنی ئې منزل مقصود ته رسول دی. دلته نبی

---

[1]) ته په ښه (خوره) طریقه (دښمن) د ځان نه لرې کړه نوستا اود چا ترمینځه چې دشمنی وی هغه به داسې (نرم) شي لکه مهربان دوست

[2]) أحكام القرآن للجصاص تحت هذه الآية [ج:۸ ص:۲۶۱]

اکرم ﷺ څخه هدایت نفی کول په دویمه معنی داسې دي چې تاسو ﷺ هیڅوك منزل مقصود ته نشئ رسولې. مطلب دا چې په خپل تبلیغ او تعلیم سره د چا په زړه کښې ایمان اچول ستاسو ﷺ کار نه دې ، اوله معنی ئې ځکه دلته مراد نه ده چې نبی اکرم ﷺ او ټول پیغمبران ﷺ د هدایت کولو اختیار ځکه لرې چې هم دې دپاره هغوئ ﷺ لیږلې شوی دی ، او دا دهغوئ منصبی فرض دې ، که دا قدرت ترې هم نفی کړې شی نو دپیغمبرئ فرائض به څنګه ادا کولې شی ؟

د هدایت معنی او ددې د قسمونو مکمل تحقیق د سورة بقره په شروع کښې تیر شوې دې[1] ، دصحیح مسلم په حواله دا د نبی اکرم ﷺ ترۀ د ابی طالب په باره کښې نازل شوې دې ولې چې نبی اکرم ﷺ د خپل دغې ترۀ د ایمان راوړو ډیر خواهش کولو ، ځکه ورته اوفرمائیلې شو چې ددې قدرت تاسو نه لرئ. روح المعانی کښې راغلی دی چې د ابی طالب د ایمان او کفر باره کښې بې ضرورته بحث کول ځکه پکار نه دی چې رسول کریم ﷺ ته پرې د طبعی زیان رسیدو احتمال شته[2] ، [والله اعلم].

| |
|---|
| وَقَالُوٓا اِنۡ نَّتَّبِعِ الۡهُدٰى |
| اووائی دوئ \| که چرې \| پیروی اوکړه مونږه \| دهدایت [دحق لارې ] \| |
| او دوئ [تاته ] وائی که مونږ تاسره د دې هدایت تابعداری اوکړو............ |
| مَعَكَ نُتَخَطَّفۡ مِنۡ اَرۡضِنَا ؕ اَوَلَمۡ نُمَكِّنۡ لَّهُمۡ حَرَمًا |
| ستاسره \| نواوبه ویستلې شو \| دزمکې زمونږ نه \| آیا نۀ دې ورکړې مونږ \| دوئ ته \| حرم |
| نو د خپل ملک نه به اوشړلې شو \| آیا مونږ د دوئ د استوګنې دپاره حرم د امن ځائې نه دې ګرځولې |
| اٰمِنًا يُّجۡبٰٓى اِلَيۡهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَىۡءٍ رِّزۡقًا مِّنۡ لَّدُنَّا |
| ځائې دامن \| چې راچلولې کیږی \| هغې ته \| میوې \| دهر څیز \| رزق \| دطرفه زمونږ نه \| |
| چې دې ته هر قسم میوې [د ضرورت څیزونه] رارسولې شی [دازمونږد طرفنه ددوئ رزق دی............ |
| وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۵۷﴾ وَكَمۡ اَهۡلَكۡنَا |
| ولیکن \| زیات خلق ددوئ \| نۀ پوهیږی \| او څومره ډیر \| هلاك کړی دی مونږه \| |
| خوپه دوئ کښې زیات خلق په دې خبره نه پوهیږی \| .........اومونږ داسې ډیر کلی تباه کړی دی |
| مِنۡ قَرۡيَةٍۭ بَطِرَتۡ مَعِيۡشَتَهَا ۚ فَتِلۡكَ مَسٰكِنُهُمۡ |
| داسې کلی \| چې مست شوی وو \| په روزګار دژوند خپل باندې\| پس دغه دی \| کورونه دهغوئ \| |
| چې د ژوند په روزګار خان ته غاوره شوی وو \| نودا ددوئ [تباه شوی ] کورونه [ستاسو په وړاندې] دی |
| لَمۡ تُسۡكَنۡ مِّنۡۢ بَعۡدِهِمۡ اِلَّا قَلِيۡلًا ؕ وَكُنَّا نَحۡنُ |
| چې نۀ دی اوسیدلی پکښې \| روستو دهغوئ نه \| مګر ډیر لږ \| اویو مونږه \| خاص هم مونږه \| |
| چې د هغوی نه پس ډیر کم آباد شوی دی \| ...........اوآخر هم مونږ ئې وارثان |

[1] ) صحیح مسلم کتاب الإیمان ، باب الدلیل علي صحة الإسلام من حضره الموت إلخ [ج:۱ص:۴۰]
[2] ) روح المعاني تحت هذه الآیة [ج: ۱۵ ص:۱٦۱]

الْوٰرِثِيْنَ ۝۵۸ وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى حَتّٰى يَبْعَثَ

وارثان | اونه دي رب ستا | هلاکونکي | دکلو | تر هغې پورې | چې اولیږي |

شو | .......او [اې زما محبوبه] ستا رب تر هغې وخته پورې کلی نه تباه کوي ترڅو چې د هغې په مرکز

فِيْٓ اُمِّهَا رَسُوْلًا يَّتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۚ

په لوئ ښار [مرکز] دهغې کلو کښې | یو رسول | چې لولي | په هغوئ باندې | ایتونه زمونږ |

کښې څوک پیغمبر راونه لیږي | ..........................چې زمونږ آیتونه ورته اولولي

وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرٰٓى اِلَّا وَاَهْلُهَا ظٰلِمُوْنَ ۝۵۹

اونه یو مونږه | هلاکونکي | دکلو | مگر هله | چې اوسیدونکي دهغې | ظالمان شي |

اومونږ یو کلي تباه کونکي نه یو | مگر په دې صورت کښې چې د هغې اوسیدونکي نافرمان وي

وَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

او هغه چې | درکړې شوې دي تاسو ته | څه څیز | پس سامان دې | دژوند ددنیا |

اوتاسو ته چې څه [نعمتونه] درکړې شوې دي | هغه ددنیا د ژوند سامان دې | او د دې زیب وزینت

وَزِيْنَتُهَا ۚ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ۭ

او ښائیست دې دهغې | اوهغه څه چې دالله سره دي | بهتر دي | او باقي پاتي کیدونکي دی |

دې | ....... اوکوم نعمتونه چې الله ﷻ سره دي هغه ډیر ښه اوباقي پاتې کیدونکي دی

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝۶۰

آیا نو عقل نهٔ چلوئ |

آیا تاسو خلق نه پوهیږئ ؟

## آسان ترجمه قرآن

او دا خلق وائی چه: که مونږ تاسره د هدایت تابعداری اوکړو نو مونږ به د خپلې زمکې نه اوچت کړې شو آیا مونږ هغوی ته په دې حرم کښې ځائې ورنکړو چه دومره د امن نه ډک دې چه هر قسم میوې دې طرف ته راښکلې شوې راځی، کوم چه خاص زمونږ د طرف نه ورکړې شوې رزق دې؟ خو ددوئ نه اکثر خلق نه پوهیږی. او څومره آبادئ هغه دی چا چه په خپل معیشت باندې تکبر کولو مونږ هغوی تباه کړی او اوس د هغوی د اوسیدو ځایونه ستاسو مخکښې دی، کومې چه د هغوی نه پس دلږې مودې نه علاوه کله هم آبادې نه شوې، او مونږ یو چه د هغې وارثان یو. او ستا رب داسې نه دې چه هغه کلی هم داسې تباه کړی چه ترڅو پورې ئې دهغه علاقو مرکزی مقام باندې څوک رسول نه وی لیږلې چه هغوی ته زمونږ آیتونه اولولی. او مونږ کلو لره تر هغه وخته پورې نه هلاکوو ترڅو چه د هغې اوسیدونکی ظالمان نه شی او تاسو ته چه څه هم درکړې شوې دی، هغه د دنیاوی ژوند توښه ده او د هغې ډول دې او څه چه د الله پاک سره دی، هغه ډیر غوره او ډیر زیات پائیدار دی. آیا بیا هم تاسو دعقل نه کار نه اخلئ؟

## خلاصه تفسير

بره دلرې نه دكفارو دايمان نه راوړو ذكر راروان دې په دې آيتونو كښې دهغه منع كوونكو څيزونو ذكر دې كوم چه كفارو ته دايمان راوړو په لاره كښې حائل ګنړلې كيدل مثلاً ديومانع بيان دادې چه ﴿وَقَالُوٓا اِنۡ نَّتَّبِعِ الۡهُدٰى مَعَكَ﴾ [ او داخلق وائي چه كه مونږ تاسره شو] ددې دين [په هدايت روان شو ﴿نُتَخَطَّفۡ مِنۡ اَرۡضِنَا﴾ نو فورا به دخپل ځاۍ نه وويستلې شو او شړلې شو] چه دبې وطنۍ تكليف به راته هم پيښ شي او دمعاش پريشاني به جدا وي ليكن دا عذر بنكاره باطل دې ﴿اَوَلَمۡ نُمَكِّنۡ لَّهُمۡ حَرَمًا اٰمِنًا﴾ [ايا مونږ دوى ته په امن و امان والا حرم كښې ځاۍ نه دې وركړې كوم ځاۍ ته ﴿يُّجۡبٰٓى اِلَيۡهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَىۡءٍ رِّزۡقًا مِّنۡ لَّدُنَّا﴾ چه دهرقسم ميوې رابنكودلې راځي كومې چه زمونږ دطرف نه] يعنى زمونږ په قدرت او رزاقۍ سره [ دخوراك دپاره ملاويږى ] پس دحرم په وجه سره چه ټول ئې احترام كوى دضرر هم څه ويره نشته او ددې نه ضرر په وجه سره دفوت كيدو دنفع د رزق هم احتمال نشته پس دوى له پكار وو چه دا حالت ئې غنيمت ګنړلې او نعمت ئې ګنړلې قدرئې ورله كولې او ايمان ئې راوړې ﴿وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ﴾ [او ليكن په دوى كښې اكثر خلق] دې لره [نه پيژنى] يعنى خيال ئې نه كوى [او] يو سبب ددوى دايمان نه راوړو دادې چه دوى په خپلو عيشونو باندې نازيدونكى دى ليكن دا هم حماقت دې ځكه چه ﴿وَكَمۡ اَهۡلَكۡنَا مِنۡ قَرۡيَةٍۭ بَطِرَتۡ مَعِيۡشَتَهَا﴾ [ مونږ ډير داسې خلق دكلو هلاك كړى دى كوم چه په خپل سامان دعيش باندې ناز كوونكى وو پس] وګورئ ﴿فَتِلۡكَ مَسٰكِنُهُمۡ﴾ [دادهغوى كورونه] ستاسو دسترګو په وړاندې پراته [دى ﴿لَمۡ تُسۡكَنۡ مِّنۡۢ بَعۡدِهِمۡ اِلَّا قَلِيۡلًا﴾ چه د هغوى نه پس آباد هم نه شول مګر دلږ وخت دپاره] لكه چه څوك مسافر تلو راتلو والا دغې طرف ته اتفاقا راپيښ شي او دلږ وخت دپاره هلته ددې تماشې دپاره كښينى يا شپې ته پاتې شى ﴿وَكُنَّا نَحۡنُ الۡوٰرِثِيۡنَ﴾ [او آخركار] ددوى ددې ټولو سامانونو [ به هم مونږ مالكان يو] څوك ظاهرى وارث هم ددې وارث نه شو [ او] يوه شبهه دوى ته دا كيږى چه كه دهغو خلقو دهلاكت سبب كفر دې نو مونږه ډيرې مودې نه كفر كښې لګيا يو مونږ يې ولې هلاک نه كړو لكه چه په نورو ايتونو كښې دى [ ويقولون متي هذا الوعد الخ](١) او ددې شبهې په وجه سره ايمان نه راوړى پس ددې حل دادې چه ﴿وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهۡلِكَ الۡقُرٰى﴾ [ ستارب كلو لره] په اول ځل كښې [نه هلاكوى ﴿حَتّٰى يَبۡعَثَ فِىۡۤ اُمِّهَا رَسُوۡلًا يَّتۡلُوۡا عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتِنَا﴾ ترڅوپورې چه] دكلو [په صدر مقام كښې چا پيغمبر لره ونه ليږى او] دپيغمبردليږلو نه پس هم فورا ﴿وَمَا كُنَّا مُهۡلِكِى الۡقُرٰٓى اِلَّا وَاَهۡلُهَا ظٰلِمُوۡنَ﴾ [مونږ دغو كلو لره نه هلاكوو مګر په دې حالت كښې چه دهغه ځاۍ او سيدونكى ډير شرارت شروع كړى] يعنى ديوې مقررې مودې پورې باربار په نصيحت كولو سره نصيحت حاصل نه كړى نو دغه وخت ئې هلاكوو چنانچه دكومو كلو دهلاكت چه بره ذكر وو هغه هم د دې قانون موافق هلاك شول پس ددې قانون تاسو سره معامله كيدې شى په دې وجه نه درسول نه وړاندې هلاك كړل او نه وروستو درسول نه تراوسه پورې هلاك شوئ مګر څو ورځې صبر وكړئ كه ستاسو دا نارامى په ځاۍ وه نو سزا به وى لكه چه په بدر وغيره كښې وشوه [او] يوه وجه دايمان نه راوړو داده چه دنيا نقد ده په دې وجه ددوى خوښه ده او آخرت قرض دې په دې وجه ئې خوښ نه دې

---

(١) ترجمه:- اودا خلق وائي چې دا وعده به كله پوره كيږى كه ته رښتوني يې.

پس د دنيا دميني نه ئ زړهٔ نه خالي كيږي چه د آخرت مينه په كښي ځاى شي او بيا ئ دحاصلولو طريقه تلاش كړي كوم چه ايمان دى پس ددې په نسبت دا واوړئ چه ﴿وَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ﴾ [څه چه تاسو ته دركړې شوي دي هغه محض] دځو ورځو ﴿فَمَتَاعُ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَزِينَتُهَا﴾ [ددنيا د ژوند داستعمال دپاره دي او ددي ځاى] زيب او [زينت دې] چه دعمر ختميدو سره به ددې هم خاتمه وشي ﴿وَمَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ﴾ [اوڅه] اجر او ثواب [چه د الله تعالى سره دي هغه په ډيرو درجو ددې نه] په كيفيت كښي هم [غوره دې او] په مقدار كښې هم [زيات] يعنى هميشه [پاتې كيدونكي دې ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ پس اياتاسوخلق] دا فرق يا ددې فرق تقاضا [نه پيژنئ] غرض ستاسو عذر او داسبابو په بنياد كفر باندې اصرار په كفر باندې ټول محض بې بنياده عبث دى پوه شئ او ومنئ.

## معارف او مسائل

﴿وَقَالُوٓا إِن نَّتَّبِعِ الْهُدَىٰ مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ أَرْضِنَآ﴾ يعنى د مكې كافرانو حارث بن نعمان وغيره د خپل ايمان نه راوړلو يوه دا وجه بيان كړه چې اګر چې مونږ ستاسو ﷺ تعليمات په حقه ګڼړو خو زمونږ ويره داده چې كه ستاسو په هداياتو باندې عمل كولو سره مونږ تاسو سره شو نوټول عرب به زمونږ دښمنان شي او مونږ به زمونږ د زمكې نه اوباسي ، [اخرجه النسائى وغيره ](١) قرآن عظيم الشان د دوئ دغه بې سر اوبې پښو عذر درې جوابونه وركړل اول دا چې :

﴿أَوَلَمْ نُمَكِّن لَّهُمْ حَرَمًا ءَامِنًا يُجْبَىٰٓ إِلَيْهِ ثَمَرَٰتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ يعنى ددوئ دا عذر څكه باطل دې چې الله ﷻ د روميې نه په خصوصيت سره د مكې دخلقو د حفاظت انتظام په خپل قدرت سره داسې كړې دې چې دمكې مكرمې زمكه يې حرم جوړه كړې ده ، او ټول عرب قبيلې سره ددې نه چې كافران وو او خپل مينځ كښې ئې دښمنئ هم خو او بيا هم په دې باندې متفق وو چې د مكې مكرمې د حرم په زمكه كښې مرګ ژوبله كول سخت حرام دي ، د خپل پلار قاتل به چې خوئې ته دغه ځائې په لاس ورغلو نو سره د ډيرې غصې به ئې په هغه لاس هم نه پورته كولو ، په دې وجه په ايمان راوړو سره دوئ ته دا خطره راولاړيدل څومره جهالت دې چې كوم مالك په خپل رحم او كرم سره د دوئ د كفر او شرك باوجود ورته په دغې مباركه زمكه كښې امن وركړې دې نو د ايمان راوړو په صورت كښې به ئې څنګه تباه كيدو او هلاكيدو ته پريږدي . يحيى بن سلام فرمائيلى دي چې د آيت مبارك معنى دا شوه چې تاسو دحرم په وجه په امن او حفاظت كښې وې زما دركړې رزق مو ښه ډير خوړلو او عبادت مو زما نه بغير د نورو كولو ، پخپل دې حالت خو نه ويريږئ البا په هغه حالت كښې ويريږئ چې ايمان راوړئ [قرطبى](٢). دې مذكوره آيت مبارك كښې د مكې د حرم دوه صفات يې بيان كړي دي چې دا د امن ځائې دې بله دا چې دې ځائې ته د دنيا د ارخ څخه ميوې راوړلې كيږي چې دې سره د ميوې اوسيدونكې خپل ټول ضرورتونه په آسانتيا سره پوره كړې شي .

**د مكې مكرمې په حرم كښې د هر څيز د ثمراتو راجمع كيدل د قدرت د خاص نخښو څخه دي:** مكه مكرمه كومې لره چې الله ﷻ د خپل كور مبارك دپاره د ټولې دنيا نه منتخب كړې ده ، دا يو داسې

(١) سنن النسائي الكبري ، كتاب التفسير سورة القصص رقم الحديث :[١١٣٨٥]
(٢) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١٣ص:٣٠٠]

مقام دي چې ددنيا دمعيشت هيڅ يو څيز وی په کښې په آسانه سره ملاؤ نشی ځکه چې چنړه، وريژه، وغيره چې د انسان عامه خوراکه ده دغه ځائې کښې دنيشت برابرپيدا کيدل .ميوې او ترکاريانې خو د سره پيدا کيدې په کښې نشی خو سره ددې عقل حيران شی چې دا څيزونه ځومره زيات دغه ځائې کښې شته دې . دمکې مکرمې خپله آبادی هم په لکونو ده په دې باندې هر کال د حج په موسم کښې دولس پنځلس لاکه نور خلق هم زيات راشی چې تقريباً تر دوه نيمو مياشتو پورې دغه ځائې کښې ايسار وی خو سره ددې د هيڅ يو جنس د کمی چرته چا نه دی آؤريدلی بلکه د شپې ورځې په هر وخت کښې هر قسم خوراکونه ښه ډير ملاويږی.قرآن عظيم الشان کښې ﴿ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ الفاظ راغلی دی.چې په ژور نظر ورته اوکتلې شی نودا سوال پيدا کيږی چې عرف عام اعتبار سره د ميوؤ تعلق د ونو سره دې ، داسې ځايې دپاره يې چې فرمائيلې وی چې ثمرات كل شجر. ددې په ځايې ﴿ثَمَرٰتُ كُلِّ شَجَرٍ﴾ فرمائی . دا خبره څه خارج از امکان نه ده چې.دې ځائې کښې اشاره دې طرفته وی چې دې ځائې لفظ د ثمرات صرف د ميوؤ دپاره نه بلکه دحاصل او پيداوار په کښې وی. د ميلونو او کارخانو پيداوار او مصنوعات ددې ثمرات دی ، لهذا د آيت مبارک معنی دا شوه چې د مکې مکرمې په حرم کښې به يوازې د خوراک څکاک څيزونه نه بلکه هر يو څيز چې د ژوند سره تړلی وی هغه ټول به راجمع کولې شی څنګه چې خلق ئې په غړيدلو سترګو وينی چې ددنيا په يو ملك کښې به هم د اسې نه وی چې د هر ځائې خوراکونه او د هغه ځائې مصنوعات په ډير مقدار کښې هلته ملاويږی لکه څنګه دمکې مکرمې په حرم کښې ملاويږی. داخو د کافرانو د عذر يو جواب شو چې کوم مالك په تاسو باندې د کفر او شرك په حالت کښې دا انعامات نازل کړل چې ستاسو زمکه يې د هر قسم خطرې نه په امن ، او حفاظت کښې کړه او سره ددې چې دغه زمکه دکروندې قابله نه ده د غه ځائې کښې ددنيا هر قسم پيداوار راجمع کړو نو ستاسو دا خطره راولاړيدل ستاسو څومره لوې جهالت دې چې ستاسو د ايمان راوړو په صورت کښې به دا نعمتونه تاسو نه واخستې شی .

دې پسې ددې عذر بل جواب دادې چې : ﴿وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا﴾

مطلب دادې چې اوګورئی ددنيا د کافرانو قومونو څومره آبادئی الله ﷻ تباه کړې د هغوئ مضبوطې قلعه ګانې او حفاظتی سامانونه ټول خاؤرو سره ښاؤرې شو. نو د ويرې اصل څيز خو کفر او شرک دې چې دتباهئ اوبربادئی موجب جوړيږی ، نو تاسو څنګه ناخبره بيوقوفان يئ چې کفراوشرک نه خودرته څه خطره نه راولاړيږی، صرف ايمان نه درته د اخطرې راولاړيږی.

دريم جواب دې آيت مبارک کښې دا ورکړې شو : ﴿وَمَآ أُوتِيتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ .چې په دې کښې د ااوخودلې شو چې که بالفرض د ايمان راوړولو په نتيجه کښې درته څه تکليف راپيښ هم شی نو هغه به د څو ورځو وی، او څنګه چې ددنيا عيش وعشرت ، اومال دولت ټول څو ورځنی څيزونه دی ، چا سره هميشه نه پاتې کيږی ، دغه شان دې ځائې تکليف هم څو ورځنې دې چې زر به ختم شی . په دې بنا د عقل خاوندانو ته پکار دی چې د هغې تکليف او آرام بندوبست اوکړی چې پائيدار او هميشه پاتې کيدونکې وی د هميشه پاتې کيدنکی نعمت او دولت دپاره څو ورځينې تکليف او مشقت برداشت کول د عقل مندئ دليل دې .

﴿لَمْ تُسْكَنْ مِنْ بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا﴾ يعنی کوم خلق چې د الله ﷻ په عذاب سره تباه کړی شوی وو تر

اوسه پورې هم په هغې کښې آبادي او نشوه . سوا دلږ مقدار نه ، که ددې مقدار نه مراد لږ ځايونه او کورونه واخستې شي څنګه چې د زجاج قول دې نو مطلب بهٔ ئې داوي چې په دغې تباه شوؤ ودانيانو کښې هيڅ يو ځائې يا مکان بيا آباد نه کړې شو سوا د لږ شمير نه چې هغه آباد کړې شو ، مګر د ابن عباس ﷺ نه ددې آيت مبارک په تفسير کښې منقول دی چې لږ مقدار نه مراد د لږو مقاماتو او مکاناتو استثناء نه ده بلکه د استوګنې د مودې استثناء ترې مراد ده ، ددې مطلب به دا وی چې په دغې آيتونو کښې څوک اوسيږی هم نو ډيرې لږې مودې دپاره،لکه لاروي مسافرچې څه لږوخت په کښې ايسارشی اودې ته ددوانئ آبادی نشی وئيلې.

﴿حَتّٰى يَبْعَثَ فِيْٓ اُمِّهَا رَسُوْلًا﴾ د ﴿اُمِّ﴾ مشهوره معنی مور د ه ، هر کله چې مور د انسان د پيدائش بنياد ده ، ځکه لفظ د ام د بنياد او اصل په معنی کښې هم ډير استعماليږی.

د ﴿اُمِّهَا﴾ ضمير د قری طرفته راجع دې يعنی امها څخه مراد ترې ام القری دې يعنی د آباديانو مرکز ، اصل او دارومدار ته وئيلې شی ، مطلب دادې چې الله ﷻ يو قوم تر هغې وخت پورې نه هلاکوی ترڅو چې ددغې قوم په لويو ښارونو کښې د خپل رسول په ذريعه پيغام او نه رسوی ، کله چې حق بلنه خلقو ته اورسی او خلق ئې قبوله نه کړی نو هله به دغې آباديانو باندې عذاب راځی.

دې آيت مبارک نه معلومه شوه چې د الله ﷻ پيغمبران ﷺ او رسولان عموما په لويو ښارونو کښې ليږلې شی ، په وړوکلو او آباديانو کښې نشی ليږلې ولې چې دغسې آبادئ او کلی عموما او عادتا دښار تابع وی چې خپل معاشی او تعليمی ضرورتونه هم دښار نه پوره کوی ، کومه خبره چې ښار کښې خوره شی نو ورسره لګيدلو بهر کلو او علاقو کښې پخپله خوريږی ، داشان د رسول بلنه هم کله چې ښار والو ته اورسی نو بيا پخپله هغې سره لګيدلو کلو او آبادو ته رسيږی ، په دې شان د الله ﷻ حجت په ټولو تمام شی چې بيا هم انکار اوکړی نو په ټولو باندې عذاب رازی.

**په احکاماتو او قوانينو کښې لوئې او وړکوټې کلی دښارونو تابع دی** :: دې نه معلومه شوه چې څنګه د ژوند په ضرورتونو کښې وړکوټې آبادئ د لوئې ښار تابع وی دغه ځائې نه هغوئ ضرورتونه پوره کوی ، په دې شان کله چې يو حکم په ښار کښې اعلان کړې شی نو په هغې باندې عمل کول به ورسره تړلې آباديانو باندې هم لازم شی ، په دې باره کښې د دغې حکم نه آؤريدل يا پرې نه خبريدل او نه پوهيدل څه عذر نشی کيدې.

د رمضان او اخترونو په مسئله کښې هم فقهاء کرامو داشان فرمائيلی دی چې په شرعی ګواهئ سره په ښار کښې د قاضی په حکم سره د مياشتې ليدل ثابت شی نو ورسره تړلې آباديانو باندې هم په هغې عمل کول لازم دی ، خو په نورو ښارونو کښې پرې عمل کول تر هغې وخته پورې نه لازميږی چې ترڅو ددغې ښار قاضی پخپله ګواهی منظوره نه کړی ، او ددې حکم ورنکړی [فتاوی غياثيه]

﴿وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى﴾ يعنی ددنيا مال متاع او عيش و عيشرت هر څه فانی دی او ددې ځائې د عملونو په آخرت کښې ملاويدونکې بدله ددې ځائې د مال ، اسباب ، او عيش وعشرت نه د خپل کيفيت په اعتبار سره هم ډير زيات غوره شان لری چې د دنيا هر څومره زيات لوئې آرام اولذت هم د هغې مقابه نشی کولې او بله دا چې هغه هميشه باقی پاتې کيدونکې ده او ددنيا

که هر څومره لوئې نه لوئې نعمت یادیږی خو اخر دا چې هغه فنا او زائل کیږی ، د عقل مند شان دادې چې کوم یو نعمت د کمې درجې او څو ورځنې وی نو دهغې په مقابله کښې هغه نعمت نشی پریښودې چې په خوند او آرام کښې ددې نه زیات هم وی او همیشه پاتې کیدونکې هم وی .

**عقل مند هم هغه څوک دې چې دنیوی هنګامو کښې زیات وربوخت نه وی بلکه دآخرت په فکر کښې وی**

امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی چې که چا داسې وصیت اوکړو چې زما د مرګ نه پس زما مال جائیداد دې داسې کس ته ورکړې شی چې د ټولو نه زیات عقل مند وی نو دغه مال ، جائیداد به د شریعت تر مخه هغه چا ته ورکولې شی چې د الله ﷻ په عبادت او طاعت کښې مشغول وی ولې چې هم دا د عقل تقاضا ده او په دنیا دارو کښې دټولو نه زیات عقل مند هم دادې ، دا مسئله د حنفی فقه په مشهور کتاب درمختار باب الوصیة کښې هم راغلې ده .

| | | |
|---|---|---|
| اَفَمَنْ | وَّعَدْنٰهُ | وَعْدًا حَسَنًا |
| آیا پس هغه څوک | چې وعده کړی وی مونږ دهغه سره | وعده نیکه [ښه] |

آیا هغه څوک چې مونږ ورسره ښه وعده کړې وی [وعده د جنت] نو

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَهُوَ لَاقِيْهِ | كَمَنْ | مَّتَّعْنٰهُ | مَتَاعَ الْحَيٰوةِ |
| نودی موندونکې دهغې وی اېشان دهغه چاکیدې شی | چې ورکړې وی مونږ هغه له | سامان | دژوند |

هغه به ئې خامخا بیاموی | نودې د هغه چا په شان کیدیشی چاته چې مونږ د دنیا د ژوند

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الدُّنْيَا | ثُمَّ | هُوَ | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ | مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ ۝ | وَيَوْمَ |
| ددنیا | او بیا | هغه | په ورځ دقیامت | سزا ته دپیش کیدونکونه وی | او یادکړئ هغه ورځ |

سامان ورکړې وی | او بیا به دقیامت په ورځ [ددوزخ] په حاضریدونکو کښې شامل وی | او په هغه ورځ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يُنَادِيْهِمْ | فَيَقُوْلُ | اَيْنَ | شُرَكَآءِيَ | الَّذِيْنَ |
| چې هغه به آواز اوکړی هغوئ ته[1] | او اوبه وائی ورته | کوم ځائې دی | شریکان زما | هغه |

به ورته الله ﷻ آواز اوکړی | ..................نو تپوس به اوکړی چې زما هغه شریکان څه شول

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كُنْتُمْ | تَزْعُمُوْنَ ۝ | قَالَ | الَّذِيْنَ | حَقَّ | عَلَيْهِمُ |
| چې وئ تاسو | چې ګمان به موپر کولو | او به وائی | هغه کسان | چې صحیح ثابتیږی | په هغوئ باندې |

چې تاسو به شریک ګڼړل | ..................نو هغه خلق به اووائی چې د الله ﷻ د عذاب فیصله پرې

[1]) **دقیامت په ورځ به دالله تعالی شریکان په نظرنه راځی:** مشرکان به په دویم ځل اورټلې شی او اوبه فرمائیلې شی چه په دنیاکښې چه تاسوڅوک زماسره شریکان ګرځول هغوی نن چرته دی؟دهرامت نه یوګواه یعنی دهغه امت پیغمبربه خوبښ کړې شی (الطبری:۱۹/٦١٤) او مشرکانوته به اووئیلې شی چه دخپل شریك څه دلیل پیش کړئ.دغه وخت کښې به دوی یقین اوکړی چه واقعی دعبادتونولاتق دالله تعالی نه سوابل څوك نه دی.هیڅ جواب به ورنکړې شی.حیران به پاتې شی اوټول دروغ به ترې هیرشی.

الْقَوْلُ رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَغْوَيْنَا ۚ اَغْوَيْنٰهُمْ

داقول | اے ربه زمونږه | دادي هغه کسان | چې گمراهه کړي وو مونږه | گمراهه کړل مونږ دوئ

ثابته شوې وی| . اے زمونږه ربه ! دا هغه خلق دی کوم چې مونږه بې لارې کړي وو | څنګه چې مونږ

كَمَا غَوَيْنَا ۚ تَبَرَّاْنَآ اِلَيْكَ ۫ مَا كَانُوْٓا

لکه څنګه چې | گمراهه شوی وو مونږه | ذمه وار نهٔ يو مونږ ددوئ | تاته | نهٔ وو دوئ

په خپله بې لارې وو دغه شان مونږ دوئ بې لارې کړل | اوس مونږ ستاپه وړاندې ددوئ نه بيزاره يو

اِيَّانَا يَعْبُدُوْنَ ۝ وَقِيْلَ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ

چې مونږ لره به ئې عبادت کوو | اواوبه وئيلې شي دوئ ته | چې رااوبلئ | شريکان خپل

دوئ خو به زمونږ عبادت نه کولو | ..........او [مشرکانو] ته به اووئيلې شي چې خپل شريکان رااوبلئ

فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهُمْ وَرَاَوُا الْعَذَابَ ۚ

نو دوئ به رااوبلئ هغوئ | پس وربه نهٔ کړی جواب هغوئ | دوئ لره | اواوبهٔ وينی دوئ | عذاب

نو دوئ به ئې راوبلی خو هغوئ به هيڅ جواب ورنکړی | اودوئ به [په خپلو سترګو] عذاب اووينی

لَوْ اَنَّهُمْ كَانُوْا يَهْتَدُوْنَ ۝ وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ

کاش چې دوئ وې | تيغه لار اختيارونکی | او ياده کړی هغه ورځ | چې آواز به اوکړی الله دوئ ته

[دا به ووائی] کاش چې دوئ په سمه لار روان راغلی وې | اوپه کومه ورځ چې الله ﷻ دوئ راوغواړی

فَيَقُوْلُ مَاذَآ اَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِيْنَ ۝ فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ

پس اوبه وائی | څه جواب ورکړې وو تاسو | رسولانو ته | پس پټ به شی | په هغوئ باندې

نو تپوس به ترې اوکړی | چې تاسو پيغمبرانو ته څه جواب ورکړې وو ؟ | نو په دغه ورځ به د هغوئ

الْاَنْۢبَآءُ يَوْمَئِذٍ فَهُمْ لَا يَتَسَآءَلُوْنَ ۝

خبرونه | په دغه ورځ [يعنی جواب به ورنهٔ کړی] | پس هغوئ به په خپلو کښې تپوس نشی کولې ديو بل نه

نه ټول جوابونه هير شی | ..........او پخپل مينځ کښې به ديو بل نه تپوس هم نشی کولې

فَاَمَّا مَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ

پس هر چې دې | هغه څوک | چې توبه ئې اووېستله [نن] | او ايمان ئې راوړو | او عمل ئې اوکړو

خو چا چې توبه اووېستله | ..........او ايمان ئې راوړو | او نيک عملونه

صَالِحًا فَعَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ مِنَ الْمُفْلِحِيْنَ ۝

نيک | پس کيدې شی | چې وی هغه | دکاميابو خلقو نه

کوی | ..........نو کيدې شی چې دغه خلق کامياب شی |

## آسان ترجمه قرآن

آیا دچا سره چه مونږ ښه وعده کړې وه، او هغه به هغه وعده ضرور مومي، آیا دا د هغه په شان کیدې شي چاته چه مونږ د دنیوی ژوند مزې ورکړې دی، بیا هغه په هغه خلقو کښې شاملیدلو والا دې کوم چه به د قیامت په ورځ بانديې حاضر کړې شي؟ او هغه ورځ (کله هم مه هیروئ) چه کله به الله پاک دې خلقو ته آواز اوکړي، او وائي به: کوم ځائې دی (په خدایئ کښې) زما هغه شریکان د چا چه به تاسو دعوی کوله؟ دچا خلاف چه (د الله پاک) خبره پوره شوې وی هغوی به وائي: اې زمونږ ربه! دا خلق کوم چه مونږ گمراه کړې وو مونږ هغوی هم دغه شان گمراه کړل څنگه چه مونږ خپله گمراه شو مونږ ستا مخکښې د هغوی نه بیزاره کیږو، دوی به زمونږ عبادت نه کولو او هغوی (کافرانو) ته به اوویلې شي چه: راوبلئ هغوی چه تاسو د الله پاک شریکان کړی وو پس دوی به هغوی ته آواز کوی، خو هغوی به دوی ته جواب نه ورکوی، او دوی به عذاب په سترگو سره وینی، کاش چه دوی داسې وې چه هدایت ئې قبول کړې وې! او هغه ورځ (هم بالکل مه هیروئ) چه کله الله پاک هغوی ته آواز اوکړي، او وائي به تاسو پیغمبرانو ته څه جواب ورکړې وو؟ په دې باندې به هغه ټولې خبرې (کومې چه دوی جوړې کړې وی) بې نخښې شوې وی پس هغوی به خپل مینځ کښې د یو بل نه هیڅ نه شی تپوسلې. پس هغه کسان چه توبه ئې اوکړه، او ایمان ئې راوړو، او نیک عملونه ئې اوکړل، نو پوره امید دې چه هغوی به په هغه خلقو کښې شامل وی څوک چه کامیابیدونکی دی.

## خلاصه تفسیر

﴿اَفَمَنْ وَّعَدْنٰهُ وَعْدًا حَسَنًا﴾ [آیا هغه څوك دكوم سره چه مونږ یوه غوره وعده کړې ده ﴿فَهُوَ لَاقِیْهِ﴾ بیا هغه سړې] دوعدې دغه څیزلره [موندونکې دې ﴿كَمَنْ مَّتَّعْنٰهُ مَتَاعَ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا﴾ آیا دهغه سړی په شان کیدې شی کوم لره چه مونږ ددنیا په ژوند کښې دڅو ورځوفائده ورکړې ده ﴿ثُمَّ هُوَ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ مِنَ الْمُحْضَرِیْنَ۝﴾ بیا به هغه دقیامت په ورځ دهغو خلقو نه وی کوم چه گرفتار کړې شوی راوستلې شی] مراد د اول سړی نه مؤمن دې چه دجنت وعده ده ورسره او ددویم نه مراد کافر دې چه دمجرم په شکل کښې به راوستلې شی او چونکه ددنیا اسباب ددې خلقو د آخرت هیرولو سبب دې په دې وجه ئې ددې وضاحت وفرمائیلو ورنه د دوارو نه برابریدل خو په اصل کښې په دې وجه سره دی چه هغوی به گرفتارکړی حاضر ولې شی او دوی به دجنت په نعمتونو سره سر فرازکولې شی [او] وړاندې ددې تفاوت او کیفیت مخې ته د راوستو تفصیل دې چه هغه ورځ د یادولو قابله ده ﴿وَیَوْمَ یُنَادِیْهِمْ فَیَقُوْلُ﴾ [په کومه ورځ چه الله تعالی دې کافرانو لره] په طور دسزا راوبلی ووائی ﴿اَیْنَ شُرَكَآءِیَ الَّذِیْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ۝﴾ چه هغه زما شریکان کوم ځائ دی کومو لره چه تاسو] زما شریکان گنړل؟ [مراد ددې نه شیطانان دی چه دوی دمطلق اطاعت سره شرك کولو په دې وجه ئې دوی ته شرکاء وونیل] چه دا واوری شیطانان ﴿قَالَ الَّذِیْنَ حَقَّ عَلَیْهِمُ الْقَوْلُ﴾ [په کومو کښې] چه خلقو لره دگمراه کولو په وجه سره [الله تعالی فرمان] یعنی مستحق کیدل دعذاب په دې قول سره چه [لاملئن جهنم من الجنة والناس] (۱) ثابت

---

(۱) ترجمه:- زه به جهم د جناتو او انسانانو دواړو نه ډك كړم.

شوي وي هغه به] په طور دعذاب] ووائي ﴿رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَغْوَيْنَا ۚ اَغْوَيْنٰهُمْ﴾ چه اے زمونږ پروردګاره بیشکه دا هغه خلق دی کومو لره چه مونږ بې لارې کړل] دا دجواب ابتدائیه ده ددې قصې وضاحت څکه وفرمائیلې شو چه دکومو دشفاعت چه ددوی امید دې هغه به البته ددوی خلاف ګواهي ورکوی او وړاندې جواب دې چه مونږ خوبې لارې کړې خامخا دی لیکن [مونږ دوی لره داسې ] بغیر دجبر او اکراه نه ﴿ [بې لارې کړل﴿كَمَا غَوَيْنَا ۚ﴾ لکه چه مونږ په خپله] بې دجبر او اکراه نه [بې لارې شوی وو] یعنی لکه څنګه چه مونږ په خپله په خپل اختیار سره ګمراه وو چامونږ مجبور کړی نه وو دغه شان په دوی زمونږ جابرانه تسلط نه وو زمونږ کار صرف غولول وو بیا دا دوی په خپل اختیار او رائې سره قبوله کړله لکه چه په سوره ابراهیم کښې دی [فَاَخْلَفْتُكُمْ ۚ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّآ اَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِيْ ۚ الاية](١) مطلب دادې چه مونږ هم مجرمان يو خو دوی هم بری نه دی ﴿تَبَرَّاْنَآ اِلَيْكَ ۚ﴾[ اومونږ ستاپه وړاندې ددوی] دتعلقاتو [نه خپل لاس رانغاړو] او﴿مَا كَانُوْٓا اِيَّانَا يَعْبُدُوْنَ ۝﴾ [داخلق ] په حقیقت کښې صرف [ مونږ لره عبادت نه کولو] یعنی هرکله چه دوی په خپل اختیار سره بې لارې شوی دی نو دوی په خپله خواهش پرست شول نه چه صرف شیطان پرست . مقصود ددې ټولې قصې نه دادې چه دکومو په آسره باندې دوی ناست دی هغه به دقیامت په ورځ ددوی نه لاس ونغاړی [ او] هرکله چه دغه شریکان دغه شان ددوی نه بې زاری او بې رخی اختیار کړی نو هغه وخت به دې مشرکینو ته﴿وَقِيْلَ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ﴾ [ ووئیلې شی چه] اوس [ خپلو دغو شرکاؤ لره راوبلئ چنانچه هغه] دډیرې حیرانئ او پریشانئ نه [به﴿فَدَعَوْهُمْ﴾ دغولره وبلی﴿فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهُمْ﴾ پس هغه به دوی لره جواب ورنه کړی او] دغه وخت به ﴿وَرَاَوُا الْعَذَابَ ۚ﴾[داخلق ] په خپلو سترګو سره [ به عذاب ووینی﴿لَوْ اَنَّهُمْ كَانُوْا يَهْتَدُوْنَ ۝﴾ اے کاش چه داخلق په دنیا کښې په نیغه لار وې] نو دا مصیبت به ئې نه لیدو﴿وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ﴾[او په کومه ورځ چه دې کافرانو لره وبللې شی او تپوس ترې نه وشی﴿مَاذَآ اَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِيْنَ ۝﴾ چه تاسو پیغمبرانو ته څه جواب ورکړې وو﴿فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْاَنْۢبَآءُ يَوْمَئِذٍ﴾ پس په دغه ورځ به ددوی] د ذهن [ نه ټولې خبرې ورکې شی نو هغوی به] په خپله په هیڅ نه پوهیږی او﴿فَهُمْ لَا يَتَسَآءَلُوْنَ ۝﴾[ په خپل مینځ کښې به تپوس هم نه شی کولې ﴿فَاَمَّا مَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ البته کوم سړې چه ] په دنیا کښې دکفر اوشرك نه [توبه وکړی او ایمان راوړی اونیك کارونه کوی ﴿فَعَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ مِنَ الْمُفْلِحِيْنَ ۝﴾ داسې خلق امید دې چه ] په آخرت کښې [د کامیابونه به وی ] او ددې آفتونو نه به محفوظ وی.

## معارف او مسائل

محشر کښې به د کافرانو او مشرکانو څخه ړومبې سوال د شرك باره کښې کیږی او ورته به اووئیلې شی چې کومو شیطانانو لره تاسو مونږ سره شریکان جوړ کړی وو اود هغوئ خبره مو منله نن هغوئ چرته دې ؟ هغوئ ستاسو څه مدد کولې شی ؟ دهغې په جواب کښې ظاهر دا وو چې مشرکان به دا جواب ورکوی چې زمونږ هیڅ قصور نشته دې . مونږ خو پخپله خوښه شرك نه وو کړې بلکه مونږ خو شیطانانو په دهوکه کښې اچولی وو. نو الله ﷻ به ددغې شیطانانو په خلو باندې دا خبره جاری کړی دی چې مونږ خو ضرور دهوکه کړی وو خو مونږ په

(١) ترجمه:اوزما خو په تاسوباندې څه زورنه چلیدو سوا ددې نه چې ما تاسو رابللی وې او تاسوزما اونه منل.

دوئ باندې زور نه وو اچولې. په دې وجه مونږ هم مجرمان يو خو دوئ هم د جرم څخه خالي نه دی. ځکه که يو طرفته مونږ دوئ دهوکه کړی نو بل طرفته پيغمبرانو ﷺ او دهغوئ نائبانو هم دوئ ته د هدايت لار خودلې وه. او په دوئ ئې په دليلونو سره حق واضح کړې وو. دوئ په خپل اختيار سره د پيغمبرانو ﷺ خبره او نه منله بلکه زمونږ ئې اومنله او دوئ څنګه بری کيدې شی؟ دې څخه معلومه شوه چې د چا مخې ته د حق واضح دليلونه موجود وی او هغوئ حق ته د بلنې ورکوونکو په ځائې د ګمراه کوونکو خبره اومنی او په ګمراه کنې پريوزی نو دا څه معتبر عذر نه دی.

| |
|---|
| وَرَبُّكَ يَخْلُقُ |
| او رب ستا \| پيدا کوی |
| اوستارب چې څه غواړی \| ........ |
| مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ ؕ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ؕ |
| هغه څه \| چې غواړی ئې هغه \| او غوره کوی ئې هغه \| نه دی \| دوئ لره \| هيڅ اختيار [په دې کښې] |
| هغه پيدا کوی \| ...............اوهم هغه غوره کوی[چې څوک اوغواړی] \| د دوئ هيڅ اختيار نشته |
| سُبْحٰنَ اللّٰهِ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۞ وَرَبُّكَ يَعْلَمُ |
| پاکی د الله ده \| او ډير اوچت دې \| دهغې نه \| چې دوئ ئې ورسره شريکوی \| او رب ستا \| پوهيږی |
| الله ﷻ پاک دې \| او د دوئ د شريکانو نه ډير اوچت دې \| اوستا رب ته هغه ټول رازونه معلوم دی |
| مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۞ وَهُوَ اللّٰهُ |
| په هغه څه \| چې پټوی ئې \| سينې دهغوئ \| اوپه هغه څه \| چې ښکاره کوی ئې هغوئ \| اوهم دغه الله دی |
| کوم چې د دوئ زړونه پټوی اوکوم چې دوئ ښکاره کوی \| ............ اوالله ﷻ هغه ذات دی |
| لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَهُ الْحَمْدُ فِى الْاُوْلٰى وَالْاٰخِرَةِ ؗ |
| چې نشته لائق د عبادت \| مګر \| هغه دې \| هغه لره ثنا \| ده \| په دنيا کښې \| او په آخرت کښې |
| چې د هغه نه سوا بل څوک معبود نشته \| په دنيا او آخرت دواړو کښې د هغه تعريف دې |
| وَلَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۞ قُلْ اَرَءَيْتُمْ |
| او هغه لره حکم دې \| او هغه ته به \| تاسو واپس کيږئ \| اووايه \| آيا وينئ تاسو [غور مو کړې دې] |
| او صرف د هغه حکم چليږی \| اوتاسو به هم هغه ته واپس کيږئ \| [ائې محبوبه ﷺ] ته دا اووايه |
| اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ |
| که چرې جوړه کړی \| الله \| په تاسو باندې \| شپه \| هميشه \| دورځې د قيامته پورې |
| دا رانه اوښائې که الله ﷻ په تاسو باندې هميشه ترقيامته پورې توره شپه راولی |
| مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ ؕ اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ ۞ |
| نو څوک دې \| بل خدائې \| بغير د الله نه \| چې راوړی تاسو ته \| رڼا \| آيا پس نه اورئ تاسو |
| نو د الله ﷻ نه سوا بل څوک داسې معبود شته چې تاسو باندې رڼا راولی \| نو آيا تاسو نه آورئ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | أَرَءَيْتُمْ | إِنْ جَعَلَ اللَّهُ | عَلَيْكُمُ | النَّهَارَ | سَرْمَدًا | | |
| اووايه | آيا سوچ كړى دې تاسو | كه جوړه كړي الله | په تاسو باندې | ورځ | هميشه | | |
| (محبوبه دا هم) ورته اووايه چې دا راته اوښائې كه الله ﷻ په تاسو باندې هميشه تر قيامته پورې | | | | | | | |
| إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ | مَنْ إِلَٰهٌ | غَيْرُ اللَّهِ | يَأْتِيكُمْ | بِلَيْلٍ | | | |
| دورځې دقيامته پورې | څوك دې بل خدائې | غير دالله نه | چې راوړى (راولى) تاسو ته | شپه | | | |
| ورځ راولى \| نو د الله ﷻ نه سوا بل څوك معبود شته چې په تاسو شپه راولى \| چې | | | | | | | |
| تَسْكُنُونَ | فِيهِ | أَفَلَا تُبْصِرُونَ ۝ | وَمِنْ رَّحْمَتِهِ | جَعَلَ | | | |
| چې آرام اوكړئ تاسو | په هغې كښې | آيا پس نه وينى تاسو | او د رحمت خپل نه | جوړ كړل هغه | | | |
| تاسو په كښې آرام اوكړئ \| نو آيا تاسو نه وينئ ؟ \| ...........او هغه په خپل رحمت سره | | | | | | | |
| لَكُمُ | اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ | لِتَسْكُنُوا | فِيهِ | | | | |
| ستاسو دپاره | شپه او ورځ | دپاره ددې چې تاسو آرام حاصل كړئ | په هغې كښې | | | | |
| ستاسو دپاره شپه او ورځ دواړه پيدا كړى دى \| چې تاسو د شپې آرام اوكړئ \| او (دورځې) | | | | | | | |
| وَلِتَبْتَغُوا | مِنْ فَضْلِهِ | وَلَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُونَ ۝ | | | | |
| او دپاره ددې چې تاسو اولټوئ | دفضل دهغه نه | او دپاره ددې چې تاسو | شكر اوباسئ | | | | |
| خان دپاره د هغه مقرره كړې روزى اولټوئى \| ............او چې د هغه (د نعمتونو) شكر اوباسئ | | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او ستا رب چه څۀ غواړي پيدا کوي، او (چه څه غواړي) خوښوي. دوئ ته هيڅ اختيار نشته الله پاک د دوئ د شرک نه پاک او ډير اوچت او اعلىٰ دې او ستا رب په هغه خبرو باندې هم پوهيږي کومې چه د دوئ سينو پټې کړې دي، او هغه خبرو باندې هم پوهيږي کومې چه دوی ښکاره کوی. الله پاک هم هغه ذات دې، د هغه نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته، تعريف هم د هغه دې په دنيا کښې هم او په آخرت کښې هم. او حکم هم د هغه چليږي، او هم د هغه طرف ته به تاسو واپس کولې شئ. (اې پيغمبره! دوئ ته) اووايه: خبر را کړئ چه که الله پاک په تاسو باندې هميشه دپاره تر قيامته شپه مسلط اوساتى نو د الله پاک نه علاوه څوک معبود شته چه تاسو ته رڼا راوړى؟ آيا تاسو اورئ نه؟ اووايه: خبر را کړئ چه که الله پاک هميشه تر قيامته پورې په تاسو باندې ورځ مسلط اوساتى نو د الله پاک نه سوا کوم معبود دې چه هغه تاسوته شپه راوړلو سره درکړی چه په هغې کښې تاسو سکون حاصل کړې شئ.؟ آيا تاسو پوهيږئ نه؟ دا هم هغه په خپل رحمت سره ستاسو دپاره شپه هم جوړه کړې ده او ورځ هم، چه تاسو په هغې کښې سکون حاصل کړئ او په دې کښې د الله پاک فضل تلاش کړئ، او د دې دپاره چه تاسو شکر ادا کړئ.

## خلاصه تفسير

﴿وَرَبُّكَ﴾ (او ستا رب) يوازې په كمالى صفتونو سره موصوف دې چنانچه هغه ﴿يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ﴾ (څه شى لره چه غواړي پيداكوى) نو تكوينى اختيارات هم هغه ته حاصل دى ﴿وَيَخْتَارُ﴾

[اوکوم حکم لره چه غواړي خوښوي] او دانبياء ﷺ په ذريعه سره يې نازلوي پس تشريعي اختيارات هم ده ته حاصل دي ﴿مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ﴾ [ خلقو لره د] احکامود [تجويزکولو هيڅ حق] حاصل [نشته] چه څه حکم غواړي تجويز کړي لکه دا مشرکان چه دخپل ځان نه شرك لره جائز تجويز کوي او دې خصوصي اختيار سره ثابته شوه چه ﴿سُبْحٰنَ اللّٰهِ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ [الله تعالى ددوی دشرك نه پاك دې او اوچت دې ] ځکه چه هرکله تکوينا و تشريعا په خالق او مختار والی کښې يوازې دې نو دعبادت هم يوازې هغه مستحق دې ځکه چه معبود کيدل صرف دهغه ذات حق دې کوم چه تکويني او تشريعي دواړه اختياره لري ﴿وَرَبُّكَ﴾ [اوستارب] علم داسې کامل لري چه هغه ﴿يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ﴾ [ دټولو څيزونو خبرلري کوم چه ددوی په زړونو کښې پټ وی ﴿وَمَا يُعْلِنُوْنَ﴾ او څه لره چه دوی ظاهر وی] او دهيچا داسې علم هم نشته په دې سره هم دده يو والې ثابت شو[او] وړاندې ددې وضاحت دې چه ﴿وَهُوَ اللّٰهُ﴾ [الله تعالى هغه] کامل الصفات ذات [دې ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ چه دهغه نه سوا بل معبود نشته ﴿لَهُ الْحَمْدُ فِي الْاُوْلٰى وَالْاٰخِرَةِ﴾ دثناء] اوحمد [لائق په دنيا او آخرت کښې هغه دې ] ځکه چه دده تصرفات په دواړو عالمو کښې داسې دی کوم چه ددې جامع کمالات دی او مستحق دحمد وثنا کيدو باندې ګواه دی [او] اختيارات دحکومت دهغه داسې دی چه ﴿وَلَهُ الْحُكْمُ﴾ [حکومت هم] په قيامت کښې [دهغه به وی او] قوت او فراخي دسلطنت دهغه داسې ده ﴿وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ [چه تاسو ټول به هغه ته واپس کړې شئ ] داسې نه ده چه بچ به شئ يابه چرته بل خوا ته لاړشي او پناه به واخلئ او دهغه دقدرت ظاهرولو دپاره ﴿قُلْ﴾ [ته] دې خلقو ته [ ووايه ﴿اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ﴾ چه آيا داخو وښايئ چه که الله تعالى په تاسودهميشه دپاره ترقيامته پورې شپه پاتې کړی ﴿مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ﴾ نو د خدايځ نه سوا هغه کوم معبود دې چه تاسودپاره رڼرا راولی ] پس په قدرت کښې هم هغه يوازې دې ﴿اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ﴾ [نو آيا تاسو] دتوحيد داسې صفا دليلونو لره [نه اورئ] او ددې قدرت د اظهار دپاره ﴿قُلْ﴾ [ته ] دوی ته د دې عکس په نسبت هم [ ووايه ﴿اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ﴾ چه آيا دا خو وښايئ چه که الله تعالى په تاسوهميشه دپاره ترقيامته پورې ورځ پاتې کړی ﴿مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ﴾ نو دالله تعالى نه سوا هغه کوم معبود دې چه تاسو دپاره شپه راولی چه تاسو په کښې آرام وکړئ ﴿اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ﴾ آياتاسو] دې ګواه د قدرتونو لره [ وينئ نه؟] په قدرت کښې دهغه يو والې هم ددې مقتضي دې چه په معبوديت کښې هم هغه يوازې وی [او] هغه منعم داسې دې چه ﴿وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ [هغه په خپل رحمت سره تاسو دپاره شپه او ورځ جوړکړل ﴿لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ﴾ چه تاسو په شپه کښې آرام وکړئ ﴿وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ﴾ او چه په ورځ کښې دهغه رزق تلاش کړئ اوچه] په دې دواړو نعمتونو ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾ تاسو[ دالله تعالى] شکر وکړئ [نو په انعام او احسان کښې هم هغه يوازې دې دا هم ددې دليل دې چه په معبوديت کښې هغه يوازې دې .

## معارف او مسائل

﴿وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ﴾ ددې آيت مبارك يو مطلب هغه دې چې د تفسير خلاصه کښې داسې بيان کړې شوې دې چې د ﴿يَخْتَارُ﴾ نه مراد اختيار دحکمونو دې چې هر کله الله ﷻ کائنات خالص يوازې پيدا کړې دی چې هيڅوك ورسره په کښې شريك نه وی نو د حکمونو په جاری کولو کښې هم خالص يوازې دې پخپل مخلوق باندې هغه حکم جاری کوی چې پخپله ئې غواړی ، خلاصه ئې دا شوه چې څنګه په تکوينی اختيار کښې الله ﷻ هيڅوك شريك نه لرى نو دغسې په تشريعی اختيار کښې ئې هم هيڅوك شريك نشته. او ددې بل مطلب هغه دې چې علامه ابن قيم د زاد المعاد په مقدمه کښې او امام بغوی رحمه الله پخپل تفسير کښې داسې بيان کړې دې چې الله ﷻ خالص پخپله خوښه عزت او شرافت خپل مخلوق ته ورکوی او د امام بغوی رحمه الله د قول مطابق دا د مشرکانو د مکې دهغې وينا جواب دې چې: ﴿وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ﴾(١) يعنى [دا قرآن پاك الله ﷻ د دوؤ ښاريو په يو غټ نامتو سړی ولې نه نازلولو چې دهغه قدرو منزلت پيژندل کيدلو] په يو يتيم مسکين باندې د نازلولو څه حکمت دې. نو ددې په جواب کښې ئې اوفرمائيلس چې کوم مالك ، ټول مخلوقات بغير د چا د مدد څخه پيدا کړې دی ، دا اختيار هم هغه ته حاصل دې چې د خپل مخلوق څينې چاته يو خاص عزت وربخښي. هغه ستاسو د تجويز او خودنې پابند نه دې چې فلانې ددې حقدار دې او فلانې نه دې(٢).

**د يو څيز بل څيز باندې يا د سړی په بل سړی باندې د فضيلت اصل انحصار د الله تعالی خوښول دی:** حافظ ابن قيم رحمه الله ددې آيت څخه يو عظيم الشان ضابطه دا راخستې ده چې په دنيا کښې يو ځائې يا يو څيز ته په بل باندې غوره والې ورکولې شی. دا ددغې څيز د کسب او عمل نتيجه نه وی بلکه بې د څه واسطې څخه خالص د الله ﷻ په اختيار او انتخاب باندې ددې دارومدار وی. هغه لوئې ذات اووۀ آسمانونه پيدا کړل او دهغې نه پورته آسمان ئې د نورو نه زيات غوره اوګرځولو. سره ددې چې د اووؤ واړو آسمانونو ماده هم يوه وه. او بيا هم هغه ذات جنت الفردوس ته په نورو جنتونو باندې زيات غوروالې ورکړو. جبرائيل عليه السلام، ميکائيل عليه السلام ، عزرائيل عليه السلام ، او اسرافيل عليه السلام ئې د نورو فرښتو څخه او پيغمبران ئې د نورو بنی آدمو څخه اوالولعزم رسولان د نورو رسولانو څخه او په دوئ کښې ئې هم خپل خليل الله عليه السلام او خپل حبيب محمد ﷺ د نورو اولوالعزم پيغمبرانو عليهم السلام څخه، بيا اولاد اسماعيل عليه السلام يې دټولې د نيا د خلقو څخه ، بيا قريش ددغې ټولو څخه ، بيا بنی هاشم دټولو قريشو څخه اود ټولو بنيادمو سردار محمد ﷺ د ټولو بنی هاشمو څخه ، بيا دغه شان صحابه کرامو رضي الله عنهم او نورو بزرګانو دامت لره د نورو څخه غوره ګرځول خالص د الله ﷻ د چونړ کولو اوغوره کولو نتيجه ده.

په دې شان څينې مقاماتو لره د څينې نورو نه او څينې شپې او ورځې د څينو نورو شپو او ورځو څخه چونړ کول او غوره کول خالص د الله ﷻ کار دې ، بنا په دې د غوره والی اوبهتر

(١) ترجمه:- داقرآن پاك په د واړو کلو کښې په يو لوی سړې باندې ولې نازل شوې نه دې.
(٢) تفسير البغوي هذه الآية [ج: ٦ ص:٢١٨] وزاد المعاد مقدمة المؤلف [ج: ١ ص:٣٦]

والي پيمانه خو خالص د الله ﷻ کار او خوښه ده البته ددې يوه بله پيمانه انساني عملونه هم دي ، تر دې چې په کومو مقاماتو کښې نيك عملونه اوکړې شي نوهغه هم ددې په وجه برکتي ګرځي ، يا په دې وجه برکتي ګرځي چې نيکان بندګان په کښې استوګنه اوکړي ، داسې غوروالې په نيك عمل سره حاصليدې شي ، خلاصه دا شوه چې په دنيا کښې د فضيلت په دوؤ ځيزونو باندې اړه لري. يو غيراختياري دی صرف د الله تعالى انتخاب دی ، دويم اختياري دې چې په نيکو عملونو او غوره خويونوباندې اړه لري ، علامه ابن قيم رحمه الله په دې موضوع باندې يو لوئې تفصيلي کلام کړې دې. اوپه آخر کښې ئې د خلفاء راشدينو او ددوئ ځينې ئې د صديق اکبر رضي الله عنه وروستو عمر رضي الله عنه اوداشان دعثمان غني رضي الله عنه او وروستو د علي رضي الله عنه غوره والې په ترتيب سره په دواړو پيمانو يعنی اختياري او غير اختياري سره ثابت کړې دې. د شاه عبدالعزيز رحمه الله هم يو مستقله رساله په فارسي ژبه کښې په دې موضوع باندې شته دې چې دهغې اردو ترجمه احقر د بعض التفصيل لمسئلة التفضيل په نوم شائع کړې ده او د احکام القرآن سورۀ قصص کښې هم دې لره په عربي ژبه کښې په تفصيل سره ليکلې ده. اهل علم دپاره خوندناك ځيز دې ، هلته ئې مطالعه کړئ.

﴿قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ ؕ اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ۝ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ۝﴾ د لته په دې آيت مبارك کښې الله ﷻ د شپې يو فائده ئې داسې بيانه کړه چې : ﴿بِلَيْلٍ تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ﴾ [تاسو په کښې آرام حاصلوئې] ددې مقابل د ورځې په ذکر کښې ئې د ﴿بِضِيَآءٍ ؕ﴾ سره هيڅ فائده او نه خوده ، ددې وجه ظاهره داسې ده چې د ورځې رڼرا په خپل ځان کښې غوره ده چې د تيرې په نسبت ددې غوره والې ښه معلوم او مشهور دې ، د رڼرا دومره بې شميره فائدې دی چې دبيانولو ضرورت ئې نشته دې. پخلاف دتيرې ځکه چې خپل ذات کښې هيڅ فضيلت نه لري. ددې فضيلت ځکه دې چې خلق په کښې آرام اوسکون حاصلوی او هم په دې وجه ئې دغه فائده بيان کړه. او په دې وجه د ورځې د بيان کولو ځخه پس اخر کښې يې اوفرمائيل چې : ﴿اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ۝﴾ او دشپې د بيان ځخه پس اخر کښې يې اوفرمائيل چې :﴿اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ۝﴾ دې کښې اشاره دا هم کيدې شی چې د ورځې فائدې او نتيجې بې شميره دی چې د ليدلو په دائره کښې نشی ځائې کيدې. البته آورېدل ئې کيدې شی. ځکه وروستو فرمائی چې : ﴿اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ۝﴾ ځکه چې د انساني علم او ادراك لويه ذخيره هم د غوږونو په ذريعه حاصليدې شی. د سترګو ليدلې شوی دی ځيزونه د غوږونو د آوريدلی ځيزونو هميشه په نسبت ډير کم واقع شوی دی. او دشپې فائدې د ورځې دفائدو په نسبت کمې واقع شوی دی ، هغه ليدلې هم شی ځکه ئې : ﴿اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ۝﴾ اوفرمائيل [مظهری] [۱].

| وَيَوْمَ | يُنَادِيْهِمْ | فَيَقُوْلُ | اَيْنَ | شُرَكَآءِيَ |
|---|---|---|---|---|
| او باده ساتئ هغه ورځ | چې آواز به اوکړي الله دوئ ته | پس اوبه وائي | کوم ځائې دی | شريکان زما |
| او په کومه ورځ چې به ورته الله ﷻ اعلان اوکړي | | ...........نو اوبه وائي چې اوس زما هغه | | |

۱) تفسير المظهري[ج:۷ص:۱۷۸]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | كُنْتُمْ | تَزْعُمُوْنَ۝ | وَنَزَعْنَا | مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ | |
| هغه | چې وئ تاسو | چې تاسو به پر گمان کولو | اورااوبه باسو مونږه | دهر امت نه | |
| شریکان څه شول | چې تاسو به پرې [د خدايانو] گمان کولو | | اومونږ به د هر امت نه يو يو | | |
| شَهِيْدًا | فَقُلْنَا | هَاتُوْا | بُرْهَانَكُمْ | فَعَلِمُوْٓا | |
| يو گواه | نو اوبه وايو مونږه | راوړئ | دليل خپل | نو پوهه به شي هغوئ | |
| گواه بهرراوباسو | نوبيابه ورته اووايو چې اوس خپل خپل دليل پيش کړئ | نوهغوئ به پوهه شي | | | |
| اَنَّ الْحَقَّ | لِلّٰهِ | وَضَلَّ | عَنْهُمْ | مَّا | كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ۝ |
| چې بيشکه حق | الله لره دې | اوورك به شي | دهغوئ نه | هغه څه | چې وو هغوئ چې دروغ به ئې جوړول |
| چې حقه خبره هم هغه وه | چې الله کړې وه | اوکومې دروغ خبرې چې به دوی جوړولې هغه به ترې هيرې شي | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او هغه ورځ (مه هېروئ) چه کله هغه (دا مشرکان) راوبلي، او وائي به : چرته دی (په خدايۍ کښې) هغه زما شريکان د چا چه به تاسو دعوی کوله؟ او مونږ به په هر امت کښې يو گواهي ورکونکې راوباسو، بيا به اووايو چه : راوړئ خپل څه دليل! هغه وخت به هغوی ته پته اولگي چه رشتيا خبره صرف د الله پاک وه. او هغه ټولې خبرې کومې چه هغوی جوړې کړې دی، ټول به ترې نه ورکې شي.

## خلاصه تفسير

﴿وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ﴾ [او په کومه ورځ چه الله تعالی دوی لره راوبلي ويه فرمائي] ددې دپاره چه ټول خلق ددوی رسوائي ووينی واوري ﴿اَيْنَ شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ۝﴾ [چه کومولره تاسو ماسره شريك گڼړل هغه چرته لاړل او] اگر چه دحجت تماميدو دپاره په خپله ددوی اقرار کافي وو مگر دزيات تاکيد دپاره به په دوی شهادت هم قائم کړې شي داسې چه ﴿وَنَزَعْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيْدًا﴾ [ مونږ به دهر امت نه يويوگواه ] هم [راوباسو راولو] مراد ددې نه انبياء ﷺ دی کوم چه د دوی دکفر گواهي به ورکوی ﴿فَقُلْنَا هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ﴾ [ بيا به مونږ] دې مشرکانو ته [ ووايو چه] اوس [خپل څه دليل] دشرك د دعوې په صحت باندې [پيش کړئ پس ] هغه وخت به ﴿ فَعَلِمُوْٓا اَنَّ الْحَقَّ لِلّٰهِ﴾ [ دوی ته] په عين اليقين [معلوم شی چه رښتونې خبره دالله تعالی وه] کومه چه دانبياء ﷺ په ذريعه ښودلې شوې وه او دشرك دعوی دروغژنه وه ﴿وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ۝﴾ [او] په دې دنيا کښې [ څه خبرې چه دوی جوړکړې وې] نن به [ دهيڅ يوې پته نه وی] ځکه چه دحق په ښکاره کيدو دباطل غائب کيدل لازم دی.

**فائده:**: ددې نه په وړاندې ايت کښې چه کوم سوال په [ماذااجبتم] کښې شوې وو په هغې کښې دکفارونه انبياؤ ﷺ ته دجواب ورکولو متعلق باز پرس وو او دلته په خپله په انبياؤ ﷺ باندې شهادت ورکول مقصود دی په دې وجه په سوال کښې څه تکرار نشته

إِنَّ قَارُونَ | كَانَ | مِن قَوْمِ مُوسَىٰ | فَبَغَىٰ | عَلَيْهِمْ

بيشكه قارون | وو | دقوم دموسى نه | پس سركشئ اوكړه هغه | په هغوئ باندي |

بيشكه قارون دموسى ﷺ دقوم سړي وو | خو دخپل قوم په مقابله ئي تكبر اختيار كړو

وَآتَيْنَاهُ | مِنَ الْكُنُوزِ | مَا | إِنَّ | مَفَاتِحَهُ

او وركړي وي مونږ هغه ته | دخزانونه | هغه اندازه | چي بيشكه | كنجياني دهغي |

او مونږ ورته دومره ډيري خزاني وركړي وې | چي د هغي كنجياني به د مضبوطو

لَتَنُوأُ | بِالْعُصْبَةِ | أُولِي الْقُوَّةِ | إِذْ قَالَ | لَهُ | قَوْمُهُ

خامخا درنيدې | په داسې ډله باندي | چي خاوندان دقوت به وو | كله چي اووئيل | هغه ته | قوم دهغه

كسانو په پوره ډله باندې درنې وى | ............ څه وخت چي د هغه قوم هغه ته اووئيل چي

لَا تَفْرَحْ | إِنَّ اللَّهَ | لَا يُحِبُّ | الْفَرِحِينَ | وَابْتَغِ

خوشحاليږه مه [غرور مه كوه] | بيشكه الله | نه خوښوى | مغروره خلق | او تلاش كړه

غرور مه كوه | ............يقينا مغروره كسان الله ﷻ نه خوښوى | او الله ﷻ چي تاته

فِيمَا | آتَاكَ اللَّهُ | الدَّارَ الْآخِرَةَ | وَلَا تَنسَ | نَصِيبَكَ

په هغه مال كښي | چي دركړي دي تاله الله | كور دآخرت | او مه هيروه | حصه خپله

كوم مالونه دركړي دى | په هغې كښې د آخرت دپاره څه عمل اوكړه | اودنيا په مال كښې خپله حصه مه هيروه

مِنَ الدُّنْيَا | وَأَحْسِن | كَمَا | أَحْسَنَ اللَّهُ | إِلَيْكَ | وَلَا تَبْغِ

ددنيا نه | او احسان كوه | لكه څنګه چي | احسان كړي دي الله | ستا سره | او مه پورته كوه

............او لكه چي الله ﷻ تاسره احسان كړي دي دغه شان ته هم دخلقو سره احسان كوه

الْفَسَادَ | فِي الْأَرْضِ | إِنَّ اللَّهَ | لَا يُحِبُّ | الْمُفْسِدِينَ | قَالَ

فساد | په زمكه كښي | بيشكه الله | نه خوښوى | فسادكونكي | اووئيل هغه

او په زمكه كښې فساد مه خوروه | بيشكه الله تعالى فساديان نه خوښوى | ........قارون اووئيل

إِنَّمَا | أُوتِيتُهُ | عَلَىٰ عِلْمٍ | عِندِي | أَوَلَمْ يَعْلَمْ

بيشكه راكړې شوي دي ماته دا مال | په وجه دهغه علم | چي زما سره دي | آيا او هغه ته دا علم نه وو

چي دا مالونه خو ماته زما د علم او [زما دقابليت] په وجه راكړې شوى دى | آيا هغه په دې پوهه نشو

أَنَّ اللَّهَ | قَدْ أَهْلَكَ | مِن قَبْلِهِ | مِنَ الْقُرُونِ | مَنْ | هُوَ

چي بيشكه الله | هلاك كړي دى | مخكښې دهغه نه | دخلقو نه | هغه څوك | چي هغه

چي الله ﷻ د هغه نه وړاندې داسې ډير قومونه تباه كړى دى | چي هغوى د هغه [قارون] نه په زور

أَشَدُّ | مِنْهُ | قُوَّةً | وَأَكْثَرُ | جَمْعًا | وَلَا يُسْأَلُ

ډير سخت وو | دهغه نه | په قوت كښي | او ډير زيات وو | په ډله كښي | او تپوس به نه كيږي |

كښې زيات وو | ........اودله پله [ملګرى] ئي ډير زيات وو | او د مجرمانو نه به د ګناهونو په

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَنْ ذُنُوْبِهِمُ | الْمُجْرِمُوْنَ | فَخَرَجَ | عَلٰى قَوْمِهٖ |
| په باره دګناهونو دهغوئ کښې | دمجرمانونه | پس راووتو هغه | په قوم خپل باندې |

باره کښې تپوس ته هيڅ حاجت نه وي [ نو (يوه ورځ) هغه خپل پوره شان وشوکت سره دخپل قوم په

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِيْ زِيْنَتِهٖ | قَالَ الَّذِيْنَ | يُرِيْدُوْنَ | الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا |
| په زينت [شان وشوکت] خپل کښې | نواووئيل هغه کسانو | چې غوښتو ئې | دا ژوند ددنيا |

مخکښې راووتلو]............ نو کومو کسانو چې د دنيا اراده لرله هغوئ اووئيل چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰلَيْتَ | لَنَا | مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ | قَارُوْنُ | اِنَّهٗ | لَذُوْ |
| کاش چې وې مونږ لره | په شان دهغې | چې ورکړې شوې دی | قارون ته | بيشکه هغه | خاوند |

کاش ! مونږ سره هم دغسې څيزونه موجود وې لکه څنګه چې قارون ته ورکړې شوې دی | يقينا دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَظٍّ عَظِيْمٍ | وَقَالَ | الَّذِيْنَ | اُوْتُوا الْعِلْمَ | وَيْلَكُمْ |
| دحصې لوئ دې | اواووئيل | هغه کسانو | چې ورکړې شوې وو علم | افسوس دې تاسولره |

خو د ډيرې برخې خاوند دې | او کوم کسان چې دعلم خاوندان وو [هغوئ اووئيل چې ائې بد نصيبو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثَوَابُ اللّٰهِ | خَيْرٌ | لِّمَنْ | اٰمَنَ | وَعَمِلَ صَالِحًا |
| ثواب دالله | بهتر دې | دپاره دهغه چا | چې ايمان ئې راوړو | او عمل ئې اوکړو نيک |

د الله ﷻ ثواب د هغه کسانو دپاره ډير زيات غوره دې | کوم چا چې ايمان راوړې اونيک کارونه کوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا يُلَقّٰهَآ | اِلَّا | الصّٰبِرُوْنَ | فَخَسَفْنَا | بِهٖ |
| اوندَ ورکړې کيږی دا | مګر | صبر کونکوته | پس ډوب کړه [ننه ايستلو] مونږه | په دهٔ باندې |

اودا خبره هغه چاته خودلې شی چې صبر کوی | .........نومونږ قارون اودهغه ماڼئ [دواړه]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَبِدَارِهِ | الْاَرْضَ | فَمَا كَانَ | لَهٗ | مِنْ فِئَةٍ | يَّنْصُرُوْنَهٗ |
| او په کور ددهٔ باندې | په زمکه | پس نهٔ وه | هغه لره | هيڅ يوه ډله | چې امداد ئې کړې وې دهغه |

په زمکه کښې ورښخ کړل | نوبيا داسې يو ټولې نه وو چې د الله ﷻ په مقابله کښې ئې د هغهٔ مدد

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | وَمَا كَانَ | مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ | وَاَصْبَحَ | الَّذِيْنَ |
| په مقابله دالله کښې | اونهٔ شو هغه | په خپله دځان دمدد کونکونه | اوصباکړو [شوصباله] | هغه کسان |

کړې وې | اونه هغه په خپله خپل ځان بچ کړې شوا ............ اوصبا ته هغه خلقو اووئيل چې پرون

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تَمَنَّوْا | مَكَانَهٗ | بِالْاَمْسِ | يَقُوْلُوْنَ | وَيْكَاَنَّ |
| چې ارزوئې کوله | دمرتبې دهغه | په پرون | هغوئ وائی [ئن] | افسوس دې اوس پوهه شو |

دهغه په شان جوړيدلو ارمانی وو | رښتيا دی چې الله ﷻ په خپلو بندګانو کښې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اللّٰهَ يَبْسُطُ | الرِّزْقَ | لِمَنْ | يَّشَآءُ | مِنْ عِبَادِهٖ |
| چې الله فراښه کوی | رزق | دپاره دهغه چا | چې خوښه شی دهغه | دبندګانو خپلو نه |

چې د چا په باره کښې اوغواړی نو فراخه رزق ورته ورکوی | او [چا ته چې اوغواړی]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَقْدِرُ | لَوْلَآ اَنْ | مَّنَّ | اللّٰهُ | عَلَيْنَا |
| او په اندازه کوي رزق | که چرې نه وې دا | چې احسان اوکړو | الله | په مونږ باندې |
| نو کموي | ............که چرې په مونږ باندې دالله ﷻ احسان نه وې | نو مونږ به ئې | | |
| لَخَسَفَ بِنَا ؕ | وَيْكَاَنَّهٗ | لَا يُفْلِحُ | | |
| نو هغه به مونږ ورښخ کړي وو | افسوس دې اوس پوهه شو | چې فلاح [خلاصې] نه مومي | | |
| هم په زمکه ښخ کړي وو | ............ربشتیا دی چې کافران نشي | | | |
| الْكٰفِرُوْنَ ۝ | | | | |
| کافران | | | | |
| کامیابیدې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

قارون د موسٰی علیه السلام د قوم یو سړې وو بیا هغه په هغوی باندې زیاتې اوکړو او مونږ هغه ته دومره خزانې ورکړې وې چه دهغې چابیانې به د طاقتورو خلقو یو جماعت هم په ګرانه اوچتولې. یو وخت وو چه هغه ته د هغه قوم اووئیل چه: تکبر مه کوه! الله پاک تکبر کونکی نه خوښوی. او الله پاک چه تا ته څه درکړې دی، د هغې په ذریعه د آخرت د کور د جوړولو کوشش اوکړه او په دنیا کښې هم خپله حصه مه نظر انداز کوه او څنګه چه الله پاک په تا باندې احسان کړې دې ته هم (په نورو باندې) احسان کوه او په زمکه کښې د فساد کولو کوشش مه کوه. یقین اوساته چه الله پاک فساد کونکی نه خوښوی وې وئیل: دا ټول هر څه خو ما ته زما د خپل علم د وجې نه ملاؤ شوې دی. آیا هغهٔ ته دومره هم علم حاصل نه وو چه الله پاک دهغه نه د مخکښې نسلونو داسې داسې خلق هلاک کړی دی چه په طاقت کښې هم دهغه نه زیات مضبوط وو او د چا چه ټولګې هم زیات وو. او د مجرمانو نه به د هغوی د ګناهونو په باره کښې تپوس هم نه شی کولې بیا (یوه ورځ) هغه د خپل قوم مخکښې ډیر په شان و شوکت سره راووتلو. کوم خلق چه د دنیا د ژوند طالبان وو، هغوی اووئیل: کاش! چه مونږ سره هم هغه څیزونه وې کوم چه قارون ته ورکړې شوې دی. یقیناً هغه ډیر د نصیب خاوند دې او کومو خلقو ته چه (د الله پاک د طرف نه) علم ورکړې شوې وو، هغوی اووئیل: په تاسو باندې افسوس دې (چه تاسو داسې وایئ) د الله پاک ورکړې شوې ثواب د هغه سړی دپاره زیات غوره دې چه ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی. او دا به هم هغوی ته ملاویږی چه د صبر نه کار اخلی بیا داسې اوشوه چه مونږ هغه او د هغه کور په زمکه کښې ښخ کړو بیا هغه ته هیڅ داسې ډله ملاؤ نه شوه چه د الله پاک په مقابله کښې ئې د هغه مدد کړې وې او نه ئې پخپله خپل ځان بچ کړې شو او پرون چه کومو خلقو د هغه په شان د کیدو ارمان کولو، وې وئیل: افسوس! معلومه شوه چه الله پاک په خپلو بندګانو کښې چه چاته غواړی په رزق کښې فراخی ورکوی، او (د چا چه غواړی) تنګی پیدا کوی. که الله پاک په مونږ باندې احسان نه وې کړې نو هغه به مونږ هم په زمکه کښې ښخ کړې وې. افسوس! معلومه شوه چه کافران خلق به کامیاب نه شی.

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ قَارُونَ﴾ د [قارون] حال ووینئ چه په کفر او خلاف کولو دهٔ ته څه ضرر ورسیدو او دهٔ مال او اسباب هم برباد شول ددهٔ قصه په لنډو داده چه هغه ﴿كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ فَبَغَىٰ عَلَيْهِمْ﴾ د [موسی] ﷺ [په برادرئ کښې وو] یعنی د بنی اسرائیلونه بلکه ددهٔ دتره خوئ وو [لکه داسې په الدرالمنثور(۱) کښې دی] [پس هغه] د ډیروالی دمال په وجه سره [دهغو خلقو په مقابله کښې تکبر وکړو او] مال دهٔ سره دومره ډیر وو چه ﴿وَآتَيْنَاهُ مِنَ الْكُنُوزِ﴾ [مونږ دهٔ ته دومره خزانې ورکړې وې] ﴿مَا إِنَّ مَفَاتِحَهُ لَتَنُوءُ بِالْعُصْبَةِ أُولِي الْقُوَّةِ﴾ چه دهغې کنجیانې په څوڅو زور اوړو سړو باندې درنې شوې وې] یعنی هغوی به په تکلیف سره پورته کولې نو هرکله چه کنجیانې دومره ډیرې وې نو ظاهره ده چه خزانې خو به هم ډیرې زیاتې وې او تکبرئ هغه وخت کړې وو ﴿إِذْ قَالَ لَهُ قَوْمُهُ لَا تَفْرَحْ﴾ [هرکله چه دهٔ ته د دهٔ برادرئ] دپوهولو په طور سره [ووئیل چه ته] په دې مال باندې [مستی مه کوه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ﴾ واقعی الله تعالی مستی کوونکو لره نه خوښوی او] دائ ورته هم ووئیل چه ﴿وَابْتَغِ فِيمَا آتَاكَ اللَّهُ الدَّارَ الْآخِرَةَ﴾ [تالره الله تعالی څومره درکړې دی په هغې کښې د آخرت دپاره هم لټون کوه ﴿وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا﴾ او ددنیا نه خپله حصه] آخرت ته وړل [مه هیره وه او] مطلب د [ابتغ ولاتنس] نه دادې چه ﴿وَأَحْسِن كَمَا أَحْسَنَ اللَّهُ إِلَيْكَ﴾ [څنګه الله تعالی تاسره احسان کړې دې ته هم ] دبندګانو سره] احسان کوه او] دالله تعالی نافرمانی او په واجبوحقونوضائع کولو ﴿وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ فِي الْأَرْضِ﴾ [په دنیاکښې فساد کوونکې مه کرځه] یعنی په ګناه کولو سره په دنیا کښې فساد کیږی لکه داقول دالله تعالی دې [ظهر الفساد فی البر والبحر بما کسبت ایدي الناس] (۲) او خاصکر بیامتعدی ګناه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ﴾ [بیشکه الله تعالی فساد کوونکولره نه خوښوی ] داتول نصیحت دمسلمانانو دطرف نه شو غالبا دا مضامین موسی ﷺ اول فرمائیلی وی بیا مکرر نورو مسلمانانو ددې اعاده کړې وی [قارون ] چه دا واوریدل ﴿قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِي﴾ [وئ وئیل چه ماته دا هرڅه زما د ذاتی هنر په وجه سره ملاو شوی دی] یعنی زهٔ دمعاش په چلونو او تدبیرونو باندې ښه پوهه یم په دې سره مادا جمع کړی دی بیا زما فخریې ځایه نه دې اونه دې ته غیبی احسان ونیلې شی اونه په دې کښې دچا څه استحقاق کیدې شی وړاندې الله تعالی ددهٔ داخبره رد کړه ﴿أَوَلَمْ يَعْلَمْ﴾ [آیا دهٔ] قارون په اخبار متواتره سره [دا ونه پیژندهٔ ﴿أَنَّ اللَّهَ قَدْ أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِ مِنَ الْقُرُونِ﴾ چه الله تعالی د دهٔ نه په وړاندې امتونو کښې داسې خلقو لره هلاك کړی دی ﴿مَنْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً﴾ کوم چه په] مالی [قوت کښې] هم [ددهٔ نه ډیر زیات وو ﴿وَأَكْثَرُ جَمْعًا﴾ او ډله پره] هم ددهٔ نه [هغوی زیاته لرله] صرف دا نه چه هلاك شول او خلاص شول بلکه په وجه ددوی دجرم دکفر کولو او الله تعالی ته ددوی ددې جرم معلومیدو په وجه قیامت کښې به هم په عذاب وی لکه چه داد هغه ځائ قاعده ده چه ﴿وَلَا يُسْأَلُ عَن ذُنُوبِهِمُ الْمُجْرِمُونَ﴾ [ دمجرمانو نه به ددوی د ګناهونو] دتحقیق کولو په غرض سره [تپوس کول نه وی] څکه چه الله تعالی ته داتول هرڅه معلوم دی اګرچه دزجر او تنبیه دپاره سوال وی لکه چه داقول دالله تعالی دې [النسألنهم

۱) الدرالمنثور [ج:۸ ص:۱۳]
۲) ترجمه:- په اوچه او په لمنده د خلقود عملونو په وجه فسادونه خوریږی.

اجمعين] (¹) مطلب دادي چه که قارون په دې مضمون نظر کولې نو دداسې جهالت خبره به يې نه کوله څکه چه دتيرو قومونو دعذاب په حالاتو سره دالله تعالى دکامل قدرت او د آخرت دمؤاخذې نه دهغه احکم الحاکمين کيدل ظاهر دی بيا چاته څه حق دې چه دالله تعالى نعمت ته دخپلې هنرمندئ نتيجه ووائی او دواجبو حقونو نه انکار وکړی [بيا] يو ځل داسې اتفاق وشو چه ﴿فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ فِىْ زِيْنَتِهٖ﴾[په خپل ډول ډال] او شان [سره دخپلې برادرئ په وړاندې راووتلو ﴿قَالَ الَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا﴾ کوم خلق چه] ددهٔ په برادرئ کښې [ددنيا طالبان وو] اګر چه مؤمنان وولکه چه ددوی د وړاندې قول [ويکان الله يبسط الرزق الخ] نه په ظاهره معلوميږی هغو خلقو [ووئيل ﴿يٰلَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَآ اُوْتِىَ قَارُوْنُ﴾ چه څه ښه به وې که مونږته هم هغه ساز سامان ملاؤ وې کوم چه قارون ته ملاؤ دې ﴿اِنَّهٗ لَذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ﴾ واقعی هغه لوئ دنصيب خاوند دې] دا آرزو د حرص وه په دې سره کافر والې نه لازميږی لکه اوس هم څنې مسلمان سره داسلام نه شپه او ورځ دنورو قومونو ترقئ وينی پسخيږی ورته او فکرئ کوی ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ﴾ [ اوکوم خلقو ته چه] ددين [پوهه ورکړې شوې وه هغوی] دې حريصانوته [ ووئيل ﴿وَيْلَكُمْ ثَوَابُ اللّٰهِ خَيْرٌ﴾ لرې ورک شئ ] تاسو په دې دنيا پسې ولې ځئ [دالله تعالى دکور ثواب ] ددې دنيا دجاه او جلال نه [په زر درجې غوره دې ﴿لِّمَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ کوم چه داسې سړی ته ملاويږی چه ايمان راوړی اونيک عمل کوی او] بياپه ايماندارو اونيک عمل والو کښې هم [هغه ] ثواب په کامل طور ﴿وَلَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا الصّٰبِرُوْنَ﴾ [هغوخلقوته ورکولې شی کوم چه] ددنيا دحرص او طمع نه [صبرکوی] پس تاسو خلق دايمان په مکمل کولو او دنيک عمل په حاصلولو کښې لګياشئ او دشرعی حدودو دننه دنيا حاصلوئ دزيات حرص او طمع نه صبر کوئ ﴿فَخَسَفْنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ الْاَرْضَ﴾ [بيا مونږ دې قارون لره او ددهٔ محل سرائ لره] ددهٔ دشرارت په زياتيدو سره [ په زمکه کښې ننويستلو ﴿فَمَا كَانَ لَهٗ مِنْ فِئَةٍ يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ پس څوک داسې پيدانه شو چه دهٔ لره يې دالله تعالى ] دعذاب [نه بچ کړې وې] اګر چه دې دلوئ ډلې خاوند وو ﴿وَمَا كَانَ مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ﴾ [او نه دهٔ په خپله خپل ځان بچ کړې شو ﴿وَاَصْبَحَ الَّذِيْنَ تَمَنَّوْا مَكَانَهٗ بِالْاَمْسِ﴾ او پرون ] يعنی په تيره نزدې زمانه کښې [چه کومو خلقو ددهٔ په شان دکيدو ارزو کوله هغوی] نن چه ددهٔ ننوتل اوليدل ﴿يَقُوْلُوْنَ﴾ [وئ ووئيل بس جی داسې معلوميږی چه] درزق دفراخئ يا تنګئ داروهدار په خوش نصيبئ يابدنصيبئ باندې نه دې بلکه دا محض په تکوينی حکمت سره دالله تعالى په قبضه کښې دې پس ﴿وَيْكَاَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ﴾[الله تعالى چه په خپلو بندګانو کښې چالره غواړی زيات رزق ورکوی او] چالره چه غواړی ﴿وَيَقْدِرُ﴾ [ په تنګئ سره يې ورکوی ] دا زمونږه غلطی وه چه دې لره به مونږ خوش نصيبی ګڼړله زمونږ توبه ده او واقعی﴿لَوْلَآ اَنْ مَّنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا﴾ [که په مونږ دالله تعالى مهربانی نه وې نو مونږ به يې هم ننويستلی وو] څکه چه حرص او ددنيا دمحبت ګناه خو مونږ هم کړې وه ﴿وَيْكَاَنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ﴾[بس جی معلومه شوه چه کافران کاميابی نه مومی] اګر چه څو ورځې مزې وکړی مګر انجام يې بيا خسران دې بس کاميابی معتد به مونډل خاص ايماندارو لره دی۔

---

¹ ) ترجمه:- مونږ به دهغوئ نه دهغوئ دعملونو باره کښې ضرور تپوس کوؤ.

## معارف او مسائل

دسورة قصص د شروع نه تر دې پورې د موسى ﷺ هغه قيصه بيان شوې ده كومه چې د فرعون اوفرعونيانو سره راپيښه شوې وه ، دلته دهغوئ ﷺ يوه بله قيصه بيانيږي چې د خپلې برادرئي قارون سره ئې راپيښه شوې وه ، تير شوؤ آيتونو مباركو سره ددې مناسبت دادې چې اوس په دې تير شوى آيت مبارك كښې اوفرمائيلې شو چې تاسو ته دركړې مال ، سامان څو ورځيني دې ددې په مينه كښې مستيدل عقل مندى نه ده.﴿وَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَيۡءٖ فَمَتَٰعُ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا الاية﴾(١)

دقارون په قيصه كښې دا خودلې شوى دى چې هغه دمال دولت حاصليدو نه پس دا نصيحت هير كړو چې دهغې په نشه كښې مستيدوسره ئې د الله ﷻ ناشكرى هم اوكړه او دهغه په مال كښې د الله ﷻ فرض شوى حقونو نه ئې هم غاړه اورغړوله څكه د هغې په نتيجه كښې سره د خپلو خزانو په زمكه وراومندلې شو.

قارون يو عجمى لفظ دې چې غالبا دعبرانئ ژبې دې دهغه په باره كښې دومره خبره خو قرآن پاک د الفاظو نه ثابت ده چې دا د موسى ﷺ د بردارئ سړې وو ، د بنى اسرائيلو سره نه وو باقي دا چې د هغه رشته د موسى ﷺ سره څه وه دې كښې مختلف اقوال دى. ابن عباس ﷛ د يو روايت تر مخه ورته دهغوئ ﷺ تربور وئيلې شوې دې ، د غسې نور څه اقوال هم شته [قرطبى ، روح](٢).

روح المعانى كښې د محمد بن اسحاق په روايت نقل كړې شوى دى چې قارون د تورات حافظ وو او نورو بنى اسرائيلو نه ده ته زيات تورات ياد وو خو دسامرى پشان منافق ثابت شو ، وجه ئې داوه چې ددنيا د مال دولت او مرتبې زيات حرص ناک وو ، دټولو نبى اسرائيلو سردار موسى ﷺ وو او ورو هارون ﷺ ئې وزير او پيغمبرئ كښې ورسره شريک وو د قارون په زړه كښې دا كينه پيدا شوه چې زه هم ددوئ دبرابرئ سړې يم ، په سردارئ اوپه مشرئ كښې ولې زما څه حق نشته دې . دا ګيله ئې چې موسى ﷺ ته اوكړه نو ورته موسى ﷺ اوفرمائيل چې دې كښې هيڅ اختيار زمونږ نشته ، صرف د الله تعالى د اختيار د لاندې شوې دى ، مګر په دې باندې د قارون تسلى او نه شوه او موسى ﷺ سره ئې كينه ساتل شروع كړل(٣).

﴿فَبَغَىٰ عَلَيۡهِمۡۖ﴾ بغى لفظ د څو معنو دپاره استعماليږى مشهوره معنى ئې ظلم دې ، په دې بنا دلته ئې دا معنى هم كيدې شى چې قارون د خپل مال ، دولت په نشه كښې مست شو او په خلقو ئې ظلم شروع كړو ، يحيى بن سلام او سعيد بن مسيب فرمائيلى دى چې قارون يو مالدار سړې وو ، د فرعون د طرفه د بنى اسرائيلو په نګرانئ باندې مقرر وو په دغې وجه ئې بنى اسرائيل تنګول شروع كړل [قرطبى](٤).

ددې بله معنى تكبر هم راغلې ده ، ډيرو مفسرينو دلته دا معنى مراد داسې اخستې ده چې هغه دمال دولت په نشه كښې په بنى اسرائيلو باندې تكبرشروع كړو اوهغوئ ئې سپک اوذليل اوبلل.

---

(١) ترجمه:- او څه چې تاسو ته دركړې شوى دى هغه صرف ددنياوى ژوند دتيرولو دپاره دى.
(٢) تفسير القرطبي [ ج:١٣ص:٣١] و روح المعاني [ج: ١٥ ص:١٨٦]
(٣) روح المعاني [ج: ١٥ ص:١٨٦]
(٤) تفسير القرطبي [ ج:١٣ص:٣١٠]

﴿وَآتَيْنَاهُ مِنَ الْكُنُوزِ﴾ کنوز د کنز جمع ده ، ښخې خزانې ته وئيلې شي ، او د شريعت په اصطلاح کښې کنز هغه خزانه ده چې زکوة ئې نه وي ادا کړې شوي ، د عطاء رحمه الله د رويات مطابق ده ته د يوسف عليه السلام ښخه کړې خزانه په لاس ورغلې وه ، [روح][1].

﴿لَتَنُوأُ بِالْعُصْبَةِ﴾ د نَاءَ معنی دڅه پيټی په وجه راټيټيدلو ته وئيلې شي او د عصبة معنی ډله ده ، ددې ټولې جملې معنی داده چې د هغه خزانې دومره وې چې د هغې چابيانې به ين مضبوط جماعت پورته کړې نو د هغې د پيټي په وجه به راټيټ شو ، ښکاره خبره ده چې چابی خلق دومره سپکه خوښوی چې بې د څه تکليف نه ئې ځان سره ساتلې شي خو خزانې ئې دومره ګڼړې وې چې دهغې ټولو چابيانې به راجمع کړې شوې نو د يو مضبوط جماعت دپاره سخت پيټي جوړيدلو چې په آسانه به ئې پورته کولې نشو [روح][2].

﴿لَا تَفْرَحْ﴾ د فرح لفظي معنی هغه خوشحالی ده چې په حاصل شوی لذت کولې شي . قرآن کريم په ډيرو آيتونو کښې فرح ته بد فرمائيلی دی لکه په دې آيت مبارک کښې فرمائی چې :﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ﴾ په بل آيت مبارک کښې فرمائی چې :﴿وَلَا تَفْرَحُوا بِمَا آتَاكُمْ﴾[3] او په بل آيت مبارک کښې فرمائی چې :﴿وَفَرِحُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾[4] او په ځينې آيتونو کښې د فرح اجازت بلکه يو قسم حکم ئې هم راغلې دې لکه فرمائی چې :﴿يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ﴾[5] او په بل کښې فرمائی چې :﴿فَبِذَٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوا﴾[6] داټول آيتونه چې يو ځائې کړې شي نو ثابتيږی چې بد او منع شوې ، فرح هغه دې چې د فخر او لويئ حد ته اورسيږی ، او داهغه وخت وی چې بنده دغه لذت او خوشحالی خپل ذاتی ګڼړی د الله تعالی انعام او اکرام يې نه ګڼړئی مګر هغه خوشحالی بده او منع نه ده چې دې حد ته نه رسی بلکه په يو شان سره مطلوب څکه ده چې دا هم د الله ﷻ د شکر ادا کولو طريقه ده .

﴿وَابْتَغِ فِيمَا آتَاكَ اللَّهُ الدَّارَ الْآخِرَةَ وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا﴾ [يعنی مسلمانانو قارون ته دا نصيحت اوکړو چې دالله ﷻ دورکړی مال په ذريعه د آخرت انتظام اوکړه او په دنيا کښې خپله حصه مه هيروه]. ددنيا حصه څه ځيز دې . حصې نه دلته اکثرو مفسرينو عمر او په کښې کړی هغه عملونه مراد اخستې دی چې آخرت کښې پکار رازی ، دې کښې صدقه اوخيرات هم داخل دې او نور نيک عملونه هم ، ابن عباس رضي الله عنهما او جمهورو مفسرينو نه هم دا معنی منقول ده [قرطبی][7].

دې صورت کښې به دويمه جمله د ړومبئ جملې تاکيد او تائيد وی ، په ړومبئ جمله کښې اوفرمائيلې شو چې د الله ﷻ د ورکړی مال ، دولت ، عمر ، قوت او صحت وغيره ټولو نه هغه کار اخله چې په دار آخرت کښې دې پکار راځی او په حقيقت کښې هم دغه حصه ستا ده چې د

[1]) روح المعاني [ج: ۱۵ ص:۱۸۶]
[2]) روح المعاني [ج: ۱۵ ص:۱۸۷]
[3]) ترجمه:- او تاسو ته چې کوم ځيز درکړې شوې دې په هغې مه خوشحاليږئ.
[4]) ترجمه:-او داخلق په د نياوی ژوند باندې خوشحاليږی.
[5]) ترجمه:- او په هغه ورځ به خلق دالله تعالی په دې امداد باندې خوشحاليږی.
[6]) ترجمه:- خلقو ته پکار دی چې دالله تعالی په دې انعام او رحمت باندې خوشحاله شي.
[7]) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۳۱٤]

آخرت سامان جوړ شي نوره پاتې دنیا خو د وارثانو حصه ده. او ځینو مفسرینو فرمائیلي دي چې د دویمې جملې مطلب دادې چې څه درته الله ﷻ درکړي دي، هغې نه دخپل آخرت دپاره بندوبست هم اوکړئ خو ددنیا خپل ضرورت هم مه هیروئ چې ټول هر څه خیرات کړئ او پخپله ځان ته هیڅ پرې نږدئ، بلکه د ضرورت په اندازه خپل ځان دپاره هم څه پریږدئ، ددې تفسیر په وجه به دنصیب دنیانه مراد دهغه معاشي ضرورت وي، والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

﴿إِنَّمَآ أُوتِيتُهُۥ عَلَىٰ عِلۡمٍ عِندِيٓۚ﴾ د ځینې مفسرینو په نزد دلته د علم نه مراد د تورات علم دې، ځنګه چې په ځینې روایاتو کښې راغلي دي چې قارون د تورات حافظ او عالم وو او دې په هغه اویا اصحابو کښې شامل وو کوم چې موسی ﷺ د میقات دپاره منتخب کړي وو، خو هغه کښې پخپل علم باندې تکبر پیدا شو او خپل ذاتي کمال ئې اوګنړلو او دهغه د خبرې مطلب هم دا وو چې ما د خپل ذاتي کمال په وجه مال دولت حاصل کړې دې، ځکه ئې هم زه پخپله حقدار یم، دې باره کښې په ما باندې د هیچا احسان نشته، خو ښکاري داسې چې دلته د علم نه مراد د دنیا روزګار د چلونو علم دې، لکه تجارت، کاریګري وغیره په څه سره چې مال، دولت حاصلیږي، او مطلب دادې چې ماته په لاس راغلي مال کښې د الله ﷻ د احسان کولو څه کار نشته دې، دا خو مې په ډیره هوښیارتیا او کار روزګار سره حاصل کړې دې، جاهل دومره خیال نه کولو چې هوښیارتیا، د کاروزګار کاریګرئي یا تجارت تجربې اوعلم خو هم د الله ﷻ ورکړي څیزونه دي، دا هم ذاتي کمال نه وو.

﴿أَوَلَمۡ يَعۡلَمۡ أَنَّ ٱللَّهَ قَدۡ أَهۡلَكَ مِن قَبۡلِهِۦ﴾ قارون چې دا اووئیل چې مال او دولت مې په هوښیارتیا کاریګرئي، محنت، مشقت او تجارت وغیره سره حاصل کړې دې چې زما ذاتي کمال دې.

ددې اصل جواب خو هم هغه وو چې مونږ پورته داسې بیان کړو چې دغه کاریګري وغیره خو هم د الله ﷻ ورکړي څیزونه وو نو دا ځنګه دهغه احسان نشي کیدې؟ خو هر کله چې دغه جواب ډیر ښکاره وو ځکه ئې هغه پریښودو په دې شان ئې جواب ورکړو چې بالفرض مال هم ستاوو، په ذاتي کمال دې حاصل کړې ووخو پخپله ددغې مال، دولت حقیقت ځکه نشته چې دمال کثرت دانسان څه کمال اوغوره والې نه دې اونه هروخت د هغه پکار راځي ددې په ثبوت کښې یې د مخکښې امتونو غټو سرمایه دارو مثال یې پیش کړو چې کله هغوئ سرکشي اوکړه نو د الله ﷻ عذاب هغوئ لره ناڅاپه اونیول او مال دولت دهغوئ هیڅ پکار رانغلو.

﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ وَيۡلَكُمۡ﴾ په ې آیت مبارک کښې ﴿ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ﴾ دعالمانو مقابله:

﴿ٱلَّذِينَ يُرِيدُونَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا﴾ سره کړې شوې ده چې په کښې ښکاره اشاره دې ته ده چې ددنیا دسامان اراده، او دې لره مقصود جوړو داهل علم کار نه دې د اهل علم نظر، همیشه دپاره د آخرت په همیشه فائده باندې وي دنیوي سامان د ضرورت په اندازه حاصلوي او هم په هغې باندې قناعت او وخت تیروي.

| لِلَّذِينَ | نَجۡعَلُهَا | ٱلۡأٓخِرَةُ | ٱلدَّارُ | تِلۡكَ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغه خلقو | مقرر وو مونږ | آخرې | کور | دا |

دا د آخرت کور مونږ هغه خلقو دپاره تیار کړې دې

لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴿۸۳﴾

چې نهٔ غواړي | لوئي په زمکه کښې | اونهٔ فساد | او ښهٔ انجام | دپاره دپرهيزګارانو دي

چې په زمکه کښې تکبر او فساد کول نه غواړي | ............اوآخرت خو دپرهيزګارانو دپاره ښه دي

مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ خَيْرٌ مِّنْهَا وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ

چاچې | اوکړه نيکي | نوهغه لره ده | بهتره | دهغې نه | او چاچې | اوکړه بدي

چا چې دالله ﷻ دربار ته نيکي راوړه | نو هغه ته به د هغې نه غوره بدله ورکولې شي |

فَلَا يُجْزَى الَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ إِلَّا مَا كَانُوا

نوبدله به نهٔ ورکړې کيږي | هغه کسانوته | چې کوی | بدکارونه | مګر | هغه | چې وو هغوئ |

اوچا چې ځان سره بدي راوړه نو بدکارو کسانو ته فقط هغه هومره بدله ورکولې شي

يَعْمَلُونَ ﴿۸۴﴾

چې کول به ئې |

څومره چې هغوئ کول |

## آسان ترجمه قرآن

هغه د آخرت کور خو به مونږ د هغه خلقو دپاره مخصوص کوو کوم چه په زمکه کښې نه خو لوئي غواړي، او نه فساد. او آخري انجام به د پرهيز کارو په حق کښې وي. کوم سړي چه يو نيکي راوړي نو هغه ته به د هغې نه غوره څيز ورکړې شي، او څوک چه ګناه راوړي نو چاچه بدکارونه کړې وي، هغوی ته به د بل څه نه، هم د هغه کړي کارونو سزا ورکولې شي.

## خلاصه تفسير

﴿تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ﴾[دا عالم آخرت ] دکوم ثواب چه مقصود کيدل بره په [ثواب الله خير الخ](1) کښې بيان شوې دې ﴿نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ﴾[ مونږ دهغو خلقو دپاره خاص کوو کوم چه په دنيا کښې نه لوئ جوړيدل غواړي﴿وَلَا فَسَادًا﴾ اونه فساد کول] يعنی نه تکبر کوی کوم چه باطنی ګناه ده اونه څه ظاهری ګناه داسې کوی په کوم سره چه په زمکه کښې فساد جوړيږی اوصرف ددې باطنی او ظاهری بدونه بچ کيدل کافی نه دی بلکه ﴿وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ﴾ [نيکه نتيجه متقی خلقو ته ملاويږی] کوم چه د بدونه دځان ساتلو سره دنيکو عملونو هم پابند وی او په کيفيت دعملونو به جزا او سزا داوی چه ﴿مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ﴾ [کوم سړي چه] د قيامت په ورځ [نيکی راوړی ﴿فَلَهُ خَيْرٌ مِّنْهَا﴾ هغه ته به ددغې] دمقتضا[ نه غوره ] بدله [ملاوئيږی ] ځکه دنيك عمل اصل مقتضی خو داده چه ددې دحيثيت موافق عوض ملاؤ شی مګر هلته به ددې نه زيات ورکړې شی چه دکم نه کمه درجه به ئې ددې دحيثيت نه لس چنده زياته وی ﴿وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى الَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾[اوکوم سړي چه بدی

(1) ترجمه:- د الله تعالی د کور ثواب په زرګونو کرته بهتر دي.

راوړي پس داسې خلقو ته به چه دبدئ کارونه ئې کول دومره بدله ملاويږي څومره چه دوی کول] يعنى ددغې دمقتضى نه زياته بدله دسزا به نه ملاويږي.

## معارف او مسائل

﴿لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا﴾ دې آيت مبارك کښې د دار آخرت خلاصې او کاميابي صرف داسې خلقو دپاره خاص کړې شوې ده چې په زمکه کښې د لويئ اوفساد اراده نه کوی. علو نه مراد تکبر دې يعنى خپل ځان دنورو څخه لوئې جوړول. او نور خلق ځان څخه سپك ګڼړلو فکر. او فساد څخه مراد په خلقو باندې ظلم کول دی [ابوسفيان ثوری رحمه الله] او څينو مفسرينو فرمائيلی دی چې هره ګناه فساد فی الارض دې. ولې چې د ګناه کولو په وجه ددنيا برکت کميږی. دې آيت مبارك څخه معلوم شو چې څوك د تکبر اوظلم يا مطلق ګناه اراده کوی نو دهغوئ په آخرت کښې هيڅ حصه نشته دې.

**فائده**: تکبر چې د هغې حرمت او وبال پدې آيت مبارك کښې ذکر شوې دې. دا هغه دې چې په خلقو باندې خپل ځان فاخر يعنى غټ حسابوی او خلق حقير او سپك ګڼړل يې مقصود وی ګنى د خپل ځان دپاره دښه پوشاك، ښه خوراك او ښه مکان انتظام کول څه بديت نه لری کله چې په هغې کښې په نوروباندې فخر اود نورو سپکاوې نه وی(۱).

**دګناه پخه اراده لرل هم ګناه ده**: دې آيت مبارك کښې هغې خلقو دپاره دار آخرت څخه دمحروم کيدو وعيد دې چې څوك اراده د علو او د فساد لری، دې څخه معلومه شوه چې د يوې ګناه پخه اراده لرل چې د عزم مصمم په درجه کښې وی،هغه هم ګناه ده. [روح المعانی](۲).

البته که د الله ﷻ د ويرې څخه دغه اراده پريږدی نو دګناه په ځائې دهغه په عمل نامه کښې ثواب ليکلې شی. اوکه دبې وسئى څخه دغه اونه کړې شوه نو دکومې ئې چې پخه اراده کړې وی نو هغه هم معصيت اوګناه ليکلې شی. [کما ذکره الغزالی رحمه الله].

په آخر د آيت مبارك کښې فرمائى چې :﴿وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ﴾، دد ې حاصل دادې چې د آخرت دخلاصى او کاميابئ دپاره دوه څيزونه ضروری دی، دعلو اوفساد څخه ځان ساتل او تقوی يعنى دنيکو عملونو پابندی کول، صرف ددغې دوؤ څيزونو څخه ځان ساتل پوره نه وې بلکه کوم عملونه چې د شريعت تر مخه فرض او واجب دی په هغې باندې عمل کول هم دآخرت د خلاصی شرط دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّ الَّذِي | فَرَضَ | عَلَيْكَ | الْقُرْآنَ |
| بيشکه هغه ذات | چې فرض کړې نې دې | په تاباندې | دا قرآن |
| ايقينا هغه الله ﷻ چا چې په تاباندې دقرآن پاك[حکمونه او عمل] فرض کړې دې | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَرَادُّكَ | إِلَىٰ مَعَادٍ | قُلْ | رَّبِّي | أَعْلَمُ | مَنْ |
| خامخا واپس بوتلونکې دې تالره | ځائې دوعدې ته | اووايه | رب زما | ښه پوهيږی | په هغه چا |
| هغه به خامخا تا [اصلی] مقام ته واپس ګرځوی[ائې محبوبه] ته ورته اووايه چې زما رب هغه څوك | | | | | |

۱) تفصيل دپاره اوګورئ:- صحيح مسلم کتاب الإيمان، باب تحريم الکبر وبيانه [ج:۱ص:۶۵]
۲) روح المعاني (بالإختصار) [ج: ۱۵ ص:۲۱۶]

جَآءَ بِالْهُدٰى وَمَنْ هُوَ فِىْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ۝ وَمَا كُنْتَ

چې راتلة ئې كړی دی په هدایت |اوپه هغه چا |چې هغه |په گمراهۍ ښکاره كښې دې | اوته وې ته

نه پيژنې چې رښتونې دين ئې راوړې دې | اوڅوک چې په ښکاره گمراهۍ كښې پروت دې| اوستا خو

تَرْجُوْٓا اَنْ يُّلْقٰٓى اِلَيْكَ الْكِتٰبُ اِلَّا رَحْمَةً

چې ځويد دلرلې | چې رااوبه ليږلې شی | تاته | كتاب | مگر | رحمت دې |

دا اميد نه وو چې داكتاب به درباندې نازل شی | دا خو صرف ستا د رب

مِّنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ ظَهِيْرًا لِّلْكٰفِرِيْنَ۝ وَلَا يَصُدُّنَّكَ

دطرفه درب ستانه | پس مه كيږه ته | مددگار | دپاره دكافرانو | اومنع نه كړی تا [كافران]

رحمت وو | نو ته كله هم د دې كافرانو مرسته مه كوه| ............ اوكله چې تاته د الله ﷻ

عَنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ بَعْدَ اِذْ اُنْزِلَتْ اِلَيْكَ وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ

دآيتونو دالله نه | روستو ددې نه | چې كله | نازل شی | تاته | او دعوت وركوه | طرف درب خپل ته

حكمونه راورسيدل | نو خيال ساته چې دوئ دې ترې منع نكړې شی| اودخپل رب طرفته بلنه كوه

وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ۝ وَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ

اومه كيږه ته | دمشركانونه | اومه رابله | دالله سره | معبود بل

اوپه مشركانو كښې مه شامليږه | ................ اود الله ﷻ سره بل معبود [په خپل عبادت كښې] مه رابله

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ

نشته دې لائق دعبادت | مگر | هم هغه دې | هر څيز | هلاكيدونكې دې | مگر نه | مخ دهغه

دهغه نه سوا بل معبود نشته | ..........دهغه نه سوا هر څيز فناكيدونكې دې |

لَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ۝

هغه لره بادشاهی ده | او خاص هم هغه ته به | تاسو واپس كيږئ |

صرف دهغه حكم چليږی | اوتاسو ټول به ورته خامخا واپس كيږئ

## آسان ترجمه قرآن

(اې پيغمبره!) كوم ذات چه په تاسو باندې د دې قرآن كريم ذمه داری اچولې ده، هغه به تاسو دوباره هغه ځائې ته راولی كوم چه (ستاسو دپاره) د خوښې ځائې دې. اووايه: زما رب د هغه چا نه هم ښه خبر دې چه هدايت ئې راوړې دې، اودهغه چانه هم خبردې چه په گمراهۍ كښې مبتلا دی. او (اې پيغمبره) ستا د مخكښې نه دا اميد نه وو چه په تا باندې به دا كتاب نازلولې شي، خو دا ستا د رب د طرف نه رحمت دې لهٰذا د كافرانو هرگز مددگار مه جوړيږه. او چه كله دا آيتونه په تا باندې نازل كړې شوې دی. نو دهغې نه پس دا خلق دِ تا بالكل په دې باندې (دعمل كولونه) منع نه كړی. او ته د خپل رب طرف ته خلقو ته دعوت وركوه او هرگز په دې مشركانو كښې داخل نه شې. او د الله پاک نه سوا بل معبود ته آواز

مه کوه. د هغه نه سوا بل معبود نشته. هر څیز فنا کیدونکې دې، سوا د هغه د ذات نه، حکومت هم د هغه دې، او هم د هغه طرف ته به تاسو واپس کولې شئ.

## خلاصه تفسير

او ستادې مخالفينو چه تالره پريشانه کړې په وطن پريښودو يې مجبوره کړې چه ددې جدائى تاته ډيره ګرانه ده نو ته تسلى ساته ﴿اِنَّ الَّذِیْ فَرَضَ عَلَیْكَ الْقُرْاٰنَ﴾ [کوم الله تعالى چه په تا يې قرآن] په احکامو يې عمل او تبليغ يې کولو [لره فرض کړې دې] کوم چه په مجموعى طريقه ستا دنبوت دليل دې ﴿لَرَآدُّكَ اِلٰى مَعَادٍ﴾ [هغه به تالره] ستا [اصلى وطن] يعنى مکې [ ته بيا ورسوى ] او هغه وخت به ته ازاد او غالب او خاوند د حکومت يې او په داسې حالت کښې که بل ځائې دقيام دپاره تجويز کولې شى نو په مصلحت او په اختيار سره وى چه په دې سره خفګان نه وى او سره ددې چه ستانبوت حق دې داخلق کوم چه تالره په غلطئ او ځان لره په حقه ګڼړى نو[ته ] دوى ته ﴿قُلْ رَّبِّیْۤ اَعْلَمُ مَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى﴾ [اوفرمايه چه زما رب ښه پوه دې چه چا رښتونې دين] دالله تعالى دطرف نه [راوړې دې ﴿وَمَنْ هُوَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ﴾ او څوك په ښکاره ګمراهئ کښې] اخته [دې ] يعنى زما په حقوالى او ستاسو په باطلوالى قطعى دليلونه موجود دى مګر هرکله چه ددې نه کار نه اخلئ نو آخرى جواب دادې چه خيرخدائ ته معلومه ده هغه به وښائى [ او] ستادادنبوت دولت محض د الله تعالى ورکړه د ه حتى چه په خپله ﴿وَمَا كُنْتَ تَرْجُوْۤا﴾ [تاته] دنبى کيدونه وړاندې [دا توقع نه وه ﴿اَنْ یُّلْقٰۤى اِلَیْكَ الْكِتٰبُ﴾ چه په تا به داکتاب نازل کړې شى ﴿اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ﴾ مګر محض ستاد رب په مهربانئ سره ددې نزول وشو پس ته] ددې خلقو بې هوده خبرو طرف ته توجه مه کوه اولکه څنګه چه تر اوسه پورې ددوى نه جدا پاتى شوې يې آئنده هم دغه شان ﴿فَلَا تَكُوْنَنَّ ظَهِیْرًا لِّلْكٰفِرِیْنَ﴾ [ددې کافرانو يوه ذره تائيد مه کوه ﴿وَلَا یَصُدُّنَّكَ عَنْ اٰیٰتِ اللّٰهِ بَعْدَ اِذْ اُنْزِلَتْ اِلَیْكَ﴾ او هرکله چه دالله تعالى احکام په تا نازل شونو داسې دې اونه شى] لکه چه تراوسه هم نه ده شوې [چه دا خلق تالره ددغو احکامو نه منع کړى او ته] په مخه ﴿وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ﴾ [دخپل رب] دين [طرف ته] خلقو لره [رابله او] لکه څنګه چه تر اوسه پورې دې دمشرکانو سره تعلق نه دې پاتې شوې دغه شان ائنده هميشه ﴿وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ﴾ [ په دې مشرکانو کښې شامل نه شې او] لکه څنګه چه تراوسه دشرك نه پاك يې دغه شان آئنده هم ﴿وَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾ [دالله تعالى سره بل معبود لره مه بله] په دې آيتونو کښې کفارو او مشرکانو لره ددوى د درخواستونو نه نااميده کول دى او دخبرې رخ دوى طرف ته دې چه تاسو چه نبى کريم ﷺ ته په دين کښې دموافق کيدو کوم درخواست کوئ په دې کښې د کاميابئ چرې هم احتمال نشته مګر عادت دې چه کوم سړى ته زياته غصه وى دهغه سره خبره نه کوى دخپل محبوب سره خبرې کوى او هغه ته يې اوروى په معالم کښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دې چه دا خطاب صرف په ظاهره نبى کريم ﷺ ته دې او مقصود ترې نه دوى ﷺ نه دى تر دې پورې درسالت مضمون قصدا وواګرچه توحيدپه کښې هم ضمنا راغلو وړاندې دتوحيد مضمون قصدا دې چه ﴿لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ [دهغه نه سوا څوك بل معبود نشته] په دې وجه چه ﴿كُلُّ شَیْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ﴾ [ټول څيزونه فناکيدونکى دى بغيردهغه د ذات نه] پس دهغه نه سوا څوك د عبادت مستحق پاتې نه شو دا مضمون دتوحيد شو وړاندې دمعاد مضمون دې چه ﴿لَهُ الْحُكْمُ

دهغه حکومت دي] دکوم کامل ظهورچه به په قیامت کښې وی ﴿وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ [او هغه ته به تاسو ټول واپس کیږئ] پس ټولولره به ددوی دعملونو جزا ورکړی دادمعاد مضمون هم ختم شو.

## معارف او مسائل

﴿إِنَّ الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لَرَادُّكَ إِلَىٰ مَعَادٍ﴾ په آخر د سورت کښې دا آیتونه د رسول کریم ﷺ د تسلئ دپاره دی او په دې ورته د خپلې پیغمبرئ په فریضه باندې د کلک پاتې کیدو تاکید کړې شوې دې. د سورت د رومبی تیر شوؤ آیتونو سره ددې آیتونو مناسبت داسې دې چې په دې سورت کښې الله ﷻ موسی ؑ تفصیلي قیصه، د فرعون او فرعونیانو ورسره دښمنی اودهغې نه د ویرې بیان ئې اوفرمائل، بیا ئې دابیان اوفرمائیلو چې الله ﷻ خپل فضل سره هغوئ ؑ په فرعونی قوم باندې غالب کړل، بیا په آخر د سورت کښې ئې د خاتم الانبیاء ﷺ ددغسې حالاتو خلاصه بیان کړه چې د مکې مکرمې کافرانو هغوئ ﷺ لره د شهید کولو منصوبې جوړې کړې د مسلمانانو ژوند ئې په مکه مکرمه کښې تنګ کړو، خو الله ﷻ د خپل جاری عادت مطابق رسول کریم ﷺ په ټولو باندې غالب کړل او چرته نه چې کافرانو رسول کریم ﷺ اوبښکلی وو هم په هغې باندې د رسول کریم ﷺ مکمله قبضه شوه.

﴿الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ﴾ کوم پاک ذات چې په تاسو ﷺ باندې قرآن کریم فرض کړې دې یعنی ددې تلاوت او تبلیغ اوپرې عمل کول ئې په تاسو ﷺ باندې فرض کړې دی هم هغه ذات به تاسو ﷺ لره بیا معاد ته راؤګرځوی د معاد نه مرد مکه مکرمه ده څنګه چې په صحیح بخاری وغیره کښې ابن عباس ؓ نه د معاد دا تفسیر منقول دې[1]، مطلب دادې چې که څو ورځو دپاره تاسو نه خپل وطن خصوصا د بیت الله شریف حرم پاتې شو مګر قرآن عظیم الشان نازلوؤنکې اوپه دې باندې عمل فرض کوؤنکې الله ﷻ به بیرته تاسو ﷺ لره مکې مکرمې ته راولی. د تفسیر په امامانو کښې د مقاتل روایت دې چې رسول کریم ﷺ دهجرت په وخت چې د غار ثور نه د شپې په وخت بهر راوؤتل او د مکې مکرمې نه مدینې منورې ته تلونکې عام مشهوره لاره ئې پریښوده او په نورو لارو باندې ئې دغه سفر کول ځکه اختیار کړل چې دښمنان ورپسې وو، جحفه مقام ته په رسیدو کله چې د مکې مکرمې نه مدینې منورې ته راتلونکې عامې لارې ته راؤوتل او ورته ئې اوکتل نو بیت الله شریف او خپل وطن ورته رایاد شو، دغه وخت جبرائیل ؑ دا آیت مبارک راوړو چې پخ کښې رسول کریم ﷺ ته دا زیرې ورکړې شو چې د مکې مکرمې نه د ابیلتون څو ورځې دپاره دې او بیا به تاسو مکې مکرمې ته اورسولې شئ چې د مکې مکرمې د فتح کیدو زیرې ورکول وو، هم د غه وجه ده چې د ابن عباس ؓ د یو روایت مطابق دا آیت مبارک په جحفه کښې نازل شوې دې نه مکی دې او نه مدنی. [قرطبی][2].

---

[1]) صحیح البخاري کتاب التفسير سورة القصص،باب (ان الذی فرض الآیة) [ج:۲ص:۷۰۳]

[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۳ص:۳۲۱]

**قرآن کریم په دښمنانو باندې د فتح او په مقصدونو کښې کامیابیدو ذریعه دې** :: دې آیت مبارک کښې دوباره مکې مکرمې ته په فاتحانه طور د رسول کریم ﷺ د راوستو زیرې په دې عنوان سره ورکړې شوې دې چې کوم ذات یعنی الله تعالی په تاندې الله ﷻ فرض کړې دې هغه به دې په دښمنانو باندې غالب کولو سر مکې مکرمې ته دوباره راولی ، په دې کښې دې ته اشاره هم ده چې د قرآن عظیم الشان تلاوت اوپه هغې باندې عمل کول به د الله ﷻ ددې مدد او فتح مبین سبب وی .

﴿كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ﴾ دلته د ﴿وَجْهَهُ﴾ نه مراد د الله ﷻ ذات مبارک دې ، معنی ئې دا شوه چې د الله ﷻ د ذات مبارک نه سوا نور هر یو هلاکیدونکې او فنا کیدونکې دې ، او ځینې حضراتو مفسرینو د ﴿وَجْهَهُ﴾ نه مراد هغه عمل اخستې دې چې خالص د الله ﷻ دپاره اوکړې شی ، مطلب ئې دا شو چې کوم عمل خالص د الله تعالی دپاره اوکړې شی هم هغه باقی پاتې کیدونکې دې نور ټول فانی دی ، والله اعلم .

الحمد لله سورة قصص نن په نهم تاریخ د ذیقعدې کال ۱۳۹۱ هجری داسې حالاتو کښې ختم شو چې په پاکستان باندې د هندوستان او د نورو غټونو طاقتو په سازش حمله اوشوه ، او پوره څوارلس ورځې په کراچۍ باندې بمباری کیدله ، د ښار آبادی ته ځای په ځای ډیر زیات نقصان اورسیدو ، په سوؤنو مسلمانان شهیدان او کورونه وران شول ، او څوارلس ورځې پس جنګ په دې خبره ختم شو چې مشرقی پاکستان د پاکستان نه جدا شو ، او تقریبا نوی [لس کم سل] زره فوځیان محصور او سرینډر شو ، او دې وخت کښې هغه ځای کښې د مسلمانانو قتل کول جاری دی ، ددې صدمې په وجه د هر مسلمان زړه خفه او دماغ بند دی ، فانالله وانا الیه راجعون، والیه المشتکی ولا ملجأ ولا منجا من الله الا الیه

| آیاتونه | | سورة العنکبوت مکیة وهی تسع وستون آیة وسبع رکوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۶۹ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ۷ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الٓمّٓ ﴿۱﴾ | اَحَسِبَ | النَّاسُ | اَنْ يُّتْرَكُوْٓا | اَنْ يَّقُوْلُوْٓا |
| الف . لام . میم | آیا ګمان اوکړو | خلقو | چې پرې به ښودې شی دوئ | چې اوبه وائی دوئ |

الف لام میم آیا خلق دا ګمان کوی چې دوی صرف دا اووائی چې مونږ ایمان راوړې دې نو داسې به

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اٰمَنَّا | وَهُمْ | لَا يُفْتَنُوْنَ ﴿۲﴾ | وَلَقَدْ فَتَنَّا | الَّذِيْنَ |
| چې ایمان راوړو مونږه | او دوئ به | اونه آزمائیلې شی | حالانکه آزمائیلی وو مونږه | هغه کسان |

پریخودې شی او څۀ امتحان به پرې نشی کولې ...................................اومونږ د دوې نه په مخکښو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ قَبْلِهِمْ | فَلَيَعْلَمَنَّ | اللهُ | الَّذِيْنَ | صَدَقُوْا |
| چې مخکښې ددوئ نه وو | پس ضرور به معلوموی | الله | هغه کسان | چې رښتینی دی |

خلقو هم امتحان کړې وو او الله به ضرور هغه کسان ښکاره کوی چه د ایمان په دعوی کښې رښتونی دی

وَلَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ ۝ اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ

او خامخا به معلوموی | دروغژنان خلق | آیا گمان اوکړو | هغه کسانو | چې کوی کارونه |

او ضرور به دروغژن هم ښکاره کوی |............ آیا کوم خلق چې گناهونه کوی د هغوی دا خیال دې

السَّيِّاٰتِ اَنْ يَّسْبِقُوْنَا ؕ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ۝

بد | اچې گنی وړاندې به شی هغوئ زمونږ نه | ډیربد دې | هغه حکم | چې کوی ئې هغوئ |

چې زمونږ نه بچ شی [اومونږ به ورته سزا ورنکړو] | دوی [زما د قدرت په باره کښې] ډیره غلطه اندازه لگوی

مَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ اللّٰهِ فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ لَاٰتٍ ؕ

هغه څوک | چې امید لری | دملاقات دالله | نو بیشکه | نیته دملاقات دالله | خامخا راتلونکی ده

څوک چې دالله ﷻ سره د ملاقات امید ساتی نو د الله ﷻ مقرر شوې نیته خامخا راتلونکې ده

وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝ وَمَنْ جَاهَدَ فَاِنَّمَا

او هغه | هر څه اوریدونکې | او په هر څه پوهه دې | او چاچې محنت اوکړو | پس بیشکه |

اوهغه د هر څه اوریدونکې او لیدونکې دې | اوڅوک چې [د الله په تابعدارئ کښې] کوشش کوی نو

يُجَاهِدُ لِنَفْسِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ۝

هغه محنت کوی | دپاره نفس خپل | بیشکه الله | خامخا بې پروا دې | دمخلوقاتونه |

هغه د خپلې فائدې دپاره کوشش کوی | بیشکه الله ﷻ د ټولو کائناتونه بې پرواه دې

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ

او هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیک | خامخا به لرې کړو مونږ | دهغوئ نه

اوکومو کسانو چې ایمان راوړې دې | اونیک عملونه ئې کړی دی| مونږ به د هغوئ نه

سَيِّاٰتِهِمْ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَحْسَنَ الَّذِيْ كَانُوْا

بدیانې [گناهونه] دهغوئ | او خامخا به بدله ورکړو مونږ هغوئ له | ښه بدله دهغې | چې وو هغوئ

دهغوی گناهونه لرې کړو| اوهغوی ته به د هغوی د نیکو عملونو ډیره ښه بدله ورکړو ............

يَعْمَلُوْنَ ۝

چې کول به ئې |

## اسان ترجمه قرآن

الٓمّٓ. آیا خلقو دا گمان کړې دې چه هغوی به هم داسې پریخودلې شی چه بس هغوی دا اووائی چه: مونږ ایمان راوړې دې او دهغوی به ازمیښت نه شی کولې؟ حال دا چه مونږ د هغوی ټولو ازمیښت کړې دې کوم چه د دوئ نه مخکښې تیر شوې دی لهٰذا الله پاک به ضرور معلوموی چه کوم خلق دی چا چه د رښتیاؤ نه کار اغستلې دې، او دا به هم معلوموی چه کوم خلق دروغژن دی کومو خلقو چه گناهونه کړی دی. آیا هغوی دا گمان کوی چه هغوی به زمونږ نه مخکښې شی؟ ډیر بده اندازه ده کومه چه هغوی لگولې

ده. کوم سړي چه الله پاک سره د ملاویدو امید ساتي، هغه له یقین ساتل پکار دي چه د الله پاک مقرر کړې میعاد به ضرور راځي، او هم هغه دې چه هره خبره اوري، په هر څیز باندې پوهیږي. او څوک هم چه زمونږ په لاره کښې محنت کوي، هغه د خپلې فائدې دپاره محنت کوي یقیناً الله پاک د ټول جهان د خلقو نه بې نیازه دې. او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، او هغوی نیک عملونه کړي دي، مونږ به د هغوی خطاګانې ضرور لرې کړو، او کوم عملونه چه هغوی کوي د هغې بهترینه بدله به ضرور هغوی ته ورکوو.

**خلاصه تفسیر**

﴿الٓمّٓ﴾ [ الٓم] ددې معنی خو الله تعالی ته معلومه ده ځنې مسلمانان کوم چه دکفارو دآزارونو رسولونه ویریږي نو﴿اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ یُّتْرَکُوْٓا اَنْ یَّقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا﴾[آیادې خلقو داخیال کړې دې چه هغوی به په دومره وئیلو باندې خلاص شي چه مونږ ایمان راوړو﴿وَهُمْ لَا یُفْتَنُوْنَ﴾ او دوی لره به] په قسماقسم مصیبتونوسره [ونه ازمائیلې شي] یعنی داسې نه شي کیدې بلکه ددې قسمه امتحانونه به ورته وریپښږي [او مونږ خو] په داسې واقعاتو سره ﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ [دهغو خلقو هم آزمائش کړې دې کوم چه ددوی نه وړاندې] مسلمانان [تیرشوی دی] یعنی دنورو امتونو په مسلمانانو باندې هم داسې معاملې تیرې شوی دی [پس ] دغه شان به ددوی آزمائش هم کولې شی او په دې آزمائش کښې ﴿فَلَیَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِیْنَ صَدَقُوْا﴾[الله تعالی دې خلقو لره ] په ظاهری علم سره [ معلوموی کوم چه] د ایمان به دعوی کښې [ربنتونی وو﴿وَلَیَعْلَمَنَّ الْکٰذِبِیْنَ﴾ او دروغژنو لره هم معلوموی ] چنانچه څوك په ربنتوني عقیدې سره مسلمانیږي هغوی به په دې امتحاناتوکښې ثابت قدم وسیږي بلکه نوربه زیات پخیږي او څوك چه دوخت سره مسلمانان شوی وی هغوی په داسې وخت کښې اسلام پریږدی یعنی دا دامتحان یو حکمت دې ځکه چه دمخلص او غیرمخلص په خلط ملط کیدو کښې ډیر ضررونه وی خاصکر په ابتدائی حالاتوکښې دا مضمون خو دمسلمانانو متعلق شو وړاندې دوی ته د آزار رسوونکو کفارو په نسبت فرمائی چه ﴿اَمْ حَسِبَ الَّذِیْنَ یَعْمَلُوْنَ السَّیِّاٰتِ اَنْ یَّسْبِقُوْنَا ؕ سَآءَ مَا یَحْکُمُوْنَ﴾ [هاه آیا کوم خلق چه ناکاره کارونه کوی هغوی دا خیال کوی چه دوی به زمونږ نه چرته خلاص شي وبه تښتي ؟ ددوی دا تجویز ډیرعبث دې] دا دجملې معترضې په طور وو چه په دې کښې ئې دکفارو بدانجام بیان کړو او دمسلمانانو ئې یو قسم له تسلی وکړه چه دوی ته دآزار رسولوبه دهغوی نه بدله واخستې شي وړاندې بیادخبرې رخ مسلمانانو ته دې چه ﴿مَنْ کَانَ یَرْجُوْا لِقَآءَ اللّٰهِ﴾[ کوم سړې دالله تعالی سره دملاویدو امیدلری پس] ده لره په داسې اخوا دیخوا حادثو باندې پریشانی نه ده پکارځکه چه ﴿فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ لَاٰتٍ﴾[دالله تعالی] سره دملاویدو [هغه مقرر وخت خامخا راتلونکې دې] چه په هغې سره به ټول غم ختم شي لکه چه داقول دالله تعالی دې [وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ] (١) ﴿وَهُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ﴾[او هغه هرڅه اوری په هرڅه پوه دې] نه تړې نه څه خبره پټه ده نه څه کارپس دملاقات په وخت کښې به ستاسو دټولو قولی اوفعلی عبادتونو صله درکړی او ټول غمونه به لرې کړی [او] یاد ساتئ مونږ چه کوم تاسوته دمشقتونو دبرداشت کولو ترغیب درکوو پس په دې کښې ظاهره اومنلې شوې

(١) ترجمه:- او وائی به چې دالله لاك لاك شكر دې چې هغه زمونږ نه غم لرې كړو.

خبره ده چه زمونږ څه نفع په کښې نشته بلکه ﴿وَمَنْ جَاهَدَ﴾ [څوك چه محنت کوی ﴿فَإِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهِ﴾ هغه دخپل ځان دنفع د[پاره کوی] ورنه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِينَ﴾ [ دالله تعالی] خو[په ټول مخلوقات کښې هيچا ته حاجت نشته] په دې کښې هم ترغيب دې برداشت کولو دمشقتونو ته ځکه چه په خپله نفع پوهه شی نو هغه کار زياتهٔ آسان شی [او] هغه نفع کومه چه په طاعت سره رسيږی دهغې بيان دادې چه ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ﴾[اکوم خلق ايمان راوړی اونيك عملونه کوی مونږ به ددوی ګناهونه ددوی نه لرې کړو] چه په دې کښې ځنې ګناهونه لکه شرك اوکفر خو په ايمان سره لرې شی او ځنې ګناهو په توبه سره چه په نيکو عملونو کښې داخله ده او ځنې ګناهونه صرف په نيکو سره او ځنې ګناهونه به محض په فضل سره معاف شی او څه ګناهونه به پس دقدرې سزانه دلته تکفير ټولو لره عام دې ﴿وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَحْسَنَ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ [او دوی ته به ددوی د] دې [عملونو] ايمان او نيکو عملونو داستحقاق [نه زياته ښه بدله ورکړو] پس په دومره ترغيباتو باندې د طاعت او مجاهدې کولو او داستقامت اهتمام ضروری دې.

## معارف او مسائل

﴿وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ﴾ داد فتنه څخه مشتق دې چې معنی ئې آزميښت کول دی ، نو دايمان په خاوندانو خصوصا په پيغمبرانو ﷺ او نيکانو خلقو باندې په دنيا کښې قسما قسم آزمښيتونه کيږی . چې په انجام کښې فتح او کاميابی هم ددوئ وی ، دا آزميښتونه د مخالفينو خلقو کافرانو او فاجرانو د طرفنه په دښمنئ آزميښتونه کولو او په زيانونو وررسولو سره کولې شي . څنګه چې اکثرو انبياء ﷺ او خاتم الانبياء ﷺ او د نبی اکرم ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته چې راپيښ شوی وؤ ، او ددې بې شميره واقعات ، دسيرت او تاريخ په کتابونو کښې بيان شوی دی .

اوکله د مرضونو او نورو مصيبتونو په ذريعه کولې شی . څنګه چې ايوب ﷺ ته راپيښ شوی وو. او په ځينو باندې دا دواړه قسمونه آزميښته راجمع کولې شی . ددې آيت مبارك شان نزول د روايتونو تر مخه اګر چې هغه صحابه کرام ﷺ دی چې دمدينې منورې د هجرت په موقعه کافرانو تنګ کړی وو. خو مراد ئې عام دې چې د هرې زمانې عالمانو ، نيکانو اود امت اولياء کرامو ته مختلف قسمه آزمښيتونه راپيښيږی [قرطبی][1].

﴿فَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ صَدَقُوا﴾ يعنی ددې امتحانونو او تکليفونو په ذريعه به دمخلص اوغير مخلص اونيك او بد ترمينځه ضرور بيلتون راولو. ولې چې مخلصانو سره د منافقانود ګډون څخه کله خو ډير نقصانونه راولاړيږی ، نو مقصد ددې آيت مبارك نه د نيك او بد مخلص او غير مخلص تر مينځه فرق اوبيلتون ښکاره کول دی چې هغوئ په دا شان تعبير کړو : چې الله ﷻ اوپيژنی رښتونی او دروغژن خلق . الله ﷻ ته خو هر رښتينې او دروغژن دهغه

---

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۳۲٤]

دپيداكيدو دوخت څخه مخكښې معلوم دې خو دلته د آزمېښتونه په ذريعه دپيژندلو مطلب دادې چې دغه فرق او بيلتون نورو ته هم ښكاره كړي.

او سيدى حكيم الامت تهانوى رحمه الله د خپل شيخ مولانا محمد يعقوب رحمه الله نه ددې توجيه داهم نقل كړې ده چې كله كله د عوامو د علم په درجه باندې په تنزل كولو سره هم خبره كولې شي. عام خلق د آزمېښت په ذريعه د مخلص او منافق تر مېنځه فرق كولې شي ، ددوئ دمذاق مطابق الله ﷻ اوفرمائيل چې ددغې مختلف قسم آزمېښتونو په ذريعه به مونږ داپيژنو چې څوك مخلص دې او څوك نه دې و حالانكه د الله ﷻ په علم كښې دا ټول هر څه د ازل څخه دي [والله اعلم].

| |
|---|
| وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ؕ وَاِنْ |
| \| او هدايت كړې دې مونږه \| انسان ته \| دمور اوپلار سره \| دنيك سلوك \| اوكه چرې |
| ......اومونږ انسان ته دمور پلار سره د ښه سلوك حكم كړې دې \| او [دا حكم مو هم وركړې دې] |
| جَاهَدٰكَ لِتُشْرِكَ بِيْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ |
| جګړه كوى ستاسره \| چې ته شريك كړې \| زما سره \| هغه \| چې نۀ وى \| تالره \| په هغې باند \| علم |
| كه هغوئ ما سره په شرك كولو تامجبور كړى د كوم په جواز چې تاسره څه علم نشته |
| فَلَا تُطِعْهُمَا ؕ اِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَاُنَبِّئُكُمْ |
| نومۀ منه دهغوئ دواړو \| خاص ماته \| واپس راتلل دى ستاسو \| پس زۀ به خبر دركړم تاسوته \| |
| نود هغوئ دواړو تابعدارى مكوه \| ستاسو ټولو ماته پيش كيدل دى \| نو زۀ به تاسو ته ستاسو |
| بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا |
| په هغې كارونو\|چې وئ تاسو\| چې كول به مو \| اوهغه كسان\|چې ايمان ئې راوړو\|اوعملونه ئې اوكړل |
| دهغه عملونو خبر دركړم كوم چې تاسو كول\|اوكومو كسانو چې ايمان راوړې دې او نيک اعمال |
| الصّٰلِحٰتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصّٰلِحِيْنَ ۝ |
| نيك \| خامخا به داخل كړو مونږ هغوئ \| په صالحانو كښې \| |
| كوى \| نو مونږ به يې خامخا په نيكانو كښې شامل كړو |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ انسان ته حكم كړې دې چه هغه دخپل مور پلارسره ښه سلوک اوكړى. او كه په تا باندې هغوئ زور اوكړى چه ته ما سره يو داسې (معبود) شريک كړه چه د هغې په باره كښې تا سره هيڅ دليل نشته نو دهغوى خبره مه منه زما طرف ته ستاسو د ټولو واپس كيدل دى، هغه وخت به زۀ تاسو ته بيانوم چه تاسو څه كول. او كومو خلقو چه ايمان راوړې دې، او هغوى نيک عملونه كړې دى، مونږ به هغوى ضرور په نيكانو خلقو كښې شامل كړو.

## خلاصه تفسير

﴿وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا﴾[او مونږ انسان ته دخپل مور اوپلار سره دنيك سلوك كولو حكم كړې دې] ددې سره مو ورته داهم وئيلي دی چه ﴿وَإِن جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ﴾[ كه هغه دواړه په تا باندې ددې خبرې زور اچوی چه ته داسې شی لره زما سره شريك جوړ كړې دكوم] معبود كيدو [چه څه] صحيح [دليل تاسره نه وی] اوهرشې داسې دې چه دټولو څيزونو دعبادت دپاره په ناقابله كيدو باندې دليلونه قائم دی [نو] په دې باره كښې ﴿فَلَا تُطِعْهُمَا﴾ [دهغوی خبره مه منه ﴿إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ﴾تاسو ټول به ماته واپس راځئ ﴿فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ پس زۀ به تاسوته ستاسو ټول كارونه ] كه نيك وی اوكه بد[ در وښايم او] په تاسو كښې ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾[چه كومو خلقو ايمان راوړې وی اونيك عملونه ئې كړی وی ﴿لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصَّالِحِينَ﴾ مونږ به هغوی لره په نيكو خلقو] په درجو [كښې] كوم چه جنت دې [داخل كړو] او دغه شان به په بدو عملونو مناسب سزا وركړو پس په دې بنا چاچه دمور او پلار اطاعت لره زمونږ په اطاعت باندې مقدم كړې وی هغه به سزا بياموموی او چاچه ددې عكس كړې وی نيكه جزاء به بيا مومی لنډه دا چه په برنئ واقعه كښې دمور او پلار په نافرمانئ سره دګناه وسوسه كول نه دی پكار.

## معارف او مسائل

﴿وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ﴾ وصيت دې ته وئيلې شی چې څوك يو كار ته د نصيحت او خيرخواهئ په بنياد بلي [مظهری](١).

﴿بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا﴾ لفظ د حسن مصدر دې ، معنی ئې خوبی ده ، دلته د خوبئ طرز عمل ته د مبالغې په غرض حسن وئيلې شوې دې ، مراد واضح دې چې الله ﷻ انسان ته دا وصيت اوفرمائيلو چې خپلو واليدينو سره دې ښه سلوك كوی.

﴿ وَإِن جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِي﴾ والدينو سره د ښه سلوك طريقه داده چې دا اوخودلې شی چې دهغوئ فرمانبرداری دې د الله ﷻ دنافرمانئ په بنياد هيڅرې نشی كولې ، يعنی د والدينو د شرك او كفر خبره دې بالكل نشی منلې ، لكه حديث پاك كښې هم راغلی دی چې :﴿لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ﴾ [رواه احمد والحاكم وصححه](٢)

دا آيت مبارك د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه باره كښې نازل شوې دې كوم چې په عشره مبشره كښې شامل دې . دوئ رضی الله عنه دوالدينو ډير فرمانبردار وو، او هر وخت به ئې هغوئ ته دآرام رسولو په خيال كښې وو ، كله چې د دوئ رضی الله عنه والده حمنه بنت ابی سفيان د دوئ د اسلام راوړلو خبره خبره شوه نو دوئ رضی الله عنه ته ئې خبر دارې وركړو او قسم ئې اوخوړو چې زۀ به تر هغې خوراك څكاك نه كوم تر كومې چې ته خپل زوړ دين قبول نه كړې . كه زه په دې حالت كښې د لوږې تندې څخه مړه شوم نو ددې ذمه وار به ته يئ چې ته دمور قاتل يئ [مسلم ،

(١) تفسير المظهري[ج:٧ص:١٩٢]

(٢) مسند احمد ، مسند عبدالله بن مسعود رضي الله عنه رقم الحديث:[٣٩٦٦] و المستدرك للحاكم (بالفاظ مختلفة) رقم الحديث:[٥٨٧٠] والمشكوة كتاب الإمارة و القضاء ص:٣٢١

ترمذی] ([1]) نو دې آیت مبارك دوئ رضی الله عنه د مور د خبرې منلو څخه منع کړو.

د بغوی رحمه الله د روایت مطابق د سعد رضی الله عنه والده یوشوا روز او د ځینې اقوالو مطابق درې شوا روزه دخپل قسم په مطابق اوږې تږې پاتې شوه ، سعد رضی الله عنه چې دمور پلار ډیر فرمانبردار وو خو دغه جذبه یو طرفته او د الله ﷻ فرمان بل طرفته وو. په دې بنا مور ته ئې اووئیل موږې که ستا په بدن کښې سل روحونه وی او دا ټول په مخه ستا دبدن نه وتلې بیا به هم خپل دین نه وو پریخودې. اوس ستا خوښه ده که خوراك څکاك کوې او که مرې. زه خو خپل دین نه شم پریخودې. مور ئې چې نا امیده شوه نو خوراك څکاك ئې شروع کړو([2]).

| |
|---|
| وَمِنَ النَّاسِ |
| او ځینی دخلقو نه \| |
| \|..........او په خلقو کښې بعضې داسې دی |
| مَنْ　يَّقُوْلُ　اٰمَنَّا　بِاللّٰهِ　فَاِذَآ　اُوْذِیَ |
| هغه څوك دی \| چی وائی \| چی ایمان راوړو مونږه \| په الله باندې \|خو هر کله چی \|تکلیف ورکړې شو |
| چی وائی مونږ په الله ﷻ ایمان راوړې دې \| ......خو کله چې ورته د الله ﷻ په لار کښې [ډیر] تکلیف |
| فِی اللّٰهِ　جَعَلَ　فِتْنَةَ النَّاسِ　كَعَذَابِ اللّٰهِ ؕ　وَلَئِنْ　جَآءَ |
| په لار دالله کښی \| نووې ګڼړو \| آزمیښت دخلقو \| پشان دعذاب دالله \| او که چری \| راغې |
| ورکړې شی\|نود خلقو دلاس تکلیف د الله ﷻ د عذاب پشان ګڼړی\| او که چرې تاته د خپل رب د طرفه |
| نَصْرٌ مِّنْ رَّبِّكَ　لَيَقُوْلُنَّ　اِنَّا كُنَّا　مَعَكُمْ ؕ　اَوَلَيْسَ اللّٰهُ |
| امداد دطرفه درب ستا نه \| نو خامخا به وائی هغوئ \| بیشکه وو مونږ \| ستاسو سره \| آیا نه دې الله |
| څه مدد دراورسی\| نو مومنانوته وائی چې مونږ خو تاسو سره وو\| آیا الله ﷻ په ټولو خبرو خبر نه دې |
| بِاَعْلَمَ　بِمَا　فِیْ صُدُوْرِ الْعٰلَمِیْنَ ۝　وَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ |
| زیات خبردار \| په هغه حال \| چی په سینو دمخلوقاتو کښی دی \| او خامخا به معلوموی الله |
| چې د مخلوق په سینو کښې پټ دی \| ..............او الله تعالی به خامخا هغه خلق ښکاره کړی کومو |
| الَّذِیْنَ　اٰمَنُوْا　وَلَيَعْلَمَنَّ　الْمُنٰفِقِیْنَ ۝　وَقَالَ |
| هغه کسان \| چی ایمان ئې راوړې دې \| او خامخا به معلوموی هغه \| منافقان خلق \| اووائی |
| چې ایمان راوړې دې \| او کوم چې منافقان دی \| هغوئ به هم ضرور ښکاره کړی \| او کافران خلق |

[1]) صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة ،باب فضل فی سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه [ج:۲ص:۲۸۰]
وجامع الترمذي ، ابواب التفسیر باب و من سورة العنکبوت [ج:۲ ص:۱۵٤]

[2]) تفسیر البغوي هذه الآیة [ج:٦ ص:۲۳٤]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | لِلَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اتَّبِعُوْا |
| هغه كسان | چې كفر ئې كړې دې | هغه كسانو ته | چې ايمان ئې راوړې دې | چې پيروي اوكړئ |
| مومنانو ته وائي چې زمونږ د لارې تابعداري اوكړئ [او تاسو هم مشركان شئ نو اول خو قيامت شته نه او كه وي] | | | | |
| سَبِيْلَنَا | وَلْنَحْمِلْ | خَطٰيٰكُمْ | وَمَا هُمْ | بِحٰمِلِيْنَ |
| دلارې زمونږه | او بار به كړو مونږه | خطاګانې ستاسو | او حال دا چې نه دي هغوئ | بارونكي |
| نو مونږ به ستاسو دګناهونو پيټي پخپلو خانونو باركړو] حالانكه دوئ [مشركان] د هغوئ د ګناهونو نه | | | | |
| مِنْ خَطٰيٰهُمْ | مِّنْ شَيْءٍ | اِنَّهُمْ | لَكٰذِبُوْنَ ﴿۱۲﴾ | وَلَيَحْمِلُنَّ |
| دخطاګانو دهغوئ نه | هيڅ څيز لره | بيشكه هغوئ | بالكل دروغژن دي | او خامخا به بار كوي هغوئ |
| معمولي قدرې هم نشي بار كولې | بلكه دوئ سراسر دروغژن دي | ...........اودوئ به خپل پيټي هم | | |
| اَثْقَالَهُمْ | وَاَثْقَالًا | مَّعَ اَثْقَالِهِمْ | وَلَيُسْئَلُنَّ | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ |
| پيټې خپل | او پيټې نور | دپيټو خپلو سره | او خامخاترې به تپوس كيږي | په ورځ دقيامت |
| اوچت كړې وي] اودوي به د خپلو ګناهونو د پيټو سره د نورو [دګناهونو] پيټي هم اوچت كړي] او د قيامت په ورځ به | | | | |
| عَمَّا | كَانُوْا | يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳﴾ ع | | |
| دهغې دروغو | چې وو هغوئ | چې دخان نه به ئې جوړول | | |
| ترې د دې دروغو جوړولو په حق كښې خامخا تپوس كيږي | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

اوځه خلق داسې دی چه هغوی وائی چه : مونږ ایمان راوړې دې، بیا چه کله هغوی ته د الله پاک په لاره کښې څه تکلیف اورسولې شی نوهغه د خلقو رسیدلې شوې تکلیف داسې ګنړی لکه د الله پاک عذاب او که چرته ستاسو د رب طرف نه څه مدد هغه (مسلمانانو) ته راغلو نو دوئ به ضرور دا وائی چه : مونږ خو تاسو سره وو آیا الله پاک ته هغه خبرې ښه معلومې نه دی کومې چه د ټول جهان دخلقو په سینو کښې پټې شوې دی؟ او الله پاک به ضرور معلوموی چه کومو خلقو ایمان راوړې دې او ضرور به معلوموی چه کوم خلق منافقان دی او کومو خلقوچه کفر کړې دې، هغوی ایمان والو ته اووئیل چه: زمونږ په لاره روان شئ مونږ به ستاسو بُوجونه اوچت کړو، حال دا چه هغوئ د دوئ د ګناهونو لږ بُوج هم نه شی اوچتولې، او دا خلق یقینًا دروغژن دی. اوهغوی به د خپلو ګناهونو بوج هم ضرور اوچتوی، او دخپل بوج سره به لور بوجونه هم او دا خلق چه څومره دروغ جوړوی، د قیامت په ورځ به د دوی نه د هغه ټولو خبرو تپوس کولې شی.

### خلاصه تفسیر

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ﴾ [او ځنې داسې هم دي چه وائی مونږ ایمان راوړې دې په الله تعالی باندې ﴿فَاِذَآ اُوْذِيَ فِي اللّٰهِ جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ كَعَذَابِ اللّٰهِ﴾ بیا چه کله دوی ته دخدای په لاره کښې څه تکلیف ورسولې شی نو دخلقو تکلیف رسولو لره داسې] لوئ [ګنړی لکه دخدای

عذاب] په کوم سره چه بنده بالکل مجبوره شی حال دادې چه څوك مخلوق په داسې عذاب دسرة قدرت نه شی لرلې اوس خو ددوی داحال دې ﴿وَلَئِنْ جَآءَ نَصْرٌ مِّنْ رَّبِّكَ﴾[ اوکه چرې] چرته [څه مدد] مسلمانانوته[ستاد رب دطرف نه راشی ] مثلا جهاد وی او په دې کښې داسې خلق په لاس راشی [نو] دغه وخت ﴿لَيَقُوْلُنَّ اِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ﴾[وائی چه مونږخو] په دین او عقیده کښې [تاسو سره وو] یعنی مسلمان وو اګر چه دکفارو دزبردستئ په وجه سره دکفارو سره شوی وو په دې باندې دحق تعالی ارشاد دې چه ﴿اَوَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِمَا فِيْ صُدُوْرِ الْعٰلَمِيْنَ﴾[آیا الله تعالی ته ددنیا دمخلوق دزړونو خبرې معلومې نه دی؟] یعنی ددوی په زړونو کښې ایمان نه وو[ او] دا واقعات ځکه کیږی چه ﴿وَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ﴾[الله تعالی ایماندارو لره معلوموی اومنافقانو لره هم معلوموی ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ اوکفار مسلمانانو ته وائی چه تاسو ] په دین کښې ﴿اتَّبِعُوْا سَبِيْلَنَا﴾[زمونږ په لاره راځئ او] په قیامت کښې ﴿وَلْنَحْمِلْ خَطٰيٰكُمْ﴾[ستاسو ګناهونه ] کوم چه په کفر اومعصیت سره وی [ زمونږ په ذمه ] اوتاسو آزاد ﴿وَمَا هُمْ بِحٰمِلِيْنَ مِنْ خَطٰيٰهُمْ مِّنْ شَيْءٍ﴾[حال دادې چه داخلق ددوی دګناهونو نه یوه ذره هم ] په دې طور چه دوی تر نه آزاد شی [نه شی اخستې ﴿اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ﴾ دغه بالکل دورغ بکواس کوی او] البته داسې خو به وی ﴿وَلَيَحْمِلُنَّ اَثْقَالَهُمْ﴾[دا خلق به خپل ګناهونه] پوره پوره [ په خپل ځان بار کړی ﴿وَاَثْقَالًا مَّعَ اَثْقَالِهِمْ﴾ او دخپلو ګناهونو سره څه ګناهونه نور هم] به بارکړی او دا هغه ګناهونه دی دکومودپاره چه به دوی سبب جوړیدل او دې ګناه په دوی دبارکولو سره به اصل ګناهکار هم آزادنه وی غرض دا چه نور سپك نه شو مګر دوی دهغوی دګمراه کولو په سبب نور زیات درانه شول ﴿وَلَيُسْـَٔلُنَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَمَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ﴾[ اودې خلقو چه څنګه څنګه دروغ خبرې جوړولې په قیامت کښې به ددوی نه باز پرس ] او بیا په دې سزا [خامخا وی] .

## معارف او مسائل

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ کافرانو به په مختلفو طریقو سره د اسلام په لاره کښې رکاوټونه پیدا کول او مسلمانان بۀ یې دهوکه کول کله به ئې د زور او مال نمائش کولو ، کله بۀ ئې شکونه راپیدا کول ، په دې آیت مبارک کښې هم ددوئ ددغسې یو چل بیان شو بدې ، هغه داسې چې کافرانو به مسلمانانو ته اووئیل چې تاسو بې هیسه دآخرت دعذاب د ویرې نه زمونږ په لار نه ځی واؤرئی دآخرت د غارې که ستاسو خبره رښتیا شوه نو ستاسو د آخرت عذاب به مونږ پخپله ذمه واخلو او تاسو ته به د هغې لږ هم عذاب نه وی . دداسې قسم د یو سړی واقعه د سورۀ نجم په آخری رکوع کښې داسې بیان کړې شوې ده چې ﴿اَفَرَءَيْتَ الَّذِيْ تَوَلّٰى ۙ وَاَعْطٰى قَلِيْلًا وَّاَكْدٰى﴾(۱). چې په دې کښې دا بیان شوې دی چې یو کس ته د هغه کافر ملګرو په دې وئیلو رسه تیر ورکړو چې ته راته څه مال راکړه نومونږ به دقیامت او آخرت په ورځ ستا عذاب پخپله ذمه واخلو او تاته به نجات درکړو. هغه ورته څه مال ورکړو هم شروع کړل او بیائې بند کړل. دهغه دبې وفوفئ او دهغه د عمل د عبث کیدو بیان په سورۀ نجم کښې په تفصیل سره راغلې دې.

دغه شان د کافرانو یو قول عامو مسلمانانو سره دلته هم بیان شوې دې. الله ﷻ یو جواب دهغې دا اوفرمائیلو چې دغه وینا کوؤنکی بالکل دروغژن دی . دوئ بۀ د قیامت په ورځ د

(۱) ترجمه:- آیا تاداسې کس هم لیدلې دې چې هغه مخ واړولو او لږ مال یئ ورکړو او بیا ئې بند کړو.

خلقو دګناهونو نه هيڅ بوج نشي پورته کولي. فرمائي چې: ﴿وَمَا هُمْ بِحٰمِلِيْنَ مِنْ خَطٰيٰهُمْ مِّنْ شَيْءٍ ۭ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ﴾. يعني دهغه خاڼې د خطرناک عذاب په ليدو سره به د هغې د پورته کولو همت نشي کولې، ځکه د دوئ دا وعده په دروغه ده او په سورة نجم کښې داهم بيان شوی دی چې که دا خلق دغه بوج پورته کولو ته تيار هم شي نو د الله ﷻ د طرفه بۀ ورته ددې اختيار نشي ورکولې ځکه چې دا د عدل د قانون خلاف دی چې ديو کس په کړي ګناه کښې بل اونيولې شي.

بله خبره ئې دا اوفرمائيله چې ددې خلقو دا وئيل خو غلط او دروغ دی چې ستاسو په ګناهونو پورته کولو سره به ستاسو غاړه خلاصه کړي البته دابه ضروری وی چې د خپل ګمراه کيدو نه علاوه د دوئ په ذمه به د بل د ګمراه کولو عذاب هم وی خو اصل ګناه کوؤنکی بۀ هم دهغې د عذاب نه نه خلاصيږي.

**ګناه ته بلونکی هم ګناهګار دې د ګناه کوؤنکي پشان عذاب به د ده هم وي** :: ددې آيت مبارک نه معلومه شوه چې څوک بل لره په ګناه کښې د اخته کولو کوشش کوی يا مدد کوی نو هغه به هم ددغې ګناه کوؤنکی پشان مجرم وی، د ابی هريره ﷺ او انس بن مالک ﷺ نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې څوک هدايت طرفته بلنه ورکوی او په دغې بلنه څومره کسان دغې هدايت ته راواوړی نو ددغې ټولو د عمل ثواب بۀ هم ددغې بلونکی په عمل نامه کښې ليکلې شی، خو داده چې د هر عمل کوؤنکی ثواب به لږ هم په ې نه کميږي. دغه شان چې څوك د يو ګمراهۍ او ګناه طرفته بلنه ورکوی نو څومره خلق چې ددې په وينا په ګمراهئ کښې مبتلاء کيږي دهغوئ ټولو ګناه او وبال به پدې کس باندې هم پريوزی[1].

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا | نُوْحًا |
| | | | | | او په تحقيق سره اوليږو موږ | نوح |
| | | | | | اومونږ نوح ﷺ | |
| اِلٰى قَوْمِهٖ | فَلَبِثَ | فِيْهِمْ | اَلْفَ سَنَةٍ | اِلَّا | | خَمْسِيْنَ عَامًا ۭ |
| قوم دهغه ته | پس موده تيره کړه هغه | په هغوئ کښې | زر کاله | مګر نه | | پنځوس کاله |
| خپل قوم طرف ته ليږلې وو | نو هغه په کښې (د دعوت په غرض) | پنځوس کم زر کاله عمر تير کړو | | | | |
| فَاَخَذَهُمُ | الطُّوْفَانُ | وَهُمْ | ظٰلِمُوْنَ | فَاَنْجَيْنٰهُ | | |
| پس اونيول هغوئ | طوفان | حال دا چې هغوئ | ظالمان وو | بيا بچ کړو مونږ هغه | | |
| نو بيا په هغوئ باندې طوفان راغلو | حال دا چې هغوی لوئې ظالمان وو | بيا مونږ هغه (نوح) او په | | | | |
| وَاَصْحٰبَ السَّفِيْنَةِ | وَجَعَلْنٰهَآ | اٰيَةً | لِّلْعٰلَمِيْنَ | | | |
| او ملګرې دکشتئ | او جوړه کړه مونږه هغه | يو نښه (دعبرت) | دپاره دخلقو ددنيا | | | |
| بيړئ کښې سوارۀ ټول مومنان بچ کړل | او دا واقعه مود ټولې دنيا دپاره عبرت اوګرځوله | | | | | |

[1] تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١٣ص:٣٣١] و سنن ابن ماجة المقدمة، باب من سن سنة حسنة او سيئة ص: ١٨ و صحيح مسلم كتاب العلم، باب من سن سنة إلخ [ج:٢ص:٣٤١]

وَاِبْرٰهِيْمَ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ ؕ

او ولیږو مونږه ابراهیم | کله چې اوونیل هغه | قوم خپل ته | بندګی کوئ | د الله | او او یریږئ د هغه نه

او ابراهیم ؑ [مو لیږلې وو] څه وخت چه هغه خپل قوم ته اوونیل | د الله ﷻ عبادت کوئ | او د هغه نه ویریږئ

ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ⑯ اِنَّمَا تَعْبُدُوْنَ

دا کار | بهتر دي | ستاسو دپاره | که يئ تاسو | چې پوهیږئ | بیشکه | عبادت کوئ تاسو

که تاسو پوهیږئ نو دا خبره ستاسو دپاره غوره ده ............ تاسو د الله ﷻ نه سوا د بتانو

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا وَّتَخْلُقُوْنَ اِفْكًا ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ

بې | د الله نه | د بتانو | او جوړوئ | دروغ دخانه | بیشکه هغه څوك | چې عبادت ئې کوئ تاسو

عبادت کوئ | ............ او دخان نه دروغ جوړوئ | چې دا خدایان دي | تاسو چې د الله ﷻ نه سوا

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُوْنَ لَكُمْ رِزْقًا فَابْتَغُوْا

بې د الله | نه | هیڅ اختیار نه لري | ستاسو دپاره | د رزق د رکولو | پس تلاش کړئ

د بل چا عبادت کوئ | هغوئ تاسو ته هیڅ روزي نشي د رکولې | نو خپل رزق د الله ﷻ

عِنْدَ اللّٰهِ الرِّزْقَ وَاعْبُدُوْهُ وَاشْكُرُوْا لَهٗ ؕ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ⑰

په نز د الله | رزق | او بندګی کوئ د هغه | او شکر اوباسئ | د هغه | خاص هغه ته به تاسو واپس کیږئ

سره اولټوئ | او د هغه عبادت کوئ | او د هغه شکر اداکوئ | او تاسو به هغه ته واپس کیږئ

وَاِنْ تُكَذِّبُوْا فَقَدْ كَذَّبَ اُمَمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ؕ

او که | دروغ او ګنړئ تاسو | نو دروغ ګنړلي دي | ډیر قومونه | مخکښې ستاسو نه

او که چرې تاسو [حقه خبره] دروغ ګنړئ | نو ستاسو نه وړاندې هم ډیرو قومونو دروغ ګنړلې وه

وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ⑱

او نشته | په رسول باندې | مګر | رسول د [پیغام] صفاصفا |

او د پیغمبر په ذمه صرف خپل ښکاره پیغام رسول دي |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ نوح علیه السلام د هغوی قوم ته لیږلې وو پس هغه پنځوس کم زر کلونو پورې په هغوی کښې اوسیدلو. بیا هغوی طوفان راونیول. او هغوی ظالمان خلق وو. او مونږ نوح علیه السلام او د کشتۍ والا خلق بچ کړل. او مونږ هغوی د دنیا جهان والؤ دپاره عبرت جوړ کړل او مونږ ابراهیم علیه السلام اولیږلو په داسې حال کښې چه هغوی خپل قوم ته وئیلي وو چه: د الله پاک عبادت کوئ. او د هغه نه اویریږئ هم دا خبره ستاسو دپاره غوره ده. که تاسو د پوهې نه کار اخلئ. څه چه تاسو کوئ هغه دا دی چه تاسو د الله پاک نه سوا د بتانو عبادت کوئ. او دروغژنې خبرې جوړوئ. یقین اوکړئ چه د الله پاک نه سوا چه تاسو د

کومو کومو څیزونو عبادت کوئ هغه تاسو ته د رزق درکولو هیڅ اختیار نه لري، په دې وجه رزق د الله پاک سره لټوئ، او د هغه عبادت کوئ، او د هغه شکر ادا کوئ، او هم هغه ته به تاسو واپس کولې شئ. او که تاسو زما تکذیب کوئ نو ستاسو نه مخکښ ډیرو قومونو هم د تکذیب لار اختیار کړې وه، او په رسول باندې د دې نه سوا هیڅ ذمه داري نه وي چه هغه صفا صفا خبره اورسوي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ﴾[او مونږ نوح] ﷺ [لره دده قوم طرف ته] پیغمبر جوړ کړو [ولیږلو ﴿فَلَبِثَ فِيْهِمْ اَلْفَ سَنَةٍ اِلَّا خَمْسِيْنَ عَامًا﴾ پس هغه په هغوی کښې پنځوس کاله کم زر کاله پاتې شو] او قوم ئې پوهول [بیا] هرکله چه به دهٔ هم خلقو ایمان رانه وړو نو﴿فَاَخَذَهُمُ الطُّوْفَانُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ﴾[هغوی لره طوفان ونیول او هغوی لوئ ظالمان خلق وو] چه د دومره اوږدې مودې پوهولو پرې هم اثر ونه کړو [بیا] ددې طوفان راتلو نه پس ﴿فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَصْحٰبَ السَّفِيْنَةِ﴾[ مونږ دهٔ لره او کشتئ والؤ لره کوم چه د دهٔ سره سوارهٔ وو دهغې طوفان نه [بچ کړل ﴿وَجَعَلْنٰهَآ اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ﴾ اومونږ دې واقعې لره دټولې دنیا دخلقو دپاره] کوموته چه په تواتر سره خبر ورسیدو[سبب دعبرت جوړ کړو] چه غور وکړي نو پوهیدې شي چه دحق دمخالفت څه انجام دې ﴿وَاِبْرٰهِيْمَ﴾[او مونږ ابراهیم] ﷺ [ لره پیغمبر جوړ کړو [ولیږلو﴿اِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ﴾ هرکله چه دوی خپل قوم ته ] کوم چه بت پرست وو [وفرمائیل چه تاسو دالله تعالی عبادت کوئ او دهغه نه ویره کوئ ] او ویریدل شرك پریږدئ ﴿ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ﴾[داتاسو دپاره غوره ده که تاسو څه پوهه لرئ] په خلاف دطریقې دشرك نه چه محض بې وقوفي ده ځکه چه ﴿اِنَّمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا﴾[ تاسو خلقو الله تعالی پریښو دې دې محض بتانو لره] کوم چه بالکل عاجز او ناکاره دی [عبادت ئې کوئ او] ددوی متعلق ﴿وَتَخْلُقُوْنَ اِفْكًا﴾[دورغ خبرې جوړوئ] چه په دوی سره زمونږ د رزق او ورزګار کارکیږي دا محض دروغ دی ځکه چه ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُوْنَ لَكُمْ رِزْقًا﴾[ تاسو خدائ لره پریږدئ او دکومو چه عبادت کوئ هغه تاسو لره هیڅ د رزق درکولو اختیار نه لري ﴿فَابْتَغُوْا عِنْدَ اللّٰهِ الرِّزْقَ﴾پس تاسو خلق رزق د خدائ سره تلاش کوئ] یعني دالله تعالی نه غواړی مالك د رزق هغه دې [ او] هرکله چه مالك د رزق هغه دې نو ﴿وَاعْبُدُوْهُ﴾[ دهغه عبادت کوئ او] چونکه اول رزق هم هغه درکړې دې نو ﴿وَاشْكُرُوْا لَهٗ﴾ [دهغه شکر کوئ] یو خو سبب د وجوب دعبادت دادې چه هغه مالك دنفع دې [ او] دویم سبب دادې چه هغه مالك دضرر هم دې چنانچه ﴿اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾[تاسو ټول به دهغه طرف ته واپس کیږئ ] هغه وخت به په کفر تاسوله سزا درکړی ﴿وَاِنْ تُكَذِّبُوْا﴾[ اوکه تاسو] په دې خبرو کښې [مالره دروغژن ګنړئ نو] یادساتئ چه زما هیڅ ضرر نشته ﴿فَقَدْ كَذَّبَ اُمَمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ﴾[تاسو نه وړاندې هم ډیرو امتونو] خپلو پیغمبرانو لره [ دروغژن کړی دی ] مګر ددغو پیغمبرانو هیڅ ضرر نه دې شوې [ او] وجه ددې داده ﴿وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ﴾ چه دپیغمبر په ذمه خو صرف دخبرې [ صاف طور سره رسول دی ] په چائ منل د هغه کارنه دې پس دټولو پیغمبرانو دتبلیغ نه پس غاړه آزاده شوه دغه شان زما هم پس مونږ ته هیڅ ضرر نشته البته منل یئ ستاسو په ذمه واجب وو دهغې په پاتې کولو سره ستاسو ضرر خامخا وشو.

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو مبارکو کښې دکافرانو دمخالفت او د دوئ د ضرر رسانئ بیان وو چې مسلمانانوته رسیږی . د ړومبی سر په آیتونو کښې په دغسې واقعاتو باندې رسول کریم ﷺ ته تسلئ ورکولو دپاره د پخوانو پیغمبرانو ﷺ اودهغوئ ﷺ دامتونو د حالاتو څه بیان دې چې د هدایت خاوندانو ته د کافرانو د طرفه د زیان رسولو داسلسله جاری ده خو ددغې تکلیفونو په وجه هغوئ همت او نه بائیللو څکه تاسو ﷺ هم د کافرانو د زیان درکولو پرواه مه کوئ د خپلې پیغمبرئ د فرض په ادا کولو کښې د مضبوطیا نه کار اخلئ. په پخوانو پیغمبرانو ﷺ کښې دټولو څخه اول د نوح ؑ د قیصې د بیانولو ړومبئ وجه داده چې هغوئ ؑ د ټولو څخه ړومبې پیغمبر ؑ دې چې د کفر او شرک سره ئې مقابله کړې ده . د خپل قوم د طرفه چې دوئ ته څومره تکالیف رسیدلی وو دومره دبل پیغمبر ؑ قوم هغه ته نه وو رسولی. ولې چې الله ﷻ د خصوصی امتیاز په ډول دوئ ؑ ته اوږد عمر ورکړې وو او ټول عمر ورته دکافرانو د طرفه زیانونه رسیدل ، قرآن عظیم الشان چې ددوئ عمر نهه نیم سوه کاله خودلې دې هغه خو قطعی او یقینی معلوم شو ، د ځینې روایتونو مطابق دا عمر دین ته د بلنې اود تبلیغ عمر دې خو ددې څخه وړاندې او طوفان څخه روستو د نور عمر بیان ئې هم راغلې دې . والله اعلم.

بهر حال دومره ډیر زیات عمر په مخه په بلنه او تبلیغ کښې لګوی او د هر تبلیغ اوبلنې په موقعه د کفارو د طرفه قسما قسم زیانونه ، وهل ټکول او مرئ خفه کول او دا زغمل اوسره ددې هر څه ، همت نه بائیلل دا ټول خصوصیتونه د نوح ؑ دی.

بله قیصه ئې د ابراهیم ؑ بیان کړې ده ، چې د ډیرو سختو امتحانونو څخه تیر شوې وو. د نمرود د اور سخته پرې راغله ، د شام دملك څخه په هجرت کولو سره په یولوئې ځنګل چې نه په کښې اوبه وې او څه ګیاه [وابنه] وه. دخپل ځوئې د ذبح کولو پیښه ورته اوشوه . د ابراهیم ؑ د قیصې په ترخ کښې د لوط ؑ اودهغوئ ؑ د امت واقعات او آخر دسورت پورې د ځینې نوور پیغمبرانو ﷺ او د هغوئ د سرکشو امتونو حالات بیان شوی دی چې مطلب ئې نبی اکرم ﷺ اودهغه امت ته تسلی ورکول او ددین په کار باندې ئې کلك پاتې کول دی.

| |
|---|
| أَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ |
| آیا نه وینی دا خلق \| چې څرنګې |
| آیا دوی نه وینی [اونه ګوری] \|............ |
| يُبْدِئُ اللَّهُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ط إِنَّ ذَٰلِكَ |
| اول شروع کوی \| الله \| دپیداوښت [دمخلوق] \| بیا دوباره پیدا کوی هغه \| بیشکه دا دوباره پیدا کول |
| چې الله ﷻ څنګه په اول ځل مخلوق پیدا کوی([1]) \| او بیا به ئې څنګه سردوباره پیدا کوی؟ \| دا کار |

[1]) څورنه کوی چاچه دنیشت نه ورته وجود ورکړوهم هغه دعبادت لائق دې: ګوروچه هغوی هیڅ هم نه وو ، بیا الله تعالی پیدا کړل. خودمرګ نه پس دژوندقائل نه دی. حالانکه په دې.... [باقی حاشیه په راروانه صفحه...

| |
|---|
| عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ۝ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا |
| په الله باندي\| اسان دی \| ورته اووایه \| چی اوگرزئ \| په زمکه کښی \| پس اوګورئ \| |
| په الله ﷻ باندي ډير اسان دي \| (محبوبه) اووایه چي په زمکه کښي اوګرځئ \| نو اوګورئ |
| كَيْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ ثُمَّ اللّٰهُ يُنْشِئُ النَّشْاَةَ |
| چی څرنګي \| اول شروع کړی ده هغه دپیداوښت \| بیا به الله \| پیدا کړی \| پیدا کول \| |
| چي الله ﷻ څنګه په اول ځل مخلوق پیدا کړي دي \| بیا به الله ﷻ مخلوق په دویم ځل |
| الْاٰخِرَةَ ۚ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ يُعَذِّبُ مَنْ |
| روستنی ]په دویم ځل] \| بیشکه الله \| په هر څیز باندي\| قادر دي \| عذاب ورکوی \| هغه چاته |
| پیدا کړی \| بیشکه الله ﷻ په هره څه باندي قادر دی \| ............ چا ته چي اوغواړي نو عذاب ورکوی |

.... باندې دڅه دلیل ضرورت نشته. ځوك چه په اول ځل پیداکول کولې شی دهغهٔ دپاره په دویم ځل پیداکول ډیراسان دی.بیاهغوی ته هدایت کوی چه تاسودزمکې په نشانوکښې غوراوکړئ ،داسمانونو ستورو او غرونوته اوځنګلونو ته، او نهرونو ته، او دریابونوته،اوسمندرونوته،اومیووته او پټوته ته لږ شان خو اوګورئ داټول نه وو، بیا الله تعالی هرڅه پیداکړل،ایاپه تاسو دالله تعالی نخښې نخښانې ظاهرې نه دی؟تاسونه ګورئ چه دومره لوې صانع اوقدیرالله څه نه شی کولې؟هغه خوصرف په اوشه وئیلوسره هرڅه کولې شی.هغه خپل اختیاره دې.هغهٔ ته داسبابواوسامان ضرورت نشته.هم دغه مضمون ئې په بل ځائې کښې اوفرمائیلو چه هم هغهٔ په نوی پیدائش کښې پیداکول کوی اوهم هغه به مویه دویم ځل پیداکوی. دا خو دهغهٔ دپاره ډیر اسان دی.بیائې اوفرمائیل چه په زمکه باندې اوګرځئ اواوګورئ چه الله تعالی په اول ځل پیدائش څنګه اوکړو،نوتاسوته به معلومه شی چه دقیامت په ورځ په دویم ځل دپیدائش کیفیت به څه وی.الله تعالی په هرڅیزباندې قادردې.څنګه چه ئې اوفرمائیل چه مونږ به دوی ته ددنیاپه هره حصه کښې په خپله ددوی دځانونوکښې خپلې نخښې نخښانې دومره اوښائیوچه په دوی باندې حق ظاهرشی. په بل ځائې کښې ارشاددې.﴿اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ﴾الخ....ایادوی بغیردڅه څیزنه پیداکړې شوې دی یادوی په خپله دخپل ځان خالق دی.هیڅ نه دی بې یقینه خلق دی.دادالله تعالی شان دې چه چاته اوغواړی عذاب ورکړی اوپه چاچه اوغواړی رحم اوکړی.هغه حاکم دې دقبضې واله دې څه چه غواړی اوکومه اراده کوی جاری کوی ځوك دهغهٔ دحکم منلونه انکارکولې نه شی.ځوك دهغهٔ اراده بدلولې نه شی.ځوك دهغهٔ نه اخوا دیخوا تختیدې نه شی.ځوك دهغهٔ نه تپوس نه شی کولې، هغهٔ په ټولوباندې غالب دې،دچانه چه اوغواړی تپوس کولې شی ټول دهغهٔ په قبضه کښې دی اودهغهٔ ماتحت دی.دمخلوق خالق اودحکم مالك هم هغه دې.هغهٔ چه هرڅه اوکړل ټول په ټوله عدل دې.ځکه چه هم هغه مالك دې.هغهٔ دظلم نه پاك دې.په حدیث شریف کښې دی چه که الله تعالی داوْوواړو اسمانونووالوْ ته او داوْوواړوزمکووالوْ ته عذاب ورکړی نوبیاهم هغه ظالم نه دې. (ابی داوٗد:۴۶۹۹ ، ابن ماجه:۷۷، احمد:۱۸۲/۵)

عذاب اورحم ټول دهغهٔ څیزونه دی. ټول به دقیامت په ورځ دهغهٔ طرف ته واپس کړې شی،هم دهغهٔ په وړاندې به پیش کړې شی.په زمکه والوکښې اوپه اسمان والوکښې ځوك هغهٔ ته شکست ورکولې نه شی.بلکه په ټولوباندې هغه غالبه دې.هریودهغهٔ دویرې نه رپیږی ټول دهغهٔ ددرفقیران دی.اودهرچانه زیات غنی دې.ستاسوځوك ولی اومددګاردهغهٔ نه سوابل ځوك نشته.دالله تعالی دایتونونه کفرکونکی دهغهٔ سره ملاقات نه منونکی دالله تعالی درحمت نه محروم دی .دهغوی دپاره په دنیااوپه اخرت کښې ددرد او غم نه ډك عذاب دې.

يَشَآءُ | وَيَرۡحَمُ | مَنۡ | يَشَآءُ ۚ | وَإِلَيۡهِ

چي خوښه ئې شي | او رحم کوي | په هغه چا | چي خوښه ئې شي | او خاص هغه ته |

او په چا چې اوغواړي نو رحم پرې کوي |............ اوهغه ته به تاسو ټول واپس کيږئ

تُقۡلَبُونَ ﴿٢١﴾ وَمَآ أَنتُم بِمُعۡجِزِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَا

به تاسو واپس بوتلې کيږئ | اونه يئ تاسو | عاجزه کونکي [الله لره] | په زمکه کښې | اونه

..........اوتاسو په زمکه اوپه آسمان کښې د الله نه بچ کيدې نشئ..........

فِي ٱلسَّمَآءِ ۖ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِيّٖ وَلَا نَصِيرٖ ﴿٢٢﴾

په آسمان کښې | اونشته تاسو لره | بچ کونکې دالله نه | څوک دوست | اونه څوک مدد گار |

.............اوستاسو دپاره دالله ﷻ نه سوا هيڅوک کار ساز او مددگار نشته

وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَلِقَآئِهِۦٓ أُوْلَٰٓئِكَ

او هغه کسان | چې انکار ئې کړې دې | دآيتونو دالله نه | او دملاقات دهغه نه | دا کسان چې دي |

اوکوم خلق چې د الله ﷻ د آيتونو اود هغه دملاقات نه انکار کوي | ..........داسې خلق زما

يَئِسُواْ مِن رَّحۡمَتِي وَأُوْلَٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴿٢٣﴾

نااميد شوي دي | درحمت زمانه | او هم ددوئ دپاره | عذاب | دردناک دې |

درحمت نه نااميده دي | او د دغه خلقو دپاره دردناک عذاب مقرر دې |

## آسان ترجمه قرآن

آيا دا خلق نه ګوري چه الله پاک څنګه مخلوق په شروع کښې پيدا کوي؟ بيا به ئې هم هغه دوباره پيدا کوي، دا کار د الله پاک دپاره آسان دې. اووايه چه: لږ په زمکه کښې اوګرځئ او بيا اوګورئ چه الله پاک په شروع کښې مخلوق څنګه پيدا کړې وو، بيا به هم هغه الله پاک په آخرت کښې مخلوق راپاسوي. يقينًا الله پاک په هر څيز باندې قادر دې. هغه چه چاته اوغواړي، سزا ورکوي، او په چا باندې چه اوغواړي رحم کوي، او هم د هغه طرف ته به تاسو واپس کولو سره بوتلې شئ. او تاسو نه په زمکه کښې (الله پاک) عاجز کولې شئ، اونه په آسمان کښې، او د الله پاک نه سوا نه ستاسو څوک دوست شته، اونه مددګار، او کومو خلقو چه د الله پاک د آيتونو او هغه سره د ملاويدو نه انکار اوکړو، هغوی زما د رحمت نه نااُميده شوې دی، او د هغوی دپاره دردولکې عذاب دې.

## خلاصه تفسير

﴿أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ كَيۡفَ يُبۡدِئُ ٱللَّهُ ٱلۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥٓ﴾ [آيا هغو خلقوته دا معلومه نه ده چه الله تعالى څه رنګې مخلوق لره اول خل پيدا کوی ] محض عدم نه ئې وجود ته راوړی [ بيا به هغه دوی لره دوباره پيدا کوی﴿إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٞ﴾ دا دالله تعالى په نزد ډيره آسانه خبره ده] بلکه په اول نظر کښې دوباره پيدا کول د اول پيدائش نه زيات آسان دی اګر چه دذاتی قدرت په اعتبار سره دواړه برابر دی او داخلق د اولنی کار يعنی دالله تعالى دخالق کائنات کيدو خو اعتراف کولو په وجه

ددې قول دالله تعالى نه [ ولئن سالتهم من خلق السموات الخ] (۱) او دويمه خبره يعنى دوباره پيدا كول ددې په مثل دى ددې په قدرت كښې داخليدل خو نور هم واضحه دى په دې وجه [ اولم يروا] ددې سره هم متعلق كيدې شي او په زيات اهتمام سره وړاندې بيا دا مضمون قدرې دعنوان په تفاوت سره د اوړولو دپاره نبى كريم ﷺ ته ارشاد فرمائى چه [ ته ] دې خلقو ته ﴿قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ﴾[ ووايه چه تاسو خلق په ملك كښې وګرځئ ﴿فَانْظُرُوْا كَيْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ﴾ او وګورئ چه خدائ تعالى مخلوق لره څنګه په اول ځل پيدا كړې دې ﴿ثُمَّ اللّٰهُ يُنْشِئُ النَّشْاَةَ الْاٰخِرَةَ﴾ بيابه ئې الله تعالى دوباره هم پيدا كوى﴿اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ بيشكه الله تعالى په هرڅه قادر دې] په اول عنوان كښې يو عقلى دليل دې او په دويم عنوان كښې حسى چه تعلق ئې دكائناتو دحالا تو دمشاهدې سره دې دا خو دقيامت اثبات وو وړاندې دجزا بيان دې چه پس دپورته كيدو نه ﴿يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ﴾ [چالره چه غواړى عذاب به وركړى] يعنى څوك چه ددې مستحق وى ﴿وَيَرْحَمُ مَنْ يَّشَآءُ﴾[او په چاچه غواړى رحمت به وفرمائى ] يعنى څوك چه ددې اهل وى [او] په دې عذاب او رحمت كښې به دهيچا دخل نه وى ځكه چه ﴿وَاِلَيْهِ تُقْلَبُوْنَ﴾ [تاسو ټول به هغه ته واپس ورځئ ] نه چه د بل چا طرف [ او] ددې عذاب نه دبچ كيدو هيڅ تدبير نشته ﴿وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ﴾[ تاسو نه په زمكه كښې] پټيدې شئ خدائ لره [عاجزه كولې شئ] چه دهغه په لاس به ورنه شئ ﴿وَلَا فِي السَّمَآءِ﴾[ اونه آسمان كښې] الوتې شئ ﴿وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ﴾[اونه دخدائ نه سوا ستاسو څوك كار ساز شته او نه څوك مدد ګار] پس نه په خپل تدبيربچ كيدې شئ نه دبل په حمايت سره [ او] بره چه مونږ كوم ووئيل [يعذب من يشاء ] اوس په قاعده كليه سره ددې مصداق ښائى چه ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَلِقَآئِهٖٓ اُولٰٓئِكَ﴾[ كوم خلق د الله تعالى دآيتونو او خاص دده مخې ته دتلو نه منكر دى هغه خلق ] په قيامت كښې ﴿يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِيْ﴾[زما درحمت نه به نا اميده وى ] يعنى هغه وخت به ووينى [چه په مونږ كښې ] درحمت ځائ نشته ﴿وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾[ اوهم دادى چه كوموته به دردناك عذاب وى].

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ | اِلَّآ | اَنْ قَالُوا | اقْتُلُوْهُ | اَوْ حَرِّقُوْهُ | فَاَنْجٰىهُ | |

پس نه وو جواب دقوم دابراهيم | مكر | دا چى ونيل ئې اچى اووژنئ دې|يا اوسوزوئ دې|پس بچ كړوهغه لره

نو دابراهيم ﷺ دقوم دطرفنه صرف دا يو جواب وواچې دې مر كړئ يا ئې اوسوزوئ |مكر الله ﷻ هغه د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اللّٰهُ | مِنَ النَّارِ | اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ |

الله | دوور نه | بيشكه | په دې كښى | خامخا نښې دى | دپاره دهغه قوم | چى ايمان راوړى

اور نه بچ كړو | بيشكه په دې ابچ كولو ] كښې دمومنانو دپاره ډيرې نخښې دى

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ | اِنَّمَا | اتَّخَذْتُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | اَوْثَانًا | مَّوَدَّةَ |

اواووئيل ابراهيم | بيشكه | نيولى دى تاسو | بې دالله نه | بتان | ذريعه دمحبت

او ابراهيم ﷺ اووئيل چې تاسو چې د الله نه سوا د خپلو خانونو دپاره كوم بتان نيولى دى | نو دا

(۱) ترجمه:- اوكه ته ددوئ نه پوښتنه اوكړې چې زمكه او آسمان چا پيدا كړى دى.

بَيْنِكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ

په خپل منځ کښې | په ژوند ددنيا کښې | بيا به | په ورځ دقيامت | انکار کوی |

په دنيا کښې ستاسو په خپل مينځ کښې دميني محبت ذريعه ده | خو بيا به د قيامت په ورځ

بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا ۡ

ځيني له تاسو | دځينو نه | او لعنت به وائی | ځيني له تاسو | په ځينو باندي |

د يو بل مخالف شئ | ..................اوتاسوبه په يو بل لعنتونه وايئ

وَّمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ۝ فَاٰمَنَ

او ځاني داوسيدو ستاسو | وور دي | او نشته تاسو لره | هيڅوك دمددګارانو نه | پس اومنو

اوستاسو د اوسيدو ځاني به دوزخ وی | او هيڅوک به درسره مدد کونکي نه کوی | ........نو

لَهٗ لُوْطٌ ۘ وَقَالَ اِنِّيْ مُهَاجِرٌ اِلٰى رَبِّيْ ۭ اِنَّهٗ

هغه لره | الوط | او اووئيل ابراهيم | بيشکه زهٔ | هجرت کونکي يم | رب خپل ته | بيشکه هغه |

لوط ﷺ دهغه تصديق اوکړو | او ابراهيم ﷺ اووئيل چي زهٔ د خپل رب دپاره وطن پريږدم | هغه

هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝ وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ

هم هغه | غالب دي | حکمت والا دي | او ورکړل مونږه | هغه لره | اسحاق | او يعقوب

غالب او صاحب دحکمتونو دي | اومونږ هغه ته ځوئي اسحاق او [نمسي] يعقوب ﷺ ورکړو

وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ وَاٰتَيْنٰهُ

او جاری اوساتله مونږه | په اولاد دهغوئ کښې | سلسله دپيغمبرئ | او دکتاب | او ورکړومونږ هغه ته

اود هغه په اولاد کښې مو دپيغمبرئ اودکتاب سلسله جاری اوساتله | اوهغه ته مو په

اَجْرَهٗ فِي الدُّنْيَا ۚ وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝

اجر دهغه | په دنيا کښې | او بيشکه هغه به | په آخرت کښې | خامخا دصالحانونه وی |

دنيا کښې لوئي اجر ورکړو | او په آخرت کښې به هم په نيکانو خلقو کښې شمير وی

## آسان ترجمه قرآن

غرض دا چه د ابراهيم عليه السلام د قوم جواب د دې نه سوا هيڅ نه وو چه هغوی اووئيل: قتل کړئ دې يا اوسوزوئ دې! بيا الله پاك ابراهيم عليه السلام د اور نه بچ کړو. يقيناً په دې واقعه کښې د هغه خلقو دپاره ډير عبرتونه دی چه ايمان راوړی او ابراهيم عليه السلام دا هم اووئيل چه: تاسو د الله پاک نه سوا بتان (معبودان) منلي دی چه د هغې په ذريعه ستاسو د دنيوی ژوند دوستي قائم ده. بيا به د قيامت په ورځ باندې تاسو د يو بل انکار کوئ، او په يو بل باندې به لعنت کوئ، او ستاسو د اوسيدو ځائې به اُور وی، او ستاسو به هيڅ قسم مددګار نه وی. بيا لوط عليه السلام په هغوی باندې ايمان راوړلو او ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل: چه زه د خپل رب طرف ته هجرت کونکې روان يم هم هغه دې چه دهغه اقتدار هم کامل دې، حکمت ئې هم کامل دې. او مونږ هغوی ته د اسحاق او يعقوب عليه السلام (په شان ځامن) ورکړل

او دهغوی په اولاد کښې مو د نبوت او کتاب سلسله جاري اوساتله. او هغوی ته مو د هغې اجر په دنیا کښې (هم) ورکړو او یقیناً په آخرت کښې به دهغوی شمېر په نیکانو کښې وي.

## خلاصه تفسير

[پس] د ابراهيم ﷺ ددې تقرير دلپذير نه پس ﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ﴾[د دهٔ دقوم ] آخرى [جواب بس دا وو چه] ﴿إِلَّا أَنْ قَالُوا اقْتُلُوهُ أَوْ حَرِّقُوهُ﴾ په خپل مينځ كښې [ ويې ووئيل دهٔ لره يا خو قتل كړئ ياې وسيزئ ] چنانچه دسوزولو سامان يې ورله تيار كړو ﴿فَأَنْجَاهُ اللَّهُ مِنَ النَّارِ﴾[پس الله تعالى دهٔ لره ددې اور نه بچ كړو] چه قصه يې په سوره انبياء كښې تيره شوې ده ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾[بيشكه په دې واقعه كښې دهغې خلقو دپاره كوم چه ايمان لرى ډيرې نښې دي] يعنى دا واقعه دڅو څيزونو دليل دې د الله تعالى دقادر والى د ابراهيم ﷺ دنبى كيدو دكفر او شرك دباطل كيدلو په دې وجه دايودليل دډيرو دليلونو قائمقام شو﴿وَقَالَ﴾[او ابراهيم ﷺ] په وعظ كښې داهم [اوفرمائيل﴿إِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ أَوْثَانًا﴾ چه تاسو كوم خداى لره پرېښودې دې بتانو لره مو] معبودان [تجويز كړى دى ﴿مَوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ بس دا ستاسو په خپل مينځ كښې د دنيا دتعلقاتو په وجه سره دې ] چنانچه ليدې شى چه اكثر خلق دخپلو تعلقاتو او دوستۍ او رشته دارانو په طريقه وى او په دې وجه سره په حقه خبره كښې غور نه كوى اوكه په حق پوه شى هم ويرېږى چه ټول دوستان او رشته داران به رانه جدا شى﴿ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ [ بيا به په ورځ دقيامت ] ستاسو دا حال وى چه ﴿يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا﴾[ په تاسو كښې به يو دبل مخالف شى او په يوبل به لعنت كوئ ] لكه چه په سوره اعراف كښې دى [لعنت اختها](١) او په سوره سبا كښې دى چه [يرجع بعضهم الى بعض القول](٢) او په سوره بقره كښې دى [إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا الخ ](٣) لنډه داچه نن دكومو دوستانو او خپلوانو په وجه تاسو گمراهى اختيار كړې ده د قيامت په ورځ به ستاسو دا خپلولى دښمنى جوړه شى [ او] كه تاسو ددې بت پرستۍ نه واپس نه شوئ نو ﴿وَمَأْوَاكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِنْ نَاصِرِينَ﴾[ستاسوځاى به دوزخ وى او ستاسو به هيڅوك حمايتى نه وى پس] په دومره وعظ او پند باندې هم دده قوم ونه منله ﴿فَآمَنَ لَهُ لُوطٌ ۘ وَقَالَ إِنِّي مُهَاجِرٌ إِلَىٰ رَبِّي﴾[صرف لوط ﷺ] [دده تصديق وكړو او ابراهيم ﷺ] [ وفرمائيل چه زهٔ ] تاسو خلقو سره نه اوسيږم بلكه [دخپل پروردگار] ښودلې شوى ځاى [ طرف ته وطن پرېږدم خمه ﴿إِنَّهُ هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾بيشكه هغه زبردست حكمت والا دې] هغه به زما حفاظت كوى اوما ته به ددې ثمره راكړى ﴿وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ﴾[او مونږه ] دهجرت نه پس [دهٔ ته اسحاق ] ځوئ [ او يعقوب ] نمسې [ وركړو﴿وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتَابَ﴾ اومونږ دده په نسل كښې دنبوت او كتاب ] سلسلې [ لره قائم وساتل ﴿وَآتَيْنَاهُ أَجْرَهُ فِي الدُّنْيَا﴾ اومونږ ددې فائده ده ته په دنيا كښې هم وركړه ﴿وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ﴾او په آخرت كښې هم] ﴿لَمِنَ الصَّالِحِينَ﴾ دلوئ درجې [ په نيكو بندگانو كښې به وى] ددې فائدې نه مراد

(١) ترجمه:- دخپل خان پشان په بل جماعت باندې لعنت وائى.
(٢) ترجمه:- په يو بل باندې به خبره راآړوى.
(٣) ترجمه:- حالانكه هغه خلق چې دهغوئ په وينا باندې به نور خلق تلل .

قرب او قبول دې لكه دا قول د الله تعالى دې په سوره بقره كښې [ولقد اصطفينه فى الدنيا الخ] ([1]).

## معارف او مسائل

﴿فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ ۘ وَقَالَ اِنِّیْ مُهَاجِرٌ اِلٰی رَبِّیْ﴾ لوط ﷺ د ابراهيم ﷺ خوريې وو ، د نمرود په اور كښې د ابراهيم ﷺ په معجزې ليدلو سره د ټولو نه اول هغوئ تصديق اوكړو . دوئ ﷺ او خپله بی بی ساره چې ترله ئې هم وه او مسلمانه شوې وه ، دادواړه ئې ځان سره روان كړل او ابراهيم ﷺ د وطن پريښودو اراده اوكړه. دابراهيم ﷺ وطن مقام كوثا وو چې د كوفې يوه آبادي ده او وې فرمائيل چې: ﴿اِنِّیْ مُهَاجِرٌ اِلٰی رَبِّیْ﴾ څه دخپل وطن په پريښودو سره د خپل رب طرفته ور روان يم، مراد دادې چې داسې يو مقام ته ورځم چرته چې د الله ﷻ په عبادت كښې به څه بنديز نه وى. نخعى رحمه الله او قتاده رحمه الله ددې ويونكې ابراهيم ﷺ خودلې دې ځكه چې په دې پسې : ﴿وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ﴾ خو يقينا چې هم ددوئ حال دې او ځينو مفسرينو ددې ويونكې لوط ﷺ خودلې دې . د تفسير د خلاصې ترجمه الى مهاجر هم ددې مطابق ده خو دكلام د روانئ نه ړومبې تفسير غور معلوميږى او لوط ﷺ اګر چې په دې هجرت كښې ضرور شريک وو ځنګه چې ساره بی بی هم شريكه وه ځكه د لوط ﷺ د هجرت مستقل بيان اونشو.

**په دنيا كښې د ټولو نه ړومبې هجرت:** ابراهيم ﷺ په دنيا كښې هغه ړومبې پيغمبر دې چې د دين په خاطر ئې خپل وطن پريښودو او هجرت ئې اختيار كړو ، دا هجرت ئې د پنځو اويا كالو په عمر كښې كړې وو. [ دا ټول اقوال د قرطبى څخه اخستل شوى دى] ([2]).

**د ځينې عملونو بدله په دنيا كښې هم وركولې شى:** ﴿وَاٰتَیْنٰهُ اَجْرَهٗ فِی الدُّنْیَا﴾ يعنى مونږ ابراهيم ﷺ ته د الله ﷻ په لار كښې د قربانو او دنورو نيكو عملونو بدله په د نيا كښې هم وركړه چې هغوئ ﷺ مو په ټول مخلوق كښې مقبول او امام جوړ كړل ، يهوديان ، عيسايان او بت پرست خلق ټول ددوئ عزت كوى اوخپل پيشوا ئې منى او په آخرت كښې بهٔ هغوئ دنيكانو جنتيانو ځينى وى ، دې نه معلومه شوه چې د عملونو اصل بدله خو به په آخرت كښې ملاويږى خو ددې څه حصه په دنيا كښې هم نغده وركولې شى لكه چې په معتبرو احاديثو كښې د ډيرو عملونو دينوى فائدې او د بدو عملونو دنيوى خرابئ بيان شوى دى. داسې عملونه سيدى حكيم الامت تهانوى رحمه الله په يو مستقله رساله جزاء الاعمال نومې كښې راجمع كړى دى.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلُوْطًا | اِذْ | قَالَ | لِقَوْمِهٖۤ | اِنَّكُمْ | لَتَاْتُوْنَ | الْفَاحِشَةَ ۫ |
| اواوليږومونږ لوط | كله چې | اووئيل هغه | قوم خپل ته | بيشكه تاسو | خامخا ورځئ | كاردبې حيايئ ته |
| او لوط مو پيغمبر كړو څه وخت چې هغه خپل قوم ته اووئيل | | | | آيا تاسو داسې د بې حيايئ كار كوئ | | |
| مَا سَبَقَكُمْ | بِهَا | مِنْ اَحَدٍ | مِّنَ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۲۸﴾ | | | |
| چې نه دې ړومبې شوې ستاسو نه | په كولو ددې كار كښې | يو كس [هيڅوك] | دخلقو نه | | | |
| چې ستاسو نه وړاندې [په ټوله دنيا كښې] بل هيڅ چا نه دې كړې ؟ | | | | | | |

---

[1] ترجمه:- او مونږ هغوئ لره په دنيا كښې منتخب كړل.
[2] تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۳۳۹]

أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ وَتَقْطَعُونَ السَّبِيلَ ۙ

آيا تاسو چي يئ | خامخا ورځي | نارينوته [په شهوت سره] | او شو کوئ | لار

تاسو د نارينو سره بد فعلي [لواطت] کوئ | او لارې شوکوئ | او په ډک مجلس کښي نا مناسب

وَتَأْتُونَ فِي نَادِيكُمُ الْمُنكَرَ ۖ فَمَا كَانَ

او راځئ تاسو [يعني کوئ تاسو] | په مجلسونو خپلو کښي | بدکارونه | پس نه وو

کارونه کوئ | ..................نو د هغه د قوم جواب بس صرف دا وو | چي ځه

جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَن قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللَّهِ إِن كُنتَ

جواب دقوم دهغه | مګر | دا چي ووې وئيل | راوله په مونږ باندي | عذاب دالله | که ئې ته

[الاړ شه] ته د الله ﷻ عذاب راوله [هغه عذاب د کوم چي ته مونږ سره وعده کوې] | که چرې ته

مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٢٩﴾ قَالَ رَبِّ انصُرْنِي عَلَى الْقَوْمِ

د رښتينو خلقو نه | اووئيل لوط | اے ربه زما | امداد اوکړه زما | په قوم

رښتونئ يئ | .............لوط ﷺ دعا اوکړه چي اې زما ربه ته ددې فسادیانو په مقابله کښي

الْمُفْسِدِينَ ﴿٣٠﴾ وَلَمَّا جَاءَتْ رُسُلُنَا إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَىٰ ۙ

مفسدانو باندي | او کله چي | راغلل | استاذی زمونږه | ابراهیم ته | دزيرى سره

زما مدد اوکړه | اوځه وخت چي زمونږ فرښتو ابراهيم ته د [خوئي پيدا کيدو] زيري ورکونکي راغلي

قَالُوا إِنَّا مُهْلِكُو أَهْلِ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ ۖ إِنَّ أَهْلَهَا

نو اووئيل هغوئ [ مونږه هلاکونکی يو | خلق | ددي | کلي | بيشکه چی | خلق ددې کلي

نو دائې هم ورته اووئيل چي مونږ خو د دغې کلي تباه کونکي يو | ځکه چي دغه خلق ډير

كَانُوا ظَالِمِينَ ﴿٣١﴾ قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطًا ۚ قَالُوا

دی | ظالمان | اووئيل ابراهيم | بيشکه | په هغه کلي کښي | لوط دې | اووئيل هغوئ

بدعمله دی | ابراهيم ﷺ ورته اووئيل هلته خو لوط ﷺ اوسيږی | ................هغوئ اووئيل

نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَن فِيهَا ۖ لَنُنَجِّيَنَّهُ

مونږ ته ښه علم دې | په هغه چا | چي په هغې کښی دی | خامخا به بچ کړو مونږ هغه لره |

په هغي کښي چي څوک دی هغه مونږ ته ښه معلوم دی | .........مونږ به لوط ﷺ او د

وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِينَ ﴿٣٢﴾ وَلَمَّا

او [ټول] کوروالا دهغه لره | سوا دښځي دهغه نه | چی ده هغه | دروسنو پاتې کيدونکونه | او کله چي

د هغه دکور خلق ضرور بچ کووا | خوصرف ښځه به ئې په پاتي کيدونکو کښي وی | اوهرکله

أَنْ جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ

راغلل | استاذي زمونږه | لوط ته | نو سخت پریشانه شو | په ورتلو دهغوئ | او تنګ شو

چې لوط ﷺ ته زمونږ فرښتې راغلې | ........ نوهغه پرې غمژن شو | ........... او (دهغوي په راتلوني)

بِهِمْ ذَرْعًا وَّقَالُوْا لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ إِنَّا

په هغوئ باندې | په لحاظ دزړه سره | اووئيل هغوئ | مه يريږه | اومه غمژن كيږه | بيشكه مونږه

زړه تنګ شو | ............... او فرښتو اووئيل چې ته ويريږه مه | او غم مه کوه | ........ مونږ

مُنَجُّوكَ وَأَهْلَكَ إِلَّا امْرَأَتَكَ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِينَ ۝

بچ کونکي يو تالره | او كوروالا ستا لره | سوا دښځې ستا نه | ده هغه | دروستو پاتې كيدونكو نه

به تا اوستا دكور خلق ضرور بچ كړو اخو صرف ستا ښځه چې د روستو پاتې كيدونكو نه به وي

إِنَّا مُنْزِلُونَ عَلٰى أَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ

بيشكه مونږه | نازلونكي يو | په خلقو ددې كلي باندې | عذاب د آسمان نه

مونږ ددې كلي په خلقوباندې دپورته نه عذاب راكوزونكي يو | اودا مونږ دوی سره څه ظلم نه كووبلكه |

بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ۝ وَلَقَدْ تَّرَكْنَا مِنْهَا

په سبب دهغې | چې دي دوئ | چې فسق [بدكارې] كوی | او پريښودی ده مونږ | دهغه كلي نه

په دې وجې چې دوی بدعملی كوی | ............ اومونږ د دغې تباه شوی كلي څه ښكاره

اٰيَةً بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُونَ ۝

يوه نښه ښكاره | دپاره دهغه خلقو | چې دعقل نه كار اخلئ |

نخښې دعقل مندو دپاره تراوسه پورې پريخودی دی |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ لوط علیه السلام اوليږلو په داسې حال کښې چه هغه خپل قوم ته اووئيل حقيقت دا دې چه تاسو د داسې بې حيايئ کار کوئ کوم چه ستاسو نه مخکښې په دنيا والو کښې چا هم نه دې کړې. آيا تاسو سړو ته ورځئ او په لارو کښې ډاکې اچوئ. او په خپل ډك مجلس کښې د بدئ ارتكاب کوئ. بيا د هغوی د قوم خلقو سره د دې نه سوا هيڅ جواب نه وو چه هغوی اووئيل: راوړه په مونږ باندې د الله پاک عذاب که ته رشتينې ئې! لوط علیه السلام اووئيل: اې زما ربه! د دې مفسدانو په مقابله کښې زما مدد اوکړه. او کله چه زمونږ راليږلې ملائک ابراهيم علیه السلام ته د (خوې د کيدو) زيرې سره راغلل نو هغوی اووئيل چه: مونږ دې کلی لره هلاکونکی يو. حقيقت دا دې چه د دې اوسيدونکی ډير ظالمان دی. ابراهيم علیه السلام اووئيل: په دې کلی کښې خو لوط علیه السلام هم دې. فرشتو اووئيل: مونږ ته ښه معلومه ده چه په هغې کښې څوک دی مونږ به هغوی او د هغوی متعلقينو ته ضرور خلاصې ور کړو، سوا د هغوی د ښځې نه چه هغه به په هغه خلقو کښې شامله وی کوم چه روستو پاتې کيدونکی دی. او کله چه زمونږ راليږلې شوی ملائک لوط علیه السلام ته اورسيدل نو لوط علیه السلام د هغوی د وجې نه سخت پريشان شو او د هغوی د وجې نه د هغوی زړهٔ تنګ شو، هغه فرشتو اووئيل: تاسو مه ويريږئ، او مه غم کوئ. مونږ به تاسو او ستاسو

متعلقين بچ كړو، سوا ستاسو د ښځې نه چه هغه به په روستو پاتې كيدونكو كښې شامله وي. د دې كلي اوسيدونكى چه كومې بدكارئ كوي، د هغې په وجه باندې به مونږ په هغوى باندې د آسمان نه عذاب نازلوو. او مونږ د دې كلي څه ښكاره نخښې د هغه خلقو دپاره پريخودلې دى كوم چه د پوهې نه كار اخلي.

## خلاصه تفسير

﴿وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ﴾ [ اومونږ لوط] عليه السلام [لره پيغمبر جوړ كړې وليږلو هركله چه دهٔ خپل قوم ته وفرمائيل ﴿إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ﴾ چه تاسو داسې د بې حيايئ كاركوئ ﴿مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِنَ الْعَالَمِينَ﴾ چه تاسونه وړاندې چاپه دنيا كښې دجهان په خلقو كښې هيچا نه دې كړې ﴿أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ﴾ اياتاسو دسړو سره بدكارى كوئ ] داد بې حيايئ كاردې [ او] ددې نه علاوه نور نامعقوله حركتونه هم كوئ مثلا داچه ﴿وَتَقْطَعُونَ السَّبِيلَ﴾ [تاسو ډاكې كوئ] ﴿كذا في الدرعن ابن زيد﴾(۱) [ او] غضب دادې چه ﴿وَتَأْتُونَ فِي نَادِيكُمُ الْمُنْكَرَ﴾ [په خپلو ډكو مجلسونو كښې نامعقوله حركتونه كوئ] او دګناه اعلان داپه خپله يوه ګناه او دعقل په نزد هم قباحت دې ﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ﴾ [پس ددهٔ دقوم ] آخرى [جواب ﴿إِلَّا أَنْ قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللَّهِ﴾ بس هم دا وو چه په مونږ دالله تعالى عذاب راوله ﴿إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ كه ته] په دې خبره كښې [رښتونى يې ] چه داكارونه موجب دعذاب دى ﴿قَالَ﴾ [لوط] عليه السلام [دعا وكړه ﴿رَبِّ انْصُرْنِي عَلَى الْقَوْمِ الْمُفْسِدِينَ﴾ چه اے زما ربه مالره په دې فساد كوونكو خلقو باندې غالب] او دوى لره په عذاب سره هلاك [كړې او] ددهٔ دعا قبليدو نه پس الله تعالى دعذاب دخبر وركولو دپاره فرښتې معين كړې او دويم كارئ دې فرښتوته دا وښو دو چه ابراهيم عليه السلام ته اسحاق عليه السلام دپيدا كيدو خوشخبرى وركړئ چنانچه ﴿وَلَمَّا جَاءَتْ رُسُلُنَا إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَى﴾ [ زمونږ ] هغه [ليږلې شوې فرښتې يې كله ابراهيم] عليه السلام [ته] ددهٔ د خوئ اسحاق عليه السلام پيدا كيدو [خوشخبرى راوړه راغلې نو] دخبرو اترو په درميان كښې دكومو تفصيلي بيان چه په نورو موقعو باندې دې [ قال فما خطبكم ايها المرسلون الخ](۲) ﴿قَالُوا﴾ [هغوفرښتو] ابراهيم عليه السلام ته [ ووئيل ﴿إِنَّا مُهْلِكُو أَهْلِ هَذِهِ الْقَرْيَةِ﴾ چه مونږ ددې كلي خلقو لره] په كوم كښې چه قوم دلوط عليه السلام آباد وو[ هلاك كولووالايو] خكه چه ﴿إِنَّ أَهْلَهَا كَانُوا ظَالِمِينَ﴾ [ ددغه ځائ اوسيدونكى ډير شرارت كوونكى دى ﴿قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطًا﴾ ابراهيم ] عليه السلام وفرمائيل چه هلته خو لوط] عليه السلام موجود [دې] هلته عذاب مه ليږئ چه هغه ته به تكليف ورسيږى ﴿قَالُوا نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَنْ فِيهَا﴾ [ فرښتو ووئيل چه څوك څوك هلته دى مونږ ته ټول معلوم دى ﴿لَنُنَجِّيَنَّهُ وَأَهْلَهُ﴾ مونږ به دهٔ لره او ددهٔ خاصو متعلقينو لره ] يعنى ددهٔ دخاندان خلقو لره او كوم چه مؤمنان وى ددې عذاب نه [بچ كړو] داسې چه دعذاب نازليدو نه وړاندې به دوى لره دكلى نه بهر اوباسو ﴿إِلَّا امْرَأَتَهُ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِينَ﴾ [بغير دهغه دبى بى نه چه هغه به په عذاب كښې دپاتې كيدونكو سره وى] دكومو ذكر چه په سوره هود اوسوره حجر كښې تيرشوې دې دا خبرې خو دابراهيم عليه السلام سره وشوې [ او] بيا چه ددغه ځائ نه فارغې شوې ﴿وَلَمَّا أَنْ جَاءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا﴾ [هركله چه زمونږ هغه ليږلې شوې لوط] عليه السلام [ته

---

(۱) الدرالمنثور [ج:۸ ص:۳۴۰]

(۲) ترجمه:- ابراهيم اووئيل چې اې فرښتو تاسو ته يو لوئ مهم كوم يو حواله شوې دې.

ورسیدې نو لوط ﷺ [ددوی] دراتلو [په وجه سره] ﴿سِيٓءَ بِهِمۡ﴾ خکه [غمژن شو] چه هغوی د ویرښائسته خوانانوپه شکل کښې راغلي وې او لوط ﷺ دوی لره بنیادم ګڼړل او دخپل قوم دنامعقوله حرکت خیال شو ورسره [او] په دې وجه ﴿وَضَاقَ بِهِمۡ ذَرۡعٗا﴾[ددوی] دراتلو [په سبب زړهٔ تنګې شو او] فرښتو چه هرکله دا حالت ولیدونو ﴿وَقَالُواْ﴾[ هغه فرښتو ووئیل] ته دځه خبرې ﴿لَا تَخَفۡ وَلَا تَحۡزَنۡ﴾[ فکرمه کوه او مه غمژن کیږه] مونږ بنیادم نه یو بلکه دعذاب فرښتې یو لکه داقول دالله تعالی دې [انا رسل ربك ](۱) او ددې عذاب نه ﴿إِنَّا مُنَجُّوكَ وَأَهۡلَكَ إِلَّا ٱمۡرَأَتَكَ كَانَتۡ مِنَ ٱلۡغَٰبِرِينَ﴾[ مونږ به تالره او ستاخاصومتعلقینو لره بچ کړو بغیر ستادبی بی نه چه هغه په عذاب کښې دپاتې کیدونکو سره به وی ] او تالره به سره دمتعلقینو ددې نه بچ کړو ﴿إِنَّا مُنزِلُونَ عَلَىٰٓ أَهۡلِ هَٰذِهِ ٱلۡقَرۡيَةِ رِجۡزٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ﴾ [ مونږ ددې کلی په] باقی [اوسیدونکو باندې یو آسمانی عذاب ] زمکې نه علاوه په طبعي اسبابو سره ﴿بِمَا كَانُواْ يَفۡسُقُونَ﴾[ ددوی دبد کارو په سزا کښې نازلوونکې یو] چنانچه هغه کلې الټه‌کړې شو اود غیبی ګټو باران پرې وشو ﴿وَلَقَد تَّرَكۡنَا مِنۡهَآ ءَايَةَۢ بَيِّنَةٗ لِّقَوۡمٖ يَعۡقِلُونَ﴾[ اومونږ ددغې کلی څه ظاهری نښې ] تراوسه [پریښنو دې دی دهغو خلقو د] عبرت د[پاره کوم چه عقل لری ] نو دمکې خلق چه شام ته په سفر ځی په دغو ورانو کنډرونو تیریږی اوکوم چه دعقل خاوندان وو هغوی ترې نه نفع هم اخسته چه ویریدل به او ایمان به یې راوړو.

## معارف او مسائل

﴿وَلُوطًا إِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهِۦٓ إِنَّكُمۡ لَتَأۡتُونَ ٱلۡفَٰحِشَةَ﴾ دلته لوط ﷺ د خپل قوم دخلقو درې سخت ګناهونه بیان کړی دی ، اول نارینه د نارینه سره بدکاری ، دویمه لار شوکول ، دریمه پخپلو مجلسونو کښې ښه په ډاګه د ټولو په وړاندې ګناه کول.

قرآن عظیم الشان دا دریمه ګناه په ګوته کړې نه ده . دې څخه معلومه شوه چې هره ګناه چې خپل ذات کښې ګناه وی هغه لره په ډاګه کول بله مستقله ګناه جوړیږی ، د تفسیر ځینې امامانو دې ځاې کښې هغه ګناهونه داسې شمیرلی دی کوم ګناهونه به د ټولو په مخکښې کول لکه لاروی په کاڼړو ویشتل او هغوئ پورې توقې کول لکه د ام هانی رضي الله عنها په حدیث پاك کښې چې ددې بیان راغلي دې(۲) اوځینې حضراتو فرمائیلی دی چې دوئ به خپله دغه مشهوره بې حیائی په پټه نه کوله بلکه ښه په ښکاره پخپلو مجلسونو کښې د یوبل په وړاندې کوله : [العیاذ بالله].

په دې دریو بیان شوؤ ګناهونو کښې د ټولو نه زیاته سخته ګناه ړومبئ ده ، چې په دنیا کښې د دوئ څخه ړومبې چا هم دغه ګناه نه وه کړې بلکه ځنګلی ځناور هم دغسې چرې نه کوی . دامت په اتفاق سره دا ګناه د زنانه هم زیاته سخته ده . [روح المعانی](۳)

(۱) ترجمه:-مونږ ستا د رب د طرفنه رالیږلې شوی یو.
(۲) جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب ومن سورة العنكبوت [ج:۲ ص:۱۵٤]
(۳) روح المعاني [ج: ۱۵ ص:۲۷٤]

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ

او مدین ته [اولیږو مونږه] | رور دهغوئ

| اودمدین خلقو ته مود هغوئ [قومي] رور

شُعَيْبًا فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَارْجُوا الْيَوْمَ

شعیب | پس اووئیل هغه | اے زما قومه | بندګی کوئ دالله | او امید لرئ | دورځي

شعیب لیږلي وو | نوهغه ورته اووئیل چي ائې زما قومه تاسو دالله ﷻ عبادت کوئ | او دآخرت

الْاٰخِرَ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ۝ فَكَذَّبُوْهُ

آخرې | اومهٔ جوړیږئ | په زمکه کښي | فسادکونکی | پس هغوئ دروغ اوګڼړو هغه

د ورځې امید ساتئ | او په ملك کښې فساد مه کوئ | نوهغوئ شعیب علیه السلام دروغژن اوګڼړلو

فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ۝

پس رااونیول هغوئ | یوې سختې زلزلي | پس شو هغوئ | په کور خپل کښي | مره پرمخي پراته |

نوزلزلې راګیر کړل | .............اوهغوئ سحر په خپلو کورونو کښې پرمخي پراته وو

وَعَادًا وَّثَمُوْدَا۟ وَقَدْ تَّبَيَّنَ لَكُمْ

او عادیان | او ثمودیان [مونږ هلاك کړل] | او ښکاره شوې دې | تاسو ته [هلاکت دهغوئ] |

اوعادیان اوثمودیان مو هلاک کړل | اود هغوی تباهي تاسو ته د هغوی د کورونو نه ښکاره ده

مِّنْ مَّسٰكِنِهِمْ ۫ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ

دکورونو دهغو نه | او ښائیسته ښکاره کړل هغوئ ته | شیطان | عملونه دهغوئ

[چې تش کنډرات پراته دی] | اوشیطان هغوی ته د هغوی بد عملونه ښائسته کړی وو

فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَكَانُوْا مُسْتَبْصِرِيْنَ ۝ وَقَارُوْنَ

پس منع ئې کړل هغوئ | دنیغي لارې نه | اوو هغوئ | ښه نظر والا [عقل فکر والا] | او قارون

نوهغوئ ئې د نیغې لارې نه منع کړی وو | حالانکه چې هغوئ ډیر هوښیاران وو | .........او قارون

وَفِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ ۫ وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مُّوْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ

او فرعون | او هامان مونږ هلاك کړل | او راغلي وو هغوئ ته | موسی | دښښو ښکارو سره |

او فرعون اوهامان مو هم هلاک کړی وو | او هغوئ ته موسی علیه السلام په ښکاره نخښو سره راغلي وو

فَاسْتَكْبَرُوْا فِي الْاَرْضِ وَمَا كَانُوْا سٰبِقِيْنَ ۝

پس تکبر اوکړو هغوئ | په زمکه کښي | حال داچې نهٔ وو هغوئ | وړاند وتونکی [زمونږنه] |

خو هغوئ په زمکه [د مصر] کښې تکبر اوکړو | اوهغوئ زمونږ د عذاب نه بچ نشو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَكُلًّا | أَخَذْنَا | بِذَنۢبِهِۦ | فَمِنْهُم | مَّنْ أَرْسَلْنَا |
| پس هریو [را] اونیوو مونږه | په ګناه دهغه سره | پس ځینی دهغوئ نه | هغه څوك دی | چی اولیږله مونږه |

نو مونږ تول د هغوئ دګناهونو په وجه اونیول | نو په بعضو باندې مو [ په کښې]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِ | حَاصِبًا | وَمِنْهُم | مَّنْ | أَخَذَتْهُ |
| په هغه باندې | هواکانړي ورونکی | او ځینی دهغوئ نه | هغه څوك دی | چی اونیوه هغه لره |

کانړي اورول | ..................او بعضی په کښې يوې چغې راونیول

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الصَّيْحَةُ | وَمِنْهُم | مَّنْ | خَسَفْنَا | بِهِ | الْأَرْضَ |
| يوې سختې چغې | او ځینی دهغوئ نه | هغه څوك دی | چی ننیستـه مونږه | هغه | په زمکه |

..................اوبعضې مو په کښې په زمکه ورننخ کړل ..................

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمِنْهُم | مَّنْ | أَغْرَقْنَا | وَمَا كَانَ اللَّهُ | |
| او ځینی دهغوئ نه | هغه څوك دی | چی غرق [ډوب] کړل مونږه | اونه وؤ الله | |

اوبعضې مو په کښې غرق کړل | .................. او الله ﷻ په هغوئ ظلم نه وو

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِيَظْلِمَهُمْ | وَلَٰكِن كَانُوا | أَنفُسَهُمْ | يَظْلِمُونَ ۝ |
| چی ظلم ئې کړې دې په هغوئ باندې | ولیکن وؤ هغوئ | په ځانونو خپلو باندې | چی ظلم ئې کولو |

کړې | ..................بلکه هغوئ پخپله په ځانونو ظلم کړې وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَثَلُ الَّذِينَ | اتَّخَذُوا | مِن دُونِ اللَّهِ | أَوْلِيَاءَ | كَمَثَلِ | الْعَنكَبُوتِ |
| مثال د هغه خلقو | چی نیولی ئې دی | بې | دالله نه | دوستان | پشان دمثال | دجولا دې |

کومو خلقو چې الله ﷻ پریخودې دې | اونور معبودان ئې جوړ کړی دی | د هغوئ مثال دجولاګۍ دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اتَّخَذَتْ | بَيْتًا | وَإِنَّ | أَوْهَنَ الْبُيُوتِ | لَبَيْتُ الْعَنكَبُوتِ |
| چی جوړوی | یو کور | او بیشکه | ډیر کمزورې دکورونو نه | خامخا کور دجولا دې |

چې هغه ځان دپاره یوه جاله جوړه کړی | اوپه کورونو کښې کمزورې کور د جولاګۍ کور دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَوْ كَانُوا | يَعْلَمُونَ ۝ | إِنَّ اللَّهَ | يَعْلَمُ | مَا | يَدْعُونَ |
| کاش چی وې دوئ | چی پوهیدلې | بیشکه الله | ښهٔ پیژنی | هغه | چی دوئ ورته اواز کوی |

کاش! چې هغوئ په دې خبره پوهیدلې بیشکه الله ﷻ ته هغه ټول څیزونه معلوم دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِن دُونِهِ | مِن شَيْءٍ | وَهُوَ | الْعَزِيزُ | الْحَكِيمُ ۝ | وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ |
| بې دهغه نه | څهٔ څیز | او هغه | غالب دې | او دحکمت خاوند دې | او دا مثالونه |

چې دوئ ئې دالله ﷻ نه بغیر بلنه کوی؟اوهغه دقدرت او د حکمتونو خاوند دې |اودا هغه مثالونه دی

**آسان ترجمه قرآن**

او د مدین طرف ته مونږ د هغوی ورور شعیب علیه السلام اولیږلو. پس هغوی اووئیل: اې زما د قوم خلقو! د الله پاک عبادت اوکړئ، او د آخرت د ورځې امید اوساتئ. او په زمکه کښې فساد کونکی مه ګرځئ. بیا

داسې اوشوه چه هغوی د شعیب علیه السلام تکذیب اوکړو، پس زلزلې هغه خلق راونیول، او هغوی په خپلو کورونو کښې پړمخې پریوتل او مونږ عادیان او ثمودیان هم هلاک کړل، او د هغوی تباهی په تاسو بانديې د هغوی د کورونو نه واضح شوې ده او شیطان هغوی ته د هغوی اعمال د هغوی په سترګو کښې ښکلې کولو سره هغوی د نیغې لارې نه منع کړې وو، حال دا چه هغوی ښه پوهه خلق وو او قارون، فرعون او هامان هم مونږ هلاک کړل . او موسٰی علیه السلام هغوی ته روښانه دلائل راوړی وو، خو هغوی په زمکه کښې د تکبر نه کار واخستلو، او هغوی (مونږ نه) او نه ګټله. نو مونږ هغوی ټول د ګناهونو په وجه بانديې اونیول، پس په هغوی کښې بعض هغه وو چه په هغوی بانديې مونږ د کاڼړو ورولکې هوا راولیږله، او څه هغه وو کوم چه یو آواز اونیول، او څه هغه وو کوم چه مونږ په زمکه کښې ښخ کړل او څه هغه وو کوم چه مونږ په اوبو کښې غرق کړل او الله پاک داسې نه وو چه په هغوی بانديې ئې ظلم کړې وو خو دې خلقو خپله په خپلو ځانونو بانديې ظلمونه کول. کومو خلقو چه د الله پاک نه سوا نور مددګاران نیولی دی د هغوی مثال د جولاګې په شان دې چه هغه یو کور جوړ کړې وی. او ښکاره خبره ده چه په ټولو کورونو کښې کمزورې کور د جولاګې وی. کاش چه دا خلق پوهیدلې! دا خلق چه د الله پاک نه سوا کومو څیزونو ته آواز کوی الله پاک ته هغه ښه معلوم دی، او هغه د اقتدار هم مالک دې د حکمت هم مالک دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا﴾ [او مدین والوته مونږ ددوی ] دبرادرئ [ورور شعیب] ﷺ [لره پیغمبر جوړ کړو ولیږلو ﴿فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ﴾ پس دوی وفرمائیل چه اے زما قومه دالله تعالی عبادت کوئ ] او شرك پریږدئ ﴿وَارْجُوا الْيَوْمَ الْآخِرَ﴾ [ او دقیامت دورځې نه وویریږی ] او انکار ئ مه کوئ ﴿وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ﴾ [او په زمکه کښې فساد مه خورئ ] یعنی حقوق الله او حقوق العباد مه ضائع کوئ څکه چه هغه خلق دکفر اوشرك سره دکم تول اوکم ناپ هم عادت وو چه په دې سره فساد خوریدل ظاهر وو ﴿فَكَذَّبُوهُ﴾ [پس هغو خلقو شعیب] ﷺ [لره دروغژن کړو ﴿فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ﴾ پس زلزلې دوی لره ونیول بیا هغوی په خپلو کورونو کښې نسکور پاتې شول ﴿وَعَادًا وَثَمُودَ﴾ او مونږ عادیانو او ثمودیانو لره هم ] ددوی دعناد او خلاف په وجه سره [هلاك کړل ﴿وَقَدْ تَبَيَّنَ لَكُمْ مِنْ مَسَاكِنِهِمْ﴾ او دا هلاك کیدل تاسوته ددوی د اوسیدو دمقاماتونه په نظر راځی] چه ددغو ورانو کلو کنډرونه تاسو ته چه شام ته ځئ په نظر راځی [او] حالت دهغوی دا ووچه ﴿وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ﴾ [شیطان ددوی ] بد [ عملونه ددوی په نظر کښې ښائسته کړی وو او] په دې ذریعه ئ ﴿فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ﴾ [دوی لره د] حقې [لارې نه منع کړی وو ﴿وَكَانُوا مُسْتَبْصِرِينَ﴾ او هغه خلق ] داسې [ هوښیار وو] لیونی او بې وقوفه نه وو مګر دلته دوی دخپل عقل نه کاروانه خستو ﴿وَقَارُونَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامَانَ﴾ [او مونږ قارون او فرعون او هامان لره هم ] ددوی دکفر په سبب [هلاك کړل ﴿وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مُوسَىٰ بِالْبَيِّنَاتِ﴾ او هغوی] درې واړو [ ته موسی] ﷺ [ښکاره دلیلونه ] دحق [راوړی وو ﴿فَاسْتَكْبَرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ بیا هغه خلقو په زمکه کښې سرکشی وکړه ﴿وَمَا كَانُوا سَابِقِينَ﴾ اوزمونږ ] دعذاب [ نه ئ تیښته ونه کړې شوه ﴿فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنْبِهِ﴾ نو مونږ ] په دې پنځو کښې [هریو لره ددوی دګناه په سزا

کښې ونیول ﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا﴾ پس په دوی کښې په ځنو مونږ سخته هوا راولیږله ] مراد ددې نه قوم د عاد دې ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ اَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ﴾ [ او په دوی کښې ځنولره په هیبتناك آوازسره یخ کړل ] مراد ددې نه قوم دثمود دې په وجه ددې قول دالله تعالی په سوره هود کښې [واخذالذین ظلموالصیحة](۱) ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ الْاَرْضَ﴾ او په دوی کښې ځنو لره مونږ په زمکه کښې ننویستل ] مراد ددې نه قارون دې ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ اَغْرَقْنَا﴾ [ او په دوی کښې ځنولره مونږه] په اوبوکښې [ډوب کړل ] مراد ددې نه فرعون او هامان دی [او] په دې خلقو چه کوم عذاب نازل شونو ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ﴾ [الله تعالی داسې نه وو چه په دوی ئې ظلم کولو ] یعنی چه بې وجهې ئې سزا ورکوله کومه چه په ظاهره دظلم مشابه ده اګر چه په واقع کښې په خپل ملك کښې دتصرف کولو په وجه سره داهم ظلم نه وو ﴿وَلٰكِنْ كَانُوْا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ﴾ [لیکن دې خلقو ] شراراتونه کول [ په خپلو ځانونو ئې ظلم کولو] چه ځانونه ئې دعذاب مستحق جوړ کړل او هلاك شول نو خپل نقصان ئې په خپله وکړو ﴿مَثَلُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوْتِ﴾ [کومو خلقو چه دخدائ نه سوا نور کارسازان تجویز کړی دی ددغو خلقو مثال په شان د جولاګی دې ﴿اِتَّخَذَتْ بَيْتًا﴾ کوم چه یو کور جوړکړو ﴿وَاِنَّ اَوْهَنَ الْبُيُوْتِ لَبَيْتُ الْعَنْكَبُوْتِ﴾ او بیشکه چه په ټولو کورونو کښې زیات بې کاره دجولاګی کور دې] پس لکه څنګه چه دې جولاګی په خپل خیال خان له دپناه ځائ جوړکړې دې مګر په واقع کښې دا دپناه ځائ د انتهائی کمزورئ په سبب دنشت برابردې دغه شان دا مشرکان خلق خپلو باطلو معبودانو لره په خپل ګمان کښې خپله پناه ګنړی مګر په واقع کښې دغه هیڅ پناه نه ده ﴿لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ﴾ [ که دوی] په حقیقت حال باندې [پوهیدې نو داسې به ئې نه کول] یعنی شرك به ئې نه کولو لیکن دوی نه پوهیږی نو څه وشو ﴿اِنَّ اللّٰهَ﴾ [الله تعالی] خو ﴿يَعْلَمُ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ﴾ [ددې ټولو څیزونو] په حقیقت او ضعف [پوه دې دکومو کومو چه هغه خلق دخدائ نه سوا عبادت کوی ] پس داڅیزونه خو نهایت ضعیف دی ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ [او دې] په خپله یعنی الله تعالی [زبردست حکمت والا دې] چه حاصل ئې په قوت علمی او عملی کښې کامل کیدل دی.

**معارف او مسائل**

دې آیتونو کښې د کومو پیغمبرانو ﷺ او دهغوئ ﷺ دقومونو واقعات چې په اجمالی ډول بیان شوی دی هغه په تیرو شوؤ سورتونو کښې په تفصیل سره بیان شو یدی . لکه د شعیب ﷺ ، قیصه چې په سورة اعراف او هود کښې دغه شان دعاد او ثمود قیصه هم په سورة اعراف او هود کښې تیره شوې ده ، او د قارون او فرعون او هامان قیصه په سورة قصص کښې اوس تیره شوه .

﴿وَكَانُوْا مُسْتَبْصِرِيْنَ﴾ دا د استبصار څخه مشتق دې چې د بصیرت په معنی دې او مستبصر په معنی د مبصر دې ، مراد دادې چې داخلق کوم چې شرك او کفر باندې کلك ولاړ دی او په

۱) اوهغه ظالمان یوې چغې رااونیول.

دې وجه عذاب او هلاکت کښې پریوتل ، څه لیوني یا بیوقوفان نه وو ، ددنیا په کار کښې ډیر بیدار او هوښیار وو خو د دوئ عقل او هوښیارتیا خالص دې دنیا سره تړون لرلو. دائې نه پیژندل چې دسزا او جزا یوه ورځ راتلونکې ده چې مکمل انصاف به په کښې کولې شي. ولې چې په دنیا کښې خو اکثر مجرمان اوظالمان خلق ښه په زور کښې ګرځي راګرځي اوظلم او مصیبت زپلې هم دغسې بې وسه پاتې کیږي ،د انصاف ددغې ورځې نوم قیامت او آخرت دې ، دې باره کښې د دوئ عقل بې کاره شوی وی

دامضمون په سورة روم کښې هم راتلونکې دې لکه فرمائی چې : ﴿يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْأٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُونَ﴾[1] [دا خلق خود دنیا په کارونو ښه پوهیږي مګر آخرت نه غافل دی.

او دتفسیر ځینې امامانو د ﴿وَكَانُوا مُسْتَبْصِرِينَ﴾ دامعنی خودلې ده چې دې خلقو خو په زړه کښې په ایمان او آخرت باندې هم یقین لرلو اود هغې په حقوالی ښه پوهیدل خو دنیوی غرضونو په انکار کولو باندې مجبور کړی وو.

﴿وَإِنَّ أَوْهَنَ الْبُيُوتِ لَبَيْتُ الْعَنكَبُوتِ﴾ د عنکبوت یعني جولاګی ډیرقسمونه دی ، داسې هم شته چې په زمکه کښې دننه اوسیږي او هم هلته جالې جوړوی خو په ظاهر تر دغه جولاګې مراد نه دې. بلکه دې ځخه هغه جولاګې مراد دې چې د چتونو وغیره لاندې جالې جوړوی ، او په کښې زوړند پاتې کیږی په دې کښې د مچ وغیره ښکار کوی ، ښکاره خبره ده چې د ټولو ځناورو مرغانو وغیره د جالو او کورونو په نسبت د جولاګی کور زیات کمزورې ځکه دې چې په پوکی او معمولی هوا هم راشلیږی ،نو په دې آیت مبارك کښې د غیر الله د عبادت کوؤنکو اوپه هغوئ باندې اعتبار او تکیه لرونکو مثال د جولاګی د جالې سره ورکړې شوې دې چې انتهائی کمزورې دې ، دغه شان کوم خلق چې د الله ﷻ ځخه سوا بتان یا په انسان وغیره باندې تکیه لری دهغوئ دا تکیه لرل داسې دی لکه چې دا جولاګی د خپلې جالې په تارونوباندې بهروسه لری.

**مسئله** :: د جولاګی دجالې ورانولو او دجولاګی د وژلو په باره کښې دعلماء کرامو اقوال مختلف دی. ځینې حضرات دا ځکه نه خوښوی چې دهجرت په موقعه دې جولاګی د غار ثور په خله کښې ژاله جوړه کړې وه چې د نبی اکرم ﷺ دحفاظت سبب جوړه شوې وه او په دې وجه ددې خیال او احترام ساتل پکار دی لکه خطیب چې د علی رضی الله عنه نه د دې وژلو بندیز نقل کړې دې[2] ، خو ثعلبی او ابن عطیه رحمهما الله د علی رضی الله عنه دا روایت نقل کړې دې چې :

﴿طهروا بيوتكم من نسج العنكبوت فـان تركه يورث الفقر﴾ [د جولاګی د جالو ځخه خپل کورونه ځکه صفاساتئ چې دې سره غریبی او نیستی پیدا کیږی].

ددې دواړو روایتونو سند اعتباری نه دې خو د دویم روایت[3] تائید د نورو احادیثو ځخه ثابت دی چې دکومو دمخې چې د مکانونو اودصحنونو صفا لرلو حکم دې .[روح المعانی][4]

---

[1]) ترجمه:- او داخلق صرف دنیاوی ژوندی پیژنی او دا خلق دآخرت نه بې خبره دی.
[2]) الدرالمنثور [ج:۸ ص:۳۷]
[3]) جامع الترمذي ، ابواب الإستئذان والأدب باب ماجاء في النظافة [ج:۲ ص:۱۰۷]
[4]) روح المعاني [ج: ۱۵ ص:۲۸۲]

| |
|---|
| وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ |
| او دا مثالونه \| \| |
| \|او دا هغه مثالونه دي |
| نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ ۝ خَلَقَ اللّٰهُ |
| بیانوؤ مونږه \| دپاره دخلقو \| اونۀ پوهیږي په دې باندې\| مګر عالمان خلق \| پیدا کړي دی الله \| |
| چې مونږئې خلقو ته بیانوؤ \| او په دې باندې هغه خلق پوهیږي \| چې دپوهې خاوندان وی \| الله ﷻ |
| السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۝ |
| آسمانونه \| اوزمکه \| په حقه سره\| بیشکه \| په دې کښې يوه نښه ده \| دپاره دمومنانو \| |
| آسمانونه اوزمکه ډیر په مناسبه طریقه پیدا کړی دی \| او په دې کښې مومنانو دپاره غټ دلیل دې |

### آسان ترجمه قرآن

او مونږ دا مثالونه دخلقو د فائدې دپاره ورکوو، او په دې باندې پوهیږي هم هغه خلق چه د علم والا دی. الله پاک اسمانونه او زمکې د حق (مقصد دپاره) پیدا کړی دی په حقیقت کښې په دې کښې دایمان راوړونکو دپاره لويه نخښه ده.

### خلاصه تفسير

[او] چونکه مونږه ددې څيزونو حقيقت پيژنو په دې وجه ﴿وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ﴾ [ مونږه دې ] قرآنی [مثالونولره] په کومو کښې چه يومثال په دې مقام ذکر دې [دخلقود] پوهولو [دپاره بیانوو او] په دې مثالونو سره پکار وه چه ددې خلقو جهل په علم سره بدل شوې وې مګر ﴿وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ ۝﴾ [په دې مثالونو باندې صرف علم والاپوهيږي ] خواه بالفعل عالم وی یا دانجام په اعتبار سره يعنی دعلم او حق طالب وی او داخلق عالمان هم نه دی او طالبان هم نه دی په دې وجه په جهل کښې اخته وسيږی ليکن ددوی د جهل سره به هم حق حق پاتې وی کوم لره چه خدایئ پیژنی او په خپل بیان سره ئې ظاهروی پس ثابته شوه چه غيرالله تعالی مستحق دعبادت نه دی وراندې دالله تعالی دعبادت دمستحق کيدو دليل دی چه ﴿خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ﴾[الله تعالی آسمانونو او زمکې لره په مناسب طور سره جوړکړی دی ] چنانچه هغوئ ئې هم تسليموی ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۝﴾[ دايماندارو دپاره په دې کښې] دده دمستحق کيدو دعبادت [لوئ دليل دې ].

### معارف او مسائل

﴿وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ ۝﴾ د مشرکانو د خدايانو د کمزورئ مثال يې په جولا سره ورکړو او ددې مثال ورکولو څخه روستو فرمائي چې مونږ په داسې ښکاره مثالونو سره د توحيد حقيقت بيانوؤ خو ددې مثالونو څخه هم پوهه صرف ددين علماء کرام حاصلوی ، نور خلق څه سوچ فکر نه کوی چې حق په هغوئ باندې واضح شي.

**د الله تعالی په نزد عالم څوک دي؟:** امام بغوی رحمه الله پخپل سند سره د جابر رضي الله عنه څخه روایت کړي دي چي نبی اکرم ﷺ ددې آیت مبارك تلاوت اوکړو او وې فرمائيل چي عالم هم هغه څوك دي چي د الله ﷻ په کلام کښې غور، فکر اوړ هغه په طاعت باندې عمل کوی او دهغې کارونو څخه ځان ساتی په کومو چي الله ﷻ خفه کيږی[1].

دي څخه معلومه شوه چې عالم دې ته نشي وئيلې چې صرف د قرآن عظيم الشان وحديث په الفاظو باندي پوهيږی، تر څو چې په قرآن پاك کښې دتدبر او غور وفکر کولو عادت ځان کښې پيدا نه کړی او تر څو چې خپل عمل د قرآن عظيم الشان مطابق جوړ نه کړی.

په مسند احمد کښې د عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روايت دې، فرمائی چې ما د نبی اکرم ﷺ څخه يو زر مثالونه زده کړی دی، ابن کثير رحمه الله ددې په نقل کولو سره ليکی چې داد عمروبن العاص رضي الله عنه ډير لوئې فضيلت دې ځکه چې الله ﷻ په دې آيت مبارك عالم هغه چاته فرمائيلي دي چي د الله ﷻ اورسول ﷺ بيان کړی مثالونه باندې ځان پوهوی[2].

اوعمرو بن مره فرمائيلی دی چې کله زه داسې يو آيت مبارك ته ور اورسم چې پوهه ورته نه رسی نو زيات غمژن ځکه شم چې الله ﷻ فرمائی چې: ﴿وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَا إِلَّا الْعَالِمُونَ﴾ [ابن کثير][3]

[الحمد لله پاره نمبر ۲۰ ختمه شوه]

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أُتْلُ | مَآ | أُوْحِيَ | إِلَيْكَ | مِنَ الْكِتٰبِ | وَأَقِمِ | الصَّلٰوةَ ؕ |
| اولوله ته | هغه | چي وحی کيږی | تاته | دکتاب نه | او قائيموه | مونځ |
| [ائې نبی] کوم کتاب چې تاته دوحی په ذريعه درکړې شوې دې اهغه لوله او مونځ پابندئ سره کوه | | | | | | |
| إِنَّ الصَّلٰوةَ | تَنْهٰى | عَنِ الْفَحْشَآءِ | وَالْمُنْكَرِ ؕ | وَلَذِكْرُ اللّٰهِ | | |
| بيشکه چی مونځ | منع کوی سړې | دبې حيايئ نه | اودخرابو [ناروا]کارونونه | اوخامخا ذکر دالله | | |
| بيشکه مونځ د خرابو او بې حيائی دکارونو نه منع کوی \| اودالله ﷻ يادول ډيره لويه خبره ده | | | | | | |
| أَكْبَرُ ؕ | وَاللّٰهُ | يَعْلَمُ | مَا | تَصْنَعُوْنَ ۝ | | |
| [تر ټولو] لوئ دې | او الله | پوهيږی | په هغه | چې تاسو ئې کوئ | | |
| ..............اوالله ﷻ ستاسو په کارونو پوهه دې | | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن**

**(اې پيغمبره!) کوم کتاب چه تا ته د وحی په ذريعه رالیږلې شوې دې، د هغې تلاوت کوه او مونځ قائموه، بيشکه مونځ د بې حيايئ او بدو کارونو نه منع کوی، او د الله پاک ذکر د ټولو نه لوئې څيز دې. او څه چه تاسو کوئ، الله پاک په هغه ټولو باندې پوهيږی.**

[1] تفسير البغوي هذه الآية [ج:٦ ص:٢٤٣] وإتحاف الخيرة المهرة للبوصيرى رقم الحديث :[٥٧٧٩]

[2] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٢٧٩] و مسند احمد، حديث عمر بن العاص رضى الله عنه رقم الحديث:[١٨٢٨١]

[3] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٢٨٠]

## خلاصه تفسير

اې محمد ﷺ چونکه ته رسول يې په دې وجه ﴿أُتْلُ مَآ أُوْحِيَ إِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ﴾ [کوم کتاب چې په تا وحی کړې شوې دې] دتبليغ دپار[دې لره ] د خلقو په وړاند [ولوله] او دقولي تبليغ سره عملي تبليغ هم کوه چې ددين کار ددوی په وړاند کوه دوی ته يې ښايه خاصکر ﴿وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ﴾ [دمونځ پابندي ساته] ځکه چې په ټولو عملونو کښې مونځ لوئ عبادت هم دې او اثار يې هم ډير دور رس او ډير لرې پورې دی چې ﴿إِنَّ الصَّلٰوةَ﴾ [بيشکه مونځ] دخپلې وضع په اعتبار سره ﴿تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾ [دبې حيايۍ او ناکاره کارونونه منع کول کوی] يعنی دحال په ژبه سره وائی چې ته دکوم معبود انتهائی تعظيم کوې او دفرمانبردارۍ اقرار يې کوې په بې حيايۍ او ناکاره کارونو کښې ستا اخته کيدل دهغه په شان کښې بې ادبی ده [او] دغه شان دمونځ نه سوا چې څومره نور نيک کارونه دی دټولو پابندی مناسب ده ځکه چې هغه ټول قولا يا فعلا دالله تعالی ياد دی ﴿وَلَذِكْرُ اللّٰهِ أَكْبَرُ﴾ [او دالله تعالی ياد ډير لوئ شې دې او] که تاسو دالله تعالی په يادو کښې غفلت کوئ نو داهم واورئ چې ﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ﴾ [الله تعالی ستاسو ټول کارونه پيژنی] څه چه کوئ هغسې بدله به درته ملاويږی

## معارف او مسائل

﴿أُتْلُ مَآ أُوْحِيَ إِلَيْكَ﴾ په تيرو شوؤ آيتونو کښې د څو پيغمبرانو ﷺ اود هغوئ د امتونو بيان وو چې په کښې دځو لويولويو سرکشو کافرانو او په هغوئ باندې د قسماقسم عذابونو بيان وو، چې په کښې رسول الله ﷺ اودامت دمؤمنانو دپاره تسلی هم ده چې پخوانو پيغمبرانو دخپلو مخالفينو په قسماقسم زياتونو باندې صبر اوکړو ، او په دې سره دوئ او امت ته ئې دا ښودنه کول هم دی چې د تبليغ او بلنې په کار کښې په هيڅ طريقه مرانه بائيلل نه دی پکار.

**دخلقو د اصلاح لنډه او ټول اړخيزه نسخه** :: دلته په رومبی آيت کښې رسول الله ﷺ ته يوه لنډه ټول اړخيزه نسخه داسې خودلې شوېده چې په هغې عمل کو لو سره په پوره دين باندې دعمل کولو لارې پرانستې کيږی يعنی خلاصيږی اودعادت له مخې په دې کښې ټول راپيښيدونکی بنديزونه لرې کيږی. ددغې اکسير نسخې دوه برخې دی. يوه د قران پاک تلاوت او بله د مونځ قائمول او دلته څو اصل مقصود هم دا دې چې خلق هم د دواړو برخو پابند جوړشی. څو د تاکيد او شوق پيدا کولو په غرض اول رسو ل الله ﷺ ته ددې حکم ورکړې شوې دې چې د امت هم ورته زيات شوق پيدا شی او درسول الله ﷺ په عملی تعليم سره ئې پخپله عمل کول آسان شی په دې کښې دقرآن کريم تلاوت څو د ټولو کارونو روح او اصل بنياد دې ، دې نه پس بل څيز مونځ قائيمول دی ، د نورو فرائضو او عملونو نه په بيل بيل بيانولو سره ددې حکمت ئې دا هم بيان کړې دې چې يو طرفته مونځ پخپله پخپل ذات کښې لوئې مهم عبادت دې او ددين ستن ده ، و رسره بله فائده ئې دا هم ده چې څوک مونځ قائم لری نو دهغې په برکت سره د فحشو او منکرو کارونو نه هم سرې منع کوی. فحشاء داسې هر يو کار او خبرې ته وئيلې شی چې د هغې خرابی دومره ښکاره وی چې هر د عقل خاوند کافر او مؤمن ئې بد ګنړی لکه زنا ، په ناحقه قتل کول ، غلا کول ، ډاکه وغيره . اومنکر هغه خبره او کار دې چې اهل شرع خلق دهغې په حراموالی او ناجائزوالی باندې متفق وی. په دې بنياد د فقهاء کرامو او

امامانو په اجتهادي اختلافاتو کښې يو اړخ ته منکر نشي وئيلې.
دفحشاء او منکر په دوؤ لفظونو کښې ټول جرمونه او ظاهري باطني ګناهونه راغلل چې پخپله هم سراسر فساد دی او په نيکو عملونو کښې دټولو نه لوئې بنديزونه هم دی.

**دټولو ګناهونو نه دمونځ دبنديز راوستولو مطلب:** مونځ چې دټولو ګناهونو نه بنديز راولی نو د ډيرو مستندو احاديثو د مخې ددې مطلب دادې چې د مونځ د قائميدلو خصوصي تاثير دادې چې ددې ادا کوؤنکی د ګناهونو کولو نه خلاصيږی خو شرط دادې چې صرف مونځ کول نه بلکه دقرآن پاک دالفاظو مطابق مونځ قائمول وی، د اقامت معنی نيغ اودرول دی چې هيڅ کوږوالئ په کښې نه وی، په دې بنا د مونځ د قائمولو مطلب دادې چې ددې ظاهري او باطني آداب په داسې شان ادا کړی څنګه چې رسول الله ﷺ په عملي طور سره ادا کولو سره امت ته خودلی دی او ټول عمر ئې په زباني ډول هم خودنه کړيده لکه دا چه بدن، جامې دمونځ ځ ئې دې مکمل پاک وی. د جمعې د مونځ هم پابند وی او دمونځ ټول عملونه د سنت طريقې مطابق وی. دا خو ظاهري آداب شو، باطني آداب ئې دادی چې په پوره خضوع او عاجزئ سره دالله ﷻ په حضور کښې داسې ولاړ وی چې ګويا الله ﷻ سره عرض معروض کوی. دغه شان څوک چې مونځ قائم لری نو د الله ﷻ د طرفنه هغه ته پخپله د نيکو عملونو توفيق ورکولې شی او د ګناهونو نه خلاصولې شی. او څوک چې مونځ هم ادا کوی او بيا هم د ګناهونو نه خلاص نه شی نو پوهه دې شی چې هم ددوئ په مونځونو کښې نقصان دې. لکه چې عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دې چې درسول الله ﷺ نه تپوس اوشو چې د ﴿إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾ څه مطلب دې؟ نو هغه اوفرمائيل چې [من لم تنهه صلوته عن الفحشاء والمنكر فلا صلوة له] [عمران بن حصين رضي الله عنه په روايت سره ابن ابی حاتم په خپل سند سره او طبرانی د حديث د ابی معاويه نه] [1] يعنی دچامونځ چې هغه د فحشاء او منکرو نه منع نه کړی نو د هغه مونځ هيڅ څيز نه دې.

دغه شان د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چې [لاصلوة لمن لم يطع الصلوة] [ روايت کړې دې ابن جرير رحمه الله په خپل سند سره] [2] يعنی د هغه چا مونځ شته دې نه چا چې دخپل مونځ اطاعت او نه کړو. او د مونځ اطاعت دادې چې فشحاء او منکر نه منع شی. او ابن عباس رضي الله عنه دبيان شوی آيت په تفسير کښې فرمائيلی دی چې دچا مونځ هغه نيکوعملونو طرفته رانولی او دمنکراتو نه منع نه کړی نو داسې موټږ هغه د الله ﷻ نه نور هم لرې کوی.
ابن کثير ددې درې واړو روايتونو نقل کولو نه پس غوره داګڼلې ده چې دا مرفوع احاديث نه دی بلکه دعمران بن حصين رضي الله عنه، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه خپل اقوال دی يعنی دا تفسير دوئ په خپله کړې دې [3]. او د ابوهريره رضي الله عنه د روايت ترمخه يو سړې د نبی

---

[1] ) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[١٨١٨٦] والمعجم الكبير للطبراني (بألفاظ مختلفة) رقم الحديث: [١١٠٢٥]

[2] ) تفسير الطبري لابن جرير [ج:٢٠ ص:٤١ ]

[3] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٢٨١]

کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چې فلانې د شپې تهجد کوي ، چې صبا شي نو بیا غلا کوي ، نو نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چې زر به ئې دغه مونځ د غلا کولو نه منع کړي.[ابن کثیر](١) په ځینې روایتونو کښې دا هم دی چې د رسول الله ﷺ ددې ارشاد نه پس هغه دخپلو ګناهونونه توبه اوویستله.

**د یوې شبهې جواب** :: دلته ځینې خلق دا شبه کوي چې ډیر مونځ ګزار خلق په لویولویو ګناهونو کښې اخته لیدلی شي چې په ظاهره ددې آیت د ارشاد نه خلاف معلو میږي.

ځینې حضرات ددې جواب کښې فرمائي چې آیت خو دا فرمائي چې مونځ ګزار مونځ د ګناه نه منع کوي. خو دا ضروري نه دی چې هغه دې هم منع شي. قرآن و حدیث ټول خلق د ګناهونو نه منع کوي خو ډیر خلق دغې منع کولو ته خیال نه کوي او ګناهونو نه نه منع کیږي. په خلاصه د تفسیر کښې هم دا توجیه راخستې شوې ده.

خو اکثرو مفسرینو فرمائیلي دي چې ددې مطلب دا نه دې چې مونځ صرف د ګناهونو نه د منع کیدو حکم ورکوي بلکه د مونځ خصوصا دا اثر هم دې چې ددې ادا کوونکي د ګناهونو نه دمنع کیدو توفیق بیا مومي[پیدا کوي] . اوڅوک چې دا توفیق بیا نه مومي [پیدا نه کړي] په غور کولو سره به معلومه شي چې ددهٔ په مونځ کښې به څه نقص وي او دمونځ قائمولو حق به ئې نه وي ادا کړې او د اوسنو بیان رحمهم الله دې ته غوره وئیلي دي(٢) . او ددې مطلب لحاظ دې کښې سره دې ته هم اشاره کړې شوې ده چې په مونځ کولو سره دګناهونو نه د خلاصیدو اصلي وجه داده چې الله جل جلاله پخپله هغه ته مخه کوي ، دهغه ذکر په فرښتو کښې کوي او د هغې په برکت سره دګناهونو نه خلاصې بیامونده شي.

| |
|---|
| وَلَا تُجَادِلُوٓا |
| اومهٔ کوئ بحث [جګړه] |
| او اهل کتابو سره په سختئ نه بلکه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَهْلَ الْكِتٰبِ | اِلَّا | بِالَّتِيْ | هِيَ | اَحْسَنُ | اِلَّا الَّذِيْنَ |
| داهل کتابو سره | مګر | په هغه طریقه | چې هغه | ډیره ښه وي | سوا دهغه کسانونه |
| په مناسبه طریقه سره بحث کوئ ......اوکه څوک په کښې زیاتي | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ظَلَمُوْا | مِنْهُمْ | وَقُوْلُوْٓا | اٰمَنَّا | بِالَّذِيْٓ |
| چې ظلم ئې کړې وي | دهغوئ نه | او وایئ | چې ایمان راوړې دې مونږه | په هغه څیز |
| اوکړي نو بیله خبره ده ......اوتاسو دا وایئ چې زمونږ په هغه کتاب هم ایمان دې کوم چې | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اُنْزِلَ | اِلَيْنَا | وَاُنْزِلَ | اِلَيْكُمْ | وَاِلٰهُنَا |
| چې نازل کړې شوې وي | مونږ ته | او چې نازل کړې شوې دې | تاسو ته | او معبود زمونږ |
| مونږ ته نازل شوې دې او په هغه کتاب هم چې تاسو ته نازل شوې دې اوزمونږ | | | | |

(١) مسند احمد ،مسند ابی هريرة رضی الله عنه رقم الحديث:[٩٧٧٧]و ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٢٨١ ، ٢٨٢]

(٢) تفسير ابن جرير الطبري [ج:٢ ص:٤٦]و تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص: ٢٨٢]

وَإِلَٰهُكُمْ وَاحِدٌ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ۝ وَكَذَٰلِكَ

او معبود ستاسو | يودي | او مونږ | دهغه الله | فرمانبردار يو | او دارنګې |

او ستاسو معبود يو دي | اومونږ دهغه ټول حكمونه منو | ..................او هم دغه شان

أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ ۚ فَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ

نازل کړي دي مونږه | تاته | كتاب | پس هغه كسان اچې ورکړي وو مونږ هغوئ ته | کتاب

مونږ تاته دا كتاب راوليږلو | ............... نو چاته چې مونږ وړاندي كتاب وركړې وو

يُؤْمِنُونَ بِهِ ۖ وَمِنْ هَٰؤُلَاءِ مَن يُؤْمِنُ

هغوئ ايمان راوړی اپه دې باندې | او ځینی ددې [مکې د] خلقو نه | هغه څوك دی | چې ايمان راوړی

اوس هغوئ په دې کتاب هم ايمان راوړی | او په دوئ [مكې والو] كښې هم بعضې خلق په

بِهِ ۚ وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا إِلَّا الْكَافِرُونَ ۝ وَمَا كُنتَ

په دې باندې | او نه كوی انكار | دآيتونو زمونږ نه | مگر کافران خلق | اونه وې ته |

دې [قرآن] ايمان راوړی | اوزمونږ دآيتونو نه خو دکافرانو نه بغير بل څوك انكار نه كوی |

تَتْلُو مِن قَبْلِهِ مِن كِتَابٍ وَلَا تَخُطُّهُ بِيَمِينِكَ

چې لوستو به دې | مخکښی ددې نه | څه کتاب | اونه ليكلو تا هغه | په ښی لاس خپل سره

اوددې نه وړاندې تا چرته كتاب نه وو لوستې | اونه دې په خپل ښی لاس

إِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُونَ ۝ بَلْ هُوَ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ

كه داسې وې | نوضرورپه شك به كښې پريوتې ووا | باطل پرست خلق | بلكه دا قرآن | نښې دی ښکاره

كتاب ليكلې شو | هغه وخت به دربانډې بيا دې باطل پرستوشكونه كول | بلكه دا خو ښکاره دليلونه دی

فِي صُدُورِ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ ۚ وَمَا يَجْحَدُ

په سينو [زړونو] كښې | دهغه كسانو | چې وركړې شوې دې | ورته علم | او انكار نه كوی |

د هغه خلقو په سينو كښې كومو ته چې علم وركړې شوې دې | اوزمونږ دآيتونو

بِآيَاتِنَا إِلَّا الظَّالِمُونَ ۝ وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ

دآيتونو زمونږ نه | مگر | ظالمان خلق | او وائی دا خلق اولې | نازلې نه کړې شوې | په ده باندې

نه خو نور څوك نه صرف ظالمان انكار كوی | اودوئ وائی چې په دې پيغبر باندې دخپل رب

آيَاتٌ مِّن رَّبِّهِ ۖ قُلْ إِنَّمَا الْآيَاتُ عِندَ اللَّهِ وَإِنَّمَا أَنَا

نښې | دطرفه درب خپل نه | ورته اووايه | بيشكه نښې | دالله سره دی | او بيشكه زه |

د طرف نه څه [غيبی] نښې ولې رانغلې | ورته اووايه چې نښې خو دالله ﷻ په قبضه كښې دی

نَذِيرٌ مُّبِينٌ ۝ أَوَلَمْ يَكْفِهِمْ أَنَّا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ

يرونكې يم | ښكاره | آيا كافی نه ده دوئ لره | دانښه چې بيشكه | نازل كرو مونږه | په تا باندې |

او زه خو يو ويرونكې يم | چې صفا صفا وينا كوم | آيا دوئ دپاره دا خبره كافی نه ده | چې مونږ تاته دا

الْكِتٰبَ يُتْلٰى عَلَيْهِمْ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَرَحْمَةً
كتاب | چې اورولې كيږي | دوئ ته | بيشكه | په دې كتاب كښې | خامخا رحمت دې |
كتاب رالېږلې دې | چې دوئ ته لوستلې شي | بيشكه په دې كتاب كښې دايماندارو دپاره رحمت

وَّذِكْرٰى لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ بَيْنِيْ
او نصيحت دې | دپاره دهغه قوم | چې ايمان راوړي | اورته اووايه | كافي دې الله | په منځ زما |
او نصيحت دې | [اے نبي ﷺ] ته ورته اووايه | چې صرف يو الله ﷻ زما او ستاسو په مينځ كښې

وَبَيْنَكُمْ شَهِيْدًا ۚ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ
او په منځ ستاسو كښې | په حيثيت دګواه سره | معلوم دي هغه ته | هغه څه | چې په اسمانونو كښې دي
ګواهئ دپاره كافي دې | ......... هغه ته دآسمانونو او د زمكې هر څه معلوم دي

وَالْاَرْضِ ۭ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوْا
او په زمكه كښې دي | او هغه كسان | چې ايمان ئې راوړو | په باطل باندې | او كفر ئې اوكړو
......... او څوک چې په ناحقو يقين كوي | او دالله ﷻ نه انكار كوي

بِاللّٰهِ ۙ اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝ وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ
په الله باندې | دا كسان چې دي | هم دوئ | په خساره كښې دي | او زر غواړي دوئ ستانه
نو هم دغه خلق تاوانيان دي | ......... اودا خلق د عذاب په غوښتلو

بِالْعَذَابِ ۭ وَلَوْلَآ اَجَلٌ مُّسَمًّى لَّجَاۗءَهُمُ
عذاب | اوكه نه وې نيته | مقرر كړې شوې | نو خامخا به راغلې وې | په هغوئ باندې
تندي يعنې تلوار كوي | اوكه چرې [دوړاندې نه دهرڅيز] وخت مقرر نه وې | نو په دوئ باندې به

الْعَذَابُ ۭ وَلَيَاْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝
عذاب | او خامخا هغه به راځي دوئ باندې | ناساپه | او دوئ به | خبر هم نۀ وي |
عذاب راغلې وو | او عذاب به په دوئ ناګهانه راشي | او دوئ ته به خبر هم نه وي

يَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ ۭ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ۝ۙ
او زر غواړي دوئ ستانه | عذاب | او بيشكه | دوزخ | خامخا چاپيره دې | دكافرانونه |
دوئ په تا باندې د عذاب راتلو تلوار كوي | او په دې كښې شک نشته | چې دكافرانو نه به جهنم راتاوېږي

يَوْمَ يَغْشٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ
په كومه ورځ | چې راخورشي په دوئ باندې | عذاب | دپاسه ددوئ نه | او دلاندې دخپو ددوئ نه |
په كومه ورځ چې به پرې عذاب د پورته نه اود پښو نه دلاندې نه دوى راګير كړي

وَيَقُوْلُ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝
او وبه وائي [ورته الله] | اوڅكئ مزه | دهغه عملونو | چې وئ تاسو | چې كول به مو
او الله ﷻ به ورته اووائي | چې تاسو څه كول دهغې نه خوند واخلئ |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې مسلمانانو!) د اهل کتابو سره بحث مه کوئ، مګر په داسې طریقه چه غوره وي، خو په هغوی کښې چه څوک زیاتې کوي د هغوی خبره بیله ده او (هغوی ته) دا اووایه چه: مونږ په دې کتاب باندې هم ایمان راوړې دې کوم چه په مونږ باندې نازل کړې شوې دې، او په هغې باندې هم کوم چه په تاسو باندې نازل کړې شوې وو، او زمونږ او ستاسو معبود یو دې، او مونږ هم د هغه فرمانبردار یو. او (اې پیغمبره!) دغه شان مونږ په تا باندې کتاب نازل کړې دې، په دې وجه چه مونږ کومو خلقو ته کتاب ورکړې دې هغوی په دې باندې ایمان راوړی، او په دې (بت پرستو) کښې هم بعض خلق دي کوم چه په دې باندې ایمان راوړي او زمونږ د آیتونو انکار صرف هغه خلق کوي کوم چه کافر دي. او تا د دې نه مخکښې نه څه کتاب لوستلو، او نه دې څه کتاب په خپل لاس باندې لیکلو. که داسې وې نو دغه وخت به باطل پرستو شک کولې شوې حقیقت خو دا دې چه دا قرآن کریم د داسې نخښو مجموعه ده کوم چه د هغه خلقو په سینو کښې بالکل واضح دي چاته چه علم ورکړې شوې وو، او زمونږ د آیتونو انکار صرف هم هغه خلق کوي کوم چه ظالمان دي. او دا خلق وائي چه: په دې (پیغمبر (ص)) باندې د دهٔ د رب د طرف نه نخښې ولې نازلې نه کړې شوې؟ (اې پیغمبره! دوی ته) اووایه چه: "نخښې صرف الله پاک سره دي، او زه خو یو واضح طریقې سره خبردار کونکې یم. آیا د دوئ دپاره دا (نخښه) کافی نه ده چه مونږ په تا باندې دا کتاب نازل کړې دې کوم چه دوئ ته لوستلو سره اوروليې شي؟ یقیناً په دې کښې د هغه خلقو دپاره لوئې رحمت او نصیحت دې چه منونکي وي. اووایه چه: زما او ستاسو ترمینځه د ګواهئ دپاره الله پاک کافی دې، هغه ته د ټولو څیزونو علم دې، کوم چه په آسمان او زمکه کښې موجود دي. او کومو خلقو چه په باطل باندې ایمان راوړې دې، او د الله پاک انکار ئې کړې دې، هم هغه دي چه سخت نقصان اوچتونکي دي او دا خلق د عذاب دپاره تندي کوي. که (د عذاب) یو مقرر وخت نه وې نو په هغوی باندې به ضرور عذاب راغلې وې او هغه به راځي ضرور (مګر) دومره ناڅاپه چه دوئ ته به پته هم او نه لګي. دوی د عذاب دپاره تندي کوي، او یقیناً جهنم به دوی راګیر کړي. هغه ورځ چه عذاب به په دوئ باندې د پورته نه هم راخور شي، او د دوئ د لاندې نه هم، او وائي به چه: اوڅکئ د هغه کارونو خوند کوم چه تاسو کول.

### خلاصه تفسیر

[او] هر کله چې دنبی کریم ﷺ رسالت ثابت دې نو اے مسلمانانو درسالت نه دمنکرو سره کوم چې اهل کتاب دی تاسوته دخبرو کولو طریقه ښایو او دا تخصیص خکه دې چې اول خو دا په وجه ددې چې دوی عالمان دی خبره اوړی اومشرکان خو دخبرې اوریدو نه وروميې په ازار دریسې کیږی بل دعالمانو په ایمان راوړو سره دعوامو ایمان راوړو زیاته توقع ده او هغه طریقه داده چې ﴿وَلَا تُجَادِلُوٓا اَهۡلَ الۡكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِیۡ هِیَ اَحۡسَنُ﴾[تاسو داهل کتابوسره بغیر دمهذبې [طریقې نه بحث مباحثه مه کوئ ﴿اِلَّا الَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡا مِنۡهُمۡ﴾ البته کوم چې په هغوی کښې زیاتې وکړی] نو هغوی ته جواب سر په سر ورکولو کښې باك نشته اګر چې بهتره بیا هم غوره طریقه ده [او] هغه مهذبه طریقه داده چې مثلا هغوی ته ﴿وَقُوۡلُوۡۤا اٰمَنَّا بِالَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ اِلَیۡنَا﴾[داسې وایئ چې مونږ

په دې کتاب هم ايمان راوړې دې کوم چې په مونږ نازل شوې دې ﴿وَأُنزِلَ إِلَيْكُمْ﴾ او په هغو کتابونو هم [ايمان لرو [کوم چې په تاسو نازل شوی دی ] ځکه چې مدار دايمان دالله تعالی دطرف نه نازليدل دی پس هرکله چې زمونږ دکتاب د الله تعالی دطرف نه نازليدل ستاسو په کتاب سره هم ثابت دی بيا تاسولره په قرآن هم ايمان راوړل پکار دی [او] دا خو تاسو هم منئ چې ﴿وَإِلَٰهُنَا وَإِلَٰهُكُمْ وَاحِدٌ﴾[ زمونږ او ستاسو معبود يو دې] لکه دا قول دالله تعالی چې [الی کلمة سواء بيننا الخ](١) هرکله چې توحيد متفق عليه دې او دخپلو عالمانو او شيخانو په وجه سره په نبی اخرزمان صلی الله عليه وسلم ايمان نه راوړل دتوحيد خلاف دی نو تاسوله زمونږ په نبی کريم ﷺ ايمان راوړل پکار دی لکه دا قول دالله تعالی [ولايتخذ بعضنا الخ] [او] ددې خبرو سره خپل مسلمانيدل دخبردارۍ دپاره ورته واوړوئ چې ﴿وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ﴾[مونږ خودده فرمانبرداری کوو] په دې کښې عقيدې او عملونه ټول راغلل يعنی داسې تاسولره هم پکار دی هرکله چې مقتضی موجود ده لکه دا قول دالله تعالی شو [فان تولوا فقولوا اشهدوا بانا مسلمون] [او] لکه څنګه چې مونږه په وړومبو پيغمبرانو کتابونه نازل کړی دی ﴿وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ﴾[دغه شان مونږ په تاکتاب نازل کړو] چې ددې په بنا مونږ په احسنه طريقه سره دمجادلې تعليم وکړو﴿فَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ﴾ [پس کومو خلقو ته چې مونږ ] د[کتاب] نفعمن پوهه [ورکړې ده ﴿يُؤْمِنُونَ بِهِ﴾ هغوی په دې ] ستاپه [کتاب ايمان راوړی] او ددغو سره دمجادلې نو بت هم کله کله پيښيږی ﴿وَمِنْ هَٰؤُلَاءِ مَن يُؤْمِنُ بِهِ﴾[او په دې ] اهل عربو مشرکانو [خلقو کښې هم ځنې داسې] انصاف کوونکی [دی چې په دې کتاب ايمان راوړی] خواه په خپله پرې پوه شی يا دعالمانو په ايمان راوړوسره دليل ونيسی [او] ددليلونو واضحه کيدونه پس ﴿وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا إِلَّا الْكَافِرُونَ﴾[زمونږ] ددې کتاب [دايتونونه بغيرد] ضديانو [کافرانونه نور څوك انکارنه کوی] بره دمجادلې به تقرير باندې نقلی دليل وو چې په دې سره خاص نقل کوونکوته خطاب وو وړاند دليل عقلی دې چې په دې کښې عام خطاب دې يعنی [او] کوم خلق چې ستاد نبوت نه منکردی دهغوی سره څه خو هم منشاء داشتباه نشته ځکه چې ﴿وَمَا كُنتَ تَتْلُو مِن قَبْلِهِ مِن كِتَابٍ﴾[تاددې کتاب نه] يعنی قرآن نه [وړاند نه څه کتاب لوستلې وو﴿وَلَا تَخُطُّهُ بِيَمِينِكَ إِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُونَ﴾ او نه څه کتاب دې په خپل لاس سره ليکلې شو چې په داسې حالت کښې دې حق ناشنا سوڅه شبهه راويستلې وې ] چې داتعليميافته سړې اسمانی کتابونه کوری او دهغو په مدد سره دې دسوچ کوی مضامين په اوزګار وخت کښې ليکی او يا دوی ئ مونږته ئ اوړوی يعنی که داسې وې نو بيا خو به داشتباه څه منشاء وه اګرچې بيابه هم داشبهه کوونکی په ناحقه وو ځکه چې دقرآن اعجاز بيا هم په نبوت باند ددلالت کولو دپاره کافی وو ليکن اوس خو دومره منشاء داشتباه هم نشته په دې وجه په دې کتاب کښې هيڅ د شك ګنجائش نشته ﴿بَلْ هُوَ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ﴾ [بلکه داکتاب] سره ديو والی چونکه هره حصه ددې معجزه ده حصې ئ ډيرې دی په دې وجه دا يوازې ګويا [په خپله ډير واضح دليلونه دی﴿فِي صُدُورِ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ﴾

(١) ددې پوره آيت ترجمه داده:- اووايه چی اې اهل کتابو راشئ يوې داسې خبری ته چی کومه زمونږ اوستاسومينځ کښې برابره ده چې مونږ به دالله پاک نه سوا دبل هيچا عبادت نه کوؤ اوهيڅ څيزبه هغه سره (په عبادت کښې) نه شريکوو.

دهغو خلقو په ذهن کښې کومو ته چې علم ورکړې شوې دې او [سره دظاهریدو داعجاز] ﴿وَمَا يَجۡحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَّا ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ زمونږ دا يتونو نه بس ضد يان خلق انکار کوي [ورنه انصاف کوونکو لره یوه ذره شبهه کول نه دی پکار] ﴿وَقَالُواْ﴾ او دا خلق [سره ددې چې دقرآن معجزه ورته ورکړې شوې ده محض دعناد په وجه ] داسې وائي ﴿لَوۡلَآ أُنزِلَ عَلَيۡهِ ءَايَٰتٞ مِّن رَّبِّهِۦ﴾ چې په دې ] پیغمبر[ باندې دده درب دطرف نه] زمونږ فرمائشي [نښې ولې نه راځي ﴿قُلۡ إِنَّمَا ٱلۡأٓيَٰتُ عِندَ ٱللَّهِ﴾ ته ورته ووایه چې دغه نښې خو دخدائ په قبضه ] دقدرت [ کښې دی او] زما داختیار څیزونه نه دی ﴿وَإِنَّمَآ أَنَا۠ نَذِيرٞ مُّبِينٌ﴾ [ زه خو صرف یو صفا صفا] دالله تعالی دغذاب نه [ ویرونکې یم ] یعنی رسول یم او په خپل رسالت دلیلونه لرم په کومو کښې چې دټولو نه لوئ دلیل قرآن دې بیا دخاص دلیل ضرورت څه دې؟ خاص کر کله چې ددغې په نه واقع کیدو کښې حکمت هم وی وړاند دقرآن لوئ دلیل والې فرمائی ﴿أَوَلَمۡ يَكۡفِهِمۡ﴾ [ایا] دنبوت ددلیل دپاره [دې خلقو لره داخبره پوره نه شوه ﴿أَنَّآ أَنزَلۡنَا عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ﴾ چې مونږ په تادا کتاب] معجز[نازل کړو ﴿يُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ﴾ کوم چې دوی ته] همیشه [اورولې شی ] چې که په یوځل اوریدو سره ورته اعجاز ظاهر نه شی نو په دویم ځل به ظاهرشی یاددې نه پس به ظاهرشی او په نورو معجزو کښې خوبه داخبره هم نه وه ځکه چې دهغې خارق والې به همیشه نه وو لکه چې ظاهره ده او یوترجیح په دې معجزه کښې دادې چې ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَرَحۡمَةٗ وَذِكۡرَىٰ لِقَوۡمٖ يُؤۡمِنُونَ﴾ [بیشکه په دې کتاب کښې ] دمعجزې کیدو سره [دایمان راوړونکو دپاره لوئ رحمت او نصیحت دې ] رحمت داچې داحکاموتعلیم دې کوم چې محض او خالص نفع ده او نصیحت په ترغیب او ترهیب سره دې او داخبره په نورو معجزو کښې چرته ده بس پکاروه چې په دې ترجیحاتو سره یې دا غنیمت ګڼړلې او ایمان یې راوړلې اوکه ددې دلیلونو د واضحه کیدونه پس هم ایمان نه راوړی نو داخری جواب په طورباند ﴿قُلۡ﴾ [ته ووایه چې] خیر ورونړو مه منئ ﴿كَفَىٰ بِٱللَّهِ بَيۡنِي وَبَيۡنَكُمۡ شَهِيدٗا﴾ [الله تعالی زما اوستاسو په مینځ کښې] زما درسالت [ګواه کافی دې ﴿يَعۡلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ هغه په هرڅه پوه دې کوم چې په اسمانونو کښې دی او په مزکه کښې دی او] هرکله چې زما رسالت او دالله تعالی علم محیط ثابت شونو ﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱلۡبَٰطِلِ﴾ [کوم خلق چې ددروغو په خبرو یقین کوي ﴿وَكَفَرُواْ بِٱللَّهِ﴾ او دالله تعالی ] دخبرو[نه منکردی] په کومو کښې چې رسالت هم داخل دې ﴿أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ﴾ [نو هغه خلق لوئ زیانکاره دی] یعنی هرکله چې دالله تعالی په ارشاد سره زما رسالت ثابت دې نو دهغه انکارکفر په الله تعالی دې او د الله ﷻ علم محیط دی نو دده نه ددې انکار او کفر هم خبر نشته او الله ﷻ په کفر باندې د خسارې سزاء ورکوی پس داسې خلق به لامحاله په خساره کښې وي ﴿وَيَسۡتَعۡجِلُونَكَ بِٱلۡعَذَابِ﴾ [او داخلق تانه دعذاب ] واقع کیدو [تقاضا کوی ] او فورا په عذاب نه راتلو سره ستا په نبوت او رسالت کښې شبهه او انکارکوی ﴿وَلَوۡلَآ أَجَلٞ مُّسَمّٗى﴾ [اوکه چرې] په علم الهی کښې دعذاب راتلودپاره [میعاد معین نه وې نو] ددوی په تقاضا سره سمدستی ﴿لَّجَآءَهُمُ ٱلۡعَذَابُ﴾ [په دوی به عذاب راغلې وو او] هرکله چې دغه میعاد راشی نو ﴿وَلَيَأۡتِيَنَّهُم بَغۡتَةٗ وَهُمۡ لَا يَشۡعُرُونَ﴾ [ هغه عذاب به په دوی ناڅاپه راشی او دوی ته به خبرهم نه وی] وړاند ددې خلقو دجهالت داظهاردپاره ددوی جلدبازی مکرر ذکرکوی دعذاب دمعین میعاد او په هغې کښې د راپیښیدونکی عذاب ذکر کوی چې

﴿يَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ ۭ﴾ [دا خلق تا نه دعذاب تقاضا کوی او] دعذاب صورت داسې دي چې ﴿وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ۝﴾ [په دې کښې هيڅ شك نشته چې جهنم به دا کافران] دځلور طرفه نه [گير کړی ﴿يَوْمَ يَغْشٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ﴾ په کومه ورځ چې به په دوی عذاب ددوی دپاسه نه او ددوی لاندې نه گير کړی او] دغه وخت به دوی ته ﴿وَيَقُوْلُ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝﴾ [الله تعالى وفرمائي چې څه تاسو ] په دنياكښې [کړی دی ] اوس ئې مزه [وڅکئ]

## معارف او مسائل

﴿وَلَا تُجَادِلُوْٓا اَهْلَ الْكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ۖ اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا﴾ يعني كله چې تاسو اهل كتابو سره بحث مباحثه کوئ نو هغه ورسره په دې شان کوئ چې زياته غوره وی [ لکه د سختې خبرې جواب هم په نرمئ ورکوئ ، د غصې جواب په آرام سره ورکوئ ، د جاهلانو په شان دشور کولو په ځائې جواب په شرافت سره ورکوئ. ﴿اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا﴾ [ مگر چا چې په تاسو ظلم اوکړو] چې ستاسو دشرافت نرمو خبرو اود واضحو دليلونو په مقابله کښې دضد او غصې نه کار واخستو نو بيا دوئ ددې احسان جوگه پاتې نشو نو ددغسې خلقو جواب دادې چې ددوئ د بدخوئ جواب په بد خوئ اود ظلم جواب ئې په ظلم سره ورنکړې شی ،بلکه د بدخوئ جواب خوش خوئې سره او دظلم جواب په انصاف سره ورکوئ. څنگه چې دقرآن پاك په نورو آيتونو کښې په واضحه داسې راغلی دي چې ﴿وَاِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ ۭ وَلَىِٕنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصّٰبِرِيْنَ ۝﴾ [يعني كه تاسو د زور ظلم بدله سر په سر ورکړئ نو ستاسو حق شته خو صبر کول تاسو دپاره زيات غوره دی ]

دې آيت مبارك کښې اهل كتابو سره په ښه طريقه د بحث کولو د بيان په شان په سورة نحل کښې مشرکانو سره هم دداسې سلوك بيان شوې دی. دلته اهل كتابو سره ددې سلوك خصوصيت د راتلونکې کلام په وجه دې چې زمونږ اوستاسو په دين کښې ګڼر څيزونه مشترك دی. كه تاسو غور اوکړئ نو د ايمان او اسلام په قبلولو کښې تاسو ته څه خنډ راپيښېدل پکار نه دی. لكه فرمائي چې ﴿وَقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِالَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَاُنْزِلَ اِلَيْكُمْ﴾ [يعني اهل كتابو ته د هغوئ د رانزدې کولو په غرض د مجادلې په موقعه دا وايئ چې مونږ مسلمانانو خو په هغه وحی هم ايمان راوړی دی چې مونږ ته زمونږ درسول ﷺ په واسطه رالېږلې شوې ده او په هغه وحی هم چې تاسو ته ، ستاسو د پيغمبر ﷺ په ذريعه رالېږلې شوې ده نو څکه مونږ سره ستاسو د مخالفت کولو هيڅ وجه نشته دې.

**آيا په دې آيت کښې د موجوده تورات او انجيل د مضمونونو دتصديق حکم دې؟** : دلته چې په کوم انداز کښې خبره کړې شوې ده هغې نه تورات او انجيل وغيره كتابونو باندې د اجمالي ايمان راوړلو بيان داسې دې چې په دغه کتابونو کښې چې څه الله ﷻ نازل کړی وو په هغې زمونږ ايمان دې دې نه دا نه لازمېږی چې د موجوده تورات او انجيل په ټولو مضمونونو باندې زمونږ ايمان دې چې په کښې درسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې ډېرې تبديلئ راوستې شوې وې او تر اوسه پورې په کښې په مخه تبديلئ راوستل جاری دی. زمونږ ايمان دتورات او انجيل په هغه مضامينو باندې دې چې دالله ﷻ د طرفه په موسى عليه السلام او عيسى عليه السلام باندې نازل شوی وو. بدل شوی مضامين ددې نه خارج دی.

**دموجوده تورات او انجیل خودې نه مطلقا تصدیق کولې شي او نه مطلقا دروغژني** :: د صحیح بخاری په حواله ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چې اهل کتابو به تورات اوانجیل دهغوئ په اصلي ژبه عبراني کښې لوستو او مسلمانانو ته به ئې د هغې ترجمه په عربي ژبه کښې آوروله . نبی کریم ﷺ مسلمانانو ته دهغې متعلق دا هدایات ورکړل چې تاسو مه خو داهل کتابو ریښتینولي کوئ او مه ئې دروغژن ګڼرئ . بلکه داسې وائې چې ﴿اٰمَنَّا بِالَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَاُنْزِلَ اِلَيْكُمْ﴾(۱) ﴿یعني مونږ اجمالا په هغې وحی باندې ایمان راوړو چې ستاسو په پیغمبرانو باندې نازله شوې ده او ستاسو خودلې تفصیل مونږ ته اعتباري نه دې ځکه ئې رښتینولئ اودروغژنئ دواړه نه ځان ساتو . تفسیرونو کښې چې کومو عامو مفسرینو د اهل کتابو روایتونه نقل کړی دی دهغې هم دغه درجه ده او دنقل کولو منشاء او مطلب ئې هم صرف ددې تاریخي شان واضح کول دی ، دې سره د حلالو ، حرامو احکام نشي ثابتیدې .

﴿وَمَا كُنْتَ تَتْلُوْا مِنْ قَبْلِهٖ مِنْ كِتٰبٍ وَّلَا تَخُطُّهٗ بِيَمِيْنِكَ اِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُوْنَ﴾ [ یعني د قرآن پاک د نازلیدو نه وړاندې نه خو تاسو څه کتاب لوستو اونه مو څه لیکل کولې شو بلکه امي وې او که لیک لوست دې کولې نو اهل باطل دپاره به د شک ،شبهې موقع په لاس ورغلې وه ] لکه هغوئ به دا الزام لګولو چې تاسو پخواني کتابونه ، تورات ، انجیل وغیره لوستلې یا نقل کړی دی نو مونږ ته دا خبرې هم ددغې کتابونو نه نقل کوئ . او مونږ ته دا خبره هم ددغې کتابونو نه کوئ ، څه ځان له نبوت او رسالت دې نشته دې .

**درسول الله ﷺ دا لوئې غوره والئ او لويه معجزه ده چې هغوئ امي وو**:: څنګه چې الله ﷻ درسول الله ﷺ په پیغمبرئ باندې ډیرې ښکاره معجزې څرګنده کړې د هغې نه یوه دا وجه هم ده چې هغوئ ئې د رومبې نه امی اولرل نه ئې څه لیکل لوستلې شو . او نه ئې څه لیکل پخپله کولې شو . او د عمر څلوېښت کاله ئې ټول په اهل مکه کښې تیر کړل . ددوئ ګډون چرې هم اهل کتابو سره نه وو شوې چې ګنې هغوئ نه به ئې څه آوریدلې وی ولې چې په مکه کښې اهل کتاب د سره نه وو ، چې د څلوېښتو کالو عمر مبارک ئې پوره شو ، ناګاهانه د خلې مبارکې نه ئې داسې کلام جاری شو چې د خپلو مضمونونو او معنو به اعتبار سره هم معجزه وه . اود لفظي فصاحت او بلاغت په اعتبار سره هم .

ځینې علماء کرامو دا ثابتول غوښتلی دی چې هغوئ په ابتداء کښې امی وو ، بیا الله ﷻ ورته لیک لوست کول ورزده کړل ، ددې په ثبوت کښې د حدیبیه د واقعې یو حدیث داسې نقل کوی چې کله د صلح دغه معاهده اولیکلې شوه نو په هغې کښې [من محمد عبدالله ورسوله ](۲) ئې اول لیکلی وو ،کله چې په دې باندې دمکې مکرمې مشرکانو اعتراض اوکړو چې که مونږ تاسو رسول منلې نو دا جګړه به ولې کیدله ؟ مونږ ستاسو نوم مبارک سره د رسول الله لفظ نه شو قبلولې . لیکونکې علی رضي الله عنه وو. نبی کریم ﷺ علی رضي الله عنه ته اوفرمائیل چې دا لفظ وران کړه.خو علی رضي الله عنه دابې ادبی اوګڼرله ځکه ئې نه ورانولو. نبی کریم ﷺ پخپله کاغذ پخپل لاس

---

۱) صحیح البخاري کتاب الإعتصام بالکتاب ،باب قول النبي صلی الله علیه وسلم لا تسالوا اهل الکتاب عن شئ [ج:۲ص:۱۰۹٤]

۲) ترجمه:- د الله دبنده او دهغه درسول محمد صلی الله علیه وسلم د طرفنه

مبارک کښې راواخستو اودغه لفظ ئې وران کړو او داسې ئې اوليکل چې [من محمد بن عبدالله] (¹)

دې روايت کښې دليکلو نسبت رسول الله ﷺ ته شوې دې . د دې نه ځينې حضرات دا دليل نيسي چې نبي کريم ﷺ ليکل کولې شو . خو صحيح خبره هم داده چې په بل چا باندې ليکل کول هم عموما حکم کوونکي ته منسوب کولې شي . ځنګه چې په محاوره کښې دا خبره عامه ده ، دې نه علاوه داده چې دا هم کيديشي چې الله ﷻ د معجزې په ډول پدغه موقعه د نبي کريم ﷺ د لاس مبارک نه خپل نوم مبارک ليکل صادر کړی دی . دې نه علاوه بله خبره داده چې صرف په خپل نوم ليکلو سره چاته ليکونکې نه شي وئيلې بلکه ان پړه او امي ورته وئيلې شي . کله چې ليکل ئې عادت نه وی ، او بې دليله هغوئ ﷺ ته ليکل منسوب کول غوره والئ ثابتول نه دی بلکه په غور کولو سره لوئې غوره والئ ئې په دې کښې دې چې امي وو .

| |
|---|
| يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ فَاِيَّايَ |
| اے بندګانو زما هغه بندګانو \| چې ايمان موراوړې دې \| بيشکه \| زمکه زما \| فراخه ده \| پس خاص مالره |
| ائې زما مومنانو بندګانو زمکه ډيره فراخه ده \| ..................نو تاسو خالص زما عبادت کوئ . |
| فَاعْبُدُوْنِ ۞ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ۫ ثُمَّ اِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ ۞ |
| بندګي کوئ \| هر نفس \| څکونکې دمرګ دې \| بيا به \| خاص مونږ ته \| واپس راوستلې شئ |
| هريو ژوندې به خامخا د مرګ خوند څکی \| بيا تاسو ټول به ماته راپيش کيږئ |
| وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ |
| اوهغه کسان \| چې ايمان ئې راوړې دې \| او عملونه ئې کړی دی نيک \| خامخا به ديره کړو مونږ هغوئ |
| او چا چې ايمان راوړې دې \| او نيک کارونه کوی \| ..................مونږ به ورته د جنت |
| مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ |
| دجنت نه \| په داسې ماڼرو کښې \| چې بهيږی به \| لاندې دهغې نه \| نهرونه \| هميشه به اوسيږی |
| بالاخانو کښې ځائې ورکړو \| چې دهغې لاندې به نهرونه بهيږی \| هميشه دپاره به په هغې کښې |
| فِيْهَا ۭ نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ۞ الَّذِيْنَ صَبَرُوْا |
| په هغې کښې \| ډير ښه دې \| اجر دعمل کونکو \| دهغه عمل کونکو \| چې صبر ئې اوکړو |
| اوسيږی \| دنيک [عمل] کوونکو بدله ډيره ښه ده \| [يعنی] چا چې صبر کړې وی |
| وَعَلٰي رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ۞ وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ |
| او په خپل رب باندې \| توکل [بروسه] کوی \| او څومره ډير دی \| دځناورونه \| چې نهٔ باروی |
| او په خپل رب باندې توکل کوی \| ..................او ډير داسې ساه لرونکی شته |

(¹) ترجمه:- د عبدالله دځوی د محمد صلى الله عليه وسلم د طرفنه

رِزْقَهَا ۖ اَللّٰهُ يَرْزُقُهَا وَاِيَّاكُمْ ۖ وَهُوَ السَّمِيْعُ

رزق خپل | الله | رزق ورکوی هغوئ له | او تاسو ته هم | او هغه هر څه | اوریدونکي |

چي خپل ځان له روزی سنباله نه ساتی | الله ﷻ هغوئ ته هم روزی ورکوی | او تاسو ته هم | او هغه هر څه

الْعَلِيْمُ ﴿۶۰﴾ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

او په هر څه پوهه دي | او که ته تپوس اوکړی ددوئ نه | چی چا پیدا کړی دی | آسمانونه |

آوری | او په هرڅهٔ پوهه دي | اوکه چرې ته ترې تپوس اوکړې | اچې هغه ذات څوک دې چې آسمانونه

وَالْاَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ۚ

او زمکه | او تابع کړی ئې دی | نمر | او سپوږمئ | نو خامخا به اووائی | چی الله |

اوزمکه ئې پیدا کړی دی | اونمر او سپوږمئ ئې په کار لګولی دی | دوئ بهٔ ضرور اووائی

فَاَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿۶۱﴾ اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ

نو دکوم ځائې نه | دوکه کیږی دوئ | الله | فراخه کوی | رزق | دپاره دهغه چاچی خوښه ئې شی

چې الله ﷻ نو بیا دوئ کوم طرف ته اړولی روان دی | الله هغه ذات دې چې پخپلو بندګانو کښې پخپله

مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۶۲﴾

دبندګانو خپلو نه | او تنګوی [روزی] | هغه لره | بیشکه الله | په هر څیز باندې | عالم [خبر] دې |

خوښه د چا رزق فراخه کوی | او دچا رزق تنګوی | بیشکه الله ﷻ په هر څیز ډیر ښه پوهه دې

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا

او که ته تپوس اوکړې ددوئ نه | چی چا نازلې کړی دی | دآسمان نه | اوبهٔ | پس ژوندئ ئې کړه

اوکه ته ددوئ نه تپوس او کړې | چې چا پورته نه اوبهٔ راورولې دی | نوزمکه ئې

بِهِ الْاَرْضَ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ۭ قُلِ

په هغې باندې | زمکه | روستو | دمرګ دهغې نه | نو خامخا به اووائی | چی الله | اورته اووایه

د مړه کیدو نه پس بیا راژوندئی کړه | نو دوئ به وائی چې الله ﷻ نازلې کړی دی | ته اووایه چې

الْحَمْدُ لِلّٰهِ ۭ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۶۳﴾

چی ثناده الله لره | بلکه زیات خلق ددوئ نه | دعقل نه کار نهٔ اخلی |

ټول تعریفونه الله ﷻ دپاره دی | اخو په دوئ کښې زیات کسان نه پوهیږی |

## آسان ترجمه قرآن

اې زما بندګانو کومو چه ایمان راوړې دې! یقین اوساتئ زما زمکه ډیره فراخه ده. لهٰذا خالص زما عبادت کوئ هر ساه لرونکې د مرګ خوند لره څکونکې دې. بیا به زمونږ طرف ته تاسو ټول واپس راوستلې شئ او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، او هغوی نیک عملونه کړې دی، مونږ به هغوی ضرور د جنت په داسې بالاخانو کښې آباد کړو چه د هغې نه لاندې به نهرونه بهیږی. چرته چه به هغوی د همیشه همیشه دپاره اوسیږی. بهترین اجر دې د هغه عمل کونکو کومو خلقو چه د صبر نه کار واخستلو،

او کوم چه په خپل رب باندې اعتماد ساتي. او څومره دساه والا دي کوم چه خپل رزق نه اوچتوي الله پاک هغوی ته هم رزق ورکوي، او تاسو ته هم او هم هغه دې چه هره خبره اوري په هر څه باندې پوهیږي. او که ته د دوئ نه تپوس اوکړې چه: څوک دې چا چه آسمانونه او زمکه پیدا کړل، او نمر او سپوږمۍ ئې په کار اولګول؟ نو دوئ به ضرور دا وائي چه: الله ! نو بیا آخر دا خلق چرته په مخې روان شوې دی؟ الله پاک چه په خپلو بندګانو کښې د چا دپاره اوغواړي، په رزق کښې فراخي راولي. او د چا دپاره چه اوغواړي رزق تنګوي یقینًا الله پاک د هر څیز مکمل علم لري. او که ته د دوئ نه تپوس اوکړې چه: څوک دې چا چه د اسمان نه اوبه نازلې کړې، بیا ئې په هغې سره د زمکې د مړې کیدو نه پس هغې ته ژوند ورکړو؟ نو دوی به ضرور وائي چه: الله او وایه: الحمدلله ! خو په دوئ کښې اکثر خلق د عقل نه کار نه اخلي.

## خلاصه تفسیر

﴿يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا﴾ [اے زما ایماندارو بندګانو] هرکله چې داخلق د ډیرې دښمنۍ او نارامئ او ضد نه تاسوته دشریعت په اختیارولو او دین باندې ازار رسوی نو دلته پاتې کیدل څه ضروری دی؟ ﴿اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ﴾ [زما مزکه فراخه ده پس] که چرې دلته په اوسیدو عبادت نه شئ کولې نو بل طرف ته لاړشئ او هلته چې لاړشئ ﴿فَاِيَّايَ فَاعْبُدُوْنِ﴾ [نو خالص زما عبادت کوئ] ځکه چې دلته دمشرکانو زور دې نو داسې عبادت چې محض په توحید مبنی وی او دشرك نه خالی وی دلته مشکل دې البته که دخدائ سره دغیرالله هم عبادت وی نو دامکن خو دی مګرداد سره عبادت نه دې اوکه تاسوته په هجرت کښې دخپلوانو اودوطن جدائی ګرانه معلومیږی نو پوهه شئ چې دیوې نه یوه ورځ به داسې کیږی ځکه چې ﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ﴾ [هرسړې به د مرګ مزه ] خامخا [څکی] نو اخر دغه وخت خو به داتول پاتې کیږی او ﴿ثُمَّ اِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ﴾ [بیا به تاسو ټولو لره مونږ ته راتلل وی] او چې نافرمانه راشئ نو دسزا ویره ده په کښې [او] دا جدائی که زمونږ د رضا دپاره وی نو مونږ ته په رارسیدو به ددې وعدې مستحق شئ او هغه وعده داده چې ﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ [کوم خلق چه ایمان راوړی اونیك عمل وکړی] په کوم چې عمل کول ځنې وخت په هجرت باند موقوف وی نو په داسې وخت کښې هجرت هم وکړی ﴿لَنُبَوِّئَنَّهُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا﴾ [مونږ به دوی ته دجنت په بالاخانو کښې ځائ ورکړو ﴿تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ﴾ دکومولاند چې به نهرونه روان وی ﴿خٰلِدِيْنَ فِيْهَا﴾ او هغه خلق به په دې کښې همیشه همیشه وسیږی ] ﴿نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ﴾ او دهغه [نیك کارکوونکو څه ښه اجردې ﴿الَّذِيْنَ صَبَرُوْا﴾ کومو چې] په واقع شوو سختو باند چې دهجرت سختئ په کښې هم داخلې شوې [صبروکړو] بل ملك یا ښارته چې لاړل دکومو تکلیفونو او د ګذارې کولو دمشکلاتو کومه ویره چې وه په هغې کښې ﴿وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ﴾ [هغوی په خپل رب توکل کولو او] که په هجرت کښې تاسوته دا وسوسه وی چې په پردیسئ کښې به خوراك دکومه ملاویږی نو په دې پوهه شئ چې ﴿وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا﴾ [ډیرځناور داسې دی کوم چې خپل خوراك دخان سره بار کړې نه ساتی] یعنی نه ئې جمع کوی اګر چې ځینې ئې جمع کوی مګر ډیر ئې جمع کوی هم نه ﴿اَللّٰهُ يَرْزُقُهَا﴾ [الله تعالی دغوته] مقرر [رزق رسوی ﴿وَاِيَّاكُمْ﴾ اوتاسو ته هم] مقرر رزق در رسوی خواه تاسو هرځائ چې یئ بیا داسې وسوسه مه کوئ بلکه

زره قوي كړئ په الله تعالى توكل لرئ [او] هغه دتوكل لائق دې ځكه چې ﴿وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ۝﴾ [هغه هرڅه اورى هرڅه پيژنى ] دغه شان په نورو صفتونو كښې كامل دې او څوك چې داسې كامل الصفات وى هغه خامخا دتوكل قابل دې [او] دتوحيد فى الالوهيت چې كومه مبنى ده يعنى توحيدفى التخليق هغه خو ددې خلقو په نزد هم منلې شوې ده چنانچه ﴿وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ [كه ته ددوى نه تپوس وكړې چې هغه څوك دې چاچې اسمان اومزكه پيدا كړل ﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ﴾ او چاچې نمر او سپوږمئ په كار لګولى دى ﴿لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ﴾ نو هغه خلق به دا ووائى چې هغه الله تعالى دې بيا] هركله چې توحيدفى التخليق منى نو دتوحيدفى الالوهيت په باره كښې ﴿فَاَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ۝﴾ [چرته اولته چليږئ؟] اولكه څنګه چې خالق دې دغه شان ﴿اَللّٰهُ﴾ [خاص الله تعالى] رازق هم دې چنانچه ﴿يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ﴾ [هغه په خپلو بندګانو كښې دچاد پاره چې غواړى رزق فراخه كوى او دچاد پاره چې غواړى تنګوى ﴿اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ۝﴾ بيشكه الله تعالى دهرشى د حال نه خبرداره دې ] چې څنګه ورته مصلحت ښكارى هم هغه شان رزق او روزى وركوى په دې وجه د رزق ويره په هجرت كښې نه دى مانع كول پكار [او] لكه څنګه چې دكائناتو په پيدا كولو كښې دالله تعالى توحيد ددوى په نز دمنلې شوې دې دغه شان دكائناتو په باقى ساتلو اود دې دنظام په چلولو كښې هم توحيد لره منى چنانچې ﴿وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً﴾ [كه ته ددوى نه تپوس وكړې چې هغه څوك دې چاچې داسمانونو نه اوبه راووروليې ﴿فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ مَوْتِهَا﴾ بيا ئې مزكې له ددې د اوچيدو] ناقابله دبوټو دراټوكيدو [نه پس تروتازه ] قابله دبوټو دراټوكولو [كړه نو] په جواب كښې به ﴿لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ﴾ [هغه خلق دا ووائى چې هغه هم الله تعالى دې ﴿قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ ته ووايه چې الحمدلله] دومره اقرار خو كوئ چې په دې سره په توحيد فى الالوهيت باند استدلال هم بديهى دې مګر دا خلق منى نه [بلكه ] ددې نه زياته داده چې ﴿بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ۝﴾ [په دوې كښې اكثر پوهيږى هم نه ] په دې وجه نه چې عقل ئې نشته بلكه دعقل نه كارنه اخلى او غور نه كوى په دې وجه بديهى هم ددوئ نه پټ وى

## معارف او مسائل

﴿يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا﴾ د سورت اول نه تر دې ځائې پورې دا بيان وو چې مسلمانانو سره كافران دښمنى ساتى ، توحيد او رسالت نه بالكل انكاريان دى . دحق او اهل حق په لار كښې قسماقسم بنديزونه راپيدا كوى ، اوس په دې كښې آيتونو كښې دابيان دې چې مسلمانان دې ددوئ د شر نه د ځان ساتلو ، د حق د خورولو او حق وانصاف لره په دنيا كښې د قائمولو انتظام اوكړى . ددغې انتظام اصطلاحى نوم هجرت دې يعنى هغه وطن او ملك پريښودل چې په هغې كښې انسان لره د حق په خلاف وئيلو او كولو باندې مجبوره كړې شى .

**دهجرت حكمونه او ددې په لار كښې د راتلونكو شكونو او شبهو لرې كول** :: ﴿اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ فَاِيَّايَ فَاعْبُدُوْنِ۝﴾ الله ﷻ فرمائى چې زما زمكه ډيره فراخه ده ځكه د چا دا عذر د آوريدو جوګه نه دې چې په فلانى ښار يا فلانى ملك كښې كافران غالب وو ، ځكه مونږ دالله ﷻ د توحيد او د هغه د عبادت نه مجبوره پاتې شو . نو دوئ له پكار دى چې دغه ځائې چرته چې دوئ په كفر او معصيت باندې مجبوره كولې شى ، دالله ﷻ په خاطر پريږدى او داسې ځائې اولټوى

چې په کښې په آزادئ سره دالله ﷻ په حکمونو باندې پخپله هم عمل کولې شي او نورو ته هم د هغې خودنه کولې شي ، ددې نوم هجرت دې. بل وطن ته په تلو سره د عادت له مخې انسان ته دوه قسمه خطرې راپیښیږی چې په هجرت کولو کښې ورته ار جوړیږی. اوله دا چې دښمنان ، کافران او ظالمان خلق به راته په لاره کښې خنډان جوړیږی ، جنګ جګړې به راسره کوی ، په لاره کښې نورو کافرانو سره به د مقابلې کولو خطره هم راپیښیږی چې په کښې د ځان خطره وی ، ددې جواب په وړپسې آیت کښې دا ور کړې شو: ﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ﴾ [هر ساه دار دمرګ مزه څکونکې دې] چې هیڅوک به ترې چرې هم نشي خلاصیدې ، نو پکار دی چې د مرګ نه دې مومن نه ویریږی که هر څومره د ځان حفاظت اوکړی ، بیا به ئې هم مرګ رالاندې کوی ، هرکله چې د مؤمن هم دغه عقیده وی چې د الله ﷻ د ورکړی وخت نه وړاندې مرګ نشي راتلې نو بل ځائې ته په هجرت کولو کښې ورته د مرګ ویره خنډ کیدل نه دی پکار ، خصوصاً په داسې وخت کښې مرګ راتلل د همیشه راحتونو او نعمتونو ذریعه وی چې دغه راحتونه او نعمتونه به ورته په آخرت کښې حاصلیږی څنګه چې په وړپسې دوؤ آیتونو کښې فرمائی چې ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُبَوِّئَنَّهُم مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا الآيه﴾

دهجرت په لار کښې دویمه خطره دا رامخې ته کیږی چې په بل ملک کښې یا علاقه کښې به مې د ژوند تیرولو او روزئ حاصلولو څه طریقه وی. په خپل پیدائشی مقام کښې د چا څه جائیداد ، روان کار او روزګار ، پلار ګنئ میراث وغیره ټول هر څه دغلته پاتې شي خطره ورسره دا وی چې بل ځائې کښې به څه حال وی. ددې جواب په وړپسې درې آیتونو کښې داسې فرمائی چې دا ستاسو هیره ده چې د غه حاصل کړې شوی سامانونه د روزئ علت او کافي سبب بولئ خو په حقیقت کښې روزی ورکوونکئ الله ﷻ دې هغه چې غواړی نو بې د څه ذریعې او سامان نه هم روزی ورکولې شي. اوکه نه غواړی نو سره د ټولو سامانونو د موجودګئ هم بې روزئ پاتې کیږی. ړومبې داسې فرمائی چې : ﴿وَكَأَيِّن مِّن دَابَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا اللَّهُ يَرْزُقُهَا وَإِيَّاكُمْ﴾ [یعنی په دې باندې غور اوکړئ چې په زمکه ډیر زیات ځیزونه ساه دار داسې مخلوقات شته چې نه د روزئې پیدا کولو او نه دهغې د ایښودلو انتظام کوی خو سره دهغې ورته الله ﷻ په خپل فضل سره روزی ورکوی] علماء کرامو فرمائیلی دی چې عام ځناور هم داسې دی صرف میږې،او مږه خپل راشن پخپلو سوړو او غارونو کښې جمع کوی ، میږې په اوړی کښې خکه جمع کوی چې هغه په ژمی کښې بهر ته نه راوځی. داهم مشهوره ده چې په مارغانو کښې قارغه هم خپله خوراکه په خاله کښې جمع کوی خو هغه تر بیاهیره شي ، بهر حال د ځناورو دومره ډیر قسمونه دی چې انسان ئې د شمیرلو طاقت نه لری. دې کښې اکثر داسې دی چې نه خو هغوئ صبا دپاره روزی جمع کولې شي او نه ورسره ددې انتظام شته، حدیث مبارک کښې راغلی دی چې د امارغان دصبا په وخت کښې دخپلو جالو نه اوږی په تشه خیټه اوځی،او د شپې ماړه په ډکه خیټه واپس راځی. حالانکه نه ورسره د کر کروندې څه انتظام شته ، نه څه جائیداد او زمکه لری. د کارخانې یا دفتر وغیره ملازمان هم نه دی چې هغې نه خپله روزی حاصلوی دالله ﷻ پرانیستې او فراخه زمکې ته راوځی اوټولو ته په مړه خیټه روزی ملاویږی دا دیوې ورځې خبره نه ده،ددوئ د ټول ژوند هم داطریقه ده چې جاری وی، دې نه وړپسې آیتونو کښې اصلی ذریعه د روزئ ښائی چې دالله ﷻ ورکړه ده نو فرمائی چې

پخپله ددې نه منكرانو كافرانو نه تپوس اوكړئ چې آسمانونه او زمكه چا پيدا كړل؟ او نمبر اوسپوږمئ د چا په حكم چليږي، باران څوك وروي؟ بيا ددې په ذريعه دزمكې نه زرغونه خوك راوباسي، نو مشركان به هم ددې اقرار اوكړي چې دا ټول كارونه د الله ﷻ دي، نو تاسوورته اوفرمائې چې بيا تاسو د بل چا عبادت ولې كوئ؟ اوهغه ولې كارساز بولئ، نو دې وريسې آيتونو ﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّن نَّزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ﴾ كښې تر آخره پورې دا بيان دې.
خلاصه دا ده چې د هجرت په لار كښې دويم خنډ جوړيدنكې څيز د زيست روزګار او كاروبار او روزئ فكر دې. داهم دانسان هيره ده، روزي حاصلول يا ددې جمع كړې سامان اسباب ددهٔ په قبضه كښې نه دي، دا هر څه بې واسطې خالص دالله ﷻ وركړه ده. هم دې الله ﷻ ستا پخپل وطن كښې ددې انتظام كړې وو. بل ځائې او وطن كښې هم دغسې كولې شو او بې ذريعې هم دغسې كولې شي. ځكه دا بله خطره په هجرت كولو كښې خنډ جوړيدل پكار نه دي.
**هجرت كله واجب يا فرض كيږي** :: دهجرت معنى تعريف او ددې فضيلتونه بركتونه، دسورة نساء په آيت نمبر ۹۷ تا ۱۰۰ پورې، او په شرعى احكامو كښې تبديلى ددغې سورة د آيت نمبر ۸۹ لاندې، دوه ځايه معمولې بيلتون سره بيان كړې شويدې. دغه ځائې نه يو پاتې شوې مضمون اوس دادې دلته ليكلې شي.
كله چې رسول الله ﷺ د الله ﷻ په حكم سره د مكې مكرمې نه هجرت اوفرمائيلو او ټولو مسلمانانو ته ئې په دې شرط د هجرت كولو حكم وركړو چې څوك د هجرت كولو توفيق لري، دغه وخت دمكې نه هجرت كول فرض عين وو يعنى په هر چا باندې هجرت كول فرض وو البته په هغه چا هجرت كول فرض نه وو چې د هجرت كولو توفيق ئې نه لرلو.
دغه زمانه كښې هجرت كول يواځې فرض نه بلكه د مسلمانئ نخښه او شرط ګڼړلې شو. يعنى چا به چې د هجرت كولو توفيق لرلو او بيا به ئې هم هجرت اونه كړو نو هغه به مسلمان نشو ګڼړلې. او هغه سره به لكه دكافرانو معامله او برتاؤ كولې شو لكه د سورة نساء په آيت نمبر ۸۹ كښې فرمائى چې ﴿حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾[1] دغه وخت په اسلام كښې د هجرت كولو او دكلمه شهادت ﴿لااله الاالله﴾ يوشان درجه وه. يعنى هغه څوك به هم مسلمان نشو ګڼړلې چې كوم به په زړه كښې ايمان لرلو خو په ژبه به ئې د ايمان اقرار نه كولو او د ﴿لااله الاالله﴾ ګواهى به نه وركوله كه ژبه به د چا نه شوه چليدې نو صرف هغه به ددې كلمې وئيلو نه مستثنى وو. څنګه چې هغه څوك به هم د هجرت كولو نه مستثنى وو چا به چې د هجرت كولو توفيق نه لرلو. او بيان ئې دسورة نساء په آيت نمبر ۹۸ ﴿إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ﴾[2] كښې راغلې دې. او څوك چې سره د توفيقه به ئې هجرت نه كولو نو هغوئ دپاره د جهنم سخت وعيد په آيت نمبر ۹۷ ﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ﴾[3] تر ﴿فَأُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ﴾ كښې راغلې دې.

[1]) ترجمه:- تركومې چې هغوئ دالله تعالى په لار كښې هجرت اونه كړي
[2]) ترجمه:- ليكن هغه سړي او ښځې او ماشومان چې قادر نه وي.
[3]) ترجمه:- بيشكه كله چې دداسې خلقو روح فرښتې قبض كوي كومو چې ګناهونه كړي وو نوهغوئ دوئ ته وائې چې تاسو په څه كار كښې وې، هغوئ وائې چې په مخ د زمكې صرف مغلوب وو، هغوئ وائې چې آيا دالله تعالى زمكه فراخه نه وه، تاسو ته پكار وو چې خپل وطن مو پرېښودې وې ا و تلې وې نودداسې خلقو ځائې جهنم دې او هغه دورتلو دپاره ډير خراب ځائې دې.

دمکي مکرمې په فتح کيدو سره د هجرت دا حکم هم منسوخ شو ،ولې چې دغه وخت مکه پخپله دار اسلام جوړ شو او هم ددې په بنا رسول الله ﷺ د [لاهجرة بعد الفتح ][1] فرمان هم جاري کړو . مکې مکرمې نه د هجرت فرض کيدل او بيا منسوخ کيدل د قرآن پاک او سنت د نصونو نه ثابت شو چې يوه واقعه وه،د امت فقهاء ددغې واقعې نه دا مسئلې راؤښکلې دی:

**مسئله**:: چرته چې څوک مسلمان په خپل دين باندې قائم پاتې کيدو کښې آزاد نه وی ، په کفر ، شرک او د شرعی حکمونو په خلاف ورزئ باندې مجبوره وی ، د هغه ځائې نه هجرت کول او بل ښار يا ملک ته تلل واجب دی ، چرته چې دين باندې د عمل کولو آزادی وی خو شرط د ادې چې قدرت او توفيق دهجرت کولو لری هم ، البته څوک چې د سفر کولو توفيق نه لری يا داسې بل ځائې په لاس نه ورځی چې هلته په آزادئ سره په دين باندې عمل اوکړې شی نو هغه شرعا معذور دې .

**مسئله** :: په کوم دار کفر کښې چې په عامو دينی حکمونو باندې د عمل آزادی وی هغه نه هجرت کول اګر چې فرض او واجب خو نه دی ليکن مستحب بيا هم دی . او په دې کښې دار کفر کيدل هم ضروری نه دی دهغې دار فسق هم دا حکم دې چرته چې په ډاګه د الله ﷻ د حکمونو خلاف ورزی کيږی اګر چې هغه دار اسلام هم بللې شی چې حاکم ئې مسلمان وی .

دا تفصيل حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح البارى کښې ليکلې دې[2] او په حنفى قواعدو کښې څه څيز دې سره بې سمونه نه دې . دمسند احمد روايت هم په دې باندې ګواه دې چې د ابی يحيى مولى دزبير بن العوام نه منقول دې چې رسول اکرم ﷺ اوفرمائيل چې[البلاد بلاد الله والعباد عباد الله حيثما اصبت خيرا فاقم][ابن کثير][3] يعنی ټول ښارونه د الله ﷻ ښارونه دی او ټول بندګان د الله ﷻ بندګان دی نو چرته چې تاسو ته دخير اسباب جمع شی نو هلته اوسيږئ .

او ابن جرير رحمه الله پخپل سند سره د سعيد بن جبير رضي الله عنه نه نقل کړی دی چې هغوئ اوفرمائيل چې په کوم ښار کښې چې ګناهونه او بې حيايئ عامې شی نو هغه پريږدئی . او امام تفسير عطاء رحمه الله فرمائی چې کله تاسو په يو ښار کښې د ګناه دپاره مجبوره کولې شئ نو هغه ځائې نه لاړ شئ[تفسير ابن جرير رحمه الله][4]

| | |
|---|---|
| الْحَيٰوةُ | وَمَا هٰذِهِ |
| دا ژوند | اونه دې |
| او د دنيا دا ژوند | |

[1] صحيح البخاري كتاب الجهاد ،باب لا هجرة بعد الفتح [ج:١ص:٤٣٣]
[2] فتح البارى كتاب الجهاد ،باب لا هجرة بعد الفتح .
[3] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٢٩٠] و مسند احمد ، مسند الزبير بن عويمر رضي الله عنه رقم الحديث:[١٤٣٦]
[4] تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ٢٠ ص:٥٦]

الدُّنْيَآ اِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ ؕ وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ ۘ

ددنيا | مگر | عبث كار دي او لوبه ده | او بيشكه كور داخرت | خامخا هغه دي اصلي ژوند |

دلوبو او دتماشو نه سوا بل هيڅ حقيقت نه لري | او اصل ژوندون د آخرت دي

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۶۴﴾ فَاِذَا رَكِبُوْا فِي الْفُلْكِ

افسوس چي وې دا خلق | چي پوهيدلي | پس هر كله چي | سواره شي دا خلق | په كشتئ كښي |

كاش اچي دوئ پوهيدلي | ............ كله چي دوئ په بيړئ كښي سواره شي

دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ فَلَمَّا

نو رابلي الله | په دا حال كښي چي خالص كونكي وي | دپاره دهغه [الله] | دين [خپل] لره | پس هر كله چي

نو بيا صرف الله ﷻ پاك رابلي | ............ خوشه وخت چي

نَجّٰهُمْ اِلَى الْبَرِّ اِذَا هُمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿۶۵﴾

هغه بچ كړي هغوئ لره | وچي | ته | نو بيا هغوئ | شريك جوړوي دالله سره |

مونږ ئي اوچي غاړي ته واړووا | ............ نو بيا الله ﷻ سره شريكان جوړوي

لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ ۚ

دپاره ددې چي ناشكري اوكړي هغوئ | په هغه نجات | چي وركړې وو مونږ هغوئ ته |

نو څه چي مونږ دوئ ته وركړي دي | ............ دهغي ناشكري كوي | او دپاره ددي

وَلِيَتَمَتَّعُوْا ۠ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۶۶﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا

او چي نفع واخلي [ددنيا دژوند] | پس ډير زر به | معلوم شي دوئ ته | ايا نهٔ گوري دا خلق |

چي څو ورځي مزې واخلي | نو ډير زر به [په څان] پوهه شي | آيا دوئ چرې غور نه دي كړي

اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا وَّيُتَخَطَّفُ النَّاسُ

چي بيشكه جوړ كړو مونږ | امن وركونكي ځائي | حرم | حالاتكه تښتولي كيږي | خلق |

چي مونږ حرم د امن ځائي گرځولي دي | او د گير چاپيره علاقو نه خلق [په زوره] بهر ويستلي شي

مِنْ حَوْلِهِمْ ؕ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَكْفُرُوْنَ ﴿۶۷﴾

چاپيره دد، ئ نه | آيا پس په باطل باندي | ايمان راوړي دوئ | او په نعمت دالله | كفر كوي دوئ |

نو آيا دوئ بيا هم په باطلو معبودانو باندي ايمان راوړي | او دالله ﷻ دنعمتونو ناشكري كوي

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ

او څوك دي | ډير ظالم | دهغه چانه | چي دخانه جوړوي | په الله باندي | دروغ | يا دروغ گڼړي |

او د هغه چا نه غټ ظالم څوك كيديشى اچي په الله ﷻ پورې دروغ اوتړي | يا كله چي

بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهٗ ؕ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۶۸﴾

حق لره | هر كله چي | راشي هغه ته | آيا نشته | په دوزخ كښي ځائي | دپاره دكافرانو |

حقه خبره ورته اورسيږي | نو هغې ته دروغ وائي | آيا دكافرو استوگنه به په دوزخ كښي نه وي؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | جَاهَدُوْا | فِيْنَا | لَنَهْدِيَنَّهُمْ | سُبُلَنَا ؕ |
| او هغه كسان | چې محنت كوي | په دين زمونږ كښې | خامخا به ښايو مونږ هغوئ ته | لارې زمونږ |
| اوڅوک چې زمونږ د دين په لاره کښې كوشش كوي نو مونږ به ورته خپلې لارې اوښايو | | | | |
| وَاِنَّ اللّٰهَ | لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۶۹﴾ | | | |
| او بې شكه الله | خامخا دنيك عملو خلقو سره دې | | | |
| اوبيشكه الله ﷻ نيكانو خلقو سره دې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او دا د دنيا ژوند د لوبو او تماشو نه علاوه هيڅ هم نه دی ، او حقيقت دا دې چه كور د آخرت اصل ژوند دې، كه چرې دا خلق پوهيدلې! پس چه كله دوی په كشتۍ كښ سوريږی نو الله پاک ته داسې آوازونه كوی چه دهغوی اعتقاد خالص هم په هغه باندې دې بيا چه كله هغه هغوی بچ كولو سره خشكۍ ته راولی نو فورًا شرک كوی او دې كړی دوی ناشكری د هغه نعمت كوم چه مونږ دوی ته وركړې دې، او وادِخلی څه مزې! بيا هغه وخت لرې نه دې چه دوئ ته به د دې هر څه پته اولګی. آيا دې خلقو دا نه دی كتلې چه مونږ (د دوئ ښهر) يو پُر آمن حَرم جوړ كړې دې او د دوئ نه د ګير چاپيره خلقو دا حال دې چه هغوی اوچتولې شی آيا بيا هم دوی په باطل باندې ايمان راوړی او د الله پاک د نعمتونو ناشكری كوی؟ او د هغه سړی نه زيات ظالم به څوک وی چه په الله پاک باندې دروغ جوړ كړی يا چه كله هغه ته د حق خبره راورسی نو د هغې تكذيب اوكړی؟ آيا په جهنم كښ (د داسې) كافرانو استوګنه نه ده؟ او كومو خلقو چه زمونږ دپاره كوشش كړې دې، مونږ به هغوی ضرور خپلو لارو ته رسوو او يقينًا الله پاک د نيكئ كونكو سره دې.

## خلاصه تفسير

[او] وجه ددوی دغورنه كولو زيات ننوتل دی ددنياپه شغلونو كښې حال دادې چې ﴿وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ﴾ [دادنياوی ژوند] دكوم چې دا تمامتر شغلونه دی فی نفسه ﴿اِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ ؕ﴾ [بغير دلهو لعب نه نور هيڅ نشته ﴿وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ ۘ﴾ او اصل ژوند دعالم اخرت دې] چنانچې ددنيا دفانی والی او داخرت دباقی والی نه دا دواړه مضمونونه ظاهر دی پس په فانی كښې دومره مشغوليدل چې باقی پرې پريږدی او محرومه شی ترې نه په خپله دادبې عقلئ خبره ده ﴿لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۶۴﴾﴾ [كه دوی ته ددې] پوره [علم وی نو داسې به ئې نه كول] چې په فانی كښې به داسې مشغوليدل چې باقی به ئې پرې هيرولو او انتظام به ئې ورله نه كولو بلكه دې خلقو به په دليلونو كښې غور كولو او ايمان به ئې راوړو لكه چې په خپله دوی دامنی چې دكائناتو په پيداكولو او باقی ساتلو كښې دخدائ سره څوک شريک نشته [بيا] لكه چې ددوی د دې اقرار اومنلو مقتضا ده چې په خدائ او عبادت كښې ئې هغه يو منلې او ددې ئې هم كله اقرار او اظهار كولې چنانچې ﴿فَاِذَا رَكِبُوْا فِي الْفُلْكِ﴾ [هر كله چې دا خلق په كشتئ كښې سوريږی ] او دغه كشتئ په ښكته پورته كيدو شی [نو] نودغه وخت ﴿دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ﴾ [په خالصه عقيده سره الله تعالی لره رابلی] چې [لئن انجيتنا من هذه لنكونن من الشكرين ای

الموحدين.]([1]) چې په دې كښې دخدايۍ په اختياراتو او معبوديت كښې هم دتوحيداقرار دې مګر دا حالت په وجه دمشغلوددنيا كښې دننوتو ډير وخت پورې وی چنانچې دغه وخت خو تول قول او اقراردتوحيد وشی مګر ﴿فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ اِلَى الْبَرِّ﴾ [بيا چې هركله دوی ته] د دې افت نه [نجات وركړو اوچې ته يې راولو ﴿اِذَا هُمْ يُشْرِكُوْنَ﴾ نو هغوی فورا شرك كوونكی شی ﴿لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ﴾ چې مطلب يې دادې مونږ چې كوم نعمت] دنجات وغيره [دوی ته وركړې دې دهغې ناقدری كوی او دا خلق ] دشرك په عقيدو او دفسق په كارونو كښې دنفسانی خواهشاتوتابعداری وكړی ﴿وَلِيَتَمَتَّعُوْا﴾ [لږه نوره مزه حاصله كړی ﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ﴾ بيا نزدې ده چې دوی به په دې هر څه باندخبرشی] او اوس ددې دنيا په شغلونوكښې دننوتو په وجه هيڅ نه وينی پس يو مانع خو دوی ته دتوحيدنه دا شغلونه دی او دويم يې يوه بله نامعقوله حيله مانعه ئې راويستلې ده هغه دا وائی چې [ان تبع الهدى معك نتخطف من ارضنا]([2]) يعنی كه مونږ مسلمانان شو نو مونږ به دعربوخلق مړه كړی حال دادې چې په خپله په مشاهده سره دوی ته ددې لغو والې معلوميږی ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا﴾ [ ايا دې خلقو دې خبرې ته نه دی كتلی چې مونږه] د دوی ښار مكې لره [امن والا حرم جوړكړې دې ﴿ وَّيُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ﴾ او ددې په خواوشا ] خايونو[كښې] كوم چې دحرم نه بهردی [خلقو لره] وهلې ټكولې او دخپلو كورونو نه [ويستلې شی] په خلاف ددوی چې په امن سره ناست دی او داخبره په خپله محسوسه ده نو دبديهياتونه تيريږی په محسوساتو كښې هم خلاف كوی او دهلاكت ويره په ايمان راوړو كښې مانع عذر جوړوی او [بيا] دحق واضح كيدو نه پس ددې حماقت او ضد [څه] خائې دې چې ﴿اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ﴾ [داخلق ددروغو په معبودانو خو ايمان راوړی] چې په دغو دايمان راوړو هيڅ مقتضی نشته او موانع ډير دی ﴿وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَكْفُرُوْنَ﴾ [ او دالله تعالى] په كوم چې دايمان راوړو ډيرې مقتضاګانې او صحيح دليلونه دی دهغه [دنعمتونو ناشكری كوی] يعنی دالله تعالى سره شرك [كوی] ځكه چې دشرك نه بله لويه ناشكری نشته چې رزق هغه وركوی پيدا كوی هغه بقاو تدبير وغيره هغه كوی او عبادت كوم چې ددې نعمتونو شكر دې دبل دپاره تجويزكړې شی [او] واقعی خبره داده چې ﴿وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ [دهغه سړی نه زيات بې انصافه به بل څوك وی كوم چې] بې دليله [په الله تعالى پورې دروغ جوړ كړی] چې هغه شريك لری ﴿اَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهٗ﴾ [هركله چې ربښتونې خبره ده ته ورسيږی] ددليل سره نو [هغه دروغژنه كړی] ښكاره بې انصافی ده چې بې دليله خبره ربښتونې كړی او دليل والا خبره دروغژن كړی ﴿اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ﴾ [ايا دداسې كافرانو] چې دومره بې انصافی كوی [ به په جهنم كښې ځاىٔ نه وی؟] يعنی خامخا به وی ځكه چې سزا مناسب دجرم وی پس لكه څنګه چې جرم لوئ دې داسې يې سزا لويه ده بره دهغو حال وو كوم چې كافران او نفس پرست وی [او] اوس دهغوی دمخالفو بيان دې چې ﴿وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾ [كوم خلق چې زمونږ په لاره كښې تكليفونه برداشت كوی مونږ به هغوی ته خپلې ] دقرب او ثواب يعنی جنت [لارې خامخا وښايو] په كومو چې به هغوی جنت

---

[1] ) ترجمه:- كه مونږ تاسو ددوئ نه بچ كړو نو مونږ به ضرور شكرګزار جوړ شو.

[2] ) ترجمه: كه مونږتاسره شو اوپه هدايت باندې روان شو نو مونږ زرتر زره دخپل ځائې نه بې ځايه كړې شو.

ته ورسيږي لکه دا قول دالله تعالى ﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا﴾ [الاية](۱) ﴿وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ﴾ [اوبيشکه الله تعالى] رضا او رحمت يې [دداسې اخلاص مندوسره دې] په دنيا کښې هم او په اخرت کښې هم

## معارف او مسائل

﴿وَمَا هَٰذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ﴾ په تير شوؤ آيتونو کښې د کافرانو او مشرکانو داحال بيان شو چې دوئ هم په دې خبره يقين لري چې الله ﷻ زمکه اوآسمانونه پيدا کړي دي، د نمر ، سپوږمۍ انتظام ئې برابر کړې دې. بارانونه هم هغه وروی ، په دې سره د زمکې نه زرغونه هم کوی. په دې کښې د هيڅ يو بت شريکيدل نه منی خو سره ددې دوئ بتانو لره دالله ﷻ شريکان بولی. وجه ئې دا ده چې ﴿وَأَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ﴾ يعنی په دوئ کښې اکثر خلق د عقل نه پاک دی]

دلته دا سوال پيدا کيږي چې دوئ د عقل نه پاک څنګه کيديشي چې ګنی ليونی دی ، سره ددې چې دوئ ددنيا لوئې لوئې کارونه په ښه شان سره سرته رسوی. ددې جواب د مذکوره آيتونو څنې په اول آيت کښې دا ورکړې شوې دې چې ددنيا او ددې فانی خوندونو او خواهشاتو مينې محبت په آخرت او انجام کښې د فکر کولو نه ړانده او ناپوهه جوړ کړی دی. حالانکه ددې دنيا ژوند لهوولهب يعنی د وخت تيرولو د شغل او لوبو نه سوا بل هيڅ نه دی ، دهميشه اصلی ژوند دآخرت دې لکه فرمائی چې ﴿وَمَا هَٰذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ ۚ وَإِنَّ الدَّارَ الْآخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ﴾ دلته د ﴿الْحَيَوَانُ﴾ مصدری معنی حيات يعنی ژوند ده .[ قرطبی ](۲)

ددنيا ژوند ته لهولعب ځکه اوفرمائيلې شو چې څنګه لوبې توقې څه وخت دپاره وی ثبات او قرار نه لري او څه لوئې مقصد ترې نه حل کيږي او بيا ټوله تماشه ختمه شی ، دغه حال ددنيا د ژوند هم دې.

ورپسې آيت کښې د مشرکانو يو بل خراب حال دا اوخودلې شو چې څنګه داخلق د کائناتو پيدا کوونکې يواځې الله ﷻ بولی خو بيا هم بې عقلی ئې داده چې بتان سره ددې نه بې هيسه په خدائې کښې شريکان بولی. ددې نه زياته عجيبه خبره داده چې هرکله دوئ ته څه غټ مصيبت اورسی نو دغه وخت هم ددوئ اقرار او يقين دا وی چې په دې کښې سوا د الله ﷻ نه زمونږ بل هيڅوک امداد نشی کولې. ددې يو مثال ئې دا ورکړو چې کله د سمندری سفر په دوران کښې د دوئ د ډوبيدو خطره پيدا شی نو په دغه وخت کښې د يو بت نه دامداد غوښتلو په ځائې يواځې الله ﷻ لره بلی. الله ﷻ ئې ددغه آسره توب خيال اوساتی ، ددوئ دغه بلنه او دعا قبوله کړی. او ددغه مصيبت نه ورته نجات ورکړی. چې کله اوچې ته اورسی او ښۀ په تسلئ کښې شی نو بيا بتان الله تعالى سره شريکوی. څنګه چې د ﴿فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ﴾ مطلب هم دادې.

**فائده** :: ددې آيت مبارک نه معلومه شوه چې کله کافر ځان بې آسرې بيامومی نو صرف الله ﷻ آسره کړی نو بيائې هم الله ﷻ دعاقبلوی. او دا الله تعالى وعده کړې ده چې د مجبورو ،

(۱) ترجمه:- اوهغه خلق به وائی چې دالله تعالى لاك لاك شكر دې چې هغه مونږ دې مقام ته رااورسولو.
(۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۳ص:۳۶۲]

مضطرو او بې آسرې بندګانو دعا به قبلوم . [ قرطبی وغيره] [1] په يو آيت کښې چې دا راغلی دی چې ﴿ومادعاءالكافرين الافي ضلل﴾ يعنی داکافران ددعا قبليدوجوګه نه دی. دا د آخرت باره کښې دی چې کله په آخرت کښې کافران د الله ﷻ د عذاب نه د خلاصيدو دعا اوکړی هغه بهٔ نشی قبلولې.

﴿اولم يروا انا جعلنا حرما امنا﴾ په تيرو شوؤ آيتونو کښې د مکې د مشرکانو د جاهلانه حرکتونو بيان وو چې ددوئ خو دا اقرار او يقين دې چې دا ټول مخلوقات الله ﷻ پيدا کړي دی خو بيا هم هغه بتان په خدائي کښې الله ﷻ سره شريکوی چې په خپل لاس ئې دلرګی او کانړی نه جوړ کړی دی. يواځې دانه ده چې د ټولو مخلوقاتو خالق الله ﷻ لره منی بلکه په زيات مشکل وخت کښې د مصيبت نه خلاصې ورکول هم دهغه په اختيار کښې بولی ، هغه مصيبت نه چې خلاص شی نو بيا په شرک کولو کښې لګيا شی ،د ځينې مشرکانو د طرفنه د خپل کفر او شرک په باره کښې دا عذر هم پيش کولې شو چې مونږ خو ستاسو دين حق او درست منو خو که دغه اختيار کړو نو ويريږو چې نور عرب به مو بيخی اوتښتوی او مونږ به تباه کړی ځکه چې هغوئ د اسلام خلاف دی ، [ د ابن عباس ﷺ نه په حواله دروح ] [2].

ددې په جواب کښې الله ﷻ اوفرمائيل چې دا عذر هم عبث ځکه دې چې دمکې خلقو ته الله ﷻ داسې شرافت اوبزرګی ورکړې ده چې په دنيا کښې ئې د بل هيڅ مقام استوګنو ته نه ده ورکړې ، ولې چې مونږ د مکې مکرمې پوره زمکه حرم ګرځولې ده. کافران او مؤمنان ټول ددې قدر اوعزت کوی. په دې کښې مرګ ، ژوبله کول حرام ګڼړی ، تر دې چې هلته ښکار کول او يو ځناور وژل او ونې [درختې] وانبه پريکول هم حرام ګڼړی. دبهرنه که څوک بنده هم حرم ته داخل شی نو هغه هم د وژلو نه محفوظ شی ځکه دمکې دمشرکانو داعبث عذر د منلو وړ نه دې چې په اسلام راوړلو سره به ګڼی دوئ غير محفوظ شی او تباه به کړې شی .

﴿والذين جاهدوا فينا لنهدينهم سبلنا﴾ دجهاد اصلی معنی دا ده چې په دين کښې د راتلونکو خنډونو لرې کولو دپاره خپل ټول زور اولګولې شی په دې کښې هغه بنديزونه اوخنډان هم راځی چې دشيطان او نفس د اړخه راپيښيږی او هم هغه چې د کافرانو د اړخه دمرګ ژوبلې په صورت کښې راپيښيږی ، د جهاد په دې دواړو قسمونو باندې دا وعده ده چې مونږ جهاد کوؤنکو ته دخپلو لارو طرفته هدايت کوؤ.

دجهاد په دې دواړو قسمونو باندې پدې آيت کښې دا وعده ده چې مونږ به جهاد کؤنکو ته دخپلو لارو طرفته هدايت کولو يعنی په کومو موقعو چې د خير او شر او د حق او د باطل ياد فائدې او ضرر بيلتون کول ګران شی او عقل مند انسان فکر کوی چې کومه لار اختيار کړم ، په داسې موقعو کښې الله ﷻ په خپله لار کښې جهاد کوؤنکو ته صحيح ، نيغه او بې خطرې لار داسې ښائی چې زړونه يې داسې اړخ ته ګرځوی په کوم کښې چې خير او برکت وی.

**په علم باندې عمل کولو سره په علم کښې زياتوالئ راتلل** :: ابودرداء ﷺ ددې آيت په تفسير کښې فرمائيلی دی چې دالله ﷻ د طرفنه په ورکړې شوی علم باندې دعمل کولوجهاد چې څوک

---

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۳ص:۲۲۳]
[2] ) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۵ ص:۳۱٦]

كوي نو الله ﷻ فرمائي چې مونږ پرې نور علوم هم څرګند وو كوم چې تر اوسه ورته څرګند نه وو. او فضيل بن عياض رحمه الله فرمائي چې څوك دعلم دين په طلب كښې كوشش كوي مونږ هغوئ دپاره عمل هم آسانوو [مظهري][1] والله سبحانه وتعالى اعلم.

[تمت سورة العنكبوت]

| اياتونه | | سورة الروم مكية وهي ستون اٰية وست ركوعات | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۶۰ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ۶ |

الٓمّٓ ۝ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ۝ فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ وَهُمْ

الف . لام . ميم | غلبه حاصله كړې شوه په روم باندې | په نزدې زمكه كښې | او هغوئ به

الم : روميانو [دشام دملك] په نزدې علاقو كښې [دايران دلاسه] ماتې اوخوړله | او هغوى به

مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ۝ فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ۗ لِلّٰهِ الْاَمْرُ

روستو دمغلو بوالي خپل نه | زر غالب شي | په يو څو كلونو كښې | خاص الله لره دې | اختيار

ددې ماتې [شكست] نه پس په يو څوكاله كښې دننه دننه بيا غالب شي . | وړاندې هم د الله تعالى

مِنْ قَبْلُ وَمِنْۢ بَعْدُ ۗ وَيَوْمَىِٕذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝

مخكښې [يعنى اول هم] | او روستو هم | او په دغه ورځ به | خوشحالى كوى | مومنان |

اختيار وو | او روستو هم[اختيار] د هغه دې | او په دغه ورځ به مسلمانان د الله تعالى په مدد

بِنَصْرِ اللّٰهِ ۗ يَنْصُرُ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۝

په امداد دالله سره | امداد كوى الله | دهغه چاچې خوښه ئې شي | او هغه | غالب دې | مهربانه دې |

خوشحالى كوى | هغه چې دهرچا باره كښې اوغواړى مدد ورسره كوى |اوهغه زبردست اورحم كونكې دې

وَعْدَ اللّٰهِ ۗ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

دا وعده دالله ده | خلاف نه كوى الله | دوعدې خپلې | وليكن | اكثر خلق |

دا د الله ﷻ وعده ده | الله ﷻ دخپلې وعدې نه هيڅ كله خلاف نه كوى | خوزيات خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَهُمْ

نه پوهيږى | او پوهيږى خلق | په ظاهرى اړخ | دژوند ددنيا نه | او دوئ |

په دې نه پوهيږى | ........داخلق خو بس ددنيا دژوند په ظاهرى خبرو پوهيږى | او دوى د

عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ ۝

داخرت نه | هم دوئ | غافله دى |

اخرت نه بيخي ناخبره دى |

[1]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۷ص:۲۱۶]

## اسان ترجمه قرآن

الٓمّٓ. روميان په نزدې زمكه كښې مغلوب شوي دي، او هغوى به دخپل مغلوب كيدلو نه پس نزدې ده چه غالب راشي په څو كالو كښې! ټول اختيار الله تعالى لره دې، مخكښې هم او روستو هم. او په هغه ورځ به مؤمنان د الله تعالى وركړې شوې فتح باندې خوشحاله وي هغه چاته چه اوغواړي فتح وركوي، او هم هغه صاحب داقتدار هم دې او لوئې مهربان هم دې، دا د الله تعالى كړې شوې وعده ده. الله تعالى دخپلې وعدې نه خلاف نه كوي، ليكن اكثر خلق نه پوهيږي. هغوى د دنيوى ژوند صرف په ظاهري طرف باندې پوهيږي، او د آخرت باره كښې دهغوى حال دادې، چه هغوى د آخرت نه بالكل غافل دي.

### خلاصه تفسير

﴿الٓمّٓ﴾ الله تعالى ته ددې معنى معلومه ده ﴿غُلِبَتِ الرُّوْمُ ۙ فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ﴾ [اهل روم په يوه نزدې موقع كښې] يعنى په مزكه د روم كښې په داسې مقام كښې كوم چې په نسبت دفارس عربو ته زيات نزدې دې مراد ددې نه اذرعات اوبصرى ده كوم چې دشام په ملك كښې دوه ښارونه دي ،كذافى القاموس، او د روم دحكومت لاند دى نود روم په مزكه كښې داخل دى په دې موقع روميان دفارسيانو په مقابله كښې [مغلوبه شول] په دې سره مشركان خوشحاله شول ﴿وَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ۙ فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ۬ؕ﴾ [اوهغه] روميان [به دخپل] دې [مغلوب كيدو نه پس ډير ژر] په فارسيانو باند په بله مقابله كښې [د درې كالونه تر نهو كالو پورې په دننه موده كښې غالب راشي] او دامغلوب او غالب كيدل ټول دالله تعالى دطرف نه دى ځكه چې ﴿لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ﴾ د مغلوب كيدونه [اول هم د الله تعالى اختيار وو] چې په هغې سره ئې مغلوبه كړى وو ﴿وَمِنْۢ بَعْدُ ؕ﴾ [او] دمغلوب كيدونه [وروستوهم] دالله تعالى اختيار دې چې په هغې سره به ئې غالب كړى ﴿وَيَوْمَئِذٍ﴾ [او په هغه ورځ] يعنى هركله چې روميان غالب شى ﴿يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ۙ بِنَصْرِ اللّٰهِ ؕ﴾ [مسلمانان به دالله تعالى په دې امداد باند خوشحاله شى] ددې امداد نه يا خو دا مراد دې چې الله تعالى به مسلمانان ددوى په خبره كښې رښتونى او ياغالب كړى ځكه چې دا پيشگوئى مسلمانانو كفارو ته ظاهره كړه او هغوى دورغژنه كړه نو ددې په واقع كيدو به دمسلمانانو گټه وشي او يادا مراددې چه مسلمانان به په جنګ كښې هم غالب كړى چنانچې دغه وخت په جنګ د بدر كښې دفتح مندكيدو وو او په هرحال كښې دفتح محل اهل اسلام دى او دمسلمانانو په ظاهرى حالت دمغلوبيت ليدو باند دې دالرې نه شى ګنړلې چې دا مغلوب مسلمانان به دمقابلې په وخت كښې په كفارو غالب راشى ځكه چې نصرت دالله تعالى په قبضه كښې دې ﴿يَنْصُرُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ﴾ [هغه چې چالره غواړى غالب كوى ئې ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۙ﴾ او هغه زبردست دې] كفارو لره چې كله وغواړى قولا يافعلا مغلوب به ئې كړى او [رحيم] هم [دې] مسلمانانو لره چې كله غواړى غالب به ئې كړى ﴿وَعْدَ اللّٰهِ ؕ﴾ [الله تعالى ددې وعده فرمائيلې ده] او ﴿لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ﴾ [الله تعالى دخپلې وعدې نه خلاف نه كوى] په دې واسطه سره دا پيشگوئى به خامخا واقع كيږى ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ﴾ [ليكن اكثر خلق] دالله تعالى په نصرفاتو ﴿لَا يَعْلَمُوْنَ ۝﴾ [نه پوهيږى] بلكه صرف ظاهرى اسباب وينى په دغو اسبابوحكم لګوى په دې وجه دا پيشگوئى ډيره بعيده ګنړى حالاتكه مسبب الاسباب او مالك داسبابو حق تعالى

دي هغه ته اسباب بدلول هم اسان دي او داسبابو خلاف دمسبب واقع كول ورته هم اسان دي اولكه څنګه چې دپيشګويئ د واقع كيدونه وړاند دظاهري اسبابو په نه كيدو سره ددې نه انكاركوي دغه شان چې پيشګوئي پوره ويني دا به يو اتفاقي كار وګڼي او دالله تعالى د وعدې ظاهريدل به يې نه ګڼړي په دې وجه په لفظ د [لايعلمون] كښې دواړه څيزونه راغلل ددې خلقو دالله تعالى اونبوت نه دغافل او جاهل كيدو سبب دادې چې ﴿يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۖ﴾[دا خلق صرف ددنيوى [ژوند په ظاهر] حالت [باندې پوهيږي﴿وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ۞﴾ او داخلق داخرت نه] بالكل [ناخبره دى ] چې هلته به څه وي په دې وجه ددوى سره په دنيا كښې نه دعذاب د اسبابونه بچ كيدو فكر شته اونه دنجات داسبابو دايمان اونيك عمل تلاش شته

## معارف او مسائل

**دسورة روم دنازليدو او د فارس د جنګ قيصه :** ﴿الٓمّٓ ۚ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ۞﴾ سورة عنكبوت په داسې آيت مبارك باندې ختم شوې دې چې په كښې الله ﷻ په داسې خلقو باندې د خپلو لارو د پرانيستو او خلاصولو او ددوئ په مقصدونو كښې د كاميابولو زيرې وركړې دې كوم چې جهاد او مجاهده كوى. سورة روم چې د كومې قيصې نه شروع شو هغه دالله ﷻ د مدد يو ننداره ده ، په دې سورت كښې د روم او فارس ترمينځه دجنګ په واقعه كښې دواړه فريقه كافران وو. په ظاهره خو ديو فريق غالب كيدل او دبل مغلوب كيدل د اسلام يا مسلمانانو د دلچسپئ څه څيز نه وو. خو دغې دواړو ډلو دكافرانو كښې فرق دا وو چې اهل فارس مشركان آتش پرست وو او روميان نصارى او اهل كتاب وو اوښكاره خبره ده چې په دواړوقسمونو كافرانو كښې اهل كتاب ، مسلمانانو سره نسبتا نزدې دى چې د دين ګڼړ اصول په آخرت ، پيغمبرئى او وحى باندې ايمان راوړل ئې مسلمانانو سره شريك دى څنګه چې رسول الله ﷺ دا اشتراك په هغه وخت هم څرګند كړو كله ئې چې د روم د بادشاه په نوم دين اسلام ته د بلنې دپاره خط مبارك اوليكلو ، لكه داسې ئې اوليكل چې ﴿تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ﴾ [الايه][1] نو مسلمانانو سره د اهل كتابو يو قسم نزديكت ددې سبب جوړ شو چې د رسول الله ﷺ دمكې مكرمې د قيام په دوران كښې فارس په روم باندې حمله اوكړه . دحافظ ابن حجر رحمه الله وغيره د قول مطابق د دوئ دا جنګ د شام ملك اود اذرعات اوبصرى مقاماتو ترمينځه واقع شو. ددې جنګ دوران كښې د مكې مشركانو دا غوښتله چې فارس غالب شي ولې چې هغوئ هم مشركان او بت پرست وو او مسلمانانو دا غوښتل چې روم دې غالب شي څكه چې هغوئ د مذهب په اعتبار سره اسلام ته نزدې وو . خو داسې اوشو چې فارس په روم باندې غالب راغلو تر دې چې قسطنطنيه ئې هم فتح كړه او هلته ئې د خپل عبادت دپاره يو آتش كده جوړه كړه اودا فتح د كسرى پرويز آخرى فتح وه . دې نه پس دهغه زوال شروع شو اوبيا د مسلمانانو د لاسه دهغه خاتمه اوشوه [قرطبى ][2].

[1]) ترجمه:- راشئ يو داسې خبرې طرفته چې هغه زمونږ اوستاسو په مينځ كښې برابره ده.
[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱٤ص:٤٠٥]

په دې واقعه باندې د مکې مشرکانو خوشحالئ اوکړه او مسلمانانو ته ئې پيغور ورکړو چې تاسو څوک غوښتل هغوئ نا کام شو څنګه چې دغلته اوشو دغسې به مونږ هم ستاسو په مقابله کښې غالب راځو ، په دې باندې مسلمانان خفه شو [ابن جرير ، ابن ابى حاتم ](1).

قرآن کريم کښې دسورة روم دشروع آيتونه ددې واقعې په باره کښې نازل شو چې په کښې داپيشنګوئ اوزيرې ورکړې شوې دې چې څوکاله پس به بيا روم په فارس باندې غالب راشى.

ګله چې ابوبکرصديق رضي الله عنه داآيتونه واوريدل نو د مکې مکرمې په خواؤ شا کښې او د مشرکانو په بهيټکونو او ديرو او بازارونو کښې ئې دا اعلان اوکړو چې ستاسو د خوشحاليدو څه موقع نشته دې. په څوکلونو کښې به بيا روم په فارس باندې غالب شى. دمکې په مشرکانو کښې ابى بن خلف مقابله اوکړه او وې وئيل چې تاسو دروغ وايئ داسې نه شى کيدې. ابوبکرصديق رضي الله عنه اوفرمائيل چې ائې دالله ﷻ دښمنه هم ته دروغژن يئ او زه خو په دې واقعه ئې شرط لګولو ته تيار يم که په دريو کالو کښې دننه فارس په روم غالب راغلو نو زه به درته لس اوښې درکړم او که روم غالب شو نو لس اوښې به ته راکوې. [ دامعامله اګر چې د جوارئ وه خو تر دغه پورې جوارى حرامه شوې نه وه] ددې فرمائيلو نه پس ابوبکر صديق رضي الله عنه د نبى کريم ﷺ خدمت کښې حاضرشو او دا واقعه يې ورته عرض کړه. نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چې ما خو د دريو کالو موده نه وه ټاکلې بلکه قرآن پاک کښې خو د ﴿بِضْعِ سِنِينَ﴾ لفظ راغلې دې چې د دريو نه تر نهو کالو پورې موده ترې مراد کيديشى. ته لاړ شه او چا سره دې چې دا لوظ او شرط ايښې دې نو هغه ته اووايه چې زه به د لسو اوښو په ځائې د سلو اوښو شرط درسره لګوم خو د دريو کالو دمودې په ځائې نهه کاله يا دځينې نورو روايتونو مطابق اووۀ کاله شرط لګوم. صديق اکبر رضي الله عنه د حکم مطابق ورغلو او ابى بن خلف ئې په دغه نوې لوظ نامه راضى کړو [ابن جرير په خپل سند سره دمجاهد رحمه الله نه او دا قيصه تر مذى د ابى سعيد خدرى رضي الله عنه او دينار بن مکرم الاسلمى رضي الله عنه نه سره د لږ بدلون نه روايت کړه](2)

دحديث پاک درروايتونو نه معلوميږى چې دا واقعه د هجرت نه پنځه کاله آګاهو [مخکښې] راپيښه شوې وه ، پوره اووۀ کاله پس د غزوه بدر په وخت روم دوباره په فارس باندې غالب راغلل. دغه وخت ابى بن خلف مړ شوې وو ، صديق اکبر رضي الله عنه د بيان لوظ او شرط مطابق د هغه د وارثانو نه دسلو اوښو مطالبه اوکړه هغوئ اوښې ورکړې.

دځينې روايتونو مطابق کله چې ابى بن خلف ته ددې خبرې انديښنه شوه چې هسې نه صديق اکبر رضي الله عنه هم هجرت اوکړو نو زما د شرط اوښې به ماته څوک راکوى ؟ نو ابوبکر صديق رضي الله عنه ته اووئيل چې تر هغه پورې دې نه پريږدم تر څو چې ته يو کفيل پيش نه کړې چې که د معين موت پورې روم غالب نه راغلو نو هغه کفيل به ما ته سل اوښې راکوى او ابوبکرصديق رضي الله عنه ورته په ضمانت کښې خپل ځوئې عبدالرحمان ورکړو.

---

(1) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج:۲۰ ص:۶۸]

(2) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج:۲۰ ص:۷۰] و جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب ومن سورة الروم [ج:۲ ص:۱۵٤]

کله چې ابوبکرصدیق ﷺ شرط اوګټلو او سل اوښې ئې تر لاسه کړې نو تولې ئې د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضرې کړې ، نبی کریم ﷺ ورته ددې اوښو د صدقه کولو حکم اوفرمائیلو. او ابی یعلی په ابن عساکر کښې د براء بن عازب ﷺ په روایت پدې کښې دا الفاظ منقول دی چې [ هذاالسحت تصدق به ] یعنی دا خو هم حرام دی صدقه ئې کړه. [روح المعانی]([1])

**دجوارئ مسئله** :: دقرآني نصونو تر مخه جواری بالکل حرامه ده . د مدینې منورې د هجرت نه پس کله چې شراب حرام کړې شو نو دې سره جواری هم حرامه کړې شوه. اودې ته شیطانی عمل اوونیلې شو ﴿إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ﴾([2]) خو دوه اړخیزه شرط کوم چې ابوبکرصدیق ﷺ لګولې وو ، دا اګر چې د جوارئ صورت وو خودا د هجرت نه وړاندې واقعه وه چې جواری حرامه نه وه ګرځولې شوې. ځکه رسول الله ﷺ ته دغه راوړې مال د جوارئ حرام مال نه وو.

اوس دلته دا سوال پیدا کیږی چې هرکله د جوارئ حرام مال نه وو نو هغوئ ته ئې ددې دخیرات کولو حکم ولې اوکړو؟ او خصوصا د بل روایت ترمخه ورته [السحت] یعنی حرام ولې اوونیلې شو. فقهاء کرامو ددې جواب دا لیکلې دې او فرمائیلې ئې دې چې اګر چې دغه مال په دغه وخت کښې حلال وو خو د جوارئ په ذریعه حاصل کړې شوې مال دغه وخت هم د نبی کریم ﷺ خوښ نه وو. دابوبکرصدیق ﷺ د شان مناسب ئې هم او نه ګڼړلو ځکه یې د صدقه کولو حکم اوفرمائیلو. داسې اوګڼړئی لکه چې شراب د حلالوالی په زمانه کښې هم نبی کریم ﷺ او ابوبکرصدیق ﷺ نه دی استعمال کړی.

کومو روایتونو کښې چې د [ سحت] لفظ راغلې دې اول خو محدثینو هغې لره صحیح نه دې منلې اوکه صحیح هم اوګڼړلې شی نو بیا هم دا لفظ ګڼړو معنو دپاره استعمالیږی. مشهوره معنی ئې اګر چې حرامه ده خو د مکروه او ناخوښه په معنی کښې هم مستعمل ده. لکه رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چې [ کسب الحجام سحت ]([3]) یعنی دښکر لګونکی ګټه سحت دی. او ددې معنی جمهورو فقهاء کرامو ناخوښه او مکروه کړې ده. امام راغب اصفهانی په مفردات القرآن کښې او ابن کثیر په نهایه کښې د سحت دا مختلفې معنی د عربو دمحاورو او احادیث نبویه ﷺ نه ثابتې کړې دی([4]).

د فقهاء کرامو دا کلام هم ځکه دقبلولو جوګه دې بلکه قبلول ئې واجب دی چې که دغه مال واقعی حرام وې نو مالک ته به ئې د بیرته واپس کولو حکم فرمائیلې وو. دهغه مال صدقه کول پکار دی چې مالک ئې معلوم نه وی. یاددې په واپس کولو کښې بله څه شرعی خرابی وی ، والله سبحانه وتعالی اعلم.

---

[1]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٥ ص:٣٢٤]
[2]) ترجمه:- خبره داده چې شراب ، جواری او بت وغیره او دفالونو غشی داټول ګنده خبرې دی او دشیطان کارونه دی.
[3]) السنن للبیهقي رقم الحدیث[ج:١٩ ص:٢٣٨]
[4]) مفردات القرآن للأصفهاني [ج: ١ ص:٢٢٥] والنهایة لابن الأثیر [ج: ٢ ص:٨٧٣]

﴿يَوْمَئِذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ۙ بِنَصْرِ اللّٰهِ ؕ ﴾ [يعنى په دغه ورځ كله چې روم په فارس باندې غالب شي مسلمانان به د الله ﷻ په مدد سره خوشحاله شي. ددې آيت د نظم نه معلوميږي چې د روم برې د الله تعالى په مدد سره وو. حالانكه دوئ كافر وو او د الله ﷻ د مدد حقدار نه وو. ددې يو جواب دادې چې ددوئ كفر دبلې ډلې يعنى فارس په مقابله كښې سپک وو. ځكه ئې ورسره دهغوئ په مقابله كښې مدد اوكړو. خصوصا چې دا دمسلمانانو د خوشحاليدو او د ګټې معامله هم وه. او بل احتمال دا هم كيديشى چې دا په حقيقت كښې مسلمانانو سره مدد كول داسې وو چې اول خو د روميانو كاميابيدل ، مسلمانانو د قرآن كريم د ريښتنوالي او د اسلام د حقانيت د دليل په ډول پش كړى وو ، بله داچې دغه زمانه كښې د كافرانو دوه غټ طاقتونه روم او فارس د مسلمانانو مقابله كښې وو نوددې دواړو ډلو خپلو سره جنګ كول د مسلمانانو په مقابله كښې كمزورى كول وو چې په مستقبل كښې د مسلمانانو د كاميابيدو سبب جوړيدو [ روح المعانى ](١)

﴿يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ ۝﴾ يعنى دا خلق ددنيوى ژوند په يو اړخ خو ډير ښه پوهيږى چې تجارت څنګه كيږى دكوم مال تجارت به اوكړو ، كوم ځائې به اخستل خرڅول اوكړو ، كر كروند به څنګه كوؤ ، تخم به كله اچوؤ ، كله به د فصل د ريبلو وخت وى ، آبادئ به څنګه كوؤ ، د عيش وعشرت څه څه سامانونه برابرول پكار دى ، خو ددنيوى ژوند بل اصل اړخ ته نه ګورى چې دلته به د مسافرو پشان په دې دنيا كښې پاتې كيدل وى او بيا دا ځائې پاتې كيدونكې دې ځكه چې د انسان اصلى ځائې آخرت دې. ددنيوى ژوند مثال داسې دې لكه چې په ويزه راغلې وى ، اوس دلته د انسان اصلى كار دادې چې خپل اصلى وطن دپاره دلته د راحت او آرام سامان تيار كړى او هلته ئې اوليږى. د راحت سامان نه مراد ايمان او نيک عمل دې ، نو ددې دويم اړخ نه د نوم غټ غټ هوښياران غافله ګرځى. د قرآن كريم په الفاظو چې غور اوكړې شى نو د ظَاهِرًا لفظ په تنوين سره نكره راوړل دااشاره وركوى چې په حقيقيت كښې دا خلق د دنيوى ژوند په ظاهره هم پوره نه پوهيږى ، دوئ ئې صرف په يو اړخ پوهيږى او بل اړخ آخرت نه ئې بيخى غافله اوناخبره دى.

**د معاش فنونه هغه په داسې صورت حاصل شي چې د آخرت نه غفلت وي نو هغه څه عقل مندي نه ده ::** قرآن كريم ددنيا د قومونو د عبرتناكو قيصو نه ډک دې چې ددنيا د ګټې او د عيش و عشرت په كارونو كښې ئې غټ نومونه لرل ، بيا د هغوئ خراب انجام هم د خلقو مخې ته راغلې دې. او د آخرت عذاب به ورته لا په بيله وركولې شى. نو په دې وجه ورته څوک پوهه بنده عقل مند او هوښياران نه شى وئيلې. افسوس چې نن صبا د عقل مندئ او هوښيارتيا معيار هم دا ګرځولې شوې دې چې زيات عقل مند او هوښيار هغه څوک دې چې زيات نه زيات مال جمع كړى اګر چې هغه كښې انسانى خويونه بالكل نه وى. د عقل او دشريعت تر مخه داسې كس ته عقل مند وئيل د عقل سپكاوې دې. دقرآن پاک په ژبه كښې عقل مندصرف هغه څوک دى چې الله تعالى او آخرت پيژنى اودهغې دپاره عمل كوى ، دنياوى ضروريات دخپل ضرورت مطابق حاصلوى ، دا دخپل ژوند مقصد نه ګڼړى ، څنګه چې دې قرآنى آيت ﴿اِنَّ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ

---

(١) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٥ ص:٣٢٩]

وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ۝ الَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا [الآيه](۱) مطلب هم دغه دي.

| | | |
|---|---|---|
| اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا | فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ | |
| آيا اونه کړو فکر دې خلقو | په نفسونو خپلو کښې | |
| ......آيا دوئ په خپلو زړونو کښې دا فکر نه دې کړې | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا خَلَقَ اللّٰهُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | وَمَا بَيْنَهُمَآ | اِلَّا | |
| نه دي پيدا کړي الله | اسمانونه | او زمکه | او هغه چې په منځ ددې دواړو کښې دي | مګر | |
| چې الله ﷻ اسمانونه او زمکه او ددې دواړو په مينځ کښې چې کوم څيزونه دي هغه عبث نه دي | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِالْحَقِّ | وَاَجَلٍ | مُّسَمًّى ؕ | وَاِنَّ | كَثِيْرًا | مِّنَ النَّاسِ | بِلِقَآئِ |
| په حقه سره | او دنيتې | مقررې سره | او بيشکه | ډير | دخلقو نه | په ملاقات |
| پيدا کړي ابلکه ديو حکمت دلاندې او ديوې مقررې نيتې دپاره پيدا شوي دي او ډير خلق هډو دخپل رب | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَبِّهِمْ | لَكٰفِرُوْنَ ۝ | اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا | فِي الْاَرْضِ | فَيَنْظُرُوْا | |
| درب خپل سره | خامخا منکر دي | آيا نه ګرزي دوئ | په زمکه کښې | چې اوګوري | |
| سره دملاقات کيدو نه منکر دي | آيا دوئ په زمکه کښې نه دي ګرځيدلي | چې اوګوري | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَيْفَ | كَانَ | عَاقِبَةُ | الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ | كَانُوْٓا |
| چې څرنګې | وو | انجام | دهغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو | وو هغوئ |
| چې ددوئ نه د وړاندينو خلقو انجام څه شو؟ | هغوئ [خو] ددوئ نه په طاقت کښې زيات وو | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَشَدَّ | مِنْهُمْ | قُوَّةً | وَّاَثَارُوا | الْاَرْضَ | وَعَمَرُوْهَآ |
| زيات سخت | ددوئ نه | په لحاظ دطاقت سره | او اړولي ني وه | زمکه | او اباده کړي ني وه هغه |
| او په زمکه کښې ئې کرونده هم ډيره کړې وه او څومره چې نن دوئ اباده کړې ده | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَكْثَرَ | مِمَّا | عَمَرُوْهَا | وَجَآءَتْهُمْ | رُسُلُهُمْ | بِالْبَيِّنٰتِ ؕ |
| زياته | دهغې نه | چې آباده کړې ده دوئ | او ورغلي وو هغوئ ته | رسولان دهغوئ | دروښانه نښو سره |
| ددې نه ډيره زياته هغوی آباده کړې وه او هغوئ ته خپلو پيغمبرانو معجزې راوړلې وې | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَمَا كَانَ اللّٰهُ | لِيَظْلِمَهُمْ | وَلٰكِنْ كَانُوْٓا | اَنْفُسَهُمْ | |
| پس نه وو الله | چې ظلم ني کوو په هغوئ باندې | وليکن وو هغوئ | په ځانونو خپلو باندې | |
| او الله ﷻ ورباندې ظلم نه کولو | خو هغوئ به پخپلو ځانونو ظلم کولو ........................ | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَظْلِمُوْنَ ۝ | ثُمَّ كَانَ | عَاقِبَةَ الَّذِيْنَ | اَسَآءُوا | السُّوْٓاٰى |
| چې ظلم ني کوو | بيا شو | انجام دهغه کسانو | چې بد ئې کړې وو | ډير بد |
| بيا کومو خلقو چې بد کارونه اوکړل | د هغوئ انجام ډير بد شو | ځکه چې هغوئ د الله ﷻ | | | |

(۱) ترجمه:- بيشکه د آسمان او زمکې په جوړولو کښې او دشپې او ورځې پرله پسې تلو راتلو کښې دلائل دي اهل عقل والو دپاره ، دهغوئ حالت دادې چې هغه خلق الله تعالی يادوی په ولاړه هم په ناسته هم او په ملاسته هم.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ كَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | وَكَانُوْا | بِهَا | يَسْتَهْزِءُوْنَ | |
| په دې وجه چې دروغ ئې گڼرلې وې | آيتونه دالله | او وو هغوى | په هغې پورې | چې توقې به ئې كولې | |
| آيتونه دروغ او گڼرل | ......... او په هغې پورې به ئې خنداكانې كولې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

آيا دوى په خپلو زړونو كښې غور او فكر نه دې كړې؟ چه الله تعالى آسمانونه او زمكه او ددې په مينځ كښې چه كوم څيزونه دى، بغير دځه برحق مقصد نه او څه ميعاد مقررولو نه بغير پيدا كړې نه دى او ډير خلق داسې دى چه دخپل پروردگار سره د ملاقات كولو نه منكر دى. آيا دا خلق په زمكه كښې گرځې راگرځې نه دې دپاره چه دوى اوگورى، چه ددوى نه مخكښې كوم خلق وو، دهغوى انجام څرنگه شو؟ هغوى په طاقت كښې ددوى نه زيات مضبوط وو، او هغوى زمكه هم جوت (كرونده) كړې وه، او څومره چه دې خلقو آباده كړې ده، دهغې نه زياته هغې خلقو آباده كړې وه، او هغوى ته دهغوى پيغمبران په ښكاره دلائلو سره راغلې وو، پس الله تعالى خو داسې نه وو چه په هغوى باندې ئې ظلم كړې وې، ليكن هغوى په خپله په خپلو ځانونو باندې ظلم كولو. بيا كومو خلقو چه بدى كړې وه دهغوى انجام هم بد شو ځكه چه هغوى دالله تعالى آيتونو ته دروغ وئيلې وو، او هغوى به آيتونو پورې توقې كولې.

## خلاصه تفسير

﴿اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ﴾ [آيا] دليلونه د واقع كيدو داخرت ئې واوريدل بياهم د دوى نظرونه په دنياپورې پيوست شوى دى او [هغوى په خپلو زړونو كښې داغور ونه كړو ﴿مَا خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ﴾ چې الله تعالى اسمانونو اومزكې لره او هغوڅيزونو لره كوم چې ددوى په مينځ كښې دى په څه حكمت سره ﴿وَاَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ او ديوميعاد مقرر دپاره پيدا كړې دى] لكه چې په دې ايتونو كښې ئې خبر وركړې دې چې په هغو حكمتونو كښې يو حكمت د جزا او سزا دې او ميعاد مقرر قيامت دې كه په خپلو زړونو كښې ئې غور كولې نو ددې واقعاتو امكان په عقل سره او ددې واقع كيدل په نقل يعنى قرآن سره او ددې نقل رښتونولې به په صفت د اعجاز سره ورته ښكاره شوې وو او داخرت به ئې انكارنه كولو مگر چې غور نه كوى نو په دې وجه انكار كوى [او] دا څه كوې نور ﴿وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ لَكٰفِرُوْنَ﴾ [ډير خلق دخپل رب سره دملاويدو منكر دى ﴿اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ ايا داخلق] چرې دكورونه نه دى وتلى او [په مزكه كښې گرځيدلى نه دى چې ليدلى كتلى ئې وې چې كوم ] منكر [خلق ددوى نه وړاند تير شوى دى د هغوى اخرى [انجام څنگه شو] حال دهغوى داوو چې ﴿كَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّاَثَارُوا الْاَرْضَ﴾ [هغه ددوى نه په قوت كښې زيات وو او هغوى مزكې لره هم ] ددوى نه زياته [كرلې وه ﴿وَعَمَرُوْهَآ اَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوْهَا﴾ او څومره چې دوى ] په سامانونو اومكانونو [دې لره اباده كړې ده ددې نه زياته هغوى دې لره اباده كړې وه ﴿وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ﴾ او هغوى ته هم دهغوى پيغمبرانو معجزې راوړې وې ] كومو لره چې هغوى ونه منلې او په عذاب سره هلاك شول دكومو دهلاكت نښې او ويران مكانونه چې دشام په لاره كښې ملاويږى ښكاره دى [پس] په دغې هلاكت كښې ﴿فَمَا كَانَ

اللهُ لِيَظْلِمَهُمْ﴾ [الله تعالى داسې نه وو چې په هغوی ئې ظلم کولو ﴿وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ﴾ لیکن هغوی په خپله په خپلوځانونو ظلم کولو] چې دپیغمبرانونه ئې انکار وکړو نو دهلاکت مستحق شول دا خو د هغوی حالت په دنیا کښې شو ﴿ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِيْنَ اَسَآءُوا السُّوْٓاٰى﴾ او [بیا] په اخرت کښې [دداسې خلقو انجام کومو چې] داسې [بدکار] یعنی درسولانونه انکار [کړې ووبدشو] محض ﴿اَنْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللهِ﴾ [په دې وجه چې هغوی دالله تعالی ایتونو لره] یعنی احکامو او خبرو لره [دروغژن کړی وو او] د دروغژن کولو نه سوا داچې ﴿وَكَانُوْا بِهَا يَسْتَهْزِءُوْنَ﴾ [په هغوی پورې ئې مسخرې کولې] دغه انجام د دوزخ سزا ده

## معارف او مسائل

﴿اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ﴾ دلته اولنی دوه آیتونه دتیر شوی مضمون تکمله دی او دا پرې لکه د ګواهئ بیان شوی دی چې دا خلق ددنیا دځو ورځو په پرق پروق او فانی لذتونو کښې داسې مست شو چې دحقیقت ددې کارخانې او انجام نه بیخی غافله شو که دوئ پخپله هم لږ شان په خپلو زړونو کښې غور او فکر کولې نو دوئ ته به ددنیا دکائناتودا راز څرګند شوې وو چې دکائناتو خالق دا آسمانونه ، زمکه او ددې دواړو ترمینځه مخلوقات فضول او بیکاره نه دی پیدا کړی. ددې په پیدا کولو کښې څه لوئې مقصد او لوئې حکمت دې. او هغه دادې چې دا خلق دالله ﷻ د بې شمیره نعمتونو په ذریعه ددې پیدا کوؤنکئ هم اوپیژنی اوددې په لټون کښې لګیا شی چې هغه ذات په کومو کارونو رضا کیږی چې د هغه د رضا جوئی سامان تلاش کړی او په کومو خفه کیږی ، د هغه نه ځانونه اوساتی. اوداهم ضرروی خبره ده چې ددې دواړو قسمونو کارونو څۀ جزا او سزا هم ضروری ده ، ګنی نیک او بد په یو چابرې کښې ایخودل هم د عدل و انصاف نه خلاف دی. او دا هم معلومه ده چې دنیا دار الجزا نه دې چې په کښې انسان ته دهغه د ښه یا خراب عمل پوره بدله ضرور ملاؤ شی. بلکه دلته خو هم داسې کیږی چې ناکاره او بدکاره بنده همیشه دپاره خپل عمر په خندا خوشحالئ تیروی او کامیاب او بامراده ښکاری. او څوک چې د خرابو کارونو نه ځان اوساتی نو هغه لنډ تنګ ژوند تیروی اومصیبتونو او مرضونو کښې ګیر ښکاری.

خکه دا ضروری دی چې داسې یو وخت دې راشی چې دا ټوله کارخانه ختمه شی ، د ښو او بدعملونوحساب اوشی اوپه هغې باندې جزا وسزا ورکړې شی ، ددې نوم قیامت اوآخرت دې.

خلاصه دا ده که دې خلقو غور فکر کولې نو هم دې آسمان اوزمکې اوددې مخلوقاتو به ګواهی ورکوله چې دا همیشګیر څیزونه ، نه دی بلکه څه مودې دپاره دی اودې پسې بل یو داسې جهان راځی چې همیشه به پاتې کیدونکې وی. په دغه دوؤ آیتونو کښې د ړومبی آیت مبارک هم دا حاصل دې چې ﴿اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ﴾ [الاية]

دا خودیو عقلی دلیل نیولو مضمون دې په راتلونکی آیت کښې ددنیا محسوسات ، مشاهدات او تجربات ددې په ګواهئ کښې پیش کړې شوی دی او اهل مکه ئې په دې شان مخاطب کړی دی چې :

﴿اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ﴾ یعنی دمکې خلق خو د داسې زمکې باشندګان دی چې دلته څه کرکرونده ، کارخانې او تجارت نه کیږی ، نه دلته څه لوړ دنګ ښکلی عمارتونه شته ، خو

دشام اویمن د سفر په دوران کښي کله چې د تجارتی مقصدونو دپاره ئې کوی ، په دې کښې دې خلقو ددغه ځایونو د پخوانو قومونو انجام او نه لیدلو ، چې الله ﷻ ورته په زمکه کښې لوئې تصرفات ورکړی وو. اوددې چلونه ئې ورته خودلی وو ؛چې د زمکې په کنستو غارونو سره به ئې تړې اوبه راؤښکلې او په هغې به ئې خپل فصلونه او باغونه خروب کول او د غارونونه بۀ ئې سرۀ زر او نور قیمتی څیزونه راؤښکل چې دهغې نه به ئې د انسان دفائدې دپاره مختلف قسم څیزونه تیارول. په دغې مادی اوفانی عیش و عشرت کښې مست شو او الله ﷻ اوآخرت ئې هیر کړو. الله ﷻ ددې یادګیرنې ورکولو دپاره خپل پیغمران اوکتابونه اولیږل خو هغوئ هیڅ ته هم اونه کتل او آخر ددنیا په عذاب کښې ګرفتار شو چې پرې د هغوئ د ورانو ویجاړو آبادونه تر دې وخت پورې ګواهی ورکوی . د آیت په آخر کښې فرمائی چې غور اوکړئ ، آیا په دې عذاب کښې په هغوئ باندې دالله ﷻ د طرفنه څه ظلم شوې دې یا هغوئ پخپله په خپلو ځانونو ظلم کړې دې چې د عذاب اسباب ئې راجمع کړل .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ | يَبۡدَؤُا | الۡخَلۡقَ | ثُمَّ | يُعِيۡدُهٗ | ثُمَّ |
| خاص الله | شروع کوی | دپیداوښت | بیا | به هم هغه دوباره پیدا کوی دغه پیدائش | بیا به |
| هم الله ﷻ مخلوق په اول ځل پیدا کوی | بیا په دوئم ځل به ئې هم پیدا کوی | بیا به | | | |
| اِلَيۡهِ | تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۱۱﴾ | وَيَوۡمَ | تَقُوۡمُ | السَّاعَةُ | |
| هم هغه ته | واپس کړې شئ تاسو | او په کومه ورځ | چې قائم شی [راشی] | هغه ساعت [قیامت] | |
| هم د هغه طرفته تاسو واپس کیږئی | او په کومه ورځ چې قیامت راشی، | | | | |
| يُبۡلِسُ | الۡمُجۡرِمُوۡنَ ﴿۱۲﴾ | وَلَمۡ يَكُنۡ | لَّهُمۡ | مِّنۡ شُرَكَآئِهِمۡ | |
| نوناامید به حیران پاتې شی | مجرمان خلق | اونۀ به وی | دپاره دهغوئ | دشریکانو دهغوئ نه | |
| نومجرمان به ناامیده شی | او د دوئ په جوړ کړو شریکانو کښې به هیڅوک سفارشی پیدا | | | | |
| شُفَعٰٓؤُا | وَكَانُوۡا | بِشُرَكَآئِهِمۡ | كٰفِرِيۡنَ ﴿۱۳﴾ | وَيَوۡمَ | تَقُوۡمُ |
| سفارشیان | اووئ به هغوئ | دشریکانو خپلو نه | منکر | اوپه کومه ورځ | چې قائیم شی [راشی] |
| نشی | اودوئ به دخپلو شریکانو نه [په خپله] منکر شی | او په کومه ورځ چې قیامت راشی | | | |
| السَّاعَةُ | يَوۡمَئِذٍ | يَّتَفَرَّقُوۡنَ ﴿۱۴﴾ | فَاَمَّا الَّذِيۡنَ | | |
| قیامت | هم په دغه ورځ به | په جدا جدا ډلو کښې تقسیم شی دا خلق | پس هر چې دی هغه کسان | | |
| نو په هغه ورځ به دا خلق جدا جدا [ټولی] شی | ..........نوچا چې ایمان | | | | |
| اٰمَنُوۡا | وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ | فَهُمۡ | فِيۡ رَوۡضَةٍ | |
| چې ایمان ئې راوړې دې | او عملونه ئې کړی دی | نیک | پس هغوئ به | په یو باغ کښی | |
| راوړې وی | او ښه کارونه ئې کړی وو | نو هغوئ بۀ [دجنت] په باغ کښې | | | |
| يُّحۡبَرُوۡنَ ﴿۱۵﴾ | وَاَمَّا الَّذِيۡنَ | كَفَرُوۡا | وَكَذَّبُوۡا | | |
| خوشحاله ساتلی کیږی | او هر چې دی هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | او دروغ ئې ګڼړلی دی | | |
| خوشحاله وی | ..........اوچا چې کفر [غوره] کړې وو | او زمونږ آیتونه اوداخرت راتلل ئې | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِاٰيٰتِنَا | وَلِقَآئِ الْاٰخِرَةِ | فَاُولٰٓئِكَ | فِي الْعَذَابِ | مُحْضَرُوْنَ ﴿۱۶﴾ | |
| آيتونه زمونږ | او ملاقات د آخرت | پس دا کسان به | په عذاب کښې | حاضر ساتلي کيږي | |
| دروغ ګنړلي وو ا نو هغوئ به په عذاب کښې [ګرفتار] حاضرولي شي | | | | | |
| فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ | حِيْنَ | تُمْسُوْنَ | وَحِيْنَ | | |
| پس تسبيح وايئ د الله | په هغه وخت کښې | چې داخليږئ تاسو په شپه کښې | او په هغه وخت کښې | | |
| نو تاسو د ماښام او سحر په وختونو کښې د الله ﷻ پاکي بيانوئ | | | | | |
| تُصْبِحُوْنَ ﴿۱۷﴾ | وَلَهُ | الْحَمْدُ | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | |
| چې داخليږئ تاسو په صبا کښې | او هغه لره | ثناده | په آسمانونو کښې | او په زمکه کښې | |
| ................ او په آسمانونو او په زمکه کښې هم د هغه تعريف دې | | | | | |
| وَعَشِيًّا | وَّحِيْنَ | تُظْهِرُوْنَ ﴿۱۸﴾ | | | |
| او [تسبيح وايئ] په آخر دورځ کښې | او په هغه وخت کښې | چې داخليږئ تاسو په ماسپخين کښې | | | |
| او د هغه تسبيح کوئی \| او د ورځې په آخري وخت کښې \| او د ماسپخين | | | | | |
| يُخْرِجُ | الْحَيَّ | مِنَ الْمَيِّتِ | وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ | مِنَ الْحَيِّ | وَيُحْيِ |
| راوباسي هغه | ژوندې | د مړنه | او راوباسي هغه مړ | د ژوندي نه | او ژوندئ کوي |
| هغه د مړي نه ژوندې راوباسي \| او د ژوندي نه مړې \| او زمکه د مره کيدو | | | | | |
| الْاَرْضَ | بَعْدَ | مَوْتِهَا | وَكَذٰلِكَ | تُخْرَجُوْنَ ﴿۱۹﴾ | |
| زمکه | روستو | د مرګ د هغې نه | او همدارنګې | تاسو به ايستلې کيږئ | |
| نه پس بيا را ژوندئ کوی \| او د غه شان به تاسو هم راوويستلې شئ \| | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

هم الله تعالیٰ د مخلوق ابتداء کوی او هم هغه به دوی لره دوباره پيدا کوی، بيا به تاسو ټول هغه ته واپس راحللې شئ او په کومه ورځ چه قيامت به قائم شی، په هغه ورځ به مجرمان خلق نااُميده شی. اوهغوی چه کوم معبودان د الله تعالیٰ سره شريک کړې وو، په هغوی کښې به هيڅوک ددوی دپاره سفارشی نه وی، اوخپله به دا خلق د خپلو شريکانو نه منکر شی او په کومه ورځ چه قيامت قائم شی، په هغه ورځ به خلق مختلف قسمونو کښې تقسيم شی، نو چه کومو خلقو ايمان راوړې دې، او نيک عمل ئې اختيار کړې دې، هغوی ته به په جنت کښې داسې خوشحالی ورکړې شی، چه د هغوی د مخونو نه به خوشحالی معلوميږی، او کومو خلقو چه کفر اختيار کړې دې او زمونږ د آيتونو نه او د آخرت ملاقات ئې دروغ ګنړلي دې، نو هغه خلق به عذاب کښې حاضر کړې شی. لهٰذا د الله تعالیٰ تسبيح کوه، په هغه وخت چه په تاسو باندې ماښام شی، او په هغه وخت کښې هم چه په تاسو باندې سحر شی او هم هغه لره ثنا ده په آسمانونو کښې هم او په زمکه کښې هم، او د نمر دوبيدو په وخت کښې هم (دهغه تسبيح کوه) او په هغه وخت کښې هم چه کله په تا باندې ماسپخين شی. هغه جاندار (ساه لرونکې) د بے جان (بې ساه) نه

راوړباسي او بے جان لره د جاندار نه راوړباسي او هغه زمکې ته د مرګ نه پس ژوندۍ ورکوي، او دغه شان به تاسو (د قبرونو نه) راویستلې شئ.

## خلاصه تفسير

﴿اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ﴾ [الله تعالى مخلوق لره اول ځل هم پيداكوي بيابه هغه دوباره هم دوى لره پيداكوي ﴿ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ بيا] د پيداكيدو نه پس [ به دهغه خواته] دحساب كتاب دپاره [راوستلې شئ﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ﴾ او په كومه ورځ چې قيامت قائم شي] چې دا ذكر شوې اعاده به په كښې كيدونكې وى ﴿يُبْلِسُ الْمُجْرِمُوْنَ﴾ [په دغه ورځ به مجرمان] يعنى كافران [خلق دباز پرس اوسوال و جواب په وخت كښې [حيران پاتې شي] يعنى څه معقوله خبره به ترې جوړه نه شي ﴿وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ مِّنْ شُرَكَآئِهِمْ شُفَعٰٓؤُا﴾ [ او ددوى په] تراش كړو[شريكانو كښې به] كومو لره چې به ئې په عبادت كښې شريكول [ ددوى څوك سفارشى نه وى او] دغه وخت په خپله ﴿وَكَانُوْا بِشُرَكَآئِهِمْ كٰفِرِيْنَ﴾[داخلق به] هم [دخپلو شريكانو نه منكر شى] چې [والله ربنا ماكنامشركين](¹) ﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ﴾[اوپه كومه ورځ چې به قيامت قائم شى﴿يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ﴾ په هغه ورځ به] علاوه ددې ذكر شوې واقعې نه يوه واقعه داهم وى چې د مختلفو طريقو [تول بنيادم به جدا جدا شى ﴿فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾[يعنى پس كوموخلقو چې ايمان راوړې وو او نيك كارونه ئې كړى وو ﴿فَهُمْ فِيْ رَوْضَةٍ يُّحْبَرُوْنَ﴾ هغوى خو به ] دجنت [په باغ كښې خوشحالى كوونكې وى ﴿وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ اوكومو خلقو چې كفر كړې وو﴿وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآئِ الْاٰخِرَةِ﴾ او زمونږ ايتونه او داخرت راتلل ئې دروغژن كړى وو﴿فَاُولٰٓئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ﴾ هغه خلق به په عذاب كښې ګرفتار وى] دا معنى ده دجداجدا كيدو هركله چې دايمان اونيك عمل فضيلت تاسو ته معلوم شو ﴿فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ﴾[پس تاسو دالله تعالى تسبيح] په عقيده او په زړه هم چې ايمان په كښې راغې او په وينا او ژبه هم چې اقرار اونور ذكرونه په كښې راغلل او عملا او اركانا هم چې ټول عبادتونه عموما اومونځ په كښې خصوصا راغلل غرض تاسو دالله تعالى تسبيح هروخت [كوئ] او خاصكر﴿حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ﴾[دماښام په وخت او دسحرپه وخت او] دالله تعالى دتسبيح كولو چې كوم حكم شوې دې نو هغه په واقع كښې ددې مستحق هم دې څكه چې ﴿وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾[ په ټولو اسمانونو اومزكه كښې دهغه حمد وثنا وئيلې كيږى ] يعنى په اسمانونو كښې ملائكې او په مزكه كښې څنې اختيارا او څنې اضطرارا دهغه حمدوثنا كوى لكه دا قول دالله تعالى [وان من شئ الايسبح بحمده](²)پس هركله چې هغه داسې محمود الصفات دې كامل الذات دې نو تاسو لره هم خامخا دهغه تسبيح كول پكار دى ﴿وَعَشِيًّا﴾[او پس دزوال نه] هم تسبيح كوئ ﴿وَحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ﴾[او دماسپخين په وخت كښې ] هم تسبيح كوئ چې داوختونه دنوى كيدو دنعمت دى او دزيات والى دنښو دقدرت دى په دې كښې نوې نوې تسبيح كول مناسب دى خاصكر دمونځ دپاره د وختونه مقرر دى چنانچې په مساء كښې ماښام او ماسختن راغلل او په عشى كښې

¹) ترجمه:- په الله او په خپل پروردګار مو دې قسم وى چې مونږ مشركان نه وو.
²) ترجمه:-او هيڅ يو داسې څيز نشته دې چې هغه تعريف سره سره دهغه پاك بيان نه كړى.

ماسپخین اومازیگر دواړه داخل وو مګر ماسپخین په وضاحت سره ذکر دي په دې وجه ترې نه صرف مازیګر مراد پاتې شو او سحر هم صراحتا ذکر دې او هغه لره دوباره پیداکول څه مشکل؟ دی څکه چې دهغه داسې قدرت دې چې ﴿يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ﴾ [هغه جاندار لره دبې جان نه رااوباسي او بې جانه لره دجاندار نه بهر رااوباسي] مثلا دنطفې او هګۍ نه انسان او بچې او دانسان اومرغۍ نه نطفه او هګۍ ﴿وَيُحْيِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ [اومزکې لره هغه دمره کیدو] یعنې اوچیدو[نه پس ژوندۍ] یعنې تازه اوشنه [کوی] ﴿وَكَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ﴾ او دغه شان تاسو خلق به] دقیامت په ورځ [دقبرونو نه راویستلې شئ]

## معارف او مسائل

﴿فَهُمْ فِي رَوْضَةٍ يُحْبَرُونَ﴾ ، ﴿يُحْبَرُونَ﴾ دحبور نه مشتق دې چې معنی ئې خوشحالی ده، نو ددې لفظ په عموم کښې هر قسم خوشحالی داخله ده چې د جنت دنعمتونو نه به اهل جنت ته حاصلیږي. قرآن پاک کښې دلته هم دا عام ایخودې شوې دې. داشان په بل ځائې کښې دا ارشاد دې چې ﴿فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ﴾[1] یعنې هیچاته په دنیا کښې داسې معلومه نه ده چې هغه دپاره په جنت کښې دسترګو د یخوالۍ اود راحت او خوشحالۍ څه څه سامانونه جمع دی. ځینو مفسرینو چې کوم د خوشحالۍ خاص خاص څیزونه ددې آیت په تفسیر کښې بیان کړی دی هغه ټول په دې اجمال کښې داخل دی.

﴿فَسُبْحَانَ اللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ ۝ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ ۝﴾

﴿سُبْحَانَ اللَّهِ﴾ لفظ مصدر دې چې فعل ئې محذوف دې یعنې اصل عبارت داسې دې [سبحوا الله سبحانا] ﴿حِينَ تُمْسُونَ﴾ کله چې تاسو دماښام په وخت کښې داخلیږئ.

﴿وَحِينَ تُصْبِحُونَ﴾ کله چې په تاسو د صبا وخت راشي.

﴿وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ دا جمله په مینځ کښې د دلیل په ډول راوړې شوې ده چې سبا بیګاه د الله ﷻ تسبیح بیانول څکه ضروری دی چې په آسمانونو او زمکه کښې خالص هم هغه ذات د ثناء او صفت حقدار دې او آسمانونه او زمکې والا خلق دهغه پاک ذات په ثناء، صفت کولو کښې مشغول دی. او څنګه چې د آیت په شروع کښې د صبا بیګاه د تسبیح کولو حکم دې په آخر د آیت کښې په ﴿وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ﴾ سره په نورو دوؤ وختونو کښې د تسبیح کولو حکم ورکړې شوې دې. یو وخت د عشی چې د ورځې آخری برخې ته وئیلې شي او دمازیګر وخت ترې مراد دې، بل د ظهر وخت دې چې مراد ترې د نمر ځرخیدو نه پس دی.

د وختونو د بیان په ترتیب کښې ماښام په صبا باندې او د ورځې آخری برخه په ظهر باندې وړاندې بیان کړې شوې ده، ماښام یعنې شپه ئې څکه وړاندې بیان کړه چې په اسلامی تاریخ کښې شپه وړاندې وی اونیټه یعنې تاریخ د نمر په ډوبیدو بدلیږي. او عشی یعنې مازیګر د ماسپخین نه وړاندې بیان کړیشو. ددې یوه وجه دا هم کیدې شي چې مازیګر وخت عموما دکاروبار وخت وی چې په کښې څه دعا کول یا تسبیح او مونځ کول د عادت له مخې ګران وی څکه په قرآن پاک کښې دا الصلوة الوسطی نه مراد د جمهورو علماء کرامو په

[1] ترجمه:- نوداسې یو کس ته معلوم نه دی دداسې خلقو دپاره د سترګو یخوالی سامان د غیبو په خزانه کښې موجود دې.

نزد د مازیگر مونځ دې دکوم د ادا کولو چې خصوصي تاکید راغلې دې لکه فرمائي چې ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ (۱)

په دې اوسنی آیت مبارک کښې د مونځ یا د صلوة لفظ ورسره نه دې راغلې ځکه دالله ﷻ هر قسم قولی او فعلی ذکر لره شاملیږی څنګه چې د تفسیر په خلاصه کښې بیان کړې شوی دی ، دالله ﷻ د ذکر په ټولو قسمونو کښې چونکه مونځ د ټولونه اعلی او زیات غوره دې ځکه هغه په کښې په سر کښې داخلیږی ، په دې وجه علماء کرامو فرمائیلی دی چې په دې آیت کښې د پنځو واړو مونځونو سره ددې د وختونو بیان راغلې دې . ابن عباس رضي الله عنه د یو تپوس په جواب کښې اوفرمائیل چې په قرآن کریم کښې د پنځه وخته مونځونو د وختونو په ډاګه بیان راغلې دې او په دلیل کښې ئې دا آیت پیش کړو چې د ﴿حِيْنَ تُمْسُوْنَ﴾ نه دماښام مونځ، ﴿وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ﴾ نه دسحر مونځ او ﴿وَعَشِيًّا﴾ نه مراد د مازیګر او ﴿حِيْنَ تُظْهِرُوْنَ﴾ نه مراد په ډاګه د ماسپخین مونځ دې . دلته هر کله چې د ماسختن مونځ په ډاګه څه بیان نشو کیدې نو د دې دپاره په دلیل کښې د بل آیت دا جمله اوفرمائیله چې (۲) ﴿وَمِنْۢ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ﴾ (۳)

او حسن بصری رحمه الله فرمائیلی دی چې په ﴿حِيْنَ تُمْسُوْنَ﴾ کښې د ماښام او ماسختن دواړه مونځونه داخل دی .

**لویه فائده**: دا آیت مبارک د ابراهیم علیه السلام هغه دعا ده چې دهغې په وجه قرآن کریم ورته د وعدې پوره کولو خطاب ورکړې دې . لکه فرمائي چې ﴿وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰٓى﴾ (۴) ابراهیم علیه السلام به داکلمې صبا بیګاه لوستلې ، په صحیح اسنادو سره د معاذ بن انس رضي الله عنه په روایت ابراهیم علیه السلام ته لوظ پوره کوونکې ځکه اوفرمائیلې شو چې ابراهیم علیه السلام به دا دعا کوله چې(۵) :

ابو داؤد ، طبرانی ابن سنی وغیره د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کړې دې چې رسول الله ﷺ د ﴿فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ۝ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَعَشِيًّا وَّحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ ۝ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ۝﴾ باره کښې اوفرمائیل چې چا دصبا په وخت د اکلمات اولوستل نو ددغې ټولې ورځې دنیک عمل کوتاهی به الله ﷻ په دې سره پوره کړی . او که چا د ماښام په وخت کښې اولوستل نو ددغې شپې دنیکو عملونو کوتاهی به ئې الله ﷻ ددې په برکت سره پوره کړی . [روح](۶)

---

۱) ترجمه:- د ټولو مونځونو محافظت اوکړئ او دمینځنی مونځ.

۲) د ماسختن مونځ نه پس.

۳) المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۵۴۱] و سنن الكبرى للبيقهي رقم الحديث :[۱۷۵۲]

۴) ترجمه:- او ابراهیم () چې هغه دالله تعالی احکامو باندې سره عمل اوکړو.

۵) مسند احمد ،حديث معاذ بن انس رضي الله عنه رقم الحديث:[۱۶۰۲۹] والمعجم للكبير رقم الحديث:[۴۲۷]

۶) روح المعاني [ج: ۱۳ ص:۳۴۵] و سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب ما يقول إذا اصبح [ج:۲ص: ۳۴۴ ، ۳۴۵] والمعجم الكبير رقم الحديث:[۱۲۹۹۱]

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ

| اودنښو دهغه نه [يوه داده]

|اودهغه بله نښه دا ده | چې

اَنْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ اِذَآ اَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُوْنَ⑳

چې پيدائې کړئ ده تاسو| دخاورې نه | بيا | دادې تاسو | يو بشر يئ|چې رورو خورېږئ|په زمکه کښې|

تاسو ئې د ښاورې نه پيدا کړئ | نو په لړو ورخو کښې [سم دم] سړې شوئ | چې خواره واره گرځئ

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ

او دنښو دهغه نه [يوه داده] | چې پيدا کړې هغه | ستاسو دپاره | دنفسونو [يعنې جنس] ستاسو نه |

اودهغه په نښو کښې يوه داده | چې تاسو له ئې ستاسو دخپل جنس نه جوړې راپيدا کړې دی

اَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوْٓا اِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ

ښځې | دپاره ددې چې تاسو سکون حاصل کړئ | دهغې سره | او پيدا ئې کړو | په منځ ستاسو کښې

چې آرام ورسره بيامومئ| اوستاسو د [ښځې خاوند] په مينځ کښې ئې مينه اوهمدردی

مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ㉑

مينه | او رحمت | بيشکه په دې کښې | خامخا نښې دی | دپاره د هغه قوم | چې غور فکر کوی |

پيدا کړه | په دې کښې د هغه خلقو دپاره نخښې پرتې دی | چې د فکر نه کار اخلی

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافُ

او دنښو دهغه نه [يوه نښه] | پيدائش | دآسمانونو | او دزمکې دې | او اختلاف دې |

اود هغه په نښو کښې دآسمانونو اودزمکې پيدا کول هم دی | او ستاسو د ژبو

اَلْسِنَتِكُمْ وَاَلْوَانِكُمْ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

د ژبو ستاسو | اودرنگو ستاسو | بيشکه | په دې کښې | خامخا ډيرې نښې دی |

او رنگونو جدا جدا کول دی بيشکه په دې کښې دپوهانو خلقو دپاره نخښې [اودليلونه] دی

لِّلْعٰلِمِيْنَ㉒ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ مَنَامُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ

دپاره دپوهانو | او دنښو دهغه نه [يوه نښه] | خوب ستاسو دې | په شپه کښې | او په ورځ کښې |

اود هغه په نخښو کښې دا هم ده چې د شپې اوورځې ستاسو اوده کيدل دی|

وَابْتِغَآؤُكُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

او تلاش کول ستاسو دی | دفضل دهغه نه | بيشکه په دې کښې | خامخا ډيرې نښې دی |

او د هغه د فضل نه روزی تلاش کول دی| بيشکه چې په دې کښې هغه خلقو دپاره نښې دی | چې

لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ㉓ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ

دپاره دهغه قوم | چې خبره اوری | او دنښو دهغه نه [يوه داده] | چې ښائی تاسو ته هغه | بريښنا |

[په غور] خبرې واورئ | اود هغه په نخښو کښې يوه داده چې تاسو ته دبريښنا پرق ښائی

خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَيُحْيٖ بِهِ

سره ديري | او دطمعي | او نازلوي هغه | داسمان نه | اوبه | پس ژوندی کوی | په هغي سره |

[دتندر]ويره هم د ه| او [دباران] اميدونه هم| اوهم هغه دبره نه اوبه راوروی | بيا زمکه د اوچيدو

الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ

زمکه | روستو | دمرګ دهغي نه | بيشکه په دې کښې | خامخا نښې دی | دپاره دهغه قوم |

نه پس راژو ندئ اوتازه کړی | بيشکه په دې کښې د هغه خلقو دپاره نښې دی

يَّعْقِلُوْنَ ۝ وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ اَنْ تَقُوْمَ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ

چی دعقل نه کار اخلی؛ | او دنښو دهغه نه [يوه داده] | چی ولاړ دې | آسمان | اوزمکه |

چې دعقل نه کار اخلی | اود هغه دنخښو نه يوه داده چې آسمان او زمکه د هغه په حکم

بِاَمْرِهٖ ؕ ثُمَّ اِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً ۖ مِّنَ الْاَرْضِ ۖ اِذَآ اَنْتُمْ

په حکم دهغه سره | بيا چی کله | هغه رابلي؛ تاسو | په رابللو سره | دزمکې نه | نو يودم به تاسو

په خائې قائم دی | نو څه وخت چې هغه تاسو دزمکې ددننه نه راوبلی | نو تاسو به ناګهانه

تَخْرُجُوْنَ ۝ وَلَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

راووزئ [دزمکې نه] | او هغه لره دی | هغه څوك | چی په آسمانونو کښې دی | او په زمکه کښې دی

راوځئ | اوڅومره خلق چې په آسمانونو اوزمکه کښې موجود دی

كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ۝ وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ

ټول | هغه لره | فرمان منونکی دی | او هغه | هغه ذات دې | چی اول شروع کوی | دپيدائش|

ټول دهغه تابع دی | او الله ﷻ هغه ذات دې | چې مخلوق په اول ځل پيدا کوی

ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ ؕ وَلَهُ

بيا | به ئې هم هغه دوباره پيدا کوی | او دا کار | ډير آسان دې | په هغه باندې| او هغه لره دې |

اوبيا به ئې سردوباره هم راپيدا کوی | اودا کار ورته زيات آسان دې | او په آسمانونو

الْمَثَلُ الْاَعْلٰى فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝

مثال [صفت] | اوچت | په آسمانونو کښې | او په زمکه کښې | او هغه | غالب |او حکمت والا دې

او زمکه کښې د هغه شان ډير اوچت دې | او هغه ډير زبردست اودحکمتونو خاوند دې

**آسان ترجمه قرآن**

او دهغه د قدرت يوه نښه داده، چه هغه تاسو د خاورې نه پيدا کړې يئ. بيا تاسو ناګهانه انسانان شوئ په زمکه کښې خواره واره او دهغه د قدرت يوه نښه داده، چه هغه ستاسو دپاره هم ستاسو د جنس نه ښځې پيدا کړې دی، دې دپاره چه تاسو هغوی سره سکون حاصل کړئ، اوستاسو په مينځ کښې ئې دمحبت او رحمت جذبات کيښودل يقيناً په دې کښې دهغې خلقو دپاره لوئې نښې دی، چه د غور او فکر نه کار اخلی.

او دهغه د قدرت د نښو نه يوه حصه د آسمانونو او زمکې پيدائش او ستاسو د ژبو او رنګونو اختلاف دې، يقيناً په دې کښې د هوښيارانو دپاره لوئې لوئې نښې دي. او دهغه د قدرت د نښو نه يوه حصه ستاسو د شپې او ورځې اوده کيدل، او د الله تعالٰی فضل تلاش کول دي يقيناً په دې کښې دهغې خلقو دپاره لوئې نښې دي، چه خبرې ته غوږ ايږدي. او دهغه د قدرت يوه نښه داده، چه هغه تاسو ته د بجلئ پړق ښائي، چه هغې نه ويرېږئ هم، او اميد هم ساتئ او د آسمان نه اوبه راوروي، چه دهغې په ذريعه هغه زمکې ته ژوند ورکوي، دهغې د مرګ نه پس، يقيناً په دې کښې دهغې خلقو دپاره لوئې نښې دي، چه د عقل نه کار اخلي. او دهغه د قدرت يوه نښه داده، چه آسمان او زمکه دهغه په حکم سره قائم دي بيا چه کله هغه يوه بلنه زمکې ته اوکړي، نو تاسو به سمدستي راوځئ، او په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دي، ټول دهغه ملکيت دې، ټول دهغه د حکم تابع دي. او هم هغه دې چه د مخلوق ابتداء کوي، او بيا ئې دوباره پيدا کوي، او دا کار دهغه دپاره زيات آسان دې، او هم دهغه اوچت شان دې په آسمانونو کښې هم او په زمکه کښې هم، او هم هغه دې چه اقتدار والا هم دې، حکمت والا هم دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ﴾ [ او دهغه د ] قدرت د [ نښونه يو دا ] کار [ دې ﴿اَنْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ﴾ چې تاسوئ دخاوړو نه پيدا کړئ ] يا خو داسې چې حضرت ادم ﷺ دخاوړونه پيدا شو کوم چې مشتمل وو په ټول اولاد باند او يا داسې چې دنطفې اصل غذاده او ددې اصل عناصر دی په کومو کښې چې غالب جز دخاوړې دې ﴿ثُمَّ اِذَآ اَنْتُمْ بَشَرٌ﴾ [ بيا لږې ورځې پس ] څه وشو چې [ تاسو بنيادم جوړشوئ ] په مزکه ﴿تَنْتَشِرُوْنَ﴾ [ خواره شوی ] ښکاره [ شوئ ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ﴾ او دهغه د ] قدرت د [ نښونه دا ] کار [ دې ﴿اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا﴾ چې هغه ستاسو د ] فائدې د [ پاره ستاسو د جنس بيبيانې جوړې کړې ] او هغه فائده داده چې ﴿لِّتَسْكُنُوْٓا اِلَيْهَا﴾ [ تاسوته ددوی په خواکښې ارام ملاوشی ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً﴾ او په تاسو ښځه خاوند کښې ئې محبت او همدر دی پيدا کړه ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ﴾ په دې ] ذکر شوی کار [ کښې ] هم [ دهغوخلقو دپاره ] دقدرت [ نښې دی کوم چې دفکر نه کار اخلي ] ځکه چې ددليل دپاره دفکر ضرورت دې اونښې ئې ځکه جمع وفرمائيلې چې ذکر شوې کار په ډيرو کارونو مشتمل دې ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [ او دهغه د ] قدرت د [ نښونه داسمان اومزکې جوړول دی ﴿وَاخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ وَاَلْوَانِكُمْ﴾ اوستاسو دخبرو دژبو او رنګونو جداجدا کول دی ] دلب ولهجې يعنی خبرو نه مراد يا لغات دی يا اوازونه او طرز دخبرو ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلْعٰلِمِيْنَ﴾ [ بيشکه په دې ] ذکر شوی کار [ کښې ] هم [ دهوښيارانو دپاره ] دقدرت [ نښې دی ] دلته هم دجمع دصيغې راوړو هغه توجيه کيدې شی کومه چې ذکر شوې ده ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖ مَنَامُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾ [ اودهغه د ] قدرت د [ نښو نه ستاسو اوده کيدل خملاستل دی دشپې او دورځې ] اګر چې دشپې زيات او ورځې کم دی ﴿وَابْتِغَآؤُكُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ﴾ [ او دهغه رزق لره ستاسو تلاش کول دی ] دورځې زيات او دشپې کم په دې وجه په نورو ايتونو کښې ئې خوب لره دشپې سره اوتلاش دمعاش لره دورځې سره خاص کړې بيان کړې دې ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ﴾ [ بيشکه په دې ] کار ذکرشوی [ کښې ] هم [ دهغوخلقو دپاره ] دقدرت [ نښې دی کوم چې ]

دليل لره په توجه سره [اوري ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖ﴾ او دهغه د] قدرت د [نښونه دا] كار [دي ﴿يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا﴾ چې هغه تاسوته ] دباران په وخت كښې [بجلۍ پرقيدونكې [ښكاره كوي په كوم سره چې] دهغې د راغورزيدو [ويره هم وي او] دهغې نه دباران [اميد هم وي ﴿وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَيُحْيٖ بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ او هغه داسمان نه اوبه ورروي بيا په دې سره مزكې لره ددې مړه كيدو [يعنى اوچېدو] نه پس ژوندئ [يعنى تروتازه كوي] ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ﴾ [بيشكه په دې] كار ذكر شوى [كښې] هم [دهغو خلقو دپاره] دقدرت د نښې دى كوم چې عقل ] نفع مند [لري ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖ﴾ او دهغه د] قدرت د [نښونه دا] كار [دي ﴿اَنْ تَقُوْمَ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ بِاَمْرِهٖ﴾ چه اسمانونه اومزكه دهغه په حكم ] يعنى ارداه [سره قائم دى] په دې كښې بيان دې چې ددوى د ابقاء او بره په [خلق السموات والارض] كښې ذكر وو ددوئ دپيدائش د ابتداء او داټول نظام عالم كوم چې ذكر شو يعنى ستاسو سلسله دتوالد او تناسل جاري كيدل او ديوبل ښځه خاوند كيدل او اسمانونه اومزكه په دې خپل هيئت سره موجود او قائم كيدل او دژبو اودرنګونو اختلاف او دشپې ورځې په بدلون كښې دخاصو مصلحتونو كيدل او دباران كيدل او ددې دمبادى او اثارو ظهور داټول تر هغه وختـه پورې باقي دى ترڅو پورې چې دنيا باقي ساتل مقصود دى اويوه ورځ به دا هر څه ختم شي [بيا] به هغه وخت داوى چې ﴿ثُمَّ اِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً مِّنَ الْاَرْضِ﴾ بياكله [تاسو لره به دمزكې نه راوبلي ﴿اِذَآ اَنْتُمْ تَخْرُجُوْنَ﴾ نو تاسو به په يو وار رابهر شئ] او بل نظام به شروع شي كوم چې مقصود دمقام دې [او] بره به دقدرت ددليلونو نه معلومه شوې وى ﴿وَلَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [چې څومره] فرښتې او انسانان وغيره [په اسمانونو اومزكه كښې موجود دى ټول دهغه] مملوك [دى ] او ﴿كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ﴾ [ټول دهغه تابع] يعنى مسخرد قدرت [دى او] ددې ثبوت او خاص والى دكامل قدرت نه دا ثابته شوه چې ﴿وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ﴾ [ هغه هغه ذات دې چې اول وار پيداكول كوي] چنانچې دا خومخاطبين هم منى ﴿ثُمَّ يُعِيْدُهٗ﴾ [بيا به هغه دوباره هم پيداكوي] لكه چې په ذكر شوو دليلونو سره دربنتونى خبر په ملاويدو باند معلومه شوه ﴿وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ﴾ [او دا] دوباره پيداكول [دهغه په نزد] دمخاطبودبادى النظريه نسبت سره داول ځل پيداكولو نه [زيات اسان دى] لكه چې دقدرت بشرى په اعتبار سره غالب عادت دادې چې يوشى د اول وار جوړولو نه دويمه ځيره جوړول زيات اسان وى ﴿وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [او په اسمانونو او په مزكه كښې دهغه شان] دټولو نه [اعلى دې ] يعنى نه په اسمانونو كښې څوك داسې لوئ شته اونه په مزكه كښې لكه دا قول دالله تعالى دې [وله الكبريآء فى السموات والارض ] ﴿وَهُوَ﴾ [او هغه] لوئ ﴿الْعَزِيْزُ﴾ [زبردست ] يعنى قادرمطلق او ﴿الْحَكِيْمُ﴾ [حكمت والا دې ] چنانچې ددې برنو تصرفاتونه قدرت او حكمت دواړه ظاهر دى پس هغه به په خپل قدرت سره دوى لره دوباره پيدا كوي او په دې دوباره پيداكولو كښې چې څومره توقف كيږي په دې كښې حكمت او مصلحت دې پس دقدرت او حكمت دثبوت نه پس في الحال په نه واقع كيدو سره انكار كول جهل دې.

## معارف او مسائل

﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ﴾ دسورة روم په شروع كښې د روم اوفارس د جنګ ديوې واقعې آوړولو نه پس د منكرانو او كافرانو دګمراهئ او دحقې خبرې د آوريدلو او پرې د ځان د

پوهولو نه د بې پرواهۍ سبب چې دوئ دځپل ژوند مقصد صرف ددنيا فاني ژوند جوړ کړې دې او آخرت ته ئې شا کړې ده . ورپسې په قيامت کښې دوباره ژوندون ، جزا ، سزا او حساب کتاب کيدو باندې چې په سرسری نظر کښې څه اشکال ښکاريدو دهغې جواب په مختلفو اړخونو سره ورکړې شوې دې . چې اول پخپلو ځانونو کښې غوروفکر اوکړې شی ، بيا خواؤشا تيروشوؤ قومونو اودهغوئ په حالاتو او انجام باندې دنظر کولو بلنه ورکړې شوه ، بيا د الله ﷻ د کامل قدرت بيان اوشو چې په کښې ورسره هيڅوک شريک او حصه دار نشته او د ټولو شواهدو او دليلونو لازمی نتيجه دا راځيژی چې يواځې هم دهغه ذات دې دعبادت جوګه اوګرځولې شی . اود پيغمبر ﷺ په ذريعه د هغه په هغې خبر ورکولو باندې ايمان راوړې شی کوم کښې چې د قيامت قائميدل او د ټول مخلوق اولين آخرين دوباره ژوندی کيدل ، حساب کتاب ، ورسره کيدل او جنت ، دوزخ ته ئې تلل بيان شوی دی ، نو پدې آيتونو کښې ددغې کامل قدرت او ورسره د حکمت بالغه شپږ نندارې دقدرت دنښو په عنوان سره بيان کړې شوې دی کومې چې د الله ﷻ د بې مثاله قدرت او حکمت نښې دی .

① **دقدرت رومبۍ نښه** :: هغه داده چې الله ﷻ انسان غوندې اشرف المخلوقات او د کائناتو حاکم د ښاورې نه پيدا کړې دې چې د ټولو عنصرونو نه د ادنی درجې عنصر دې . په دې کښې د حس ، حرکت ، شعور او ادراک هيڅ بوئی هم نه ښکاری . ولې چې د ښاورې نه سوا په ټول نورو عنصرونو هوا ، اور او اوبو کښې څه نا څه حرکت شته دې . او هم دا حال د ابليس د ګمراه کيدو جوړ شو او خامخا ئې اوويل چې اور د ښاورې نه غوره دې . حالانکه هغه په دې پوهه نشو چې بزرګی او شرافت ورکول د الله ﷻ په اختيار کښې دی ، غوره اوښه به هغه څوک وی چې الله ﷻ ئې غوره اوښه کړی . دا ښکاره خبره ده چې آدم ﷺ د ښاورې نه جوړ کړې شوې وو ، په دې اعتبار سره ټول انسانان هم د ښاورې نه پيدا اوبللې شو ولې چې آدم ﷺ د ټولو انسانانو بنياد دې ، په دې وجه د نورو انسانانو تخليق بالواسطه د هغوئ طرف ته منسوب کول څه لرې خبره نه ده يا په دې وجه ټول انسانان د ښاورې نه پيدا اوبللې شو چې د عام انسانانو چې توالد او تناسل په سلسلې سره د نطفې په ذريعه پيدا کيږی په هغه کښې هم نطفه چې د کومو اجزاؤ نه مرکب کيږی په هغو کښې غالب جزء خاوره وی

② **دقدرت دويمه نښه** :: دويمه نښه داده چې هم د انسان دجنس نه الله ﷻ زنانه پيدا کړې چې هغه ئې د بيبيانو په شکل کښې د دوئ جوړې اوګرځولې . هم د يو ځائې ، يوې مادې ، يو اندامونو ، جوارح ، صورت ، سيرت ، عادتونو او اخلاقو کښې څرګند بيلتونو نه او فرقونه بيا موندې شی ، نو دا الله ﷻ د کامل قدرت او حکمت دپاره دا پيدا کول هم کافی نښه ده . ورپسې د زناناؤ ددې خاص قسم پيدا کولو حکمت او مصلحت ئې داسې بيان کړو چې ﴿لِّتَسْكُنُوٓا۟ إِلَيْهَا﴾ [ ددې د پيدا کولو مقصد دادې چې دې ته په رسيدو تاسو په سکون شئ ] که غور اوکړې شی نو زنانه نه دنارينوؤ څومره ضروريات چې پوره کولې شی . نتيجه ئې د نارينوؤ دزړه آرام اوتسلی حاصليدل راوځی . قرآن پاک په يو لفظ کښې دا ټول راجمع کړی دی . دې نه معلومه شوه چې د ښځې خاوند په مينځ کښې د ټولو تعلقاتو خلاصه د زړه سکون او آرام راوځی . کله چې په دې کښې سکون او آرام نه وی نو دغه تعلق بيخی ناکاره وی ، داسکون او آرام صرف په هغه صورت کښې حاصليدې شی چې ددې بنياد شرعی نکاح وی

كومو ملكونو او علاقو كښې چې ددې بنياد غير شرعي او حرامه طريقه ګرځولې شوې ده نو په لټون كولو سره به دا معلومه شي چې دغې ژوند كښې به ئې اصلي سكون نه وي ، هسې د څناورو په شان يو نزديكت ته سكون او آرام نشي وئيلې.

**دښځې او خاوند دژوند مقصد سكون او آرم دې چې هغې دپاره خپل مينځ كښې مينه محبت اورحمت ضروري دې** :: دې آيت مبارک د نارينه او زنانه د ښځې خاوند د ژوند مقصد د زړه سكون ګرځولې دې او دا هله كيديشي چې خپل مينځ كښې دوئ دواړه د يو بل حق پيژني او ادا كوي ئې ګني د حق د غوښتلو جګړې كورنې سكون بيخي تباه كوي. دحقوقو د ادا كولو يو صورت خو دا وو چې دې دپاره قانون جوړولو او احكاماتو نافذ كولو باندې اكتفاء كيدلئ څنګه چې د نورو حقوقو په باره كښې داسې كړې شوي دی چې د يو بل حق وهل حرام ګرځولې شوي دی او په هغې سخت وعيدونه آوړولې شوي دی ، سزا ګانې پرې مقرر شوي دی او د ايثار او همدردئ نصيحت كړې شوې دې. خو تجربه ښائي چې صرف په قوانينو جوړولو سره څه قوم په لاره نشي راوستې ، تر څو چې دې سره دالله ﷻ ويره نه وي څكه چې خپل مينځ كښې د ژيست روزګار په معاملو كښې دشرعي احكامو سره سره په قانون كښې هر چرته ﴿اتقوالله﴾(۱) او ﴿اخشوا﴾(۲) كلمات راغلي دی.

د ښځې خاوند ترمينځه معاملات څه داقسم دی چې دهغې په نه كولو سره نه څه قانون تول ارځيزكار كولې شي نه هيڅ يو عدالت په دې كښې پوره انصاف كولې شي ، څكه د نكاح په خطبه كښې رسول الله ﷺ دقرآن كريم هغه آيتونه بيان فرمائيلي دی چې په كښې د تقوی ، د الله ﷻ او د آخرت د ويرې خودنه شته دې. ولې چې يواځې داپه حقيقت كښې د ښځې خاوند ترمينځه دحقوقو ضامن جوړې دې شي. دلته الله ﷻ يو بل زيات انعام دا اوفرمائيلو چې د ښځې خاوند ترمينځه د حقوقو اداكول ئې يواځې په شريعت اوقانون باندې اډانړه اوبناء نه كړل بلكه طبعي او نفساني ئې جوړ كړل. څنګه چې د اولاد او د مور پلار ترمينځه تعلقات ئې هم دغه شان جوړ كړل چې دهغوئ ترمينځه يوقسم داسې طبعي مينه ئې پيدا كړه چې مور پلار دخپل ځان نه هم زيات د اولاد په حفاظت كولو باندې مجبوره وي ، دغسې د اولاد په زړونو كښې هم مورپلار دپاره فطري مينه كيخودې شوی او دغه شان معامله ئې د ښځې ، خاوند ترمينځه هم روانه كړه. لكه قرآن كريم فرمائي چې ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً﴾ يعنې الله ﷻ دښځې خاوند مينځ كښې صرف شرعي او قانوني تعلق نه دې جوړ كړې بلكه ددوئ په زړونو كښې ئې دوستي او رحمت يو بل سره پيدا كړې دې. دود او مودت لفظي معنی غوښتل دی چې نتيجه ئې مينه ، محبت ده ، دلته الله ﷻ دوه لفظونه اختيار كړل يو مودت او بل رحمت ، كيديشي چې په دې كښې اشاره دې طرفته وي چې دمودت تعلق د ځوانئ هغه زمانې سره وي چې د دواړو طرفونو خواهشات يو بل سره په مينه ، محبت باندې مجبوره كوي او بوډا توب كښې چې كله دغه جذبات ختم شي نو خپل مينځ كښې په يو بل باندې رحم كول

---

(۱) ترجمه:- دالله نه اوويريږئ.
(۲) ترجمه:- اوو ويريږئ.

طبعي څيز جوړ شي. [قرطبي د بعضونه] (۱)
دې پسې فرمائي چې ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ﴾ يعنى دې كښې د هغې خلقو دپاره ډيرې نښې دى چې غور وفكر كوى. دلته خو يوه نښه بيان كړې شوه خو په آخر كښې ئې ورته نښې ځكه اوفرمائيلې شوې چې كه ددې په مختلفو طرفونو باندې او ددې نه په حاصليدونكو دينى، دنيوى فائدو باندې نظر واچولې شى نو دايوه نه بلكه ګڼې نښې دى.

**دقدرت دريمه نښه** :: د آسمانونو اوزمكې پيداكول د انسانانو د مختلفو طبقو ژبې اولب و لهجه مختلف كيدل او د مختلفو رنګونو مينځ كښې بيلتون والئ دې چې څه په كښې سره، سپين، تور او زيړ دى. په دې كښې د آسمانونو او زمكې پيدا كول د قدرت يوه لويه كارنامه ده، د انسانانو د ژبو اختلاف هم دقدرت يوه عجيبه كرشمه ده. د ژبو په اختلاف كښې د لغتونو اختلاف هم داخل دې. عربى، فارسى، هندى، تركى او انګريزى وغيره ژبې مختلفې دى چې په مختلفو علاقو كښې رواج لرى. او ځينې خو د يو بل نه دومره مختلفې دى چې ددې ترمينځه څه قسم تړون اومناسبت هم نه معلوميږى. د ژبو په دې اختلاف كښې دلب و لهجې اختلاف هم شامل دې، نو د الله ﷻ قدرت د انسان د هر فرد او غړى، سړى، ښځې، ماشوم او بوډا په آواز كښې ئې داسې فرق راوستې دې چې د يو كس آواز بل كس سره او د يو قسم آواز بل قسم سره په پوره شان سمون نه خورى. څه نا څه فرق خامخا وى سره ددې چې ژبې، شونډې، تالو او مرئ چې ددې آواز آلات دى ټول په خپل مينځ كښې شريك او يو شان دى. ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ (۲).

دغه شان د رنګونو اختلاف دې چې هم ديو مور پلار نه هم په يو قسم حالاتو كښې دوه بچى په مختلفو رنګونو كښې پيدا كيږى. دا خو د پيدا كولو او كاريګرئ كمال وو، ورپسې ژبې او لهجې مختلفې وى، دغه شان د انسان په رنګونو مختلف كيدو كښې چې كوم حكمتونه پټ دى دهغې بيان اوږد دې اوګڼ حكمتونه خو په معمولى غور وفكر سره معلومول هم مشكل نه دى.

دقدرت په دې آيت كښې ګڼ څيزونه، آسمانونه، زمكه، د ژبو او رنګونو اختلاف، ددې په ترڅ كښې نور ډير د قدرتونو اوحكمت نښې دى. هغه داسې ښكاره دى چې په كښې د زيات غور و فكر كولو ضرورت نشته. د ستركو هر خاوند ئې ليدې شى، ځكه ددې په ختميدو فرمائى چې ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْعَالِمِينَ﴾ يعنى په دې كښې دپوهې لرونكو دپاره ګڼې نښې دى.

**دقدرت څلورمه نښه** :: شپه او ورځ كښې دانسان اوده كيدل او دغه شان دهغه د روزئ او كاروبار لټول دى، دې آيت مبارك كښې خو اوده كيدل او روزى لټول دواړه دشپې او ورځې دواړو سره بيان كړى دى. حالانكه په نورو آيتونو كښې خوب صرف د شپې او روزى صرف د ورځې كار خودلې شوې دې. ددې وجه داده چې په شپه كښې اصل كار خوب دې او څه نا څه د روزئ لټولو هم كيدې شى. او په ورځ كښې اصل كار د روزئ لټولو دې او څه نا څه د خوب هم دې ځكه په خپل ځائې دواړه خبرې صحيح شوې. ځينې مفسرينو د تاويل په بنياد په دې

---

(۱) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۱ ص: ۳۱] وما وجدت في القرطبي
(۲) ترجمه:- ډيره لوئې شان دې دالله چې د ټولو جوړونكو نه لوئې دې.

آیت کښې هم خوب د شپې سره او د روزئ لټول د ورځې سره مخصوص کړی دی. خوددې ضرورت نشته.

**اودهٔ کیدل او د معاش لټول زهد او توکل سره بې سمونه نه دی** :: دې آیت مبارک نه ثابت شو چې د اودهٔ کیدو په وخت کښې اوده کیدل او د ویښیدو په وخت کښې د روزئ لټول د انسان فطرت جوړ کړې شوې دې اوددې دواړو څیزونو حاصلول د انسانی انتظام اوکمالاتو تابع نه دی بلکه په حقیقت کښې داخالص دالله ﷻ ورکړه ده. نو شپه ورځ لیدلې کتلې شی چې څنې وخت د خوب بهترین سامانونه او د آرام کولو بهترین انتظامونه حاصل وی کله ورسره د خوب گولئ اونورې دوایانې هم استعمال شی خوسره دهغې خوب ورنشی اوکله چې مالک اوغواړی نوپه ډاگ میدان په زمی اوړی کښې خوب داسې ورشی چې ددنیا نه بیخی بې غمه شی.

هم دغه حال د روزئ لټولو هم دشپې، ورځې لیدلې کتلې شی چې دوه کسان په علم، عقل، مال، مشقت وغیره کښې یو شان، په یو قسم کار کښې اخته شی یو ترې ترقی اوکړی اوبل پاتې راشی، الله ﷻ د عالم اسباب دنیا نظام هم یو لوئې حکمت او مصلحت باندې بنا کړېدې. ځکه روزئ لټول هم داسبابو په ذریعه لازمی دی، خو دعقل کار دادې چې حقیقت پیژندلو کښې لرې نه اووځی، اسباب او درجې په خپلې درجه کښې گڼړی او اصل روزی رسان اسباب برابرونکې لره اوگڼړی.

دقدرت ددې آیت په ختمولو کښې فرمائی چې ﴿اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّسۡمَعُوۡنَ۝﴾ یعنی دې کښې دهغې خلقو دپاره گڼړې نښې دی چې په غوروفکر سره آوریدل کوی. دلته په آوریدو باندې ددې د بنیاد ایخود وجه شاید دا وی چې هسې خو په لیدو سره خوب راتلل پخپله معلومیږی چې گنی انسان ته خوب پخپله راځی کله چې هغه لږ شان د آرام په ځائې کښې څملی. دغه شان روزی هم په محنت، مزدورئ، تجارت وغیره سره حاصلیدلې ښکاری. خو د قدرت کار سازی د نظر نه پټه وی، دلې لره د الله ﷻ پیغام راوړنکی پیغمبران ﷺ ښائی. ځکه ئې اوفرمائیل چې دا نښې د هغه قوم دپاره د کار څیزونه دی چې په غور وفکر آوریدل کوی. او کله چې پوهه شی نو اومنی د نارامئ او ضد نه کار نه اخلی.

**۞ دقدرت پنځمه نښه** :: هغه داده چې الله تعالی انسان ته د بریښنا پړقیدل ښکاره کوی چې په کښې د هغه د راپریوتو اونقصان رسولو خطره هم کیدیشی او ورپسې د باران کیدو امید هم کیدیشی. بیا چې باران ترې نازل کړی نو په اوچه شاړه زمکه کښې یوقسم ساه واچوی، هغې نه قسما قسم زرغونې، گلونه او میوې راوباسی. ددې آیت مبارک په آخر کښې فرمائی چې ﴿اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّعۡقِلُوۡنَ۝﴾ یعنی دې کښې د عقل خاوندانو دپاره ډیرې نښې دی. ځکه چې دبریښنا اوباران او ددې په وجه د زرغونې، میوې، اوگلونو پیدا کولو باندې هر څوک نه پوهیږی. چې دا ټول هر څه دالله ﷻ کار دې. په دې باندې هغه څوک پوهیږی چې د عقل او حکمت نه کار اخلی.

**۞ دقدرت شپږمه نښه** :: هغه داده چې د آسان او زمکې قائمیدل خالص د الله ﷻ په حکم سره دی او کله چې ددې نظام تباه کول اوغواړی نو د لکونو کلونو راسې دا روان نظام به د سترگو په رپ کښې نیست و نابود کړی. اوبیا به هم د الله ﷻ په حکم سره ټول مړی راژوندی شی او په میدان د حشر کښې به راجمع شی.

دا شپږمه نښه د قدرت په حقیقت کښې د ړومبو تولو آیتونو حاصل او مقصد دې ، په دې بنا د پوهولو دپاره ړومبې پنځه آیتونه ئې بیان کړل او وروسته تر ډیرو آیتونو پورې ددې مضمون بیان ئې فرمائیلې دې.

﴿وَلَهُ الْمَثَلُ الْأَعْلَىٰ﴾ ، مثل چې د میم اوثاء دواړو زور وی نو ددې معنی به داوی چې هغه څیز چې دبل څیز په شان وی. بیخی یو شان والئ مطلب نه دې. څکه چې په قرآن پاک کښې د الله ﷻ مثل کیدل په څو ځایونو کښې راغلې دې لکه دلته ، بل په ﴿مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ﴾[1] کښې لیکن دمثل او مثال نه دالله ﷻ پاک ذات او ډیر زیات پورته او لرې او لوړ دې. والله اعلم.

| |
|---|
| ضَرَبَ　لَكُم مَّثَلًا　مِّنْ أَنفُسِكُمْ ۖ　هَل لَّكُم　مِّمَّا |
| بیانوی هغه \| تاسو ته یو مثال \| دنفسونو ستاسو نه \| آیا شته تاسو لره \| دهغه غلامانونه \| |
| الله ﷻ ستاسو دپاره [دتوحید] یومثال هم ستاسود ځانونونه بیان کړې دې \| آیا دکومو |
| مَلَكَتْ　أَيْمَانُكُم　مِّن شُرَكَاءَ　فِيمَا |
| چې مالکان شوی وی دهغوئ \| ښی لاسونه ستاسو \| څه شریکان \| په هغه مال کښې \| |
| غلامانو چې تاسو مالکان یئ \| په هغوئ کښې څوک داسې هم شته \| چې په هغه رزق |
| رَزَقْنَاكُمْ　فَأَنتُمْ　فِيهِ　سَوَاءٌ　تَخَافُونَهُمْ |
| چې درکړې دې تاسو له \| پس یئ تاسو \| په هغه مال کښې \| یو برابر \| [او] تاسو یریږئ دهغوئ نه \| |
| کښې کوم چې مونږ تاسو ته درکړې دې \| ستاسو برابر شریک وی \| چې تاسو دهغوئ داسې خیال اوساتئ |
| كَخِيفَتِكُمْ　أَنفُسَكُمْ ۚ　كَذَٰلِكَ　نُفَصِّلُ الْآيَاتِ　لِقَوْمٍ |
| پشان دیریدلو ستاسو \| دخپل برابر خلقو نه \| دارنګې \| واضحه بیانوو مونږ آیتونه \| دپاره دهغه قوم |
| لکه چې په خپل مینځ کښې چې دیو بل ساتئ ؟ \| مونږ د عاقلانو خلقو دپاره دغسې په وضاحت سره |
| يَعْقِلُونَ ﴿٢٨﴾　بَلِ اتَّبَعَ　الَّذِينَ　ظَلَمُوا　أَهْوَاءَهُم |
| چې دعقل نه کار اخلی \| بلکه پیروی کوی \| هغه کسان \| چې ظلم ئې اوکړو \| دخواهشاتو خپلو \| |
| دلیلونه بیانوو \| ، بلکه داظالمان بې دلیله دخپلو خواهشاتو تابعداری کوی \| |
| بِغَيْرِ عِلْمٍ ۖ　فَمَن يَهْدِي　مَنْ　أَضَلَّ　اللَّهُ ۖ　وَمَا لَهُم |
| بغیر دعلم نه \| پس څوک به لاراوښائی \| هغه چاته \| چې بې لارې کړې وی \| الله \| اونشته دپاره دداسې خلقو |
| نوداسې خلق به څوک په سمه لار روان کړی \| کوم چې الله ﷻ ګمراه کړی وی ؟ \| او د هغوئ به |
| مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٢٩﴾　فَأَقِمْ　وَجْهَكَ　لِلدِّينِ　حَنِيفًا ۚ |
| هیڅوک دمددګارانو نه \| پس برابر کړه \| مخ خپل \| دین ته \| حال دا چې مائل اوسې حق ته |
| هیڅوک مددګار نه وی \| نو ته همیشه ددین [اسلام] تابعدار اویو مخیزئ اوسیږه |

[1]) ترجمه:- دهغه دنور حالت څه عجیبه شان لکه یو طاق دې.

فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۭ لَا تَبْدِيْلَ

قائم اوسه په فطرت دالله | هغه | چې پيدا کړې دی الله خلق | په هغې باندې | نشته دې بدليدل

دالله ﷻ فطرت هغه دې په کوم چې ئې ټول خلق پيدا کړي دی |.................. دالله ﷻ پيدا کړې

لِخَلْقِ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ۙ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

جوړښت دالله لره | دادين [يعنی طريقه] | صحيح ده | وليکن | اکثر خلق |

څيزونه کښې بدلون پکارنه دې | ............ هم دغه صحيح دين دې | خو زيات خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ

دا طريقه نه پيژني | [ټينگک شئ په دې فطرت] حال دا چې رجوع کونکی يئ | خاص هغه [الله] ته

نه پوهيږي | ...............[اې خلقو] الله ﷻ طرفته رجوع اوکړئ |

وَاتَّقُوْهُ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝

اواويرېږئ دهغه نه | او قائيم کړئ مونځ | او مه کيږئ | دمشرکانو نه |

اودهغه نه اويرېږئ او دمونځ پابندی کوئ | .............اوپه مشرکانو کښې مه شامليږئ

مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا شِيَعًا ۭ

دهغه کسانو نه | چې جدا جدا کړې ئې دي | دين خپل | او تقسيم شوی دی | په ډلو ډلو کښی |

کومو خلقو چې خپل دين ټکړې ټکړې کړو | ............اوډلې ډلې شول

كُلُّ حِزْبٍۢ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ۝ وَاِذَا مَسَّ

هره ډله | په هغه دين | چې دهغوئ سره دې | خوشحاله دی | او کله چې | اورسيږي |

هره يوه ډله هم په هغه څه خوشحاليږي څه چې د هغوی سره دی | ..............او څه وخت چې خلقو

النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُّنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ

خلقو ته | څه تکليف | نو رابلې هغوئ | رب خپل | په دا حال کښې چې رجوع کونکي وی | هغه ته

ته تکليف اورسيږي | ....... نو خپل رب ته زاری شروع کړي |

ثُمَّ اِذَآ اَذَاقَهُمْ مِّنْهُ رَحْمَةً اِذَا فَرِيْقٌ

بيا چې کله | اوڅکوی الله هغوئ ته | دطرفه خپل نه | [مزه] درحمت | نو په هغه ساعت | يوه ډله

بيا چې کله د خپل رحمت مزه په هغوئ اوڅکوی | .................. نو په هغه وخت کښې يوه ډله

مِّنْهُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ۝ لِيَكْفُرُوْا بِمَآ

دهغوئ نه | درب خپل سره | شريك پيدا کوی | دپاره ددې چې ناشکری اوکړی | په هغې |

خپل رب دپاره شريکان جوړول شروع کړی | ..........حاصل دا چې زمونږ د ورکړې شوو نعمتونو

اٰتَيْنٰهُمْ ۭ فَتَمَتَّعُوْا ۣ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۝

چې ورکړې دې مونږ هغوئ ته | پس فائيده واخلئ [څه لږې ورځې] | ډير زر به تاسو ته پته اولگی |

ناشکری کوی | نو تاسو [ددنياوی لذتونونه] فائدې واخلئ | ډير زر به تاسو ته انجام معلوم شي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ اَنْزَلْنَا | عَلَيْهِمْ | سُلْطٰنًا | فَهُوَ | يَتَكَلَّمُ | بِمَا | |

آيا نازل كړي دي مونږ | په دوئ باندې | څه دليل | چې هغه | خبري [شهادت كوي ] | په هغې

آيا مونږ دي كافرانو ته څه سند راليږلې دې | چې هغه ورته ددوی د شرك جواز بيانوي

كَانُوْا بِهٖ يُشْرِكُوْنَ ۝ وَاِذَآ اَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً

چې دی دوئ | په هغې سره | شرك كونكي | او كله چې | اوڅكوؤ مونږه | خلقو ته | رحمت |

............او كله چې مونږ دي خلقوته د خپلې مهربانۍ لږه ډيره حصه اوښايو

فَرِحُوْا بِهَا ؕ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ

نو خوشحاليږي په هغې | او كه اورسيږي دوئ ته | څه مصيبت | په سبب د هغې | چې مخكښې ليږلې وی

نو دوئ پرې خوشحاله شي [اوشكر نه كوي] | او كه دخپل عمل په وجه پرې څه مصيبت راشي

اَيْدِيْهِمْ اِذَا هُمْ يَقْنَطُوْنَ ۝ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ

لاسونو ددوئ | نو په هغه وخت | دوئ | نا اميده كيږي | آيا نه ګوري دوئ | چې بيشكه الله

نو زر نا اميده شي [او صبر نه كوي ] | .............آيا دوئ ته معلومه نه ده چې الله ﷻ

يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ

فراخه كوی | رزق | دپاره دهغه چا | چې خوښه ئې شي | او تنګوی [رزق چې اوغواړی]

دچا چې اوغواړی | نو روزی يې فراخه كړی | او چاته چې اوغواړی نو تنګه كړی

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝ فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى

بيشكه په دې كښې | خامخا ډيرې نښې دی | دپاره دهغه قوم | چې ايمان راوړی | پس وركړه

بيشكه په دې كښې دايماندارو خلقو دپاره ډيرې نښې دی | نو تاسو خپلو رشته دارو

حَقَّهٗ وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ؕ ذٰلِكَ خَيْرٌ

خاوند دخپلولۍ له | حق دهغه | او مسكين له | او مسافر له | دا [طريقه ] | بهتره ده

ته مسكينانو او مسافرو ته د هغوئ حق وركوئ | ..............داخبره دهغه خلقو دپاره

لِّلَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ ۫ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ

دپاره دهغه كسانو | چې غواړی | رضا دالله | او دا خلق چې دی | خاص هم دوئ

ډيره غوره ده | چې د الله ﷻ رضا غواړی | ...............او همدا خلق كاميابی موندونكی دی

الْمُفْلِحُوْنَ ۝ وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ رِّبًا لِّيَرْبُوَا۠

فلاح [يعنی خلاصي] موندونكی دی | او هغه چې وركوئ تاسو | دسود نه | دپاره ددې چې زيات شي

..............او تاسو خلق چې [كوم رقم] په سود وركوئ | چې دخلقو

فِيْٓ اَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُوْا عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَمَآ اٰتَيْتُمْ

په مالونو دخلقو كښې | پس نه زياتيږی [هغه] | په نز دالله | او هغه چې وركوئ تاسو

په مال كښې ملاؤ شي نو زيات شي | نو داسې څيز د الله په نيز نه زياتيږی [بلكه بې بركته وی] | او تاسو چې د الله

مِّنْ زَكٰوةٍ تُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ۝

دزكات نه | چې غواړئ تاسو | رضا دالله | نو دا خلق چې دی | هم دوئ | زياتونكی دی دمال |

د رضا دپاره كوم زكاة وركوئی | نو داسې خلق [خپل مالونه] دالله ﷻ سره [په څوڅوچنده] زياتوی

اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ

الله هغه ذات دې | چی پيدا ئې كړئ تاسو | بيا ئې روزی دركړه تاسو له | بيا | هم هغه مړه كوی تاسو

الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسو ئې پيدا كړئ | بيا ئې روزی دركړه | بيا به درباندې مرګ راولی

ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ؕ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّفْعَلُ

بيا به هم هغه ژوندی كوی تاسو | آيا شته دشريكانو ستاسو نه | هغه څوك | چی كوی

بيا به مو ژوندی كړی | آيا ستاسو په شريكانو كښې څوک داسې شته | چې په دې كارونو كښې يوهم

مِنْ ذٰلِكُمْ مِّنْ شَيْءٍ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا

ددې كارونو نه | يو څيز [كار] | پاك دې هغه | اواوچت دې | دهغه كارونو نه |

اوكړې شی ؟ |............د الله ﷻ دپاره پاكی ده | او ددوئ دپيدا كړو شريكانو نه ډير

يُشْرِكُوْنَ۝ؑ

چی دوئ ئې شريك كوی |

اوچت دې |

## آسان ترجمه قرآن

هغه تاسو ته ستاسو د نفسونو نه يومثال دركوی، مونږچه كوم رزق تاسوته دركړې دې، آيا ستاسو په غلامانو كښې څوک ستاسو سره شريک دی چه په هغه رزق كښې ستاسو درجه دهغوی سره برابره وی، (او) تاسو دهغې غلامانو نه هم هغسې ويريږئ، څرنګه چه خپلو كښې د يو بل نه ويريږئ؟[چه ټګی او دهوكه راسره اونه كړی] مونږ دغسې دلائل دهغې خلقو دپاره تفصيل سره بيانوو، چه د عقل نه كار اخلی. ليكن ظالمان خلق د څه علم نه بغير خپلو خواهشاتو پسې روان دی، اوس هغه سړی ته څوک هدايت وركولې شی، چا لره چه الله تعالٰی ګمراه كړې وی او د داسې خلقو به هيڅوک مددګار نه وی. لهٰذا ته په توجه سره خپل ذات دې دين طرف ته قائم كړه، د الله تعالٰی جوړ كړې شوې هغه فطرت باندې روان اوسه، په كوم باندې چه هغه ټول خلق پيدا كړې دی د الله تعالٰی په تخليق كښې څوك هيڅ تبديلی نشی راوستلې هم دا بالكل نيغه لار ده، ليكن اكثر خلق نه پوهيږی، (د فطرت تابعداری) داسې كوئ چه تاسو هم دغې الله تعالٰی ته رجوع لرونكی يئ، او دهغه نه ويره ساتئ، او مونځ قائم كړئ او دهغې خلقو نه مه كيږئ، چه شرک كوی. هغه كسان چه خپل دين ئې ټكړې ټكړې كړو، او په مختلفو ډلو كښې تقسيم شو، هره ډله په خپلې خپلې طريقې باندې خوشحاله ده او هر كله چه خلقو ته څه تكليف اورسی، نو هغوی خپل پروردګار ته آواز كوی، بيا چه كله هغه هغوی ته د خپل طرف نه دَ څه رحمت اوڅكوی، نو په هغې خلقو كښې سمدستی بعضې خلق د خپل پروردګار سره شريک جوړوی دې دپاره چه ناشكری

اوکړي، په هغه څه کښې چه مونږ دوی ته ورکړي دي، پس څه مزې واخلئ، بیا هغه وخت لرې نه دې چه کله تاسو ته به هر څه معلوم شي. آیا مونږ نازل کړي دي په دوی باندې څه دلیل، چه دهغې شرک باره کښې خبرې کوي کوم چه دوی د الله تعالی سره کوي. او کله چه مونږ خلقو باندې دخپل رحمت مزه اوڅکوو، نو هغوی په هغې باندې خوشحالیږي او که هغوی ته د خپلو لاسونو د بدو عملونو په وجه څه تکلیف اورسي، نو په لږ وخت کښې نا امیده کیږي. آیا دوی نه گوري چه الله تعالی د چا دپاره اوغواړي، رزق فراخوي، او چا دپاره چه اوغواړي، رزق تنگوي په دې کښې دهغې خلقو دپاره یقیناً لوئې نښې دي، څوک چه ایمان راوړي. لهٰذا ته رشته دار ته دهغه حق ورکړه، او مسکین او مسافر ته هم. او کوم خلق چه د الله تعالی رضامندي غواړي، دهغوی دپاره دا بهتر ده، او هم هغوی دي چه کامیابي مونده وونکې دي. او تاسو چه کوم سود ورکوئ، دې دپاره چه هغه د خلقو په مالونو کښې شامل شي او زیات شي، نو هغه د الله تعالی په نزد نه زیاتیږي او کوم زکوٰة چه تاسو د الله تعالی رضامندۍ حاصلولو دپاره ورکوئ، نو کوم خلق چه داسې کوي، هم هغه خلق دي، چه (خپل مال لره) څو چنده زیاتوي الله تعالی هغه ذات دې، چه تاسو ئې پیدا کړئ، بیا تاسو ته رزق درکوي، بیا تاسو ته مرگ درکوي، بیا به تاسو ژوندي کوي، کوم چه تاسو د الله تعالی شریکان جوړ کړي دي، آیا په هغوی کښې څوک داسې شته چه په دې کارونو کښې څه کار کولې شي؟ پاک دې الله تعالی، ډیر اوچت دې دهغې شرک نه چه کوم دا خلق کوي.

## خلاصه تفسیر

﴿ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ أَنفُسِكُمْ﴾ [الله تعالی] دشرك دبدوالی ثابتولو دپاره [تاسو ته یو عجیبه مضمون ستاسو دحالاتونه بیانوی] هغه دا چې غور وکړئ ﴿هَل لَّكُم مِّن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُم مِّن شُرَكَاءَ فِي مَا رَزَقْنَاكُمْ﴾ [آیا ستاسو په غلامانو کښې څوك سرې ستاسو په هغه مال کښې کوم چې مونږ تاسوله درکړې دې شریك شته ﴿فَأَنتُمْ فِيهِ سَوَاءٌ﴾ چې تاسو اوهغه] په اعتبارد اختیاراتو [په هغې کښې برابریئ ﴿تَخَافُونَهُمْ﴾ دکوم چې تاسو ] دتصرفاتو کولو په وخت [داسې خیال ساتئ ﴿كَخِيفَتِكُمْ أَنفُسَكُمْ﴾ څنگه چې په خپل مینځ کښې] دشریك او حصه دار خود مختار [خیال ساتئ ] او دهغه نه اجازت اخلئ تصرفات کوئ یا کم نه کم دمخالفت فکر خو دهغه نه درسره وی او ظاهره ده چې غلام داسې شریکیدې نه شی پس کله چې ستاسو غلام چې په نوع دبشر او ډیرو خیزونو کښې تاسوسره شریك دې او ستاسو په شان دې فرق صرف په یو شی کښې دې چې تاسو دمال دولت مالکان یئ هغه نه دې ددې باوجود هرکله چې هغه ستاسو دتصرف په خاص حق کښې تاسو سره نه شی شریکیدې نو ستاسو دامقررکړی باطل معبودان کوم چې دالله تعالی غلامان دی او په څه ذاتی یا وصفی کمال کښې دخدایٔ تعالی مماثل نه دی بلکه ځنې خو په دغو کښې دالله تعالی دمخلوق جوړکړې شوی دی دامعبودان دالله تعالی په خاص حق دمعبودیت کښې څنگه دهغه سره شریکیدې شی؟ اومونږ چې لکه څنگه دا کافی شافی دلیل دشرك د باطلوالی بیان کړو ﴿كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ [مونږ دغه شان دپوه خلقو دپاره صفاصفا دلیلونه بیانوو] او مقتضا داوه چې دغو خلقو دحق تابعداری اختیار کړی وې اوشرك ئې پرېښودې وې مگر دغه د حق تابعداری نه کوی ﴿بَلِ اتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَهْوَاءَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ [بلکه دغو ظلمانو بې د څه صحیح [دلیل نه ] محض [دخپلو] فاسدو [خیالاتو تابعداری

کړې ده ﴿فَمَنْ يَّهْدِيْ مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ﴾ پس چالره چې] دده دنا رامئ او عناد او په باطل باند
داصرارپه وجه سره چې [الله تعالى گمراه کړی هغه لره به څوك په لارې کړی ] ددې مقصد دانه
دې چې گونند هغه معذور دې بلکه نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکول دی چې ته غم مه کوه
ستاچې کوم کار وو هغه تاوکړو او هرکله چې په دې گمراهانو عذاب راشی نو ﴿وَمَا لَهُمْ مِّنْ
نّٰصِرِيْنَ۝﴾ [ددوی به هیڅوك مددگار نه وی] او هرکله چې دبره مضمون نه دتوحید حقیقت
معلوم شو [نو] په مخاطبو کښې هریو سړی ته وئیلې شی چې ﴿فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ
حَنِيْفًا ؕ﴾[تاسو] دباطلودینونونه [یکسو شئ خپل مخ هغه] دین طرف ته کړئ ] ﴿فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ
فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ؕ﴾ او ټول[دالله تعالى د درکړی قابلیت تابعداری وکړئ په کوم ] قابلیت [چې
الله تعالى خلقو لره پیداکړی دی] مطلب د فطرت الله نه دادې چې الله تعالى په هرسړی کښې
پیدائشی دا استعداد ایښو دې دې چې که حق اوړیدل او ځان پرې پوهول وغواړی نو پوهیدې
شی او دتابعدارئ مطلب دادې چې ددغې استعداد او قابلیت نه کار واخلی او په مقتضائ
عمل وکړی غرض ددغې فطرت تابعداری پکار ده او ﴿لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ؕ﴾[ دالله تعالى دې
پیداکړې شوی څیزلره په کوم چې هغه ټول بنیادم پیداکړی دی بدلول نه دی پکار ﴿ذٰلِكَ الدِّيْنُ
الْقَيِّمُ ۙ﴾ پس] لار [نیغه] د [دین داده ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ۙ﴾ لیکن اکثر خلق] په دې په
وجه دعدم تدبر [نه پوهیږی] په دې وجه ددې تابعدری نه کوی غرض﴿مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ وَاتَّقُوْهُ﴾ [تاسو
دخدائ طرف ته رجوع وکړئ د فطرف الهی تابعداری کوئ او ددې] دمخالفت او دمخالفت
دعذاب [نه وویریږی او] اسلام قبول کړئ ﴿وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ﴾[دمونځ پابندی کوئ ] کوم چې د
توحید عملی اظهار دې ﴿وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ۙ﴾[اودشرك کوونکونه مه کیږئ ﴿مِنَ الَّذِيْنَ
فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ﴾ کومو خلقو چې خپل دین لره ټکړې ټکړې کړو] یعنی حق خو یو وو او باطل ډیر وو
دغو خلقو حق پریښودو او دباطل مختلفې لارې ئې اختیار کړې دا ټکړې ټکړې کول دی چې
یویوه لار اونیوه او بل بله ﴿وَكَانُوْا شِيَعًا ؕ﴾[اوډیر] مختلف [ټولگی شول ] اوکه په حق وې نو یوه
ډله به وه او سره ددې چې په دې حق پریښودونکو کښې دټولو طریقې باطلې دی مگر بیا هم
دانتهائی جهل نه په دوی کښې ﴿كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ۝﴾[هره ډله په خپله هغه طریقه ناز
کوونکې ده کومه چې ددغو سره ده او] د کوم توحیدطرف ته چې مونږ بلنه کوو سره ددې
دانکار او خلاف کولو داضطرار په وخت کښې په عام طور سره دخلقو دحال او قال نه ددې
اظهار او اقرار هم کیږی چې توحید دمضمون دفطری کیدو تائید ترې هم کیږی چنانچې
لیدې شی ﴿وَاِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ﴾[هرکله چې خلقو ته څه تکلیف ورسیږی] دغه وخت بې قراره
شی ﴿دَعَوْا رَبَّهُمْ مُّنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ ﴾ [خپل] حقیقی [رب لره هغه طرف ته رجوع کوونکی شی رابلی] او
نورټول معبودان پریږدی مگر ﴿ثُمَّ اِذَا اَذَاقَهُمْ مِّنْهُ رَحْمَةً﴾ [ بیا] ډیر زر دا حالت شی چې [هرکله الله
تعالى دوی ته د خپل طرفنه څه مهربانئ مزه وڅکوی ﴿اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ۝﴾ نو پس په
دوی کښې څنې خلق] بیا [دخپل رب سره شرك کوونکی شی چې ددې مطلب دادې ﴿لِيَكْفُرُوْا بِمَا
اٰتَيْنٰهُمْ ؕ﴾ چې مونږ کوم] عیش او ارام [دوی له ورکړې دې دهغې ناشکری کوی] چې عقلا هم
قبیح کار دې [پس ] خیر ﴿فَتَمَتَّعُوْا ۥ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۝﴾[څه ورځې نوره مزه حاصله کړئ بیا به ډیر
زر تاسو ] په حقیقت [پوه شئ] او داخلق چې کوم شرك کوی خاصکر دتوحیدد اقرار نه پس نور

څوك دې ترې نه تپوس وکړي چې ددې څه وجه ده؟ ﴿اَمۡ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ سُلۡطٰنًا﴾ [ايا مونږ په دوی څه سند] يعني څه کتاب [نازل کړې دې ﴿فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوۡا بِهٖ يُشۡرِكُوۡنَ﴾ چې هغه دوی ته دخدای سره د شريك جوړولو وائي؟] يعني ددوی سره ددې څه نقلي دليل هم نشته او په مقتضا دهدايت دعقل نه خلاف والې په خپله ددوی دمنلونه په حالت د اضطرار کښې ظاهرېږي پس سراسر باطل شو [او] وړاند دبرنې مضمون تتمه ده او هغه داده چې ﴿وَاِذَاۤ﴾ [مونږ هرکله ] ﴿اَذَقۡنَا النَّاسَ رَحۡمَةً فَرِحُوۡا بِهَا﴾ دې [خلقو ته د څه مهربانۍ مزه وڅکوو نو هغوی په دې سره ] داسې [خوشحاله شي] چې دخوشحالۍ نه مست شي شرك کول شروع کړي لکه چې ذکر ئې بره وشو ﴿وَاِنۡ تُصِبۡهُمۡ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتۡ اَيۡدِيۡهِمۡ﴾ [اوکه چرې ددوی د] بدو [عملونو په بدله کښې کوم چې دوی وړاند په خپلولاسونو کړې دی په دوی څه مصيبت راپريوځي ﴿اِذَا هُمۡ يَقۡنَطُوۡنَ﴾ نو بس هغه خلق نااميده شی ] په دې مقام کښې په غورکولو سره معلومېږي چې په دې تتمه کښې اصل مقصود اولنۍ جمله [اذقنا الناس ] ده چې په دې کښې ئې ددوی په شرك کښې د اخته کيدو سبب بدمسته او غافله کيدل ذکر دی دويمه جمله محض د تقابل په مناسبت سره ذکر شوې ده څکه چې په دې دواړو حالتونو کښې دومره خبره ثابتېږي چې د دوی تعلق دالله تعالی سره ډير کم او ضعيف دې لړلړ شي دا تعلق هيروی وړاند ددې دويم دليل دې چې داخلق کوم شرك کوی نو ﴿اَوَلَمۡ يَرَوۡا اَنَّ اللّٰهَ يَبۡسُطُ الرِّزۡقَ لِمَنۡ يَّشَآءُ وَيَقۡدِرُ﴾ [ايا دوی ته دا معلومه نه ده چې الله تعالی چالره غواړي زيات رزق ورکوی او چالره چې غواړي کم ورکوی] او دمشرکينو په نزد دامنلي شوې هم وه چې درزق کمول زياتول په اصل کښې د الله تعالی کاردې لکه چې دا قول دالله تعالی دې [ولئن سالتهم من نزل من السماء ماء فاحيا به الارض من بعد موتها ليقولن الله](۱) ﴿اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ﴾ [بيشکه په دې] کار [کښې] هم دتوحيد ﴿لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ﴾ [نښې دی دهغو خلقو دپاره کوم چې ايمان لري] يعنی هغوی پوهېږي اونور پرې هم پوهيدې شی څکه چې څوك داسې قادر وی مستحق دعبادت هم هغه وی [بيا] هرکله چې دتوحيد په دليلونو کښې معلومه شوه چې په رزق کښې فراخي اوتنگي دالله تعالی دطرف نه ده نوددې نه يوه خبره بله هم ثابته شوه چه بخل کول بدکار دې څکه چې څومره رزق په تقدير کښې وی هغه په بخل کولو سره زيات نه ملاوېږي په دې وجه په نيکو کارونو کښې دخرڅ کولو نه بخل نه دی کول پکار بلکه ﴿فَاٰتِ ذَا الۡقُرۡبٰى حَقَّهٗ﴾ [خپلوانو ته ددوی حق ورکوه او] دغه شان ﴿وَالۡمِسۡكِيۡنَ وَابۡنَ السَّبِيۡلِ﴾ [مسکينانو او مسافروته هم ] د دوی حقونه ورکړه چې تفصيل ئې په شرعی دليلونو سره معلوم دې ﴿ذٰلِكَ خَيۡرٌ لِّلَّذِيۡنَ يُرِيۡدُوۡنَ وَجۡهَ اللّٰهِ﴾ [دادهغو خلقو دپاره غوره ده کوم چې دالله تعالی رضا طلب کوی ﴿وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ﴾ او داسې خلق هم دوئ مراد موندونکی دی او] مونږ چې کوم دا قيد ولګولو چې دا مضمون غوره دې د هغو خلقو دپاره کوم چې دالله تعالی درضا طلب ګار وی وجه ددې داده چې زمونږ په نزد مطلق مال خرڅ کول موجب دفلاح موندو نه دی بلکه قانون د هغه دادې چې ﴿وَمَاۤ اٰتَيۡتُمۡ مِّنۡ رِّبًا﴾ [کوم چې تاسو] ددنيا په غرض سره خرڅ کړئ مثلا يو شې په دې غرض سره چاته [ورکړئ ﴿لِّيَرۡبُوَا۟ فِيۡۤ اَمۡوَالِ النَّاسِ﴾ چې هغه دخلقو په

(۱) ترجمه:- اوکه ته ددوئ نه تپوس اوکړې چې هغه ذات څوك دې چې هغه د آسمانه اوبه رااورولې پس ددې نه چې زمکه اوچه وه اودې سره تازه شوه ، نو داخلق به اووائي چې هغه هم دالله تعالی ذات دې.

مال کښې] شامل شي يعني دهغوی ملك او قبضې ته [ورسيږي] ستاسو دپاره [زيات شي] واپس [ راشي] لکه چې د ادل بدل وغيره رسمونو کښې اکثر په دې غرض سره ورکولې شي چې دغه سړې به په موقع باند څه نور زيات ورسره شامل کړی رابه يې کړی﴿ فَلَا يَرْبُوْا عِنْدَ اللّٰهِ ۚ﴾ [نو دادالله تعالى په نزدنه زياتيږي] ځکه چې دالله تعالى په نزد رسيدل او زياتيدل دهغې مال سره خاص دی کوم چې دالله تعالى دخوشحالولو دپاره خرڅ کړې شی لکه چې وړاند راغې او په حديث کښې هم دی چې يوه کجوره مقبوله د احد دغره نه هم زياته ډيريږی او په دې کښې خو دا نيت نه وو ځکه نه مقبوله شوه او نه زياته شوه﴿وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ زَكٰوةٍ﴾ [اوکوم زکوات] وغيره [چې ورکوئ ﴿تُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ﴾ په کوم سره چې دالله تعالى رضا طلب کوئ ﴿فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ۝﴾ نو داسې خلق] خپلو ورکړولره [دالله تعالى سره زياتوونکی دی] لکه چې اوس دحديث مضمون تير شو او دا مضمون دالله تعالى په لاره کښې دخرڅ کولو چونکه د الله تعالى په صفت درزق باند ددلالت کولو په وجه سره دتوحيد دتاکيد ذريعه ده په دې وجه دا تبعا راغې اصل مقصود دتوحيدبيان دې په دې وجه وړاندبيا ددې توحيد ذکر دې

﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ﴾[ الله تعالى هغه ذات دې کوم چې تاسو پيدا کړئ بيا يئ تاسوته رزق درکړو﴿ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ﴾ بيا تاسو لره مرګ درکوی ﴿ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ۭ﴾ بيا به ] قيامت په ورځ [تاسولره ژوندی کړی ] په دې کښې څنې کارونه خو دمخاطبوپه اقرار سره ثابت دی او څنې په دليلونو سره غرض چې هغه داسې قادر دې اوس دا ووايئ: ﴿هَلْ مِنْ شُرَكَاۗىِٕكُمْ مَّنْ يَّفْعَلُ مِنْ ذٰلِكُمْ مِّنْ شَيْءٍ ۭ﴾[چې ستاسو په شريکانو کښې هم څوك داسې شته کوم چې په دې کارونوکښې څه وکړی ؟] او ظاهره ده چې هيڅوك هم نشته په دې وجه ثابته شوه چې ﴿سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ۝﴾[هغه دهغوی د شريك جوړولو نه پاك او برتردې] يعنى د هغه هيڅوك شريك نشته

## معارف او مسائل

په تيرو شوؤ آيتونو کښې د توحيد مضمون په مختلفو شواهدو او دليلونو او عنواناتو سره ښودلې شوې دې چې دهر انسان زړه ته پريوځی . په رومبی مثال سره ئې پوهه کړل چې هر کله ستاسو غلامان او نوکران تاسو په خپل اقتدار او اختيار کښې ځان سره نه شريکوئ حالانکه دوئ هم ستاسوپشان انسانان دی ، پښې ، لاسونه ، شکلونه وغيره ئې هم ستاسو په شان طبعی غوښتو کښې هم ستاسو پشان دی . او بيا ئې هم خپل اختيار ته نه پريږدئ چې څه ئې زړه غواړی هغه دې کوی . هغه دې لګوی چې زړه ئې غواړی دخپل ځان په شان خوئې لا څه کوې چې په خپل مال او اختيار کښې هم ځان سره نه شريکوئ . او څنګه چې د يو معمولي شريک او درسره د څه برخې خاوند نه چې تاسو دا ويره کوئ چې که د هغه د مرضئ په خلاف مو قدم پورته کړو نو هغه به راباندې اعتراض کوی ، غلامانو او نوکرانو ته هم دا درجه نه ورکوئ نوټول مخلوق که فرښتې دی او که پيريان او بنيادم وغيره دی ، دا ټول الله ﷻ پيد اکړ ی دی . دهغه بندګان او غلامان دی ، نو ستاسو څنګه دا يقين راتلې شی چې دوئ به د الله ﷻ شريکان جوړ شی.

دويم آيت مبارک کښې د اخبرداري ورکول دی چې دا خبره خو سمه اوصفا ده چې مخالف خلق د خپلو نفسانی خواهشاتو د تابعدارئ کولو په وجه د علم او حکمت خبرې نه منی.

دریم آیت مبارک کښې رسول الله ﷺ یا عام مخاطب ته حکم دې چې هرکله دا ثابته شوه چې شرک نا معقول او لوئي ظلم دې نو تاسو ټول مشرکانه خیالات پرېږدئ او خپل مخ دا اسلام دین طرفته راوګرځوئ. ﴿فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا﴾. وروستي دا بیان دې چې د اسلام دین د فطرت د تقاضو او غوښتنې مطابق دې ﴿فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ﴾ جمله ده ﴿فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا﴾ د رومبۍ جملې ﴿فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا﴾ وضاحت کول او دهغې مخصوص صفت بیانول ئې دی چې هغه دین فطرت دې. دکوم د تابعدارئ حکم چې په رومبۍ جمله کښې ورکړې شوې دې په ترکیب نحوی کښې د ﴿فِطْرَتَ اللَّهِ﴾ د منصوب کیدو وجې مفسرینو مختلفې لیکلې دی. څوک فرمائي چې دلته لفظ د ﴿اتبع﴾ یا د ﴿اعنی﴾ محذوف دې، که هر څنګه شی خو مطلب ئې هم دا راوځی چې دکوم دین حنیف حکم چې رومبۍ جمله کښې ورکړې شوې دې هغې ته ئې په دې جمله کښې ﴿فِطْرَتَ اللَّهِ﴾ او فرمائیلو. او وروستي جمله کښې ددې مطلب داسې بیانوی چې دالله ﷻ د فطرت نه مراد هغه دې چې هغې باندې ئې خلق پیدا کړی دی.

**فطرت نه څه مراد دې؟**: دې معامله کښې د مفسرینو ګڼ اقوال منقول دی چې په هغې کښې دوه زیات مشهور دی. اول دا چې فطرت نه مراد اسلام دې، دجملې مطلب به داشی چې الله ﷻ هر انسان د فطرت او جبلت په لحاظ سره مسلمان پیدا کړې دې که دې دچا پیرچل د اثر لاندې خراب نه کړې شی نو هر پیدا کیدونکې ماشوم به مسلمان وی. خو د عادت تر مخه داسې کیږی چې مور پلار ورته ښیني وختونو کښې د اسلام خلاف څیزونه ښائي چې دهغې په وجه هغه په اسلام باندې ولاړ پاتې نشی، [څه رنګه چې د صحیحینو په یو حدیث کښې مذکور دی[1]، قرطبی دې قول ته د جمهورو سلفو علماء کرامو قول وئیلې دې][2].

دویم قول دادې چې فطرت نه مراد استعداد دې یعنی په انسانی تخلیق کښې الله ﷻ دا خاصیت ایښودې دې چې په هر انسان کښې د خپل خالق او د هغه د منلو صلاحیت او استعداد موجود دې چې اثر ئې د اسلام قبلول وی خو شرط دادې چې دغې استعداد نه کار واخلی، خو په دې قول کښې ګڼ اشکالونه دی. اول دا چې په دې آیت کښې دې پسې پخپله داسې راغلی دی چې ﴿لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ﴾ او دلته د ﴿خَلْقِ اللَّهِ﴾ نه مراد هغه فطرة الله دې چې بیان ئې پورته اوشو، په دې بنا د جملې مطلب دا شو چې دالله ﷻ فطرت هیڅوک نشی تبدیل کولې. سره ددې چې د صحیحینو په حدیث کښې پخپله دا راغلی دی چې بیا مور پلار په ښینې وختونو کښې بچی لره یهودی یا نصرانی جوړوی، که د فطرت معنی پخپله اسلام واخستې شی نو ددې په باره کښې خو پخپله آیت داسې فرمائي چې دې کښې بدلون نشی راوستې، نو د حدیث پاک دا مطلب به څنګه صحیح ګرځولې شی چې مور پلار د ماشوم دغه فطرت یعنی اسلام په یهودیت او نصرانیت سره بدلوی او لیدل کتل هم ددې تائید داسې کوی چې هر چرته د مسلمانانو نه زیات کافران ملاویږی.

[1]) صحیح البخاري کتاب الجنائز ،باب إذا اسلم الصبي إلخ [ج:۱ص:۱۸۰] و صحیح مسلم کتاب القدر، باب معنى کل مولود یولد علی الفطرة إلخ [ج:۲ص:۳۳۶]

[2]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۴ص:۲۵]

بل دا چې خضر ﷺ کوم ماشوم وژلی وو د هغه په باره کښې هم صحیح حدیث داسې راغلې دې چې ددغې هلک په فطرت کښې کفر وو[1] نو دا حدیث پاك هم دهغه حدیث منافی دې چې هر انسان په اسلام باندې پیدا کیږي ؟

دریمه شبه پرې داسې کیږي چې هر کله اسلام داسې یو څیز دې چې د انسان په خمیر کښې داسې اغږلې شوې دې چې دهغې په بدلولو باندې د هغه هیڅ وس نه رسی نو بیا په داسې غیر اختیاری څیز باندې د آخرت ثواب څنګه حاصلیدې شی ؟

څلورمه شبه داده چې د صحیح احادیثو مطابق نابالغ اولاد هم د مور پلار داسې تابع ګڼړلې شی چې دکافر مورپلار نابالغه اولاد به هم کافر وی. دهغه کفن دفن به په اسلامی طریقه نشی کولې.

دا ټولې شبهې امام تورپشتی رحمه الله په شرح مصابیح کښې بیان کړې دی. اوهم پدې بنا ئې دغه قول غوره کړې دې. ولې چې ددغې پیدائشی استعداد په باره کښې داهم صحیح دی چې په دې کښې څه بدلون نشی کیدې. څوک اولاد چې د مور پلار وغیره په ګمراه کولو سره کافر شی په هغوئ کښې د حق استعداد او قابلیت نه ختمیږی په کوم سره چې د اسلام حقانیت پیژندلې شی ، د خضر ﷺ دهغې هلک په کفر باندې د پیدا کیدو نه هم دا نه لازمیږی چې ګنی په هغه کښې د حق پیژندلو استعداد نه وو پاتې شوې ، او هرکله چې ددغې استعداد او قابلیت صحیح استعمال ، انسان په خپل اختیار سره کوی څکه پرې د لوئې ثواب مرتب کیدل هم واضح شو. او د مور پلار د یهودی یا نصرانی کولو مطلب هم داسې واضح شو چې د ماشوم استعداد اوقابلیت ختم نه وو خو دهغې نه کار اخستلو ته په دغې وجوهاتو پرې نه خودې شی، د پخوانو بزرګانو نه چې کوم قول منقول دې په ظاهره دهغې مراد هم اصل اسلام نه دې بلکه هم دغه داسلام استعداد ، صلاحیت او قابلیت ترمراد دې[2]. محدث دهلوی رحمه الله په لمعات شرح مشکوة کښې د جمهورو د قول هم دامطلب بیان کړې دې[3].

ددې تائید د شاه ولی الله رحمه الله د هغې مضمون نه هم کیږی چې په حجة الله البالغة کښې ئې لیکلې دې. د هغې حاصل دادې چې الله ﷻ بې شمیره مخلوقات د مختلفو طبیعتونو او مزاجونو جوړ کړې دی ، د هر مخلوق په فطرت او جبلت کښې ئې یوه خاص ماده ایښودې ده چې په هغې سره د خپل پیدائش منشا پوره کړې شی لکه قرآن پاک هم فرمائی چې ﴿أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ﴾[4]. څخه هم دا مفهوم دې چې کوم مخلوق خالق کائنات د څه خاص مقصد دپاره پیدا کړې دې هغه ته یې دهغه مقصد دپاره هدایت هم ورکړې دې.هغه هدایت دا ماده او استعداد دې. نو د شاتو په مچئ کښې ئې دا ماده کیخوده چې هغه به ونې او ګلونه پیژنی اوچونړ کوی،دهغې رس په خپلو خیټو کښې ساتی او پخپل ګبین کښې ئې راجمع کوی. دغه شان الله ﷻ د انسان په فطرت او طبیعت کښې داسې ماده او استعداد ایخودې دې چې هغه خپل پیدا کوؤنکې پیژنی دهغه شکر ادا کوی اودهغه بندګی کوی ، ددې نوم اسلام دې.

[1] ) صحیح مسلم کتاب الفضائل، باب من فضائل خضر علیه السلام [ج:۲ص:۲۶۹]
[2] ) کتاب المیسر في شرح مصابیح السنة للتوربشتی ، کتاب الإیمان باب الایمان بالقدر [ج: ۱ ص:۵۴ ، ۵۵]
[3] ) لمعات التنقیح کتاب الإیمان باب الإیمان بالقد [ج: ۱ ص:۱۵۸]
[4] ) ترجمه:- هر یو څیز یې په مناسب جوړښت سره جوړ کړو بیا ئې رهنمائی اوکړه.

﴿لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ﴾ د بیان شوی تقریر نه ددې جملې مطلب هم واضح شو چې دالله ﷻ د ورکړې فطرت پېژندګلو په صلاحیت او استعداد کښې انسان څه بدلون نشي راوستې. غلط چاپیر چل او ماحول خو ددهٔ د کافر کېدو سبب جوړېدیشي، خو ددهٔ استعداد د حق قبلولو فنا کولې نشي.

او هم ددې نه دهغې آیت مبارک مطلب هم واضح کېږي چې په کوم کښې ارشاد دې چې ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ﴾ يعنې مونږ پېریان او بنیادم خالص د خپل عبادت دپاره پیدا کړی دی! یعنې مونږ ددهٔ په فطرت او طبیعت کښې د عبادت مینه او استعداد ایخودې دې که هغه ددغې استعداد نه کار واخلی نو دالله ﷻ د عبادت نه سوا به ترې بل څه کار صادر نه شي.

**د اهل باطل دمجلس او د غلط چاپیر چل نه بیل پاتې کېدل فرض دی** :: دې آیت کښې د ﴿لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ﴾ جمله اګر چې په شکل د خبر کښې ده، خو یوه معنی په کښې د امر داسې ده چې ددې بدلول نه دی پکار، په دې بنا دلته نه دا حکم هم راوځی چې انسان دې داسې څیزونو نه ډیر پرهیز کوی چې د حق د قبلولو دغه استعداد بې کاره یا کمزورې کوی، اودغه اسباب، اکثر غلط چاپیرچل او خراب مجلس دې یا داهل باطلو کتابونو کتل دی کله چې پخپله دخپل مذهب اسلام پوره عالم او مبصر نه وی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

﴿وَأَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ په تیر شوی آیت کښې دا بیان وو چې د انسان فطرت دحق قبلولو استعداد او قابلیت لری، دې آیت مبارک کښې اول دحق قبلولو دا صورت اوښودلې شو چې مونځ قائموئ چې هغه په عملی طور د ایمان، اسلام او دالله ﷻ د فرمانبردارئی ښکاره کول دی، ورپسې فرمائی چې ﴿وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ یعنې شرك کوونکو کښې مه شامليږئی چا چه د خپل فطرت او د حق قبلولو د استعداد نه کار وانخستو، ورپسې ددوئ دګمراهئ بیان دې، فرمائ چې ﴿مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا شِيَعًا﴾ یعنې دا مشرکان هغه خلق دی چا چې د فطری او حق دین کښې بیلتون پیدا کړو، یا دا چې د فطری دین نه بیل شو. نتیجه ئې دا شوه چې دوئ کښې مختلفې ډلې جوړې شوې شِيَعًا د شِيْعَةٌ جمع ده. داسې یوې ډلې ته وئیلې شی چې یو پیشوا پسې روان وی، مطلب دادې چې فطری دین خو توحید وو چې اثر ئې دا پکار وو چې ټول انسانان ددې په اختیارولو سره یو موټې جوړ شوی وې خو دوئ توحید پریخودو او د ګڼړو خلقو د خیالاتو تابع شو او انسانی خیالونو او رائې کښې اختلاف راتلل یو طبعی څیز دې.

څکه هر یو خپل خپل ځان له مذهب جوړ کړو، عوام ددې په وجه په مختلفو ډلو کښې تقسیم شو او شیطان داسې اوکړل چې دوئ ئې په دې کښې داسې اولګول چې خپلو خپلو خیالونو او عقیدو ته هر یو ځان ځان له حق وائی. لکه قرآن پاک فرمائ چې ﴿كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ﴾ یعنې ددوئ هر یو پارټئ پخپلو خپلو خیالاتو او معتقداتو باندې فخر کوی او نور په غلطه بولی. حالانکه دا ټول په ټوله په غلطو لارو باندې روا ن دی.

﴿فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهُ وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ﴾ دې نه مخکښې په وړاندې آیت کښې دا بیان شوې وو چې د روزئ معامله صرف دالله ﷻ په لاس کښې ده. هغه چې غواړی نو د چا روزی فراخه کوی او چې غواړی نو د چا روزی تنګه کړی. دې نه معلومه شوه چې څوک د الله ﷻ ورکړې

رزق چې د هغې د خرچ کولو په ځايونو کښې لګوی نو په هغې کښې کمې نه راځی او څوک چې په خرچ کولو کښې شومتيا [بخل] کوی او ځان سره ځيزونه خوندی کوی نو په دې سره مال کښې فراخی نه راځی.

ددې مضمون په مناسبت سره دې آيت کښې رسول الله ﷺ ته او د حسن بصری رحمة الله عليه په قول سره هر هغه مخاطب انسان ته چې مالی فراخی ورکړې شوې وی، دا هدايت ورکړې شوې دې چې کوم مال الله ﷻ تاسو ته درکړې دې په هغې کښې شومتيا [بخل] مه کوئ. بلکه پخپلو ځايونو کښې ئې په خوشحالئ لګوی. دې سره به ستاسو په مال او روزئ کښې کمې نه راځی. اودې حکم سره په دې آيت کښې د مال لګولو يو څو ځايونه هم بيان کړل. اول ذو القربی، دويم مساکين، دريم مسافر. چې دالله ﷻ ورکړې مال په دغې ځايونو کښې لګوی. اودغې خلقو ته ئې ورکوی او ورسره ئې دا هم اوخودل چې دا د هغې خلقو حق دې چې الله ﷻ ستاسو په مال کښې شامل کړې دی. ځکه په دوئ ددغې مال ورکولو په وخت کښې احسان مه اچوئ. ولې چې حقدار ته خپل حق ادا کول دعدل او انصاف تقاضا ده. څه احسان او انعام پرې کول په کښې نشته.

د ذوی القربی نه په ظاهر عام خپلوان مراد دی خواه هغه ذی رحم محرم يعنی نزدې خپلوان وی يا که نور خپلوان. او دحق نه مراد هم عام دې چې هغه واجب حقونه وی لکه دمور پلار اولاد او نورو ذوی الارحام حقونه شو يا خالص ښيګړه او احسان وی چې خپلوانو ته ئې ورکول د نورو په نسبت زيات ثواب لری. تر دې پورې چې خپلوان محتاج وی او دهغوئ په ځائې نورو باندې خيرات اوکړی نو دالله ﷻ په نزد دا قبول نه دی. او د ذوی القربی حق صرف مالی امداد نه دې بلکه دهغوئ خبر اخستل، جسمانی خدمت کول هم دهغوئ حق دې. او که بل هيڅ ئې دوسه نه کيږی نو کم از کم زبانی همدردی دې ورسره کوی او تسلی وغيره دې ورکوی لکه چې حسن بصری رحمة الله عليه اوفرمائيل چې دمال خاوند دپاره د ذوی القربی حق د هغوئ مالی امداد کول دی او بې ماله دپاره دهغوئ جسمانی خدمت او زبانی همدردی کول دی [ قرطبی](۱).

د ذوی القربی نه پس د مسکين او مسافر حق خودلې شوې دې. دا هم عام داسې دې چې د مال خاوند دپاره ئې مالی امداد کول او بې ماله دپاره ورسره ښه سلوک کول دی.

﴿وَمَآ اٰتَيۡتُمۡ مِّنۡ رِّبًا لِّيَرۡبُوَا۟ فِيۡۤ اَمۡوَالِ النَّاسِ﴾ په دې آيت کښې ديو خراب رسم اصلاح کړې شوې ده کوم چې په عامو خاندانونو او خپلوانو کښې چليږی. يعنی دغه رواج داسې دې چې د خاندان خلق يو بل ته خصوصا دنکاح، واده وغيره په موقعه چې څه ورکوی نو هغه ځان سره ياداشت ساتی چې د غه کس به زما څومره امداد کوی بلکه د خپل ورکړې ځيز نه د زياتې بدلې ورکولو طمع ترې لری. دې ته په رواج کښې نيندره ونيلې شی. دې آيت مبارک کښې هدايت کړې شوې دې چې ددې نه وړاندې آيت کښې دخپلوانو خودلې حق دې په دې طريقه اداکولې شی چې په هغوئ باندې دې څه احسان هم نشی کولې او نه دې ترې د بدلې څه طمع اولرې شی. او چا چې د بدلې په نيت ورکړو مطلب ئې دا وو چې دا وخت خو به زما دا مال د

---

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱٤ص:۳۵]

خپلوانو په مال کښې شامل شی خو په آئنده کښې به سره د زیاتوالی هم دغه مال ماته واپس راځی. نو دالله ﷻ په نزد ددې هیڅ درجه اوثواب نشته دې. او قرآن کریم ددې نوم ربوا یا ربا واخستو اوپه دې سره ئې ددې خرابې داسې ښکاره کړه چې ګویا کښې ددې صورت د ربا یعنی سود دې.

**مسئله** ځوک چې هدیه یا بخشیش ورکوی او دهغې د بدلې طمع لری یا خواهش مند وی نو دا یو ډیره ناکاره حرکت دې چې دا کار په دې آیت مبارک کښې منع کړې شوې دې. البته هدیه او بخشیش وصولونکی دپاره اخلاقی تعلیم دادې چې هغه دې تر خپله وسه پورې ددې بدله ورکوی، ځنګه چې د رسول الله ﷺ عادت مبارک هم داوو چې هدیه پیش کوونکی ته به رسول الله ﷺ هم پخپله موقعه هدیه پیش کوله. [په روایت د عائشه صدیقه ؓ د قرطبی نه][1] البته ددې صورت دې داسې نه اختیاروی چې هدیه او بخشیش پیش کوونکی دا محسوس کړی چې ګنی زما دهدیې او بخشیش بدله راکوی.

| |
|---|
| ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا |
| ظاهر شو فساد \| په اوچه کښې \| او په دریاب کښې \| په سبب دهغې \| |
| \| په اوچه لونده [هرځائې] کښې دخلقو [دبدو] عملونو په وجه فساد |
| كَسَبَتْ أَيْدِي النَّاسِ لِيُذِيقَهُمْ بَعْضَ الَّذِي |
| چې ګټلی دی \| لاسونو دخلقو \| دپاره ددې چې اوڅکوی هغوئ ته \| مزه دځینو هغو عملونو \| |
| خورشوې دې \| چې الله ﷻ دوئ ته د بعضې عملونو [دسزا] خوند |
| عَمِلُوا لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٤١﴾ قُلْ سِيرُوا |
| چې کړی دی هغوئ \| دپاره ددې چې هغوئ \| واپس راشی \| ورته اووایه \| چې اوګرزئ |
| اوڅکوی \| ددې دپاره چې دوئ منع شی \| ........[ائې پیغمبره] ورته اووایه چې په ټوله |
| فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلُ |
| په زمکه کښې \| پس اوګورئ \| څرنګې \| ووُ \| انجام دهغه کسانو \| چې مخکښې ووُ ددوئ نه |
| زمکه اوګرځئ \| نواوګورئ چې ستاسو نه دپخوانو خلقو انجام څه شو ؟ |
| كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُشْرِكِينَ ﴿٤٢﴾ فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ الْقَيِّمِ |
| ووُ \| زیات دهغوئ \| مشرکان \| پس مضبوط اودروه \| مخ خپل \| دپاره ددین \| صحیح |
| په هغوئ کښې زیات خلق مشرکان وو \| نو خپل مخ د هغه قوی دین دپاره قائم [تیار] ساته |
| مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ يَوْمٌ لَا مَرَدَّ لَهُ مِنَ اللَّهِ |
| مخکښې ددې نه \| چې راشی \| هغه ورځ \| چې نشته واپس کیدل \| هغې لره \| دطرفه دالله نه \| |
| ددې خبرې نه وړاندې چې هغه ورځ راشی \| چې بیا دالله ﷻ [وینا] ته واپس راګرځیدل نه کیږی |

[1] صحیح البخاري کتاب الهبة، باب المکافاة في الهبة [ج:۱ص:۳۵۲]

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَوْمَئِذٍ | يَصَّدَّعُوْنَ۝ | مَنْ كَفَرَ | فَعَلَيْهِ |

هم په دغه ورځ به | دا خلق ديو بل نه جدا جدا شي | هغه چاچې كفر اوكړو | نو په هغه دي وبال |

په هغه ورځ به ټول خلق جدا جدا شي اچې څوک انكار اوكړي | نو د هغه دانكار ضرر به هم هغه ته رسي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كُفْرُهٗ ج | وَمَنْ | عَمِلَ صَالِحًا | فَلِاَنْفُسِهِمْ | يَمْهَدُوْنَ۝ لا |

دكفر دهغه | او هغه څوك | چې عمل ئې اوكړو نيك | نو دپاره دځانونو خپلو |دخلاصي لارصفا كوي

اوڅوك چې نيک كارونه كوي | نو خپل ځان له سامان [دراحت] تياروي

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِيَجْزِيَ | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ |

دپاره ددې چې بدله وركړي الله | هغه خلقو ته | چې ايمان ئې راوړې دې |او عملونه ئې كړي دي نيک

نوكوم خلق چې ايمان راوړي | ..............او هغوئ نيک عملونه هم كوي

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَضْلِهٖ ط | اِنَّهٗ | لَا يُحِبُّ | الْكٰفِرِيْنَ۝ |

دفضل خپل نه | بيشكه هغه | نه خوښوي | كافران |

هغوئ ته به په خپل فضل سره بدله وركړي| بيشكه الله كافران نه خوښوي|

### آسان ترجمه قرآن

خلقو چه په خپلو لاسونو بانديې كومه ګټه [بدعملي] اوكړه، دهغې په وجه په اوچه او لونده كښې فساد خور شو دې دپاره چه الله تعالى اوڅكوي په هغوي بانديې مزه دهغې كارونو كوم چه هغوي كړې دي، كيديې شي، چه هغوي منع شي. (اے پيغمبره! دوى ته اووايه) چه په زمكه كښې اوګرځئ، چه كوم خلق مخكښې تير شوې دي، دهغوي انجام څرنګه شو په هغوي كښې اكثر خلق مشركان وو. لهٰذا ته خپل ذات صحيح دين طرف ته قائم ساته، مخكښې ددې نه چه هغه ورځ راشي، چه دهغې د واپس كيدو د الله تعالى د طرف نه هيڅ امكان نشته، په هغه ورځ به خلق جدا جدا وي چا چه كفر كړې دې، د هغه د كفر وبال به په هغه بانديې وي، او چا چه نيک عمل كړې دې، هغه د خپل ځان دپاره لاره جوړوي نتيجه به دا شي، چه الله تعالى به هغې خلقو ته په خپل فضل سره جزاء وركړي، كومو چه ايمان راوړې دې، او نيک عمل كوي يقيناً الله تعالى كافرانو لره نه خوښوي،

### خلاصه تفسير

شرك او معصيت داسې ناكاره شي دې چې ﴿ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ اَيْدِي النَّاسِ﴾ په اوچه او په لونده يعنى تمامه دنيا كښې د خلقو د بدو عملونو [په وجه اوپه سبب بلاګانې خوريږي] مثلاً قحط وبا طوفان ﴿لِيُذِيْقَهُمْ بَعْضَ الَّذِيْ عَمِلُوْا﴾ دې دپاره [چې الله تعالى د دوى دځنې عملونو ] دسزا [مزه دوى ته وڅكوى﴿لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ۝﴾ دې دپاره چې هغوى] دخپلو دې عملونو نه [واپس شى] لكه چې په بل ايت كښې دى [وما اصابكم من مصيبة فبما كسبت ايديكم][1] او دځنو عملونو مطلب دادې چې كه په ټولو عملونو دا عذابونه مرتب شى نو يو

[1] ترجمه:- اوتاسوته چې كوم تكليف دررسي نو هم ستاسو د عملونو په سبب وي.

دساده خاوند به ژوندې پاتې نه شي لکه داقول دالله تعالى دي [ولويؤاخذالله الناس بماكسبوا ماترك على ظهرهامن دابة] (١) په دې معنى سره يې په برنۍ ايت کښې [ويعفواعن كثير] فرمائيلې دي يعنى ډير ګناهونه خو الله تعالى معاف کوى دځنو عملونو سزا ورکوى غرض هركله چې بدعملونه مطلقا سبب دوبال دى نو كفر او شرك خو دېولو نه زيات به موجب دعذاب وى اوکه مشرکانوته ددې په منلو کښې تردد وى نو ﴿قُلْ﴾ [ته ﷺ] دوى ته [ووايه ﴿سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلُ﴾ چې په ملك کښې وګرځئ بيا وګورئ چې کوم] كافران اومشركان [خلق وړاند تيرشوي دى دهغوى اخرى انجام څنګه شو؟ ﴿كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّشْرِكِيْنَ﴾ په هغوى کښې اکثرمشرکان وو] پس وګورئ چې هغوى په اسمانى عذاب سره څنګه هلاك شول ددې نه صفا واضحه شوه چې دشرك وبال ډيرلوئ دې او څنې دكفر په نورو اقسامو کښې اخته وو لکه قوم دلوط ﷺ او قارون اوكوم خلق چې مسخ شوى او شادوګان او خنزيران شوى وو څکه چې ايتونه يې دروغژن کړل دنهئ مخالفت يې وکړو په كفر او لعنت کښې اخته شول او خصوصا دشرك ذكر شايد په دې وجه وى چې دمکې دكافرانو خاص او مشهور حالت دا وو اوهركله چې دشرك موجب دوبال كيدل ثابت شول [پس] اے مخاطبه ﴿فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ الْقَيِّمِ﴾ [ته خپل مخ دې برابر دين] يعنى داسلامى توحيد [طرف ته ساته ﴿مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ﴾ مخکښې ددې نه چې هغه ورځ راشى دکومې دپاره چې بيا دالله تعالى دطرف نه واپس كيدل نه وى] يعنى لكه څنګه چې په دنيا کښې دخاص عذاب وخت الله تعالى دقيامت په وعده باند وروستوكوى هركله چې هغه وعده شوې ورځ راشى بيا به هغه نه شي واپس كولې او ايسارتيا اومهلت به په كښې نه وى په دې جمله کښې دشرك د اخروى وبال ذكر وشو لكه چې بره په [ظهرالفسادالخ اوكيف كان عاقبةالخ] كښې ددنيوى وبال ذكر وو او ﴿يَوْمَئِذٍ يَّصَّدَّعُوْنَ﴾ [هغه ورځ به] دا وى چې [ټول] عمل كوونكى [خلق] په اعتبار دجزا [جدا جدا شى] په دې طور چې ﴿مَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهٗ﴾ [كوم سړې چه كفركوى په ده خو به دده] وبال د [كفر پريوځى ﴿وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِاَنْفُسِهِمْ يَمْهَدُوْنَ﴾ او څوك چې نيك عمل كوى پس داخلق دخپل ځان د] نفع د [ پاره سامان كوى ﴿لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ چې حاصل به يې داوى چې الله تعالى به دې خلقو ته په خپل فضل سره] نيكه [جزا وركړى كومو چې ايمان راوړو اونيك عمل يې وكړو] او ددې نه به كفار محرومه وى لكه چې بره د [فعليه كفره ] نه معلومه شوه وجه يې دا ده چې ﴿اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ﴾ [واقعى الله تعالى كافران نه خوښوى ] بلكه ددوى په كفرباند د دوى نه خفه دي

**معارف او مسائل**

﴿ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ اَيْدِي النَّاسِ﴾ يعنى دخلقو د بد عملئ په وجه په اوچه او لونده کښې عذاب خور شو . تفسير روح المعانى کښې راغلى دى چې د فساد نه مراد قحطى او وبائى مرضونه دى ، د اور لګيدو او په اوبو کښې د ډوبيدو واقعات دى ، چې ډير

(١) ترجمه:-او كه الله تعالى د خلقو د عملونو په جه رانيول كول نو په مخ د زمكې به يو نفس هم پاتې شوې نه وي.

راپیښیږي او دغه شان دهر څيز دبرکت ختميدل او نيشت کيدل دي ، د نفع د څيزونو نفع کميدل او نقصان زياتيدل او داسې نور آفتونه دي. دې آيت نه معلومه شوه چې دا دنيوى آفتونه د انسانانو د بدعملۍ او دګناهونو په نتيجه کښې راځي . د ټولو نه سخته بدعملى کفر او شرک دې . ورپسې د نورو ګناهونو درجې دي .

هم دا مضمون په يوبل آيت مبارک کښې داسې راغلې دې چې ﴿وَمَآ اَصَابَكُمْ مِّنْ مُّصِيْبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ اَيْدِيْكُمْ وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ﴾ يعنى تاسو ته رسيدونکې مصيبتونه ستاسو د لاسونو د کړو نتيجه کښې دی . يعنى ستاسو د بدو عملونو په نتيجه کښې وى او ډير ګناهونه خو الله ﷻ معاف کوى ، مطلب دادې چې په دنيا کښې په تاسو باندې د راتلونکو مصيبتونو اصلى سبب هم ستاسو ګناهونه دی ، اګر چې په دنيا کښې خو نه ددغې ګناهونو پوره بدله ورکولې شى . اونه په هرې ګناه باندې مصيبت اوآفت راځى . بلکه ډير ګناهونه معاف کولې شى . په څينو ګناهونو باندې نيولې کيږې او دهغې بدله کښې مصيبت او آفت راليږلې شى ، که په هرې ګناه باندې په دنيا کښې مصيبت راتلې نو يو انسان به هم په مخ د زمکې باندې ژوندې نه وو پاتې شوې . څنګه چې د يو بل آيت نه هم دغسې معلوميږى ،فرمائى ﴿لِيُذِيْقَهُمْ بَعْضَ الَّذِيْ عَمِلُوْا﴾ يعنى چې اوڅکوى دوئ ته ددوئ د بدو عملونو څه برخه . ورپسې فرمائى چې په غور کولو سره دا معلوميږ ى چې د بدو عملونو په وجه په دنيا کښې د مصيبتونو او آفتونو راوستل دهغه فضل او رحمت څکه دى چې دې سره غافل انسان راويښول اوبيدارول وى چې هغه د خپلو ګناهونو اوته نافرمانيو نه منع شى چې انجام ئې دهغه دپاره مفيد اولوئې نعمت دې ، څنګه چې د آيت په آخر کښې فرمائى چې ﴿لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ﴾

**ددنيا لوئې آفتونه او مصيبتونه د انسان د ګناهونو په وجه راځي** :: څکه څينې علماء کرام فرمائى چې ګناه کوونکې انسان د ټولې دنيا په انسانانو او نورو حيواناتو او مارغانو باندې ظلم کوى ، څکه چې قحطيانې او نور مصيبتونه چې په دنيا کښې راځى دهغې دغه بد اثر په ټولو باندې پريوځى اوهم دغه وجه ده چې د قيامت په ورځ به دغه ټول هم د ګناهګارو انسانانو په خلاف دعوى کوى .

او شقيق زاهد رحمه الله فرمائى چې حرام مال خوړونکې يواځې په هغه کس ظلم نه کوى د چا نه يې چې په ناجائزه طريقه حاصل کړې دې بلکه په ټولو انسانانو ظلم کوى [روح] (١)

ددې يوه وجه داده چې ديو په ظلم کولو سره د بل ظلم کولو ته لار جوړيږى . چې ټول انسانيت په خپل ګرفت کښې راولى . بله دا چې ددې ظلم په وجه په دنيا کښې آفتونه او مصيبتونه راځى دکومو اثر چې په ټولو انسانانو باندې پريوځى .

**د يو شبهې جواب** :: په صحيح احاديثو کښې درسول الله ﷺ دا ارشاد هم موجود دې چې دنيا مؤمنانو دپاره قيدخانه اوکافرانو دپاره جنت دې (٢) . اودا هم چې کافرانو ته دهغوئ د نيکو عملونو بدله د مال دولت او صحت په صورت کښې ورکولې شى او دمؤمنانو د عملونو بدله آخرت دپاره ساتلې شى . او دا چې د مؤمن مثال په دنيا کښې د يو نازکې څانګې پشان دې

---

(١) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٥ ص:٣٧٨]

(٢) صحيح مسلم كتاب الزهد، باب فصل الدنيا سجن المؤمن إلخ [ج:٢ص:٤٠٧]

چې هواګانې ئې يو اړخ ته بل اړخ ته کړوي اوراکاږي. او هم په دغې حالت کښې ددنيا نه رخصت شي اودا چې: ﴿اشد الناس بلاءً الانبياء ثم الامثل فالامثل﴾(۱) يعنی په دنيا کښې بلاګانې او مصيبتونه د ټولو نه زيات په پيغمبرانو باندې راځي، بيا په هغې نيکانو چې دوئ ته نزدې وی، بيا په هغې نيکانو چې دغې نيکانو ته نزدې وی.
دا ټول صحيح احاديث په ښکاره ددې آيت د مضمون سره بې سمونه ښکاري اود عامې دنيا ليدل هم دغه ښائي چې مؤمن په دنيا کښې په عام ډول تنګئ او تکليف کښې او بدکاران، فاسقان اوکافران په عيش و عشرت کښې پاتې کيږی. که ددې آيت په جوړ په دنيا کښې تکليفونه اومصيبتونه د ګناهونو په سبب سره راتلې نو معامله به ددې په خلاف وه.
ددې جواب دادې چې په دنيا کښې د مصيبتونو راتلو سبب ګناهونه ضرور خودلې شوی دی. خو علت تامه نه دی خودلې شوی چې ګنی په چا مصيبت راشی هغه به ضرور ګناهګار وی بلکه ددنيا د يو عام دستور مطابق هر څل سبب واقع کيدو سره مسبب نه واقع کيږی. اوداسې هم کيږی چې ددې مخالف او خلاف بل سبب په دې کښې خنډ جوړ شی. چې اثر کولو ته ئې پرې نږدی. لکه يو دست راوستونکې دوائی چې د څه بلې دوائې غذا په وجه يا د هوا په وجه خپل دغه اثر ښکاره نه کړې شی، د تبې لرې کولو دارو هم کله په څه وجه خپل اثر ښکاره نه کړې شی يا خوب راوستونکې ګولئ خوړلو سره کله په دې سره بنده ته خوب رانشی، ددې زرګونه مثالونه په دنيا کښې ليدلې کتلې شی.
حاصل د آيت مبارک دا شو چې اصل خاصه دګناهونو داده چې دې سره مصيبتونه اوآفتونه راځی خو هر کله چې دې سره بې سمونه څه نور اسباب راجمع شی نو مصبتونه رانشی. داسې هم کيدیشی چې کله بغير د څه ګناه نه مصيبتونه راځی ولې چې په آيت کښې داسې نه دی فرمائيلې شوی چې بغير د ګناه نه چاته څه تکليف اومصيبتونه نشی راپيښيدلې، بلکه کيديشی چې دغه آفت يا مصيبت په بل څه سبب سره راغلې وی. لکه پيغمبرانو ﷺ او اولياء کرامو باندې چې راځی چې د هغې سبب ګناه نه وی. بلکه په هغوئ باندې آزميښت کول ترې مطلب وی چې درجات ئې اوچتې کړې شی.
دې نه علاوه قرآن کريم چې کوم آفتونه او مصيبتونه د ګناهونو په سبب ګرځولی دی دهغې نه مراد هغه آفتونه او مصيبتونه وی چې په ټولې دنيا، ټول ملک، ټولې علاقې يا ټول ښار باندې عام راشی، عام انسانان اوحيوانات هم د هغې د اثر نه بچ پاتې نشی. داسې مصيبتونه او آفتونه عموما دګناهونو په سبب راځی خصوصا دداسې ګناهونو چې په ډاګه کولې شی په خاني او انفرادی مصيبتونو کښې دا ضابطه نه ده بلکه هغه کله خو ديو انسان د آزميښت دپاره ليږلې شی، په هغې کښې چې دغه کس کامياب شی نو د آخرت درجې ئې اوچتې شی. دا مصيبت په حقيقت کښې دهغه دپاره رحمت او نعمت وی، پدې وجه په انفرادی طور سره چې يو کس په يو مصيبت کښې اوليدلې شی دانشی وئيلې کيدې چې هغه ډير ګناهګار دې همدارنګه چا له عيش و عشرت او عافيت کښې ليدو سره هغه باندې دنيک خيال کول صحيح نه دی. البته د عامو مصيبتونو، آفتونو لکه د قحطی طوفان، وبائ مرضونو د

۱ ) مسند البزار مسند سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه رقم الحديث:[۱۱۵۹]

ضرورت د څیزونو د ګرانئ دڅیزونو د بې برکتئ وغیره اکثری او لوئې سبب د خلقو ښکاره ګناهونه او سرکشي ګرځول دي.

**فائده** :: شاه ولی رحمه الله په حجة الله البالغه کښې فرمائي چې په دې دنیا کښې د خیر او شر یا دمصیبت او راحت، دمشقت او سهولت اسباب دوه قسمونه دي. یو ظاهري او بل باطني. ظاهري سببونه هغه دي چې مادي او عام خلق ئې سببونه ګڼړي. باطني سببونه انساني عملونه دي او ددې په بنا باندې د فرښتو امداد او مدد یا دهغوئ لعنت اونفرت دې لکه په دنیا کښې د باران اسباب د فلسفیانو او تجربه کوونکو خلقو په نظر کښې دسمندر نه راپورته کیدونکي بخارات او په پورته ختو سره ددې معلومول، بیا د نمر په رنړا ګانو سره ددې ویلې کیدل او راوریدل دي، خو د حدیث مبارک په روایتونو کښې دا څیزونه د فرښتو عمل خودلې شوېدې. په حقیقت کښې ددې دواړو خبرو ترمینځه بې سموني څکه نشته چې د یو څیز ګڼړ سببونه کیدیشي. چې ظاهري سببونه هم او باطني سبب د فرښتو تصرف هم وي کله چې دا دواړه قسمه سببونه رایوځائې شي نو باران د ضرورت او امید مطابق وي او چرته چې دا دواړه سببونه جمع نه وي نو هلته د باران په کیدو کښې څه خلل راځي.

شاه ولی الله رحمه الله فرمائي چې په دې شان ددنیا د مصیبتونو او آفتونو څه سببونه طبعي او مادي دي چې نیک او بد نه پیژني، د اور کار سوزول دي هغه دمتقي او بدکارو ترمینځه هیڅ فرق نه کوي. بلکه دواړه سیزي. سوا دهغې نه چې اور په یو خاص حکم خداوندي سره د سیزلو نه بند کړې شي څنګه چې دنمرود اور په ابراهیم علیه السلام باندې یخ اوسلامتیا والا جوړ شوې وو. د اوبو کار دادې چې وزني څیزونه ډوبوي، داسې نور عناصر خپل خپل کار کوي کوم چې دالله جل جلاله د طرفنه ورته سپارلې شوي دې. دا طبعي سببونه چا دپاره د آرام اوسهولت سامان برابروي او چا دپاره مصیبت او آفت هم جوړ شي.

دغه شان په دې آرام او تکلیف کښې د انسان خپل عملونه د خیر او شر هم اثر کوي. کله چې دواړه ظاهري او باطني سببونه دیوکس یا دیوې ډلې په آرام، سهولت اوپه ښه شان د ژوند تیرولو کښې راجمع شي نوداسې کس یا جمعې ډلې ته په دنیا کښې په مکمل شان عیش او راحت حاصلیږي چې هر څوک ئې ویني ګوري. بل طرفته که یو کس یا جمعې دپاره طبعي، مادي سببونه هم مصیبتونه او آفتونه راوړي او دهغوئ عملونه هم مصیبت اوآفت ته بلنه ورکوي نو ددوئ مصیبت اوآفت هم مکمل کیږي کوم چې په عام ډول لیدلې کتلې شي.

او کله کله داسې هم کیږي چې د مصیبت اوآفت طبعي او مادي سببونه خود چا مصیبت او آفت راوستو دپاره جمع شوي وي مګر د هغه نیک عملونه په باطني ډول راحت او سکون راوستونکي وي؛ پداسې صورت کښې دغه باطني سببونه دده د ظاهري آفتونو په لرې کولو یا کمولو کښې اخته شي چې په دې وجه ددهٔ عیش او راحت په پوره ډول مخې ته نه راځي.

دغه شان کله کله ظاهري او مادي سببونه د عیش او راحت په مکمل ډول خبر ته راځي. مګر باطني سببونه یعني خراب عملونه مصیبت او آفت راتلو ته بلنه ورکوي. هر کله چې د ظاهري اوباطني سببونوتر مینځه خپل مینځ کښې بې جوړي وي څکه نه عیش او راحت مکمل کیږي اونه ډیر زیات مصیبت اوآفت ترې راچاپیره کیږي.

دغه شان کله کله مادی طبعی سببونه د یو لوئې درجې د نبی ﷺ او رسول ﷺ او د یو ولی او مقبول بنده دپاره ناسازګار جوړ کړې شي . او د هغوئ آزمېښت او امتحان پرې کولې شی . په دې تفصیل چې پوهه شی نو د قرآن د آیتونو او د بیان شوؤ احادیثو ترمینځه به تړون او متفق کیدل واضح شی، د تعارض او بې سمونئ شبهې به دفع شی ، والله اعلم .

**د مصیبتونو په وخت کښې آزمېښت امتحان یا سزا او عذاب کښې فرق** :: د مصیبتونو او آفتونو په ذریعه کومو خلقو ته چې د ګناهونو څه سزا ورکولې شی یا کومو نیکانو خلقو باندې چې د هغوئ د درجو اوچتوالئ یا د ګناهونو دکفارې دپاره د امتحان په ډول مصیبتونه راوستې شی ، هرکله چې ددې دواړو صورت یو شان وی نو په دې کښې به څنګه بیلتون کولې شی ؟

دې باره کښې شاه ولی الله رحمه الله لیکلی دی چې کوم نیک خلق د آزمېښت او امتحان په ډول په مصیبتونو کښې ګرفتار شی، الله ﷻ د هغوئ زړونه په تسلئ کړی او په دغې مصیبتونو او آفتونو باندې داسې راضی شی لکه یو رنځور چې په ترخو دارو خوړلو یا آپریشن کولو سره دتکلیف نه راضی کیږی . بلکه هغې دپاره مال هم لګوی سفارشونه هم کوی، په خلاف د هغې ګناهګارو چې د سزا په ډول په کښې ګرفتارولې شی نو د هغوئ دپریشانئ او چغو څه حد نه وی ، کله خو د ناشکرئ څه چې د کفر کلمې ئې هم د خولې نه راوځی .

سید حکیم الامت تهانوی رحمه الله ددې پیژندګلو دا هم خودلې ده چې په کوم مصیبت کښې د انسان مخه دې ته واړوی چې دا زما د ګناهونو نتیجه ده څکه دتوبې او استغفار شوق ئې زیات شی نو ددې خبرې نخښنه شوه چې دا قهر نه بلکه عنایت او مهربانی ده ، او څوک چې داشان نه وی په هائې چغو کښې اخته شی د اول نه زیات څان ګناهګارول شروع کړی نو دا به دالله ﷻ قهر او عذاب وی . والله اعلم .

| |
|---|
| وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ |
| او دنښو دهغه نه [یوه داده] \| |
| او دهغه په نښو کښې \| |
| اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرٰتٍ وَّلِيُذِيْقَكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ |
| چې رالیږی هغه \| هواګانې \| زیرې ورکونکې \| دپاره ددې چې اوڅکوی تاسو ته \| درحمت خپل نه |
| یوه داده چې هغه [دباران] زیرې ورکونکې بادونه رالیږی \| د دې دپاره چې دخپلې مهربانئ |
| وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ |
| اودپاره ددې چې روانه شی\| کشتئ \|په حکم دهغه\|اودپاره ددې چې اولټوئ تاسو \|دفضل دهغه نه |
| خوند دربان‌دې اوڅکوی \|اوددې دپاره هم چې دهغه په حکم بیړئ روانې وی\| اوچې تاسو [دتجارت په ذریعه] |
| وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ |
| او دپاره ددې چې\| تاسو شکر اوباسئ \| او په تحقیق سره \| او لیږل مونږه \| مخکښې ستا نه \| |
| دهغه مقرر کړې روزی تلاش کړئ\|اوچې دهغه شکر اداکړئ\|اومونږ ستا نه وړاندې ډیر پیغمبران خپلو |

رُسُلًا | إِلَىٰ قَوْمِهِمْ | فَجَاءُوهُمْ | بِالْبَيِّنَاتِ | فَانْتَقَمْنَا

ډير رسولان | قومونو دهغوئ ته | پس ورغلل هغوئ ته | دواضحه نښو سره | پس بدل واغستو مونږه

قومونه ته ليږلي وو | نوهغوئ به ورته ښکاره معجزې اوخودلې [خوبيابه ئې هم ايمان راونړوا] | نو بيامونږ د

مِنَ الَّذِينَ | أَجْرَمُوا | وَكَانَ | حَقًّا | عَلَيْنَا | نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ ۝

دهغه کسانونه | چې جرم ئې اوکړو | او وو | حق | په مونږ باندې | امداد کول دمومنانو |

نافرمانو خلقو نه بدله واخسته | اومومنانو سره مدد کول زمونږ ذمه واري وه

اللَّهُ الَّذِي | يُرْسِلُ | الرِّيَاحَ | فَتُثِيرُ | سَحَابًا | فَيَبْسُطُهُ

الله هغه ذات دې | چې راليږي | هواګانې | پس پورته کوي | وريځې | پس خوروي ئې هغه |

الله ﷻ هغه ذات دې چې بادونه راليږي نو هغه [بادونه] وريځې راوچتوي | بيا چې الله ﷻ څنګه

فِي السَّمَاءِ | كَيْفَ | يَشَاءُ | وَيَجْعَلُهُ | كِسَفًا | فَتَرَى الْوَدْقَ

په آسمان کښې | څرنګې | چې غواړي هغه | او ګرزوي هغه | توټې توټې | پس ته وينې باران |

غواړي نو هغه شان په فضا کښې ئې خوروي | او ټکړې ټکړې ترې جوړوي | نو وينې ګورې چې

يَخْرُجُ | مِنْ خِلَالِهِ | فَإِذَا | أَصَابَ | بِهِ | مَنْ يَشَاءُ

چې راوزي | دمنځ دهغې نه | پس هر کله چې | اورسوي هغه | دا باران | هغه چاته چې خوښه ئې شي

دهغې د مينځ نه باران راوريږي | بيا چې الله ﷻ هغه باران په کومو بندګانو باندې اوو روي

مِنْ عِبَادِهِ | إِذَا هُمْ | يَسْتَبْشِرُونَ ۝ | وَإِنْ كَانُوا | مِنْ قَبْلِ

دبندګانو خپلو نه | بيا هغوئ | خوشحالي کوي | او بيشکه چې وو هغوئ | مخکښې ددې نه |

نو هغوئ پرې خوشحالي شروع کړي | اګر که هغوئ دباران د وريدو نه وړاندې ددې

أَنْ يُنَزَّلَ | عَلَيْهِمْ | مِنْ قَبْلِهِ | لَمُبْلِسِينَ ۝

چې نازل کړې شي | په هغوئ باندې [باران] | مخکښې دښکاره کيدو دوريځې نه | خامخا نااميده |

........خوشحالئ نه وړاندې بيخې نااميده وو | ..........................

فَانْظُرْ | إِلَىٰ آثَارِ رَحْمَتِ اللَّهِ | كَيْفَ | يُحْيِي الْأَرْضَ | بَعْدَ مَوْتِهَا

پس اوګوره | نښو درحمت دالله ته | چې څرنګې | ژوندي کوي زمکه | روستو دمرګ دهغې نه |

نو دالله ﷻ درحمت دې نخښو ته اوګوره | چې څنګه زمکه دمرګ نه پس بيا راژوندئ کوي ؟

إِنَّ ذَٰلِكَ | لَمُحْيِي | الْمَوْتَىٰ | وَهُوَ | عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝

بيشکه هغه [الله] | خامخا ژوندي کونکې دې | دمړو | او هغه | په هر څيز باندې قادر دې |

هم دغه الله ﷻ دې چې مړي راژوندي کوي | او هغه په هر څه باندې قادر دې

وَلَئِنْ أَرْسَلْنَا | رِيحًا | فَرَأَوْهُ | مُصْفَرًّا | لَظَلُّوا

او که اوليږو مونږه | هوا | پس اووينی دوئ هغه [فصل خپل] | زيړ | نو خامخا به شي |

او که مونږ په دوئ باندې بل شان سيلئ راوسته | او دوئ خپل فصل زيړ اووينی | نو ددې

مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ۝ فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى

روستو دهغې نه | چې انکار به کوی | پس بيشکه ته | نه شې اوروليې [خبره] | مړوته |

نه پس به هم په [زړونعمتونو] ناشکري اوکړي| نو ته مړو ته خبرې آوروليې نشې

وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ۝ وَمَآ اَنْتَ

او نه شې اوروليې | کڼړو ته | بلنه | کله چې | اوګرځي | شاکونکي | اونه يې ته |

اوکڼړو ته آواز رسوليې نشې چې کله درته هغوئ شاکړي | ته خو بس هغه

بِهٰدِ الْعُمْىِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ

لاربنودونکې | ړندوته | دګمراهئ دهغوئ نه | ته نشې اوروليې | مګر | هغه چاته | چې ايمان راوړي

چاته [ددين] خبره آوروليې شې| .......................چې زمونږ په آيتونو

بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ۝ ع

په آيتونو زمونږه | پس هغوئ | غاړه ايښودونکې دي |

يقين ساتي | اوهم د هغه فرمانبردار دي |

## آسان ترجمه قرآن

او د (الله د قدرت) يوه نښه دا ده، چه هغه هواګانې راليږي، چه د (باران) زيرې راوړي. او دې دپاره چه تاسو باندې دخپل رحمت مزه اوڅکوی، او دې دپاره چه کشتئ دهغه په حکم سره په اوبو کښې روانې شی، اوچه تاسو دهغه فضل تلاش کړئ او شکر ادا کړئ. او (اے پيغمبره!) مونږ ستا نه مخکښې هم ډير پيغمبران خپلو قومونو ته ليږلې وو، پس هغوی قومونو ته ښکاره ښکاره دلائل راوړل. بيا چه کومو خلقو جرمونه کړې وو، مونږ دهغوی نه انتقام واخستلو او مونږ دا ذمه داری اخستلې ده. چه د ايمان والو به مدد کوو. الله تعالی هغه ذات دې، چه هواګانې راليږی، پس هغه وريځې پورته کوی، بيا الله تعالی هغې وريځو لره چه څرنګه غواړی په آسمان کښې خورې کړی، او هغې لره په ټوټوټو کښې بدلوی، نو بيا به ته وينې چه دهغې د مينځ نه باران راوځی، پس الله تعالی چه د خپلو بندګانو نه چاته اوغواړی، هغه باران رسوی، نو هغوی ناګهانه خوشحالی کوی، حالانکه ددې نه مخکښې چه په دوی باندې باران ورولې شوې نه وو، دوی ناامېده وو، اوس لږ شان د الله تعالی د رحمت اثرات هم اوګوره، چه هغه زمکې ته د هغې د مرګ نه پس څرنګه ژوند ورکوی، حقيقت دادې چه هغه مړو لره ژوندې کونکې دې، او هغه په هر څيز باندې قادر دې، او که مونږ (نقصان ورکونکې) هوا اوچلوو چه دهغې په وجه هغوی خپل پټی زيړ اووينی، نو دهغې نه پس هغوی ناشکری کوی، غرض دا چه (اے پيغمبره!) ته مړو ته خپله خبره نشې اورولې، او نه کڼړو ته خپل آواز رسولې شې، هرکله چه هغوی په شا اوګرځی او نه ته ړندو لره دهغوی د ګمراهئ نه راويستلې او په سمه لار کولې شې ته هغې خلقو ته خپله خبره اورولې شې، چه زمونږ په آيتونو باندې ايمان راوړی، او بيا فرمانبردار وی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ﴾ [ او دالله تعالى د] قدرت اويو والي او نعمت د[نښونه يوه دا] هم [ده﴿اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ﴾ چې هغه] دباران نه وړاند [هواګانولره راليږي ﴿مُبَشِّرٰتٍ﴾ چې هغه] دباران [خوشخبري وركوي] پس ددې راليږل يو خو د زړه خوشحالولو دپاره وي [او] دارنګ په دې وجه [چې] ددې نه پس باران وي او ﴿وَّلِيُذِيْقَكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ﴾ [چه تاسو ته دخپل ] دې [رحمت] باران [مزه وڅكوي] يعني د باران فائدې دركړي ﴿وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِاَمْرِهٖ﴾ [او] دارنګ ددې دپاره هوا راليږي [چې] ددې په ذريعه بادني [كشتۍ د هغه په حكم سره وچليږي ﴿وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ﴾ اوچې] ددې هوا په ذريعه په واسطه دكشتۍ د درياب دسفرنه [تاسو د هغه رزق تلاش كوئ] يعني دكشتو چليدل او رزق تلاش كول دواړه د هوا دليږلونه حاصليږي اول بې د واسطې نه او دويم په واسطه دكشتۍ ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾ [او ددې دپاره چې تاسوشكر وكړئ او] په دې بالغودليلونو او فراخو نعمتونو هم دامشركان د الله تعالى چې كومه ناشكري كوي يعني شرك اومخالفت درسول الله ﷺ او ازار مؤمنانو ته وغيره نو ته په دې غمژن كيږه مه ځكه چې مونږ به ډير ژر ددوى نه بدله واخلو او په دې به دوى لره مغلوب او حق لره غالب كړو لكه چې وړاند هم ذكر شوې ده چنانچې ﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا اِلٰى قَوْمِهِمْ﴾ [مونږ تانه وړاند ډيرو پيغمبرانو لره ددوى قومونوته ليږلي دى ﴿فَجَآءُوْهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ﴾ نو هغوى هغوته دليلونه ] دثبوت حق [راوړل ] چې په هغې ځنو ايمان راوړو او ځنو پرې رانه وړو ﴿فَانْتَقَمْنَا مِنَ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا﴾ [پس مونږ دهغو خلقو نه بدله واخسته كومو چې جرمونه كول] او هغه جرمونه حق دروغژن كول او مخالفت داهل حقو دى او په دغې بدل اخستو كښې مونږ هغوى مغلوب اوايماندارو لره غالب كړل ﴿وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [او دايماندارو غالب كول] موافق د وعدې او عادت [زمونږ په ذمه وو] دغه بدله اخستل دالله تعالى عذاب وو او په دې كښې دكفارو هلاكيدل يا مغلوب كيدل دى او دمسلمانانو بچ كيدل ددوى غالب كيدل دى غرض دغه شان به ددې كفارو نه بدله واخستلې شي خوا په دنيا كښې خوا پس دمرګ نه او دا مضمون دتسلۍ په طور دمعترضې جملې وو وړاند د راليږلو دهوا ګانو دځنو په اجمال سره د ذكر شوو نښو تفصيل دې چې ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ﴾ [الله تعالى داسې ] قادرحكيم اومنعم [دې ﴿يُرْسِلُ الرِّيٰحَ﴾ چې هغه هوا ګانې راليږي ﴿فَتُثِيْرُ سَحَابًا﴾ بيا هغه ] هواګانې [وريځولره]كومې چې كله ددې هوا ګانو نه ورومبى بخارات پورته شوى وريځ ترې نه جوړه شوې وى اوكله هغه بخارات په دې هواګانو سره اوچت شى وريځ ترې نه جوړه شى بيا دغه هواګانې وريځو لره ددوى دځاى نه يعنى د اسمانى فضاء نه يا دمزكې نه ﴿فَيَبْسُطُهٗ فِي السَّمَآءِ كَيْفَ يَشَآءُ﴾ [پورته كوى بيا الله تعالى دې ] وريځې [لره ]كله خو[ځنګه چې غواړى په آسمان ] يعنى اسمانى فضاء [كښې خوروى ﴿وَيَجْعَلُهٗ كِسَفًا﴾ [او] كله [دې لره ټكړې ټكړې كوى] د بسط مطلب دادې چې جمع ئې كړى تر لرې پورې ئې خوروى او د [كيف يشآء ] مطلب دادې چې كله ئې تر لږ ځاى پورې كله تر ډير لرې پورې او دكسفا مطلب دادې چې جمع كيږى نه جدا جدا وى [بيا] په دواړو حالتونو كښې ﴿فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ﴾ [تاسو باران لره وينئ چې ددې ] وريځې [د مينځ نه راوځى] دجمع وريځې نه وريدل خو ډيردى او په ځنې موسمونو كښې اكثر باران دجداجدا وريځې نه هم كيږى [بيادد ] وريځې نه

دراوتلونه پس ﴿فَاِذَآ اَصَابَ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ﴾ [هر كله چې هغه] باران [په خپلو بندګانو كښې چاله غواړي ورته ئې رسوي ﴿اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ﴾ نو بس هغوی خوشحالئ كوي ﴿وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِّنْ قَبْلِهٖ﴾ او هغه خلق مخكښې د دې نه چې د دوی خوشحاليدونه وړاند په دوی ووريږي] بالكل ﴿لَمُبْلِسِيْنَ﴾ [نااميده] كيدوونكي [وو] يعنی اوس اوس نااميده وو او اوس خوشحاله شول او داسې ليدې هم شي چې دانسان حالت په داسې وختونوكښې ډير زر زر بدليږي [﴿فَانْظُرْ اِلٰٓى اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ﴾ پس] لږ [درحمت الهی] يعنی باران [نښې] خو [وګورئ ﴿كَيْفَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ چې الله تعالى] د دې په ذريعه [مزكې لره ددې دمره كيدو] يعنی وچيدو [نه پس څنګه ژوندئ] يعنی تروتازه [كوي] او داخبره دنعمت او ددليل دوحدت كيدونه علاوه ددې هم دليل دې چې الله تعالى دمرګ نه پس په دې دوباره ژوندی كولو پوره قدرت لري ددې نه معلوميږي چې كوم الله تعالى مړې مزكې لره ژوندئ كړه ﴿اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى﴾ [هيڅ شكه نشته چې هغه] الله تعالى [مړولره ژوندی كوونكي دې پس عقلا ممكن كيدو كښې دواړه برابر اوقدرت ذاتي ددواړو سره برابر او په مشاهده كښې د دواړو كارونو يوشانوالې دا ټول څيزونه دې استبعاد لره دفع كوونكي دی چې دمرګ نه پس به بياڅنګه ژوندی شي ] ﴿وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ [او هغه په هرشي قدرت لرونكي دې] دامضمون دژوندی كولومړو په مناسبت دژوندی كيدو د مزكې جمله معترضه وه [او] وړاند بيا دباران او هوا متعلق مضمون دې چې په دې كښې دغافلانو دناشكرئ بيان دې يعنی غافلان داسې حق ناشناسه او ناشكره دی چې د دومره لويو لويو نعمتونو نه پس ﴿وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا﴾ [كه مونږ په دوی بله ] قسم [هوا راولو بيا] په دغې هوا سره ﴿فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا﴾ [داخلق فصل لره] اوچ او [زيړ ويني ] چې شينوالې اوتازه والې ترې نه تلې وی ﴿لَّظَلُّوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ﴾ [نو دوی به ددې نه پس ناشكرئ كوونكي شي] او تيرنعمتونه به ټول هير كړي [پس] هركله چې ددوی غفلت اوناشكرئ كول په دې درجه كښې دی نو ددې نه داهم ثابته شوه چې دوی بالكل بې حسه دی نو ددوی په ايمان نه راوړو او فكر او تدبر نه كولو غم كول هم بې كاره دی څكه چې ﴿فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ﴾ [ته مړو ته ] خو [نه شې اوړلې اوكڼروته] هم [آواز نه شي اورولې ] خصوصا [هركله چې شاكړی روان شی] چې بيا اشاره هم نهويني [او] دغه شان ﴿وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ﴾ [ته ] داسې [ړندوته ] كوم چې دليدونكي تابعداری نه كوي [د دوی دبې لارې كيدو نه نه شې په لاره كولې] يعنی هغوی خو دهغه چا په شان دی چې حواس او ژوندئ بيكاره وی ﴿اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا﴾ [ته خو بس هغوی ته اوړولې شې كوم چې زمونږ په ايتونو يقين لري] او ﴿فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ﴾ [بيا هغوی منی ] هم او هركله چې داخلق دمړو كڼړو او ړندو مشابه دی بيا د دوی نه توقع د ايمان مه ساته او غم ئې هم مه كوه

**معارف او مسائل**

﴿فَانْتَقَمْنَا مِنَ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا ۭ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ يعنی مونږ دمجرمانو كافرانو نه بدله واخسته او زمونږ په ذمه دمؤمنانو مدد كول وو. دې نه معلومه شوه چې الله ﷻ په خپل فضل سره دمؤمنانو امداد كول په خپله ذمه اخستی دی ، په ظاهره ددې غوښتنه دا وه چې چرې دې هم مسلمانان دكافرانو نه ماتې اونه خوري. خو ډير واقعات ددې خلاف شوی دی او كيږي.

ددې جواب پخپله په دې آيت مبارک کښې داسې موجود دې چې دې نه مراد هغه مجاهدين في سبيل الله دی چې خالص د الله ﷻ د رضا دپاره کافرانو سره جهاد کوی .هم دداسې خلقو بدله الله ﷻ مجرمانو نه اخلی او هغوئ غالب کوی . کله چې چرته ددې په خلاف يو صورت مخې ته راشی يعنی مسلمانان مغلوب راشی او ناکام شی نو دغلته عموما هم ددوئ څه کمې وی لکه د احد د غزا په باره کښې چې الله ﷻ فرمائی ﴿إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَٰنُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا﴾ يعنی ددوئ د خينې غلطو عملونو په وجه شيطان دوئ اوخويول . اوپه داسې حالاتو کښې هم په آخر کښې الله ﷻ دوئ غالب راولی کله چې دوئ په خپلې غلطئ باندې خبردار شی لکه چې داحد په غزا کښې اوشو اوڅوک چې صرف خپل نوم مؤمن ، مسلمان کيږدی ، دالله ﷻ داحکامو نه دغفلت اوسرکشئ عادت لری او دکافرانو دغلبې په وخت هم د خپلو گناهونو نه توبه تائب نشی . هغوئ په دې وعده کښې شامل نه دی اونه د الله ﷻ د مدد حقدار دی. هسې خو الله ﷻ په خپل رحمت سره بې دحقدارئ نه هم مدد او غلبه ورکوی . نو ددې اميد لرل اوهغه نه دعا غوښتل په هر حال کښې سراسری مفيد دی .

﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾ ددې آيت مبارک مطلب دادې چې تاسو مړو ته آؤرول نه شی کولې ، اوس دا چې مړی د آوريدو صلاحيت لری اوکه نه ،او عام مړی د ژوندو خبرې آوری که نه ؟ ددې مسئلې مختصر تحقيق د سورة نمل په تفسير کښې تير شوې دې او مکمل تحقيق ئې د احقر رحمه الله په مستقله رساله عربی کښې دې . د رسالې نوم دې تکميل الحبور بسماع اهل القبور دې اود احکام القرآن [عربی] دحزب خامس د يوې برخې په حيث شائع شوې دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | اَللّٰهُ الَّذِيْ | خَلَقَكُمْ |
| | | | | الله هغه ذات دې | چې پيدا ئې کړی تاسو |
| الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسو ئې د کمزورئ | | | | | |
| مِّنْ ضُعْفٍ | ثُمَّ جَعَلَ | مِنْۢ بَعْدِ | ضُعْفٍ | قُوَّةً | ثُمَّ جَعَلَ |
| دکمزورئ دحالت نه | بيا ئې درکړو | روستو | د [دې] کمزورئ نه | طاقت | بيا ئې درکړه |
| په حالت کښې پيدا کړئ \| بيا دکمزورئ نه پس ئې طاقت درکړو \| بيائې د [خوانئ ] دطاقت نه | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْۢ بَعْدِ | قُوَّةٍ | ضُعْفًا | وَّشَيْبَةً | يَخْلُقُ | مَا | يَشَآءُ |
| روستو | دقوت نه | کمزوری | او بوډا والې | پيدا کوی | هغه | چې غواړی هغه |
| پس کمزوری راوسته \| اوبوډاتوب ئې راوستلو \| هغه چې څه غواړی نو هغه پيدا کوی | | | | | | |
| وَهُوَ الْعَلِيْمُ | الْقَدِيْرُ ۝ | وَيَوْمَ | تَقُوْمُ | السَّاعَةُ | | |
| او هغه په هر څه پوهه دې | او قادر دې | او په کومه ورځ | چې قائميږی | قيامت | | |
| او الله ﷻ په هرڅه پوهه او په هرڅه قادر دې \| او په کومه ورځ چه قيامت قائم شی | | | | | | |
| يُقْسِمُ | الْمُجْرِمُوْنَ ۙ | مَا لَبِثُوْا | غَيْرَ سَاعَةٍ | | | |
| نو قسمونه به خوری | مجرمان خلق | چې وخت نه دې تير کړې هغوئ | بې ديوساعت نه | | | |
| نو مجرمان به قسمونه خوری \| چې مونږ [په دنيا کښې ] د لږ وخت نه زيات پاتې شوی نه وو | | | | | | |

كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ ﴿٥٥﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ

دارنګې | وو هغوئ | چې دوکې به ئې خوړلې په دنيا کښې | او وائي به | هغه کسان |

دوئ به دنيا کښې هم داشان اړولی چليدل | ..................اوکومو کساتو ته چه الله تعالى علم او

اُوْتُوا الْعِلْمَ وَالْاِيْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ

چې ورکړې شوې وو | علم | او ايمان | چې وخت تير کړې دې تاسو | په کتاب دالله کښې |

ايمان [دواړه] ورکړې وو | هغوئ به اووائي چې تاسو دالله ﷻ دليک مطابق [په موجوده

اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ

دورځې دراپوره ته کيدو پورې | پس داده | ورځ دپورته کيدو | وليکن تاسو | وئ |

موده کښې قيامت تر ورځې پورې پاتې شوی يئ | نودا نن د قيامت هغه ورځ ده | مګر

لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٥٦﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

چې نه پوهيدئ | پس په دغه ورځ به | فائده نه ورکوی | هغه کسانوته | چې ظلم ئې کړې دې

تاسوپرې نه پوهيدلئ | نو په دغه ورځ به ظالمانو ته خپل عذرونه هيڅ فائده ورنکړې

مَعْذِرَتُهُمْ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ

عذر دهغوئ | اونه به هغوئ | اوبللې شي رضا دالله ته | او بيان کړې دی مونږه | دپاره دخلقو |

اونه به دوی ته دالله ﷻ دراضی کولو موقع ورکړې شی | اومونږد خلقو دفائدې دپاره

فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ؕ وَلَئِنْ جِئْتَهُمْ بِاٰيَةٍ لَّيَقُوْلَنَّ

په دې قران کښې | هر قسم مثالونه | اوکه | راوړې ته دوئ ته | يوه نښه | نو خامخا به وائي

په دې قرآن پاک کښې هر قسم مضامين بيان کړی دی|اوکه چرې ته دې کافرانو ته څه معجزې پيش کړې

الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُبْطِلُوْنَ ﴿٥٨﴾

هغه کسان | چې انکار کړې دې هغوئ دمنلو نه | چې نه يئ تاسو | مګر | باطلونکې يئ |

نو بيا هم چا چې کفر کړې دې | هغوئ به داوينا کوی چې تاسو خوبس دروغژن يئ

كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٥٩﴾

همدارنګې [ټاپه [مهر] وهی الله | په زړونو | د هغه کسانو | چې علم نه لرى |

دغه شان الله ﷻ دهغه خلقو په زړونومهرلګوی | ...........کوم کسان چې نه پوهيږی

فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ

پس صبر کوه [اے نبی ﷺ ] | بيشکه | وعده دالله | حقه ده | او هر ګز سپک اونه مومی تالره |

نو ته صبر کوه | دالله ﷻ وعده ريښتيني ده | او [خيال ساته] چې دابې يقينه خلق

الَّذِيْنَ لَا يُوْقِنُوْنَ ﴿٦٠﴾ ع

هغه کسان | چې يقين نه کوی |

تا قابو نه کړې شی

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالىٰ هغه ذات دې، چه هغه ستاسو د تخليق ابتداء كمزورئ سره كړې ده، بيا د كمزورئ نه پس ئې طاقت در كړې دې، بيا د طاقت نه پس (دوباره) كمزوري او بوډا والې ئې په تاسو باندې راوستلو. او هغه چه څه غواړي پيدا كوي، او هم هغه دې، چه دهغه علم هم كامل دې او قدرت ئې هم كامل دې. او په كومه ورځ چه قيامت قائم شي، په هغه ورځ به مجرمان خلق قسمونه خوري چه هغوي په (برزخ) كښې د يو ساعت نه زيات وخت نه دې تير كړې، دغه شان (دنيا كښې هم) هغوي په شا ګرځيدل. كومو خلقو ته چه علم او ايمان وركړې شوې دې، هغوي به اووائي، چه تاسو د الله تعالىٰ د ليكلې شوې تقدير مطابق حشر پورې (په برزخ) كښې پراته وئ، اوس دا هغه د حشر ورځ ده، ليكن تاسو په دې باندې يقين نه لرلو. پس چه كومو خلقو د ظلم لاره اختيار كړې وه، په هغه ورځ به دهغوي معذرت هغوي ته هيڅ فائده نه رسوي، او نه به هغوي ته دا وئيلې شي، چه د الله تعالىٰ ناراضګي لرې كړئ. او حقيقت دادې، چه مونږ په دې قرآن مجيد كښې د خلقو د پوهولو دپاره هر قسمه خبرې بيان كړې دي، او (اے پيغمبره!) ددوي حال دادې، چه كه ته دوي ته هر قسمه نښې راوړې نو دا كافر خلق به بيا هم دا وائي، چه تاسو هيڅ نه يئ، بالكل په باطله يئ ○ الله تعالىٰ دغه شان د هغې خلقو په زړونو باندې مهر لګوي، چه د عقل نه كار نه اخلي. لهٰذا (اے پيغمبره) ته د صبر نه كار واخله، يقين اوكړه، د الله تعالىٰ وعده رشتونې ده، او داسې چرې هم نه ده پكار چه كوم خلق يقين نه لري، دهغوي د وجې نه ته سست شې.

## خلاصه تفسير

﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ﴾ [الله تعالى داسې دې كوم چې تاسو دكمزورئ په حالت كښې پيداكړئ] مراد د دې نه ابتدائى حالت د ورو كوالى دې ﴿ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً﴾ [بيا د] دې [كمزورئ نه پس ئې توانائى] يعنى ځوانى [دركړه ﴿ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا وَّشَيْبَةً﴾ بيا د] دې [توانايئ نه پس ئې كمزورى او بوډاكان كړئ] او ﴿يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ﴾ [هغه چې څه غواړي پيداكوي] ﴿وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ﴾ په هريو تصرف [پوه] او ددې تصرف په نافذ كولو باند [هغه قدرت لرونكې دې] پس څوك چې داسې قادر وي هغه ته دوباره ژوندى كول څه مشكل دى دا خو بيان وو د بيازژوندى كولو دامكان [او] وراند ددې دواقع كيدو بيان دې يعنى ﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ﴾ [په كومه ورځ چې قيامت شي مجرمان] يعنى كافران [خلق به] دهغه ځائ د ويرې او هيبت او پريشانئ په ليدو دقيامت راتلل ډير ناګواره وګڼري [قسمونه به خوري چې] قيامت راتلل ډير زر راغې او ﴿مَا لَبِثُوْا غَيْرَ سَاعَةٍ﴾ [دغه خلق] يعنى مونږ خلق په عالم برزخ كښې [ديوې ګنټې نه زيات نه دى پاتې شوى] يعنى كوم ميعاد چې دقيامت دراتلو مقرر وو هغه هم پوره نه شو چې قيامت راورسيدو لكه چې ليدې شى كه دپانسئ والا ميعاد يوه مياشت مقرر كړې شى نو هركله چې مياشت تيره شى نو دۀ ته داسې معلوميږى چې لكه ګويا مياشت نه ده تيره شوې اومصيبت زر راغې دالله تعالى ارشاد دې چې ﴿كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ﴾ [دغه شان داخلق] په دنيا كښې [التهٔ چليدل] يعنى لكه څنګه چې دلته په اخرت كښې دقيامت وراندې د وخت نه په راتلوقسمونه خورى دغه شان په دنيا كښې دقيامت د

وجود نه منکر وو او په نه راتلو به یٔ قسمونه خوړل ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْعِلْمَ وَالْإِيْمَانَ﴾ [او کومو خلقو ته چې ایمان او علم ورکړې شوې دې] مراد ترې نه اهل ایمان دی چې دشرعی خبرونو علم ورته حاصل دې [هغه] ددې مجرمانو په جواب کښې [به وائی چې] ﴿لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ إِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ﴾ تاسو په برزخ کښې دمیعاد نه کم خونه یئ پاتې شوی ستاسو دا دعوی غلطه ده بلکه [تاسو خود] میعاد [دالله تعالی لیکلی شوی موافق دقیامت تر ورځې پورې وئ پس دقیامت ورځ داده] کوم میعاد چې مقرر وو په برزخ کښې دپاتې کیدو ﴿وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ [اولیکن] وجه ددې خبرې چې قیامت لره دمیعاد نه وړاندراتلونکې گنړئ داده چې [تاسو] په دنیاکښې دقیامت په واقع کیدو [یقین] اوعقیده [نه لرله] بلکه دروغژن کولو مو اوانکار مو ترې نه کولو ددې انکار په وبال کښې نن دپریشانئ سره مخامخ شوئ په دې وجه وویریدئ او داخیال مو وشو چې لاتراوسه میعاد نه دې پوره شوې اوکه تصدیق مو کړې وې او ایمان مو راوړې وې نو دادقیامت واقع کیدل به مو زر نه گنړل بلکه دابه موغوښتل چې ددې نه هم ژر راشی څکه چې دانسان سره هرکله د راحت او ارام وعده وی نو طبعی طور ددغې ژر راتلل غواړی او انتظار ورته گران وی اوموده ورته اوږده معلومیږی لکه په حدیث شریف کښې هم دی چې کافران په قبر کښې وائی [رب لاتقم الساعة][1] اومؤمن وائی [2][رب اقم الساعة][3] او دمؤمنانو په دې جواب سره هم کوم چې دلته ذکر دې چې برزخ دوی ډیر گنړلو دا ترې نه معلومیږی چې دوی مشتاق وو په دې وجه یٔ غوښتل چې زر راشی [غرض په دغه ورځ به ظالمانو] یعنی دکافرانو دپریشانئ او مصیبت دا حال وی چې دوی [ته به د دوی] هیڅ قسم دروغ ربښتونې [عذر کول نفع ورنه کړی اونه به د دوی نه دالله تعالی دخفگان تدارک وغوښتلې شی] یعنی ددې موقع به ورله ورنه کړې شی چې توبه وباسی الله تعالی راضی کړی ﴿وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ﴾ [اومونږ دخلقو د] هدایت د[پاره په دې قرآن کښې] یعنی په ټول قرآن یا د دۀ په دې خاص جز یعنی دې سورة کښې [دهرقسم ښه] اوعجیبه [مضامین] ضروری [بیان کړی دی] کوم چې دخپل بلاغت اوکمال په وجه مقتضی ددې دی چې دې کافرانو ته هدایت وشی مگر دې خلقو د ډیرعناد نه داقبول نه کړو او نفع مند ترې نه نه شو [او] دقرآن څه تخصیص دې ددې خلقو عناد خو دومره زیات شوې دې چې ﴿وَلَئِنْ جِئْتَهُمْ بِاٰيَةٍ لَّيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ [ که چرې ] قرآن نه علاوه دهغو معجزونه دکومو چې دوی په خپله فرمائش کوی [ ته دوی ته څه نښه راوړې نو بیا هم دغه خلق کوم چې کافران دی دابه ووائی چې تاسو ټول ] یعنی پیغمبر ﷺ او مؤمنان کوم چې دتشریعی اوتکوینی نښو تصدیق کوی ﴿إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا مُبْطِلُوْنَ﴾ [خالص باطل خلق یئ ] په پیغمبریٔ دسحر تهمت ولگولو صاحب باطل یٔ ورته ووئیل اومسلمانانو ته یٔ دسحر په تصدیق کوونکو سره اهل باطل ووئیل او د دې خلقو ددې عناد په باره کښې اصل خبره داده چې ﴿كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ [کوم خلق ] چه سره د پرله پسې نښو او دحق دلیلونو دظاهریدو [یقین

---

[1] ) ترجمه:- اې زما پروردگاره ! قیامت مه قائمه.

[2] ) ترجمه:-اې زما پروردگاره ! قیامت قائم کړه.

[3] ) مسند احمد ، حدیث البراء بن عازب رضي الله عنه رقم الحدیث :[۱۹۰۳۸]

نه کوی] اونه يٰ دحاصلولو کوشش کوی [الله تعالی دهغوی په زړونو باند هم دغسې مهر لګوی] لکه چې دهغوی په زړونو باند کېږی یعنی روزانه دحق قبلولو استعداد يٰ کمزوري کېږی او ختمیږی په دې وجه په حکم منلو کښې ضعف او په عناد کښې يٰ قوت زیاتیږی [پس] هرکله چې دوی داسې عناد ګردی نو ددوی په مخالفت او ازار رسولو اوبد کلامئ وغیره ﴿فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللهِ حَقٌّ﴾ [ته صبر کوه بیشکه دالله تعالی وعده] چې په اخرت کښې به دوی ناکامه او اهل حق کامیاب وی [ربشتونې ده] دا وعده به خامخا واقع کیږی پس لږې ورځې صبر او تحمل کول دی ﴿وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِينَ لَا يُوقِنُونَ﴾ [او دابد یقینه خلق دې تالره بې برداشته نه کړی] یعنی د دوی دطرف نه خواه هرڅنګه خبره چې راپیښه شی مګر هسې نه چې ته برداشت ونه کړې شې

## معارف او مسائل

ددې سورت لویه حصه ددې متعلق ده چې د قیامت دمنکرانو شبهې لرې کړې شی چې دهغه دپاره دوباره الله ﷻ دقدرت کامله او د حکمت بالغه ډیر آیتونه اونښې دې دپاره اوخودلی چې غافل انسان د غفلت نه رابیدار کړی ، اوس ددې آیتونو څېنې په رومبی آیت کښې په یو نوی انداز سره دا مضمون ثابتول دی چې د انسان طبیعت جلد باز دې ، په مخامخ څیزونو کښې چې اخته شی نو ماضی او مستقبل هیروی ، ددې عادت په وجه انسان په ډیرو هلاکوؤنکو غلطیانو کښې راګیر وی ، کله چې انسان ځوان وی او طاقت ئې ځوان وی نو ددغې نشې په وجه هغه هیڅ لره څه نه ګڼری . په حدونو کښې پاتې کیدل ورته ډیر ګران وی ، ددهٔ د خبر داره کولو دپاره دې آیت مبارک کښې دطاقت او کمزورئ په اعتبار سره د انسانی وجود یوه مکمله خاکه پیش کړې شوېده . دې کښې دا خودلې شوی دی چې ددهٔ ابتداء هم کمزورې ده او انتهائې هم کمزورې ده . ددې دوارو ترمینځه د لږو ورځو دپاره دهٔ ته یو طاقت حاصل وی د عقل تقاضا داده چې د دې څو ورځنی طاقت په زمانه کښې د خپلې رومبئ کمزورئ اوراتلونکې کمزورئ نه غافله نشی ، بلکه د خپلې دغې کمزورئ مختلفې درجې خپلې مخې ته همیشه دپاره لرې چې دې نه په تیریدو دغې طاقت او ځوانئ ته رسیدلې دې .

﴿اللهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ ضَعْفٍ﴾ کښې انسان ته داسبق ورکړې شوې دې چې خپل اصل بنیاد ته اوګوره څومره کمزورې دې بلکه بعینه کمزوری ده یوبې ساه څاڅکې وو ، هیڅ شعور په کښې نه وو ، ناپاک اوخطرناک څیز وو ، دې ته په ژور نظر اوګوره چې په څه شان سره الله ﷻ ددې نه چکه وینه جوړه کړه ، بیا ئې ترې غوښه جوړه کړه . بیا ئې په کښې هډوکی داخل کړل او نور بدلون ئې په کښې راوستلو ، بیا انسانی اندامونه اونازک مشینونه ئې په کښې جوړ کړل ګویا کښې یو ورکوټې شان وجود ئې یوه روانه ګرځیدونکې کارخانه جوړه کړه چې په کښې عجیبه خودکاره مشینونه لګیدلی دی . او که دزیات غورنه کار واخستې شی نو صرف کارخانه نه بلکه یو وړوکئ شان جهان دې چې د ټول جهان نمونې ددهٔ په وجود کښې شاملې دی . ددهٔ تخلیق اوتکوین هم په لوئې ورکشاپ کښې نه بلکه دمور د خیټې په دریو تیرو کښې اوشو . نهه میاشتې ئې په دغه تنګ او تیاره ځائې کښې په وینې اونورو ګندونو سره پالنه بیا مونده او انسانی وجود ترې تیار شو .

﴿ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ﴾ بيا الله ﷻ ددهٔ د راښکاره کېدو دپاره لاره آسانه کړه ، دې جهان ته چې راغلو نو شان ئې دا وو چې ﴿وَاللّٰهُ اَخْرَجَكُمْ مِّنْۢ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْئًا﴾ يعنې الله ﷻ تاسو د مور د خېټې نه په داسې حالت کښې راوښکلئ چې په هېڅ نه پوهېدئ. اوس قدرت ورته د تعليم اوخودنې سلسله شروع کړه. د ټولو نه ړومبې هنر ئې ورته د ژړلو اوخودلو چې مورپلار ئې په تکليف او حاجت خبر شي او دهغې د لرې کولو او پوره کولو بندوبست اوکړي. بيا ئې ورته دا هنر اوخودلو چې د شونډو او اورو په زور سره د مور د سينې نه پئ د خپل خوراک دپاره حاصل کړي. بل چا داسې کولې شو چې دغې ماشوم ته ئې دا هنرونه خودلي وي؟. دا کار خالص د الله ﷻ دې چې ددهٔ دپيدا کولو مالک دې. اوس دې ماشوم باندې چې لړ شان هوا اولګي نو مراوې[کمزورې] شي ، لړه شان ګرمي يا يخنې چې ورته اولګي نو ناجوړه شي ، نه د خپل ضرورت څه څيز غوښتې شي او نه څه تکليف ځان نه لرې کولې شي. ددې نه چې واخلې نو تر ځوانئ پورې ددهٔ په ټولو حالتونو باندې ژور نظر واچوه نو دالله ﷻ د قدرت يوه لويه کارنامه مخې ته راشي چې عقل ګوته په خوله شي.

﴿ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضَعْفٍ قُوَّةً﴾ اوس چې دطاقت دې مقام ته اورسيدو نو زمکه آسمان ئې په مخه واخستل ، په سپوږمئ او مريخ باندې ئې کمندونه اچول شروع کړل. په اوچه او لونده ئې قبضه اچول شروع کړل. د خپلې ماضي او مستقبل نه غافله کېدو سره ئې دا نعره پورته کړه چې ﴿مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً﴾ مونږ نه زيات قوي څوک شته دې ؟ د قوت په دې نشه کښې تر دې حده مست شو چې خپل پيدا کوونکې ئې هم هېر کړو. او دهغه د حکمونو د تابعدارئ هم څه خيال نه ساتي ، خو قدرت ددهٔ د بيدارولو دپاره فرمائي چې: ﴿ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضَعْفًا وَّشَيْبَةً﴾ يعنې ائې غافله پوهه شه چې دا قوت ستا څو ورځو پورې دې بيا دکمزورئ حالت سره ستا واپس کېدل دي او په دې شان به دې درجه په درجه کمزوري وده[ترقي]کوي چې اثر به ئې د وېښتو دسپينېدو نه شروع شي. او بيا به د ټولو اندامونو په شکلونو کښې بدلون راولي ، ددنيا تاريخ او نور کتابونه په خپل وجود کښې دا پټ تحرير اولوله نو ددې يقين نه به دې سوا بل څه علاج پاتې شي چې: ﴿يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ﴾ يعنې داټوله کار سازي دهغې رب ﷻ ده چې هغه پيدا کوي څه چې غواړي او په څه شان ئې چې غواړي نو په علم کښې هم ټولو نه لوئې دې. او په قدرت کښې هم. آيا ددې نه پس هم په دې کښې د شک څه ګنجائش شته چې هغه کله اوغواړي مړي دوباره ژوندي کولې شي.

﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ۙ مَا لَبِثُوْا غَيْرَ سَاعَةٍ﴾ يعنې په کومه ورځ به چې قيامت قائم شي نو د قيامت دا منکران به ددغې نظارې نه اوترې شي اوقسمونه به خوري چې مونږ خو يوساعت نه زيات نه يو پاتې شوي ، مراد ددې پاتې کېدو نه يا خو دنيا کښې پاتې کېدل دي ولې چې ددوئ دنيا په مزو کښې تيره شوې وه او اوس سخت مصيبتونو کښې اخته شو نوځکه چې د انسان طبعي عادت دې چې د راحت زمانه ډېره لنډه ګڼړي ځکه به قسمونه خوري چې په دنيا کښې خو زمونږ پاتې کېدل ډېر لنډ ديو ساعت وو.

يا ددې پاتې کېدو نه مطلب دقبر يا برزخ پاتې کېدل دي او مطلب به ئې دا وي چې زمونږ په خيال کښې دا وو چې د برزخ زمانه به ډېره اوږده وي او قيامت به د ډېرې زمانې نه پس راځي خو معامله ددې په خلاف شوه چې برزخ کښې لږه موده پاتې شو او قيامت راباندې راغلو.

اودا زرراتلل دقیامت به ورته ځکه محسوسیږی چې په قیامت کښې خو به دوئ دپاره دخوشحالئ او آرام څه نه وی. سراسر مصیبت به وی. او انسانی فطرت دادې چې د مصیبت راتلو په وخت تیره شوې د راحت او آرام زمانه ډیره لنډه ګڼری. کافران به اګر په برزخ کښې هم په عذاب کښې وی خود قیامت د عذاب په مقابله کښې به ورته هغه سپک ښکاری ځکه به دغه زمانه لنډه ګڼرې او قسمونه به خوری چې په قبر کښې زمونږ پاتې کیدل ډیر لنډ یو ساعت قدرې وو.

**آیا په محشر کښې به دالله ﷻ په مخکښې خولے دروغ وئیلې شي؟:** ددې آیت مبارک نه معلومه شوه چې په محشر کښې به کافران په قسم خوړلو سره دا دروغ وائی چې مونږ خو په دنیا کښې یا قبر کښې د یو ساعت نه زیات وخت نه دې تیر کړې. دغه شان بل آیت مبارک کښې به په قسم سره داسې وائی چې: ﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ﴾[1] یعنی په پروردګار مو دې قسم وې چې مونږ شرک کوؤنکی نه وو. ددې وجه داده چې الله ﷻ به په خپل عدالت کښې د قیامت په ورځ ټولو ته دخپلې خوښې د څۀ وئیلو آزادی ورکوی که هغه دروغ وی او که رښتیا، ولې چې الله ﷻ هم پوره ذاتی علم لری او عدالتی تحقیقاتو دپاره الله ﷻ ددوئ داقرار نه کولو حاجتمند نه دې. کله چې به انسان دورغ وائی نو په خوله به ئې مهر اولګولې شي او د هغه د لاسونو، پښو، څرمنې او ویښتو وغیره نه به ګواهي واخستې شي. دغه څیزونه به پوره پوره واقعه بیان کړی چې هغې نه پس به ئې هیڅ حجت پاتې نشی لکه فرمائی چې: ﴿اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ﴾[2] او د قرآن پاک د نورو آیتونو نه معلومیږی چې په محشر کښې به ډیر د اودریدو ځایونه وی، یو موقف به هغه وی چې دالله ﷻ د اجازت نه بغیر به هیڅوک څه خبره نه شی کولې. او په اجازت به خبره صحیح کوی، دروغ به په کښې نشی وئیلې لکه الله ﷻ پخپله فرمائی چې: ﴿لَا يَتَكَلَّمُوْنَ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَقَالَ صَوَابًا﴾[3]

**په قبر کښې به څوک دروغ نشي وئیلې:** ددې په خلاف دقبر په سوال، جواب کښې به څوک دروغ نشی وئیلې. لکه دصحیح احادیثو څخه معلومیږی چې کله کافر څخه تپوس اوشی چې رب دې څوک دې؟ او محمد ﷺ څوک دې؟ نو کافر به وائی چې [ هاه هاه لاادري ][4] یعنی هائې افسوس زه په هیڅ نه پوهیږم. که دغلته د دروغو وئیلو اختیار وې نو ټول کافران او بدکاران به د قبر د عذاب څخه بې فکره شوی وو، په خلاف د الله ﷻ نه چې هغه د زړه دننه حالونو باندې خبر دې، او دا قدرت هم لری چې د بنده د لاسونو پښو او نورو اندامونو څخه هم ګواهي واخلی ځکه چې په محشر کښې دا آزادی ورکول په عدالتی انصاف کښې څه خلل نه پیدا کوی، والله واعلم.

**تمت سورة الروم بحمد الله فی یوم السبت ۲۸ ذیقعده ۱۳۹۱ هجری**

---

[1]) ترجمه:-په الله مې دې قسم وی، خپل پروردګار باندې مې دې قسم چې مونږ مشرکان نه وو
[2]) ترجمه:- نن به مونږ ددوئ په خلوباندې مهر اولګوؤ اوددوئ لاسونه به مونږ سره خبرې کوی.
[3]) ترجمه:- هیڅوک به خبرې نه شي کولې سوا دهغه کس نه چاته چې رحمان اجازت ورکړی او هغه سړې به خبره هم صحیح کوی.
[4]) سنن ابي داود، كتاب السنة ، باب المسالة فی القبر وعذاب القبر [ج:۲ص:۳۰۵ ]

| آیاتونه | سورة لقمٰن مكية وهي اربع وثلاثون اٰية واربع ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۳۴ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ۴ |

الٓمّٓ ۝١ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡحَكِيۡمِ ۝٢ هُدًى وَّرَحۡمَةً

ال م | دا | ایتونه | د كتاب حكمت لرونكى دى | لاربنودونكى دې | او رحمت دې |

الف لام ميم | دا د داسې كتاب آيتونه دى | چې په حكمت پوره دې

لِّلۡمُحۡسِنِيۡنَ ۝٣ الَّذِيۡنَ يُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤۡتُوۡنَ الزَّكٰوةَ

دپاره د نيك عملو خلقو | هغه خلق | چې قائيموى | مونځ | او وركوى زكاة |

د نيكانو دپاره هدايت او رحمت دې | هغه كسان چې د مونځ پابندى كوى | او زكوة وركوى

وَهُمۡ بِالۡاٰخِرَةِ هُمۡ يُوۡقِنُوۡنَ ۝٤ اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى

او هغوئ په آخرت باندې | هم هغوئ | يقين لرى | دا كسان | په نيغه لاره دى |

او په آخرت باندې پوره پوره يقين ساتى | دغه خلق دى چې د خپل رب د طرفنه به په

مِّنۡ رَّبِّهِمۡ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ ۝٥ وَمِنَ النَّاسِ

د طرفه د رب خپل نه | او دا كسان | هم دوئ | خلاصې موندونكى دى | او خينى د خلقو نه |

نيغه لار روان وى | او هم دغه كسان كامياب دى |......او په خلقو كښې هغه [ بدبخت ] هم دى

مَنۡ يَّشۡتَرِىۡ لَهۡوَ الۡحَدِيۡثِ لِيُضِلَّ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ

هغه څوك دى | چې اخلى | عبث خبرى | دپاره د دې چې بې لارې كړى خلق | د لارې د الله نه |

چې د الله ﷻ نه غافله كونكې خبرې په بيعه اخلى اچې خلق پرې په جهالت سره د الله ﷻ د لارې

بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ۖ وَّيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ

بغير د علم نه | او نيسى دې لره | په توقو سره | دا كسان چې دى | دې دوئ دپاره | عذاب |

نه بې لارې كړى | او د الله ﷻ په رالیږلې تعليم پورې توقې اوكړى | داسې خلقو دپاره

مُّهِيۡنٌ ۝٦ وَاِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِ اٰيٰتُنَا وَلّٰى

سپكونكې دې | او كله چې | الوستلې كيږى | په هغه باندې | ايتونه زمونږ | نو مخ واړوى |

سپونكې عذاب دې | او څه وخت چې هغه ته زمونږ آيتونه لوستلې شى | نو دوئ ترېنه

مُسۡتَكۡبِرًا كَاَنۡ لَّمۡ يَسۡمَعۡهَا كَاَنَّ فِيۡٓ اُذُنَيۡهِ

تكبر كونكې | الكه چې | نه وى اوريدلى هغه هغه ايتونه | الكه چې | په غوږونو د هغه كښې |

په تكبر سره مخ اړوى | الكه چې هډو آوريدلى ئې نه دى | الكه چې غوږونه ئې كاڼه دى

وَقۡرًا ۚ فَبَشِّرۡهُ بِعَذَابٍ اَلِيۡمٍ ۝٧ اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا

درونډوالې وى | پس زيرې وركړه په عذاب | دردناك سره | بيشكه هغه كسان | چې ايمان راوړى |

نو [اې پيغمبره] د دردناك عذاب زيرې ورته وركړه | بيشكه څوك چې ايمان راوړى

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ جَنّٰتُ النَّعِيْمِ ۝۸ خٰلِدِيْنَ

اوعملونه اوکړی نیك | دی دهغوئ دپاره | جنتونه | دنعمتونو | همیشه به وی هغوئ |

اودنیکئ کارونه کوی | هغوئ لره د نعمتونو باغونه تیاردی | چې همیشه به په کښې

فِيْهَا ۭ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝۹

په هغې کښې | دا وعده دالله ده | حقه [پخه] | او هغه | غالب دې | دحکمت خاوند دې |

[خوشحاله] اوسیږی | دا دالله ﷻ پخه وعده ده | او هغه زبردست اوصاحب د حکمت دې

## آسان ترجمه قرآن

الم . دا دهغې حکمت والا کتاب آیتونه دی . چه د نیکو خلقو دپاره هدایت او رحمت دې هغه نیک خلق چه مونځ قائموی، او زکوٰة ادا کوی، او د اخرت پوره یقین ساتی دغه خلق د خپل پروردګار د طرف نه په نیغه لار باندې دی، او هم دغه خلق کامیاب دی. او څه خلق هغه دی، چه د الله تعالیٰ نه دغافله کوونکې خبرو اخستونکې دی دې دپاره چه خلق دهغې په ذریعه بغیر د سوچ او فکر نه د الله تعالیٰ د لارې نه واړوی، او هغه په ټوقو اونیسی، د دې خلقو دپاره هغه عذاب دې، چه دوی به ذلیله کړی او کله چه د داسې سړی مخکښې زمونږ آیتونه واوروليې شی، نو هغه په پوره تکبر سره مخ اړوی، لکه چه بالکل ئې اوریدلې نه وی، ګویا دهغه په دواړو غوږونو کښې کوڼ والې دې، لهٰذا هغه ته د یو درد رسونکې عذاب زیرې واوروه البته چه کومو خلقو ایمان راوړې دې، او هغوی نیک عملونه کړې دی، دهغوی دپاره د نعمتونو باغونه دی، چه په هغې کښې به دوی همیشه دپاره وی، دا د الله تعالیٰ رشتونې وعده ده، او هغه د اقتدار مالک هم دې، اودَ حکمت مالک هم دې.

## خلاصه تفسیر

﴿الٓمّٓ﴾ ددې معنی خاص الله تعالی ته معلومه ده کوم چې په دې سورة یا قرآن کښې ذکر دی ﴿تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ﴾[ دا ایتونه دی دیو کتاب چې دحکمت نه ډك دې] یعنی قرآن [کوم چې] ﴿هُدًى وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ﴾ د [هدایت او رحمت ] سبب [دې دنیکانو دپاره ﴿الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ﴾کوم چې دمونځ پابندی کوی﴿وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ﴾ او زکوٰة ادا کوی ﴿وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ﴾ او دغه خلق په اخرت پوره یقین کوی] پس ﴿اُولٰۗىِٕكَ﴾[داخلق ] په دې قرآن داعتقاد او عمل په وجه ﴿عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ﴾[ دخپل رب په نیغه لاره باند دی﴿وَاُولٰۗىِٕكَ﴾ او داخلق ] ددې هدایت په وجه ﴿هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾[هم دوئ مراد موندونکی دی] نو قرآن په دې شان دهغوی دپاره دهدایت او رحمت سبب شو چې اثر ئې مراد موندل دی پس ځنې خلق خو داسې دی لکه چې بیان ئې وشو [او] د دوی برخلاف ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ﴾[ځنې خلق داسې] هم [دی کوم چې] دقرآن نه ډډه کوی [دهغو خبر واخستونکی جوړیږی ] یعنی داسې خبرې اختیاروی [کومې چې] دالله تعالی نه [غافله کوونکی دی] پس اول خو دعبثو اختیارول هرکله چې دې سره دالله تعالی د ایتونونه ډډه کول هم وی په خپله کفر اوګمراهی ده بیا خصوصا چې داپه دې غرض سره اختیار کړې شی ﴿لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ [چې] ددې په ذریعه نورو لره هم [دالله تعالی د لارې نه ] یعنی دحق دین نه [بې پوهې نه ګمراه کړی او] ددې ګمراه کولو سره

﴿وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا﴾ [په دې ] حقې لارې [پورې خندا وکړي] چې دنورو خلقو دزړونو نه بالکل ددې وقعت او تاثير اوخی نو بيا خو کفر په کفر اوګمراهی په ګمراهئی هم ده او﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ﴾[ دداسې خلقو دپاره] په اخرت کښې ﴿عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾[دذلت عذاب ] کيدونکې [دې ] لکه چې د دوی دمخالفو دپاره د فلاح کيدل معلوم شو [او] ددې ذکر شوی سړي د ډېږ کولو دا حالت دې چې ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّىٰ مُسْتَكْبِرًا﴾[کله دده په وړاندې زمونږ ايتونه لوستلې شی نو داسړې تکبرکوونکې ] داسې په بې التفاتئ سره [مخ اړوی ﴿كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا﴾ لکه چې دا هډو اوريدلی نه دی ﴿كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا﴾ لکه چې دده په غوږونو کښې بوج دې] يعنی لکه چې کونړ دې ﴿فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ [پس ده] سړي [ته ديو دردناك عذاب خبر واوره] دا خو داعراض کوونکی د سزا بيان شو وړاند دهدايت موندونکو دجزا بيان دې کوم چې د وعده شوې فلاح تفصيل دې يعنی ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾[خامخا کوم خلقو چې ايمان راوړو او هغوی نيك کار وکړو﴿لَهُمْ جَنَّاتُ النَّعِيمِ﴾ دهغوی دپاره دعيش جنتونه دی﴿خَالِدِينَ فِيهَا﴾ په کومو کښې چې به هغوی هميشه وسيږی﴿وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا﴾ دا الله تعالی رښتونې وعده فرمائيلې ده﴿وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ او هغه زبردست حکمت والا دې] پس په کمال قدرت سره وعده او وعيد واقع کولې شی او په حکمت سره به دا د وعدې موافق واقع کوی

**معارف او مسائل**

﴿يُؤْتُونَ الزَّكَاةَ﴾ دې آيت مبارک کښې د زکوة حکم دې حالانکه دا مکې دې ، دې نه معلومه شوه چې اصل کښې د زکوة حکم په مکه مکرمه کښې د هجرت نه مخکښې راغلې وو ، کومه خبره چې مشهره ده چې دا د هجرت په دويم کال راغلې وو نو ددې مطلب د نصاب مقررول وو او د واجب مقدار تفصيلات د اسلامی حکومت د طرفنه د هغې وصولول او په مصرف باندې د لګولو انتظام وو چې د هجرت په دويم کال راغلې وو.

ابن کثير رحمه الله دسورة مزمل آيت ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾(۱) لاندې هم دا تحقيق کړې دې(۲) چې سورة مزمل خو په مکی سورتونو کښې د ټولو نه په ړومبو نازليدونکو سورتونو کښې شامل دې . دې نه معلومه شوه چې څنګه دمونځ او زکوة دواړو په يوځائې بيان راغلې دې نو دغه شان فرضيت ئې هم يوځائې شوې دې . والله اعلم.

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ﴾ داشتراء لغوی معنی اخستل دی او کله د يو کار په بدل کښې بل کار اختيارولو دپاره هم استعماليږی . لکه قرآن کريم کښې فرمائی چې ﴿الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ﴾(۳) وغيره ، او په قرآنی آيتونو کښې د اشتراء هم دا معنی مراد اخستې شی.

ددې آيت مبارک شان نزول يو خاص واقعه ده ، هغه دا ده چې دمکې مکرمې په لويو مشرکانو کښې نضر بن حارث يو لوئې سوداګر وو ، تجارت دپاره به ئې دمختلفو ملکونو سفرونه کول . هغه د فارس ملک نه د عجمی بادشاهانو کسری وغيره تاريخی قيصې

(۱) ترجمه: د مونځ پابندی کوئ او زکوة ورکوئ.
(۲) تفسير ابن کثير تحت سورة المزمل آيت ۲۰، ج ۸، ص ۲۵۹
(۳) ترجمه: دوی دهدايت په ځائې ګمراهی واغستله.

واخستې او هغه ئې راوړې او دمکې مشرکانو ته ئې اووئيل چې محمد ﷺ تاسو ته د عاديانو او ثموديانو وغيره واقعات بيانوی ، زه به درته د هغې نه زيات غوره د رستم او اسفنديار اود فارس د بادشاهانو قيصې بيان کړم. دغه خلقو ډير په شوق او مينې سره دغه قيصې آوريدلې. ځکه چې دې کښې څه تعليم شرط نه وو او نه په هغې د عمل کولو په وجه هغې کښې څه مشقت او خواری او محنت کول وو . ډيرې خوندورې قيصې وې . ددې په وجه ډيرو داسې مشرکانو چې د کلام الله د معجزو اوبې مثلئ په وجه به ئې هغه په غلاغلا او په مينه آوريدو نو داسې خلقو ته د قرآن پاک نه د مخ اړولو بهانه په گوتو ورغله . [ذکره في الروح عن اسباب النزول للواحدي ومقاتل وذکر نحوه في الدر المنثور برواية البيهقي](١)

او په در منثور کښې د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چې دغې بيان شوی سوداگرو د بهر نه يو سندر غاړې وينځه اخستې راوړې وه دهغه په ذريعه به ئې خلق د قرآن پاک آوريدو نه په دې وجه ايسارول چې تاسو ته محمد ﷺ قرآن پاک آوروی ، او تاسو ته فرمائی چې مونځونه کوئ ، روژې نيسئ ، او خپل ځان ورکوی چې سر اسری تکليف دې ، راځئ دسندرو غاړې وينځې سندرې آورئ او د خندا خوشحالئ جشن کوئ(٢) .

نو دقرآن پاک په دې آيت کښې ﴿يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيْثِ﴾ نه مراد د عجمی بادشاهانو هغه قيصې ياد سندرغاړې وينځې سندرې دی ، په دې اعتباره سره د اشتراء لفظ په خپلې حقيقی معنی کښې اخستلو دپاره استعمال شوې دې .

او ﴿لَهْوَ الْحَدِيْثِ﴾ دعامې معنې کومه چې وړاندې بيانيږی ، په اعتبار سره د اشتراء لفظ هم دلته عام دې. يعنی د يو کار په بدله کښې بل کار اختيارول په دې کښې د لهو د سامان اخستل داخل دی .

او په ﴿لَهْوَ الْحَدِيْثِ﴾ کښې د حديث لفظ د خبرو او قيصو په معنی کښې دې . او د لهو لفظی معنی په غفلت کښې پريوتل دی ، کوم څيز چې انسان لره د ضروری کارونو څخه په غفلت کښې اچوی . هغه لهو بللې شی . او کله خو داسې کارونو ته هم لهو وئيلې شی چې څه د کار فائده په کښې نه وی . هسې دزړه مشغولولو او وخت تيرولو دپاره وی .

دلته د﴿لَهْوَ الْحَدِيْثِ﴾ معنی او تفسير مختلف بيانولې شی ، ابن مسعود ﷺ ، ابن عباس ﷺ او جابر ﷺ نه په روايت کښې ددې تفسير ټنگ ټکور او سندرې بيان کړې شو بدې . [رواه الحاکم وصححه والبيهقي في الشعب وغيره](٣)

اود جمهورو صحابه کرامو ﷺ او عامو مفسرينو په نزد ﴿لَهْوَ الْحَدِيْثِ﴾ لفظ عام دې ، ټولو هغه څيزونو دپاره استعماليږی چې انسان د الله ﷻ د ياد او عبادت نه په غفلت کښې اچوی . دې کښې ټنگ ټکور ، سندرې هم داخليږی او بيهوده قيصې هم ،امام بخاری رحمه الله پخپل کتاب الادب المفرد کښې او بيهقی پخپل سنن کښې د ﴿لَهْوَ الْحَدِيْثِ﴾ دا تفسير کړې دې . په دې

١) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ١٥، ص ٤٠٨، والدرالمنثور تحت هذه الآية: ج ٨، ص ٧٥، وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ٤٩٧٦

٢) الدرالمنثور تحت هذه الآية: ج ٨، ص ٧٥

٣) المستدرک للحاکم، رقم الحديث: ٣٥٤٢، وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ٤٨٨٧

کښې ئې فرمائیلی دی چی ﴿لَهْوَ الْحَدِيثِ هو الغناء واشباهه﴾ د ﴿لَهْوَ الْحَدِيثِ﴾ نه مراد سندرې او داسې نور څیزونه دی کوم چې د الله ﷻ د عبادت نه خلق غافله کوی. او په سنن بیهقی کښې راغلی دی چې ﴿لَهْوَ الْحَدِيثِ﴾ نه مراد د سندر غاړی نارینه یا زنانه [وینځه] په بیعه اخستل یا ددې پشان ددې داسې بیهوده څیزونه اخستل چې د الله ﷻ د یاد نه غافل کول کوی. ابن جریر ﷫ هم دغه عامه معنی اختیار کړې ده. [روح المعانی په لنډو](۱)

اود ترمذی شریف دیو روایت نه هم دغه عموم ثابتیږی. هغې کښې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې د سندغاړو وینځو تجارت مه کوئ. او بیا ئې اوفرمائیل چې [ وفی مثل هذا انزلت هذه الاية ومن الناس من يشترى الخ](۲)

**د لهو لعب او ددې د سامان شرعی احکام ::** ددې احکامو پوره تفصیل دقرآن پاک او سنت د دلیلونو سره د احقر په مستقله رساله [ السعی الحثیث فی تفسیر لهو الحدیث ] کښې بیان شوې دې. هغې کښې غناء او مزامیر باندې تفصیلی خبره په قرآن پاک او حدیث سره بیا د امت دفقهاء کرامو او د صوفیاء کرامو اقوال بیان شوی دی. دا رساله د عربۍ ژبې احکام القرآن حزب خامس کښې شائع شوې ده، اهل علم ددې مطالعه کولې شی. عوامو دپاره ددې خلاصه دلته نقل کولې شی.

رومبۍ خبره دا د نظر کولو جوګه ده چې قرآن کریم په څومره موقعو کښې د لهو ولعب ذکر کړې دې هغه دبدۍ بیانولو موقعې دی چې ادنی درجه ئې مکروهوالې دې [روح المعانی وکشاف] اودا اوسنې [بحث] د لهو په بدۍ بیانولو کښې بیخې واضح اوښکاره دې.

او مستدرک حاکم په کتاب الجهاد کښې د ابوهریره ﷺ نه روایت کړې دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې: ﴿كل شئ من لهو الدنيا باطل الا ثلثة انتضالك بقوسك وتأديبك لفرسك وملاعبتك لاهلك فانهن من الحق﴾(۳)

ددنیا هر لهو باطله ده خو درې څیزونه، یو داچې تاسو په غشی لیندې سره لوبې کوئ بله دا چې تاسو آس جوتی کوئ او تکړه کوئی، دریمه دا چې د خپلې بی بې سره لوبې کوئ.

[ حاکم دې حدیث پاک ته دمسلم په شرط صحیح وئیلې دی. خو ذهبی وغیره دا نه منی چې ددې سند متصل دې. بلکه دې ته ئې مرسل حدیث وئیلې دې خود جمهورو محدثینو په نزد مرسل حدیث هم حجت دې ].

دې حدیث پاک کښې ئې هر لهو باطل ګرځولې دې او کوم درې څیزونه ئې چې مستثنی ګرځولی دی، حقیقت دادې چې هغه په لهو کښې داخل نه دی. ځکه چې لهو هغه کار ته وئیلې شی چې ددین دنیا دکار نه څه فائده په کښې نه وی. دا درې څیزونه خو ډیرې دینی او دنیوی فائدې لری، ځکه غشی ویشتل او آس جوتی کول خو دجهاد تیارۍ کښې داخل دی. او خپلې بی بی سره لوبې توقې کول د اولاد پیدا کولو تکمیل دې. دې ته صرف دشکل اوظاهر په

---

۱) روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۱۵، ص ۴۰۸ والادب المفرد رقم الحديث: ۸۰۹، والسنن الكبرى للبيهقي: ج ۱۰، ص ۲۲۱

۲) جامع الترمذی، أبواب البيوع، باب ما جاء فى كراهية بيع المغنيات: ج ۱، ص ۲۴۱

۳) المستدرک للحاکم، رقم الحديث: ۲۴۶۸

لحاظ سره لهو وئيلې شوې دی په حقيقت کښې دا لهو نه دی. دغه شان نور ډير کارونه دی چې ديني دنيوي فائدې لری او دشکل په لحاظ سره هغه لهو بللې شی هغه هم په نورو روايتونو د حديث کښې جائز بلکه خينې په کښې مستحسن بللې شوی دی. تفصيل ئې مخکښې راروان دې

خلاصه داده چې کوم کارونه حقيقت کښې لهو وی يعنی ديني دنياوی هيڅ فائده په کښې نه وی نو هغه ټول بد دی، مکروه خو ضرور دی، بيا په دې کښې تفصيل دې. خينې خود کفر حده پورې رسيږی او خينې په ډاګه حرام دی. اوکم نه کم درجه ئې د مکروه تنزيهی ده چې خلاف اولی هم ورته وئيلې شی. يعنی دې نه هيڅ حقيقی لهو مستثنی نه ده او کومې لوبې چې په حديث کښې مستثنی کړی شوې دی هغه حقيقت کښې په لهو کښې نه داخليږی. څنګه چې په حديث پاک کښې ددې صفابيان راغلې دې. ابی داود، ترمذی، نسائی او ابن ماجه کښې دعقبه بن عامر رضي الله عنه په روايت کتاب الجهاد کښې راغلی دی [ليس من اللهو ثلث تاديب الرجل فرسه وملاعبته اهله ورميه بقوسه ونبله()، الحديث، نصب الراية ص/۲۷۳ج/۳]() دې حديث پاک صفا بيان کړل چې دا درې څيزونه په لهو کښې داخل نه دی او کوم چې په حقيقت کښې لهو دی هغه باطل اوناکاره دی وريسې ددې د بدوالی مختلفې درجې دی.

① کومې لوبې چې د ګمراه کيدو يا د نورو د ګمراه کولو ذريعې جوړيږی نو هغه کفر دی لکه په آيت مبارک ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ﴾ کښې چې ددې کفر او ګمراه کيدل بيان شوی دی.او ددې سزا سپکوونکې عذاب ګرځولې شوې دې چې د کافرانو سزا ده ،ولې چې دا آيت دنضر بن حارث په کومه واقعه کښې چې نازل شوې دې په دې کښې هغه لهو د اسلام په خلاف د خلقو د ګمراه کولو دپاره استعمال کړې وه. څکه دغه لهو د حراميدو سره دکفر حد ته اورسيده.

② دويم صورت دادې چې يوه لهو خو چالره د اسلامی عقيدو نه نه ګمراه کوی خو په څه حرام او ګناه کښې ئې اخته کوی. هغه اګر چې کفر نه دی خو حرام اوسخته ګناه ده لکه هغه ټولې لوبې چې جواری [خمار] په کښې وی يعنی هغې کښې ګټه بائيلات او بائيللو باندې دمال لين دين کيږی يا چې انسان لره د فرضو د ادا کولو مونځ، روژې وغيره نه منع کوی.

**فحش او فضول ناولونه يافحش شعرونه لوستل او د اهل باطلو کتابونه کتل هم جائز نه دی** :: دې زمانه کښې زيات ځوانان فحش ناولونه يا دمجرمانو خلقو په حالاتو باندې مشتمل قيصې يا فحش اشعار لوستل عادت لری ، دا ټول څيزونه په دغې قسم حرام لهو کښې داخل دی ، دغه شان د ګمراه اهل باطلو خيالات مطالعه کول عوامو دپاره دګمراهئ سبب جوړيږی څکه جائزنه دی.دپوخ علم خاوندان ئې که د ترديد يا جواب کولودپاره ګوری نو څه بديت نه لری.

③ کومې لوبې چې نه خو کفر دی او نه ښکاره ګناه وی ، هغه مکروه دی چې په يو بې فائدې

[1]) ترجمه: دريه چيزونه په فضول کارونو کښې شامل نه دی، خپل اس ته تعليم ورکول، خپلې ښځې سره لوبې کول، خپل تير اوکمان سره تيراندازی کول.

[2]) سنن النسائی، کتاب الخيل الخ، باب تاديب الرجل فرسه ج ۲، ص ۱۲۳، وسنن ابی داود، کتاب الجهاد، باب فی الرمی: ج ۱، ص ۲٤۰، وجامع الترمذی،ابواب الجهاد، باب ماجاء فی فضل الرمی فی سبيل الله: ج ۱، ص ۲۹۳

کار کښې　توانائي او وخت ضائع کول وي .

**دلوبو دسامان اخستل خرڅول** :: په دې بيان شوې تفصيل سره د لوبو د سامان د اخستلو خرڅولو حکم هم معلومه شو ، چې کوم سامان د کفر يا د گمراهئ يا دحرامو اوگناه په لوبو کښې استعماليږي . نو دهغې تجارت او اخستل او خرڅول کول هم مکروه دي ، هم حرام دي او کوم لهو سامان چې په مکروه کښې استعماليږي دهغه تجارت کول هم اوکوم سامان چې په جائز او مستثنى لوبو کښې استعماليږي دهغې تجارت هم جائز دي او کوم سامان چې په ناجائزو او جائزو دواړو قسمونو لوبو کښې استعماليږي نو دهغې تجارت جائز دې .

**مباح او روا لوبې** :: دا بيان تير شو چې بده او منع شوې لوبه هغه لهو اولوبه ده چې څه ديني اودنياوي فائده په کښې نه وي . کومې چې د بدن د ورزش ، صحت او روغتيا د قائم ساتلو دپاره ،ياد څه ديني او دنياوي ضرورت دپاره يا کم از کم د طبيعت د ستومانئ ويستلو دپاره وي او دادې حد ته اونه رسوي چې هم دا خپل يو شغل جوړ کړي او په ضروري کارونو کښې ترې څه قسمه بنديز راولاړيږي نو داسې لوبې د شريعت تر مخه مباح دي او که د ديني ضرورت په نيت سره وي نو ثواب هم دي .

په بيان شوې حديث پاک کښې درې قسمه لوبې داسې خودلې شوي دي چې د ممانعت نه مستثنى دي . هغه غشي ويشتل ، آس جوتي کول او خپلې بي بي سره لوبې کول دي. او د ابن عباس ﷺ نه يو مرفوع حديث پاک کښې نقل دي چې :

[خيرلهوالمؤمن السباحة وخيرلهوالمرءة المغزل،جامع صغيربرمزابن عدي بإسناد ضعيف].()

يعنې د مؤمن ښه لوبه لامبو وهل دي او د ښځې ښه لوبه څرخه کول دي .

صحيح مسلم کښې او مسند احمد کښې د سلمه بن اکوع ﷺ په روايت دمديني منورې په انصارو کښې يو صاحب په منډه کښې ډير ماهر وو څوک به ترې نه شو مخکښې کيدلې . هغه يوه ورځې اعلان اوکړو چې څوک شته دې چې په مقابله کښې راسره منډه اووهي ؟ راوي وائي چې ما د رسول الله ﷺ نه ورسره د مقابلې اجازت واخستو ، هغوئ راته اجازت راکړو. نو زه ترې نه وړاندې شوم([2]) . دې نه معلومه شوه چې د پياده منډې وهلو مشق کول روا دي.

يو مشهور پهلوان رکانه نبي کريم ﷺ سره د کُشتئ کولو مقابله کول اوغوښتل نو نبي کريم ﷺ رکانه لره په کُشتۍ کښې راوپرزولو . [ ابو داود په مراسيلو کښې ]([3]).

د حبشي ځوانانو مدينه منوره کښې د سپاهيتوب د فن مشق کولو ، په نيزو وغيره ئې لوبې کولې . رسول الله ﷺ عائشه صديقه ﷺ خپلې شا مبارکې اړخ ته اودروله او ددغې لوبې تماشه ئې پرې اوکړه([4]) . او دغې خلقو ته ئې اوفرمائيل چې [ الهواوالعبوا ] او په ځينې روايتونو کښې دې سره دا الفاظ هم راغلي دي چې [ فاني اکره ان يرئ في دينکم غلظة]([5]) يعني زه دا نه

---

[1]) الجامع الصغير رقم الحديث ٦٦٦٧، وكنز العمال رقم الحديث: ٤٠٦١١

[2]) صحيح مسلم، كتاب الجهاد، باب غزوة ذى قرد وغيرها ج ٢، ص ١١٥، ومسند أحمد، حديث ابن الأكوع رضى الله عنه رقم الحديث: ١٦٩٨٨

[3]) مراسيل ابى داود رقم الحديث: ٢٨٧، باب فضل الجهاد.

[4]) صحيح مسلم، كتاب العيدين، باب فى لعب الجوارى الخ: ج ١،ص ٢٩١

[5]) شعب الإيمان رقم الحديث: ٦٢٧٣

خوښوم چې ستاسو په دين کښې خشکي اوسختي اوليدې شي.
دغه شان د ځينې صحابه کرامو رضي الله عنهم نه منقول دی چې د قرآن پاک اوحديث په شغل کښې به ستړې شو نو کله به ئې دعربو په شعرونو يا تاريخي واقعاتو سره ځان مشغولولو ، [ذكره عن ابن عباس رضي الله عنهما في كف الرعاع] (۱)

يو حديث پاک کښې ارشاد دې چې [ روحوا القلوب ساعة فساعة، اخرجه ابوداود فى مراسيله عن ابن شهاب مرسلا] (۲) يعني تاسو خپلو زړونو ته کله کله آرام ورکوئ ]ددې روايت تر مخه ددې جواز ثابت شو چې د زړه او دماغو د تفريح دپاره څه وخت ورکړې شي.
د ې ټولو ځيزونو کښې شرط دادې چې ددوئ نيت دصحيح مقصدونو وى کوم چې په دغې لوبو کښې موندې شى. صرف لوبه کول ئې مقصود نه وى ، اوبل شرط دادې چې دضرورت ترحده پورې کولې شى ، هر وخت دې په کښې نه اخته کيږى اونه دې په کښې بالکل همه وخت اخته کيږى. ځنګه چې دداسې لوبو د جواز او رواوالى حد دې.

**ځيني داسې لوبې چې په ښکاره منع کړې شوې دي** :: ځيني لوبې رسول الله ﷺ په خصوصيت سره منع کړې دى. اګر چې په دې کښې څه فائده هم وى. لکه شطرنج او چوسر وغيره. که دې کښې نفع نقصان وى او که د مال لين دين وى نو بيا خو دا بالکل حرام شو ،او که دا په کښې نه وى او هسې دزړه خوشحالولو دپاره کولې شى نو بيا هم په حديث کښې ددې منع راغلې ده .صحيح مسلم کښې د بريده رضي الله عنه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې د چوسر لوبه کول داسې دي لکه چې خنزير په وينه باندې لاسونه رنګول (۳). دغسې شطرنج کوونکى دپاره په يو روايت کښې دلعنت د الفاظ راغلى دى. [ عقيلى فى الضعفاء عن ابى هريرة رضي الله عنه كذا فى نصب الراية] (۴).
دغه شان کونتر بازى رسول الله ﷺ ناجائزه ګرځولې ده. [ ابو داود فى المراسيل عن شريح كذا فى الكنز] (۵) ددې د منع کولو ظاهرى وجه داده چې عموما خلق په دې کښې وربوښت او اخته شى چې ضرورى کار ونه تر دې چې مونځ او بل عبادت ته ئې هم مخه نه وى.

**دسندرو او سرودونو احکام**:: ددې آيت د لهو الحديث تفسير ځيني صحابه کرام رضي الله عنهم په تنګ ټکور او سندرو سره کړې دې او نورو حضراتو اګر چې ددې تفسير عام کړې دې ، هرداسې لوبې ته لهو الحديث وئيلې دې چې د الله ﷻ نه غافله کړى خو ددوئ په نزد هم سرود او سندرې په دې کښې داخلې دى.
د قرآن پاک په يو بل آيت مبارک کښې امام ابوحنيفه رحمه الله ، مجاهد رحمه الله ، او محمد بن الحنفية رحمه الله وغيره په ﴿لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ﴾(۶) کښې د ﴿زُوْرَ﴾ تفسير په سرود او سندرو سره کړې دې.

---

۱) كف الرعاع: ج ۱، ص ۱۵۹، الباب الثانى، أقسام اللهو المحرم وغيره، القسم الأول.
۲) كنزالعمال (بحواله مراسيل) رقم الحديث: ۵۳۵۴، وذكرالسيوطى فى جمع الجوامع مرفوعاً رقم الحديث: ۱۲۹۳۷
۳) صحيح مسلم، كتاب الشعر، باب تحريم اللعب بالنردشير : ج ۱۲، ص ۲۴۰
۴) نصب الراية، كتاب الكراهية، باب اللعب بالشطرنج والندد: ج ۱۲، ص ۱۲۳، وكنزالعمال رقم الحديث: ۴۰۶۵۳
۵) المراسيل الأبي داود، رقم الحديث: ۴۸۹
۶) د دے پوره آيت ترجمه دا ده: او هغوى په فضول خبرو کښې نه شامليږى او که فضول کارونو والا خواکښې تيريږى نو هشياره خلقو سره يو ځائے شى او تير شى.

ابو داود او ابن ماجه په سنن کښې او ابن حبان په خپل کتاب صحیح کښې ابی مالک اشعری ﷛ نه روایت کړې دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې:

[ ليشربن ناس من امتي الخمر يسمونها بغير اسمها يعزف على رؤسهم بالمعازف والمغنيات يخسف الله بهم الارض ويجعل الله منهم القردة والخنازير] (۱)

زما د امت څنې خلق به شراب په دې شان څکی چې نوم به دهغې بدل کړی، دهغوئ مخې ته به ټنګ ټکور سره د سندرغاړو وینځو سندرې وی الله ﷻ به دوئ په زمکه کښې ورډوب کړی او د څینو صورتونه اوشکلونه به وران کړی، شادوګان [بیزوګان] او خنزیران به ئې جوړ کړی.

او د ابن عباس ﷛ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ شراب، جواری [خمار] ، ډول سرنا حرام کړی دی. او وې فرمائیل چې هر نشته دار څیز حرام دې، [ احمد، ابوداود، ابن حبان ] (۲).

[ روي عن ابي هريرة ﷛ قال قال رسول الله ﷺ اذا اتخذ الفئ دولا والامانة مغنما والزكوة مغرما وتعلم لغير الدين واطاع الرجل امراته وعق امه وادنى صديقه واقصى اباه وظهرت الاصوات في المساجد وساد القبيلة فاسقهم وكان زعيم القوم ارذلهم واكرم الرجل مخافة شره وظهرت القيان والمعازف وشربت الخمور ولعن اخر هذه الامة اولها فليرتقبوا عند ذالك ريحا حمراء وزلزلة وخسفا ومسخا وقذفا وآيات تتابع كنظام بال قطع سلكه فتتابع بعضه بعضا رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب ] (۳)

د ابی هریره ﷛ په روایت رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې کله مال د غنیمت ذاتی مال جوړ کړې شی او امانت د غنیمت مال جوړ کړې شی او زکوة تاوان جوړ کړې شی او کله چې علم دین په دنیوی غرض حاصلولې شی او کله چې سړې د خپلې بی بی فرمانبردار اود مور پلار نافرمانی شروع کړی او دوست څان سره نزدې کړی او خپل پلار لرې کړی او په مسجدونو کښې شور شغب شروع شی او د قبیلې سردار د هغوئ څینې فاسقان او بدکار جوړ شی او کله چې د قوم سردار په دوئ کښې زیات رذیل او زیات خراب سړې جوړ شی او کله چې د شریانو خلقو عزت د هغوئ د شر د ویرې نه کولې شی او کله چې د سندرغاړې وینځو او باجو وغیره رواج عام شی او کله چې شراب څکلې شی او ددې امت روستي خلق په مخکښنو خلقو باندې لعنت کوی نو د غه وخت تاسو انتظار کوئ د یو سرې سیلئ، د زلزلې او دزمکې د ننوتو او د شکلونو ورانیدو او دقیامت دداسې نښو چې یوه به بلې پسې په دې شان راځی لکه چې د یوامیل زوړ مزې تار اوشلیږی او دانې ئې په یو ځل خورې ورې شی. [ ترمذی روایت کړو اوهغه دې ته حسن غریب حدیث وئیلې دې ].

**ضروری خبرداری** :: ددې حدیث پاک الفاظ بیا بیا اولولئ او وې ګورئی چې دنیا ټوله نقشه هم داده نن چې کوم ګناهونه عام او خواره دی، ددې خبر څوارلس سوه کاله اګاهو [مخکښې] نبی کریم ﷺ ورکړې دې او مسلمانان ئې په دې خبرداره کړې دی چې دې څخه ځانونه خبر کړئی.

۱) صحيح ابن حبان رقم الحديث: ۶۲۸۲، وابن ماجة، أبواب الفتن، باب العقوبات: ج ۲، ص ۲۹۰، وسنن ابی داود، كتاب الاشربة، باب فی الداذی: ج ۲، ص ۵۱۹

۲) سنن ابی داود، كتاب الاشربة، باب النهی عن المسكر: ج ۲، ص ۵۱۹، ومسند أحمد، مسند عبدالله بن عباس رضی الله عنه رقم الحديث: ۲۶۷۷، وصحيح ابن حبان رقم الحديث: ۵۴۵۵

۳) جامع الترمذی، أبواب الفتن، باب (بعد باب ما جا فی اشراط الساعة) ج ۲، ص ۴۵

او گناهونه پریږدئی گنی کله چې دا گناهونه عام شی نو ددې په کوئنکو به آسمانی عذابونه نازلیږی او بیا به د قیامت په ورځ نبښخې مخې ته راشی . په دې گناهونو کښې د ښحو سندرې وئیل ، د ډنګ ټکور آلې ، د کړئی او سریندرې وغیر هم دی ، دلته دا روایت هم په دې مناسبت سره نقل کړې شو هدې ، دې څخه علاوه نور ډیر مستند احادیث دی چې ډنګ ټکور وغیره په کښې حرام خودلې شوی دی ، او سخت وعید پرې راغلې دې ، دغه ټول روایتونه احقر رحمه الله پخپله رساله کشف العناء عن وصف الغناء کښې لیکلی دی دا رساله ه عربی ژبې په احکام القرآن حزب خامس کښې خوره شوې د ه دلته دهغې ځینې څو نقل شوی دی .

**په خوښ آوازئی سره د بغیر سرود نه مفید اشعار لوستل منع نه دی** :: بل طرفته د ځینې روایاتو نه د سندرو جواز هم معلومیږی چې هم په دغې رساله کښې جمع دی . په دې دواړو کښې تطبیق داسې کیږی چې د پردئی ښځې سندرې آورېدل یا سره د سرود ئې آورېدل حرام دې لکه چې په دغې آیتونو د قرآن عظیم الشان او په احادیثو سره چې ثابت دی . په خوش آوازئ سره وئیلی شوی شعرونه آورېدل جائز دی خو چې پردئی ښځې یا امرد نه وی وئیلی فحش یا دګناه شعرونه نه وی .

ځینې صوفیاء کرام چې په سندرو آورېدلو سره مشهور شوی دی ، هغوئ به دغسې جائز قسمه سندرې آورېدې څکه چې د شریعت تابعداری او د نبی کریم ﷺ فرمانبرداری کول د نمر پشان یقینی دی ، د هغې خلاف کول صوفیا ء کرامونه نشی کیدې ، او محققینو صوفیا ء کرامو پخپله دا خبره په ښکاره کړې ده چې په دې باره کښې د څلورو وارو مذهبونو د فقهاء کرامو او صوفیاء کرامو اقول زما په دغې رساله کښې په تفصیل سره جمع کړې شوی دی ، دلته په دې دومره اکتفاء کولې شی . والله المستعان

| |
|---|
| خَلَقَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا وَاَلْقٰى |
| هغه پیدا کړل \| آسمانونه \| بې دستنونه \| چې تاسو وینئ هغه \| اواوغورزول هغه \| |
| هغه آسمانونه بې د ستنو اودرولی دی \| چې تاسو پخپله وینئ \| او په زمکه ئې د |
| فِي الْاَرْضِ رَوَاسِيَ اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ وَبَثَّ فِيْهَا |
| په زمکه کښې \| غرونه \| چې اونه خوزیږی \| په تاسو \| او خوراه کړل هغه \| په دې کښې \| |
| غرونو میخونه لګولی دی \| چې په تاسو نه جړقیږی \| اوهر قسم ځناور ئې په کښې |
| مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ ؕ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَنْۢبَتْنَا |
| هر قسم ګرزنده ځناور \| او نازلې کړې مونږه \| دآسمان نه اوبه \| پس زرغون کړل مونږه \| |
| خواره کړی دی \| ................... او مونږ د آسمان نه اوبه راووروليې \| او په زمکه کښې مو |
| فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ ۝ هٰذَا خَلْقُ اللّٰهِ فَاَرُوْنِيْ |
| په هغې کښې \| دهر قسم [څیزونو] \| ښوښونه \| دا پیدائش دالله دی \| پس اوښایئ ماته \| |
| هر قسم ښه څیزونه رازرغون کړی دی \| دا خو دالله ﷻ جوړ کړی څیزونه شول |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَاذَا | خَلَقَ | الَّذِيْنَ | مِنْ دُوْنِهٖ | بَلِ | الظّٰلِمُوْنَ | فِيْ ضَلٰلٍ |
| چې کوم څېز | پیدا کړي دي | هغه کسانو | چې سوا دهغه نه دي | بلکه | دا ظالمان | په ګمراهئ |
| نو دالله ﷻ نه سوا دوی [د دوی خدایانو] څه پیدا کړي دی | | | | حقیقت دا ددې چې داخلق په ښکاره | | |
| مُّبِيْنٍ ﴿۱۱﴾ | | | | | | |
| ښکاره کښې دی | | | | | | |
| ګمراهئ کښې دی | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

هغه آسمانونه دداسې ستنو نه بغیر اودرولی دی چه تاسوئې اووینئ. اوپه زمکه کښې ئې د غرونو (میخونه) اولګول چه دا په تاسو باندې نه جرقیږي، اوپه دې کښې ئې هرقسمه ځناور خواره کړی دی. او مونږ د آسمان نه اوبه راؤرولې، بیا مو په دغه (زمکه) کښې هر قسم قابل قدر فصلونه زرغون کړل. دا د الله تعالی تخلیق دې، اوس لږ شان ماته اوښایئ، چه د الله تعالی نه ماسوا چا څه پیدا کړې دی. خبره په اصل کښې داده، چه دا ظالمان خلق په ښکاره ګمراهئ کښې مبتلا دی.

## خلاصه تفسیر

﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا﴾ [الله تعالی اسمانونو لره بغیر دستنونه جوړ کړل] چنانچې [تاسودې لره وینئ] ﴿وَاَلْقٰى فِي الْاَرْضِ رَوَاسِيَ﴾ او په مزکه باندې] درانه [غرونه ایښودی دی ﴿اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ﴾ چې داپه تاسوونه خوزی] [او نه ښوزی] ﴿وَبَثَّ فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ﴾ او په دې ] مزکه [کښې ئې دهر قسم ځناور خوارهٔ کړی دی ﴿وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ﴾ او مونږ داسمان نه اوبه وورولې بیا په دې سره د مزکې نه هر قسم ښه ښکلی] شینکی [راوټوکول] او دغو خلقو ته کوم چې شرك کوی اووایه چې ﴿هٰذَا خَلْقُ اللّٰهِ﴾ [دا خو دالله تعالی پیدا کړې شوی څیزونه دی] پس که تاسونورولره په خدایئ کښې شریك جوړوئ نو ﴿فَاَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ﴾ [اوس تاسو خلق ووایئ چې دهغه نه سوا چې کوم ستاسو معبودان [دی هغو څه څیزونه پیداکړی دی] چې استحقاق د خدایئ ئې ثابت شی او ددې دلیل مقتضی دا وه چې دغه خلق په هدایت شوی وې مګر دغو خلقو هدایت قبول نه کړو ﴿بَلِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ﴾ [بلکه دا ظالمان خلق ] په مخه [په ښکاره ګمراهئ کښې] اخته [دی]

## معارف او مسائل

﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا﴾ ددې مضمون یو آیت مبارك د سورة رعد په شروع کښې تیر شوې دې: ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا﴾ دترکیب نحوی په اعتباره سره ددې عبارت دوه مطلبونه کیدیشی.

یو دا چې ﴿تَرَوْنَهَا﴾ دعمد صفت اوګرخولې شی او ددې ضمیر عمد طرفته راجع کړې شی نو معنی به ئې دا وی چې الله ﷻ آسمانونه پیدا کړل بغیر دستونو نه چې تاسو ئې وینئ ، یعنی که ستنې ئې وې نو تاسو به لیدلې وې،خو هر کله چې ددې ستنې تاسوته نه ښکاری نو معلومه

شوه چې ددې ستنې نشته دي. دا تفسیر د حسن رحمه الله او قتاده رحمه الله نه منقول دې [ابن کثیر] [1]
دویم صورت دا دې چې د ﴿تَرَوْنَهَا﴾ ضمیر سموات طرفته راجع وی او دا جمله مستقله اوګرځولې شی، معنی به ئې دا وی چې الله ﷻ آسمانونه بغیر د ستنو نه جوړ کړل څنګه ئې چې تاسو وینئ، او رومبی ترکیب په صورت کښې یوه معنی دا هم کیدیشی چې آسمانونه په ستنو ولاړ دی، هغه تاسو نه شئ لیدلې. دا تفسیر د ابن عباس رضي الله عنه، عکرمه رحمه الله او مجاهد رحمه الله نه منقول دې. [ابن کثیر] [2]
بهر صورت دې آیت مبارک د الله ﷻ د کامل قدرت دا نښه اوخودله چې الله ﷻ دومره لوئې لوئې آسمانونه او دومره لوړ عظیم الشان چت داسې جوړ کړو چې په دې کښې هیڅ څه ستن نشی لیدلې کیدلې.

**یو سوال او دهغې جواب** :: دلته دا سوال پیدا کیږی چې څنګه فلسفیان وائی او په عام ډول مشهور دی چې دا غونډ مونډ څیز دې او په د اسې غونډ مونډ څیز کښې چې هر چرته وی د عادت ترمخه ستنې نه وی نو آسمانونو نه ددې د نفی کولو څه خصوصیت دې.
ددې جواب دا هم کیدیشی چې څنګه الله ﷻ د قرآن پاک په اکثرو ځایونو کښې زمکه فرش بللې ده ددې چې په ظاهره د غونډ مونډ والی سره سمون نه خوری، خو هر کله چې دا ډیره لویه ده او په عامو نظرونو کښې دا پلنه ښکاری، ددغې عام خیال په بنا قرآن پاک دې ته فراش اوئیلو. دغه شان آسمان د یوچت پشان ښکاری چې د عادت تر مخه هغې دپاره د ستنو ضرورت وی. ددې عام خیال په بنائې دې ته چت اووئیلو. په حقیقت کښې د کامل قدرت د ثبوت دپاره دومره لویه عظیم الشان کره زمکه پیدا کول کافی دی او د ځینې مفسرینو ابن کثیر وغیره تحقیق دادې چې قرآن او سنت نه دا ثابته نه ده چې آسمان او زمکه مکمل غونډ مونډ دی. بلکه ځینې آیتونو او روایتونو نه معلومیږی چې ددې شکل د ګنبت په شان دې دهغوئ وینا وه چې دیو صحیح حدیث تر مخه هره ورځ د عرش لاندې د نمر سجده کول چې راغلی دی [3] هغه په هغه صورت کښې کیدیشی چې آسمان په مکمل ډول غونډ مونډ نه وی او هم په دې صورت کښې ددې پورته ښکته طرف ټاکلې کیدیشی. په مکمل غونډ مونډ څیز کښې یو طرفته ښکته او بل ته پورته نشی وئیلې [4]. والله سبحانه وتعالی اعلم.

| لِلّٰهِ | اَنِ اشْكُرْ | الْحِكْمَةَ | لُقْمٰنَ | وَلَقَدْ اٰتَيْنَا |
|---|---|---|---|---|
| الله لره | چې شکر کوه | حکمت | لقمان ته | او یقینا ورکړې وو مونږ |

او بیشکه مونږ لقمان ته هوښیارتیا ورکړې وه [او او موو ئیل] چې د الله شکر کوه

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٤، ص ٤٢٩
[2] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٤، ص ٤٢٩
[3] ) صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب بیان الزمن الذی لا یقبل فیه الإیمان: ج ١، ص ٨٨
[4] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٤، ص ٤٣٠

وَمَنْ يَّشْكُرْ　فَاِنَّمَا يَشْكُرُ　لِنَفْسِهٖ ۚ　وَمَنْ كَفَرَ

او څوک چې شکر اوباسي | پس بیشکه هغه شکر اوباسي | دپاره دخان خپل | او چاچې کفر اوکړو |

اوڅوک چې شکر کوي | نو دخپل خان دفائدې دپاره ئې دې | اوڅوک چې ناشکري کوي نو

فَاِنَّ اللّٰهَ　غَنِيٌّ　حَمِيْدٌ ۝　وَاِذْ　قَالَ　لُقْمٰنُ　لِابْنِهٖ

پس بیشکه الله | محتاجه نه دې | ستائیلي شوې دې | او کله چې | اووئیل | لقمان | خوئ خپل ته

الله ﷻ بې نیازه دې | ستائیلي شوې دې | او څه وخت چې لقمان خپل خوئي ته دنصیحت په طور اووئیل

وَهُوَ　يَعِظُهٗ　يٰبُنَيَّ　لَا تُشْرِكْ　بِاللّٰهِ ۭ　اِنَّ الشِّرْكَ

او هغه | نصیحت کوؤ هغه ته | اے خویه | شریك مه پیدا کوه | دالله سره | بیشکه شرك |

چې ائي زما خویه ته دالله ﷻ سره شریک مه جوړوه | ............. بیشکه شرک ډیر

لَظُلْمٌ　عَظِيْمٌ ۝　وَوَصَّيْنَا　الْاِنْسَانَ　بِوَالِدَيْهِ ۚ

خامخا ظلم دې | لوئ | اووصیت [حکم] کړې دې مونږه | انسان ته | دمور اوپلار دهغه سره [په نیکئ کولو]

لوئي ظلم دې | اومونږ انسان ته دمور پلار سره د نیکئ ډیر تاکید کړې دې | [ځکه چې]

حَمَلَتْهُ　اُمُّهٗ　وَهْنًا　عَلٰى وَهْنٍ　وَّفِصٰلُهٗ

بار کړې گرزوؤ ده لره | مور دده | دکمزورئ سره | دپاسه دکمزورئ | او پریکول دده دتې نه |

مور د ډیرې کمزورئي په حالت کښې په خیټه کښې سنبال اوساتلو او بیا په دوه کاله کښې ئې دتې

فِيْ عَامَيْنِ　اَنِ اشْكُرْ　لِيْ　وَلِوَالِدَيْكَ ۭ　اِلَيَّ الْمَصِيْرُ ۝

په دوه کاله کښې دی | چې شکر اوباسه | زما | او دمور اوپلار ستا | خاص ماته دی راتلل ستاسو

نه پرې کړو | نو بنده ته زما هم اودمورپلار هم شکر کوه | او ماته به [دحساب دپاره] راپیش کیږې

وَاِنْ جَاهَدٰكَ　عَلٰٓى اَنْ تُشْرِكَ　بِيْ　مَا

او که زرو اولگوؤ دې دواړو په تا | په دې خبره چې ته شریك جوړ کړه | زما سره | هغه |

اوکه چرې دوئ دواړه دربانډې زور واچوي | چې ته ماسره بغیر د څه دلیل نه څوک شریک اومنه

لَيْسَ لَكَ　بِهٖ عِلْمٌ ۙ　فَلَا تُطِعْهُمَا　وَصَاحِبْهُمَا

چې نه وی تالره | په هغې علم | پس خبره مه منه دهغوئ دواړو | او ملگرتیا کوه دهغوئ سره |

..........نو ته د هغوئ خبره مه منه | او په دنیا کښې هغوئ سره ښه سلوک کوه

فِي الدُّنْيَا　مَعْرُوْفًا ۡ　وَّاتَّبِعْ　سَبِيْلَ　مَنْ　اَنَابَ　اِلَيَّ ۚ

په دنیا کښې | نیکه | او پیروی کوه | دلارې | دهغه چا | چې رجوع ئې کړې ده | ماته |

اود هغه چا په لاره روان اوسیږه | چې ماته رجوع کوي .............

ثُمَّ اِلَيَّ　مَرْجِعُكُمْ　فَاُنَبِّئُكُمْ　بِمَا　كُنْتُمْ

بیا خاص ماته دی | راتلل ستاسو | پس زۀ به خبر کړم تاسو | په هغه عملونو | چې وئ تاسو |

بیا ستاسو دټولو ماته واپس راتلل دی | نو زۀ به ستاسو دعملونو نه تاسو خبر کړم

تَعۡمَلُوۡنَ ۝ يٰبُنَيَّ اِنَّهَآ اِنۡ تَكُ مِثۡقَالَ حَبَّةٍ مِّنۡ خَرۡدَلٍ

چې کول به مو | اے ځویه | بیشکه چې یو څیز | که وی | په قدر ددانې | داورې |

[لقمان اووئیل] که یو عمل د اوری د دانې هومره وړوکې وی | بیا هغه په یو کاڼړي کښې

فَتَكُنۡ فِىۡ صَخۡرَةٍ اَوۡ فِى السَّمٰوٰتِ اَوۡ فِى الۡاَرۡضِ يَاۡتِ بِهَا اللّٰهُ ؕ

پس وی هغه | په یو ګټ کښې | یا وی په آسمانونو کښې | یا وی په زمکه کښې | رابه ولی | هغه الله

دننه پټ پروت وی | یا په آسمانونو کښې | یا په زمکه کښې دننه پټ وی | نو الله ﷻ به ئې راحاضر کړي

اِنَّ اللّٰهَ لَطِيۡفٌ خَبِيۡرٌ ۝ يٰبُنَيَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ وَاۡمُرۡ

بیشکه الله | باریك لیدونكي | او ښه خبردار دي | اے ځویه | قائم کړه مونځ | او حکم کوه |

بیشکه الله ﷻ ډیر باریک بین او باخبره دي | ائې زما ځویه ! مونځ کوه او خلقو ته

بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَانۡهَ عَنِ الۡمُنۡكَرِ وَاصۡبِرۡ عَلٰى مَاۤ اَصَابَكَ ؕ

په نیکۍ سره | او منع کوه | دبدۍ نه | او صبر کوه | په هغه مصیبت | چې اورسی تاته |

دنیکۍ حکم ورکوه | او دبدۍ نه خلق منع کوه | اوچې کوم مصیبت درباندې راشی | نو په هغې صبر کوه

اِنَّ ذٰلِكَ مِنۡ عَزۡمِ الۡاُمُوۡرِ ۝ وَلَا تُصَعِّرۡ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمۡشِ

بیشکه دا کار | دلوړو کارونو نه دې | او مه | اړوه مخ خپل | دخلقو نه | او مه ګرزه |

بیشکه دا ډیر دهمت کار دې | او خلقو ته خپل مخ مه ګونجې کوه | اوپه زمکه باندې په تکبر سره

فِى الۡاَرۡضِ مَرَحًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخۡتَالٍ فَخُوۡرٍ ۝

په زمکه کښې | په غرور سره | بیشکه الله | نۀ خوښوۍ | هر غاوره | فخرکونکې |

مه ګرځه | الله ﷻ مغروره فخر کونکی خلق نه خوښوی ..............................

وَاقۡصِدۡ فِىۡ مَشۡيِكَ وَاغۡضُضۡ مِنۡ صَوۡتِكَ ؕ اِنَّ اَنۡكَرَ

او میانه روی کوه | په تلو خپلو کښې | او ښکته ساته | آواز خپل | بیشکه | ډیر ناکاره |

او په خپل تګ کښې اعتدال ساته | او په خپل آواز کښې نرمی کوه | ..............بیشکه په

الۡاَصۡوَاتِ لَصَوۡتُ الۡحَمِيۡرِ ۝

دآوازونونه | خامخا آواز | دخرونو دي |

آوازونو کښې خراب آواز دخر دې |

**آسان ترجمه قرآن**

او مونږ لقمان ته دانائی ورکړې وه (او هغه ته مو وئیلې وو) چه د الله تعالی شکر اداکوه او څوک چه د الله تعالی شکر اداکوی، هغه د خپلې فائدې دپاره شکر اداکوی او که څوک ناشکری اوکړی، نو الله تعالی ډیر بے نیازه دې، او په خپله د تعریف قابل دې. اوهغه وخت یاد کړه، چه کله لقمان خپل ځوی ته نصیحت کولو، وې وئیل، چه: اے زما ځویه، د الله تعالی سره شرک مه کوه، یقیناًپوهه شه، چه شرک ډیر لوئې

ظلم دې او مونږ انسان ته د خپل مور پلار باره کښې د تاکید کړې دې، (ځکه) چه دهغه مور هغه لره د کمزورۍ دپاسه کمزورې برداشت کولو سره په خپله ګېډه کښې ساتلې دې. او په دوه کالو کښې د هغه د پيو نه پرېکول دی... چه ته زما شکر ادا کړه، او د خپل مور او پلار هم ماته ستا واپس راتلل دی. او که هغوی په تا باندې زور راوړی، چه ته ماسره څوک په خدائي کښې شريک کړه، چه دهغې دپاره تاسره هيڅ دليل نشته نو دهغوی خبره مه منه، او په دنيا کښې هغوی سره ښيګړه کوه او دهغې سړی لاره خپله کړه، چا چه مونږ سره تعلق ساتلې وی بيا ستاسو د ټولو ماته واپس کيدل دی هغه وخت به زه تاسو ته اوښايم، چه تاسو کوم عملونه کول (لقمان حکيم داهم اووئيل) اے ځويه اکه يو څيز د اوری د دانې برابر هم وی او هغه چرته په کته کښې وی، يا په آسمانونو کښې يا په زمکه کښې، نو بيا به هم الله تعالیٰ هغه حاضر کړی، يقين اوکړه، الله تعالیٰ ډير باريک بين ډير زيات خبردار دې اے ځويه، مونځ قائم کړه، او خلقو ته د نيکئ تلقين کوه، او د بدئ نه منع کوه، او تاته چه کوم تکليف پيښ شی په هغې باندې صبر اوکړه، بې شکه دا د لوئې همت کار دې، او د خلقو په مخکښې (په غرور سره) خپل مخ مه تاوهه، او په زمکه باندې غرور سره مه ګرځه، يقيناً الله تعالیٰ تکبر کونکې او ځانته خوش سړې نه خوښوی، او ميانه روی کوه په تللو خپلو کښې او ښکته ساته آواز خپل، يقيناً ډير ناکاره آواز د خرو دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمٰنَ الْحِكْمَةَ﴾ اومونږ لقمان ته پوهه [چې حقيقت ئې علم سره دعمل نه دې] ورکړه [او دې سره داحکم مو ورکړو چه [په ټولو نعمتونو عموما او په دې نعمت دحکمت چې دټولو نعمتونو نه افضل نعمت دې خصوصا ﴿اَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ﴾ [ د الله تعالی شکر کوئ ﴿وَمَنْ يَّشْكُرْ فَاِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ﴾ اوکوم سړې چې شکر کوی هغه دخپلې ذاتی نفعې دپاره شکر کوی] يعنی د دۀ نفع په کښې ده چې په دې سره په نعمت کښې ترقی کيږی لکه چې الله تعالی فرمائی [لئن شکرتم لازيدنکم] (۱) په دينی نعمت کښې خو ترقی په دنيا کښې هم کيږی او په اخرت کښې هم په دنيا کښې خو په شکر دنعمت سره علم زياتيږی او دعمل په توفيق کښې زياتوالې راځی او په اخرت کښې عظيم ثواب ملاويږی او په دنياوی کښې د اخرت ترقی يعنی په ثواب کښې زياتوالې خو يقينی دې اوکله په دنيا کښې په شکر کولو سره نعمت زياتيږی ﴿وَمَنْ كَفَرَ﴾ [او څوک چې ناشکری کوی نو] خپل نقصان کوی ځکه چې ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ﴾ [الله تعالی ] خو[بې نيازه] اوټولو [صفتونو والا دې] يعنی چونکه هغه په خپل ذات کښې کامل دې چې مدلول دې دحميد په دې وجه هغه غنی دې دهغه دچا شکر ثناء ته احتياج نشته چې په دې سره استکمال بالغير لازميږی او چونکه لقمن موصوف دې په حکمت يعنی په علم اوعمل سره ددې نه معلومه شوه چې هغه به دتعليم په شکر به هم شکر کړې وی پس هغه شاکر هم وو او دشاکر والی په وجه به د دۀ په حکمت کښې هم ترقی شوی وی پس هغه د اعلی درجې حکيم شو[او] دداسې حکيم تعليم خامخا قابل عمل کيدل پکار دی پس ددۀ تعليمات د دې خلقو په وړاند ذکر کړه ﴿وَاِذْ قَالَ لُقْمٰنُ لِابْنِهٖ وَهُوَ يَعِظُهٗ﴾ [هرکله چې لقمان خپل ځوئ ته نصحيت کولو وئ ونيل ﴿يٰبُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ﴾ چې اے خويه د الله تعالی سره چا لره مه شريکوه ﴿اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ﴾

(۱) ترجمه: که چيرې تاسو شکر اوکړی نو تاسو ته به زيات نعمتونه درکړم (ابراهيم: ۷)

﴿عَظِيْمٌ﴾ بيشكه شرك كول ډير لوئ ظلم دئ] دظلم حقيقت علماء دابيان كړئ دئ چې يوشي بې محله استعمال كړې شي او داخبره په شرك كښې دټولونه زياته واضحه ده چې دپيدا كوونكي په ځاى دبتانو عبادت وكړې شي [او] دقصې په مينځ كښې دتوحيد دامر دتاكيد دپاره دحق تعالى ارشاد دئ چې ﴿وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ﴾ [مونږ انسان ته د ده د مور پلار متعلق تاكيد كړې دې ] چې ددوى اطاعت او خدمت كوى ځكه چې هغوى دده دپاره لوئ مشقتونه تيركړى دى خاصكر مور ئې چنانچې ﴿حَمَلَتْهُ اُمُّهٗ وَهْنًا عَلٰى وَهْنٍ﴾ [د] ده مور ضعف په ضعف پورته كړې ده لره په ګيډه كښې ساتلې دې ځكه چې څومره حمل غټيږى د حاملې ضعف زياتيږى ﴿وَّفِصٰلُهٗ فِيْ عَامَيْنِ﴾ [او] بيا [په دوه كاله كښې دده دتى نه پريكول دى] په دې ورځوكښې هم هغه دهرقسم خدمت كوى دغه شان دخپل حالت موافق پلار هم مشقت تير وى په دې وجه مونږ دخپل حق سره دمور اوپلار دحق ادا كولو حكم وفرمائيلو چنانچې دا ارشادئې اوفرمائيلو ﴿اَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ﴾ [چې ته زما او دخپل مور پلار شكر ګذارى كوه] د الله تعالى شكر ګذارى خو په عبادت او حقيقي اطاعت سره او دموراو پلار خدمت او دشرعى حقوقو په ادا كولو سره ده ځكه چې ﴿اِلَيَّ الْمَصِيْرُ﴾ [زماطرف ته] ټولو لره [واپس راتلل دى] دغه وخت به دعملونو جزاء او سزا وركوم په دې وجه د احكامو په ځاى كول ضرورى دى [او] سره ددې چې دمور او پلار دومره لوئ حق دې لكه چې اوس معلومه شوه ليكن د توحيد امر داسې عظيم الشان دې چې ﴿وَاِنْ جَاهَدٰكَ عَلٰٓى اَنْ تُشْرِكَ بِيْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ﴾ [كه هغه دواړه په تا باند] هم [ددې خبرې زور واچوى چې ته ماسره داسې څيز شريك جوړ كړې چې دهغه په شريك فى الالوهيت كيدلو باندې ستا سره څه دليل] او سند [نه وى] او ظاهره ده چې هيڅ شې هم داسې نشته دكوم چې دشركت په مستحق كيدو باند څه دليل قائم وى بلكه په نه مستحق كيدو ډير دليلونه قائم دى پس مراد داشو چې هغوى كه څه شي لره په خدايئ كښې دشريكولو په تا باند زور واچوى ﴿فَلَا تُطِعْهُمَا﴾ [نوته دهغوى خبره مه منه ] او البته دا ضرورى ده چې ﴿وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوْفًا﴾ [په دنيا] وى حاجتونو اومعاملو [كښې [الكه د دوى ضرورى خرچونه او خدمت وغيره كښې [ د دوى سره ښه ژوند تيروه او] ددين په باره كښې صرف ﴿وَّاتَّبِعْ سَبِيْلَ مَنْ اَنَابَ اِلَيَّ﴾ [دهغې سړى په لاره چليږه كوم چې ماطرف ته رجوع كوى] يعنى زما داحكامو معتقد او عامل وى ﴿ثُمَّ اِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ﴾ [بيا تاسو ټول به زما طرف ته راځئ بيا] د راتلو په وخت كښې [به ﴿فَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ زه تاسو ته وښايم څه چې تاسو كول ] په دې وجه په يوكار كښې هم زما دحكم خلاف مه كوئ وړاند بيا دلقمان حكيم دنصيحتونو تكميل دې چې هغه خپل ځوئ ته نور نصيحتونه هم وكړل چنانچې دتوحيد او عقيدو په باره كښې ئې دا نصيحت هم وكړو چې ﴿يٰبُنَيَّ﴾ [ ائې خويه] دالله تعالى علم اوقدرت په دې درجه كښې دې چې ﴿اِنَّهَآ اِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ﴾ [كه چرې] دچا [څه عمل] داسې پټ وى مثلا فرض كړه چې هغه [د اورى د دانې برابر] په مقدار كښې [وى] او [بيا] فرض كړه چې ﴿فَتَكُنْ فِيْ صَخْرَةٍ﴾ [هغه په يو ګټه كښې دننه ] پټ ايښودې [وى ] كوم چې داسې پرده ده چې لرې كول ئې ګران وى او بغير دلرې كولو نه ئې دننه چاته علم نه وى ﴿اَوْ فِي السَّمٰوٰتِ﴾ [ياهغه په اسمانونو كښې دننه وى] كوم چې دعامو خلقو نه دمكان په لحاظ سره لرې دې ﴿اَوْ فِي الْاَرْضِ﴾ [ياهغه دمزكې دننه وى] كوم ځاى چې ښه

تیاره وی او اسباب باریك وی چې په نظر نه راځي اوكله چې سختو پردو كښې دننه وی كله د
خاځ دلرې والی په وجه كله دتیارې په وجه لیكن دالله تعالی داسې شان دې چې كه داټول
اسباب دپټیدو هم جمع وی ﴿يَأْتِ بِهَا اللَّهُ﴾[خو بیا به هم ] دقیامت په ورځ دحساب په وخت
كښې [هغې لره الله تعالی حاضر كړي] چې په دې سره ئې علم او قدرت دواړه ثابت شول ﴿إِنَّ
اللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ﴾[بیشكه الله تعالی ډیر باریك بین] او[باخبره دې] او دعملونو په باره كښې ئې
دانصیحت وكړو چې ﴿يَٰبُنَيَّ أَقِمِ الصَّلَوٰةَ﴾[اې خویه مونځ كوه] چې پس دعقیدې صحیح كیدونه
داعلی درجې عمل دې [او] لكه چې دعقیدې په صحیح كیدو او عملونو كښې دخان پوره كول
پكاردی پس خلقو ته ﴿وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ﴾[دنیكو كارونو نصیحت كوه ﴿وَانْهَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾ او دبدو
كارونو نه منع كوه او] په دې امربالمعروف اونهی عن المنكر كښې په خاص طور اوپه هر
حالت كښې په عام طور سره ﴿وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا أَصَابَكَ﴾[كه په تاځه مصیبت واقع شی په هغې
صبر كوه ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ﴾ دا] صبر كول [دهمت دكارونو نه دی او] داخلاقو او عادتونو
په باره كښې ئې دا نصیحت وكړو خویه ﴿وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ﴾[دخلقو نه خپل مخ مه اړوه
﴿وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا﴾ او په مزكه په تكبر سره مه ګرځه﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ﴾
بیشكه الله تعالی هیڅ تكبر كوونكی فخر كوونكی لره نه خوښوی ﴿وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ﴾ او په خپل
رفتار كښې میانه روی اختیاركړه] مه ډیر په منډه ځه چې دوقار خلاف ده دا رنګه دغوړزیدو
هم احتمال دې اومه ډیر په دمه دمه قدمونه ږده چې دا وضع دمتكبرینو ده بلكه بې تكلفه او
درمیانه رفتار دتواضع او سادګۍ چال اختیار كړه كوم چې ئې په بل ایت كښې په دې عنوان
سره ذكر كړې دې [یمشون علی الارض هونا](۱) [او] په خبرو كښې ﴿وَاغْضُضْ مِن صَوْتِكَ﴾[خپل
اواز ښكته كړه] یعنی ډیر شورمه كوه او دامطلب نه دې چې دومره اواز ښكته كړه چې څوك ئې
اوری هم نه وراندې دشوركولونه نفرت پیدا كوی چې ﴿إِنَّ أَنكَرَ الْأَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِيرِ﴾[بیشكه په
اوازونو كښې دتولونه ناكاره اواز دخرو اوازوی ] نو سرو لره دخرو په شان چغې وهل څه
مناسب دی دارنګ په چغو نعرو سره څنې وخت دنورو ویره او تكلیف هم پیدا كیږي

## معارف او مسائل

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ﴾ د وهب بن منبه د روایت مطابق لقمان ﷺ د ایوب ﷺ خوریئ وو.
او مقاتل وئیلی دی چې هغه دخاله خوئي وو(۲). د تفسیر بیضاوی وغیره مطابق دومره لوئي
عمرئې موندې وو چې د داؤد ﷺ زمانه ئې بیا موندې وه ، داخبره د نورو روایتونو نه هم
ثابته ده چې لقمان ﷺ د داؤ ﷺ په زمانه كښې وو.

او په تفسیر در منثور كښې د ابن عباس ﷺ د روایت مطابق لقمان ﷺ یو حبشی غلام وو.
تركاڼئ كار ئې كولو(۳) [ اخرجه ابن ابی شیبه و احمد فی الزهدو ابن الجریر و ابن المنذر

۱ ) دپوره آیت ترجمه دا ده: او د رحمن بندګان خو هغه دی چه په عاجزی سره په زمکه ګرځی او چه جاهلان
ورسره خبرے کوی نو ورته وائی چه زما سلام دے.
۲ ) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ج ۱٤، ص ۵۹
۳ ) الدرالمنثور تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۸۲، ومصنف ابن ابی شیبة رقم الحدیث: ۳٤۲۹٤، وكتاب الزهد لأحمد
بن حنبل، زهد لقمان علیه السلام رقم الحدیث: ۲۷۷

وغيره] او چې کله د جابر رضي الله عنه نه دده حالات اوپوښتلي شو نو وې فرمائيل چې مندرې او لنډې او چت اولوړ پوزې حبشي وو. او مجاهد رحمه الله اوفرمائيل چې حبشي غلام وو. غټې شونډې او شليدلې قدمونو والا وو [ ابن كثير ]([1]) .
يو ځل يو تک تور حبشي سعيد بن مسيب ته د مسئلې تپوس کولو دپاره راغلو نو سعيد رحمه الله د هغه تسلۍ دپاره اوفرمائيل چې ته په خپل توروالى باندې خفګان مه کوه ځکه چې تور رنګى درې داسې بزرګان تير شوى دي چې خلقو کښې د ټولو نه زيات غوره وو، بلال حبشي رضي الله عنه ، مهجع ،د عمر بن الخطاب رضي الله عنه آزاد کړې غلام او لقمان([2]) .

**لقمان د ښوانو جمهورو علماء کرامو په نزد نبي نه بلکه ولي وو:** ابن كثير اوفرمائيل چې د جمهورو سلفو په دې باندې اتفاق دې چې هغه نبي نه وو ، صرف عكرمه رضي الله عنه نه دهغوئ دنبي كيدل منقول دى. خو ددې سند ضعيف دې([3]) . او امام بغوي رحمه الله فرمائيلى دى چې په دې باندې اتفاق دې چې هغوئ فقيه او حكيم وو نبي نه وو ، [ مظهري ]([4]) .
ابن كثير فرمائيلى دى چې قتاده رضي الله عنه نه ددوئ باره كښې يو عجيبه روايت منقول دې. چې لقمان ته الله ﷻ دا اختيار وركړې وو چې پيغمبري واخله يا حكمت؟ هغوئ حكمت غوره كړو ، اوځينو روايتونو كښې راغلى دى چې هغوئ ته د نبوت اختيار وركړې شوې وو نو هغوئ عرض اوكړو چې كه ددې د قبلولو حكم راته وى نو په سر سترګو مې قبول دې ګنې ما معاف كړه .
او قتاده رضي الله عنه نه دا هم منقول دى چې لقمان نه چا تپوس اوكړو چې تاسو د پيغمبرئ په مقابله كښې حكمت ولې غوره كړو چې درته په دواړو كښې د يو دقبلولو اختيار دركړې شوې وو؟ هغوئ اوفرمائيل چې پيغمبرى د لوئې ذمه وارئى مرتبه ده كه ماته بې تپوسه راكړې شوې وې نو الله ﷻ به پخپله ددې ذمه وارى اخستې وه چې زه به د هغې ذمه دارى پوره كړې شم. او كه پخپل اختيار مې غوښتې وې نو ذمه دارى به ئې په ما باندې وه . [ ابن كثير ]([5]) .
او كله چې جمهور دا منى چې لقمان نبي نه وو نو په قرآن پاک كښې بيان شوې دا حكم چې ﴿أَنِ اشْكُرْ لِي﴾ ورته د الهام په ذريعه كيديشى كوم چې دالله ﷻ اولياء كرامو ته كيږى .
لقمان به د داؤد عليه السلام د پيغمبر كيدو نه وړاندې په شرعى مسئلو كښې خلقو ته فتوى وركولې . كله چې داؤد عليه السلام پيغمبر شو نو فتوې وركول ئې پريخودلې او وې فرمائيل چې اوس زما د فتوې وركولو ضرورت نشته . په ځينو روايتونو كښې راغلى دى چې دوئ د نبي اسرائيلو قاضي وو. لقمان څخه د حكمت ډير كلمات منقول دى. وهب بن منبه فرمائى چې ما د لقمان د حكمت د لسوزرو نه زيات بابونه لوستى دى [ قرطبي ]([6]) .

---

[1]) تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ٣٣٤
[2]) تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ٣٣٤
[3]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٣٣٤
[4]) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ٧، ص ٢٥٣، والبغوي تحت هذه الآية: ج ١، ص ٢٨٦
[5]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٣٣٥
[6]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ٥٩ نه ٦١ پورے.

يوه ورځ لقمان په يو لوئي مجلس كښي خلقو ته د حكمت خبري كولي . يو سړي راغلو او تپوس ئي اوكړو چي تاسو هغه نه يئ چي په فلانی ځنګل كښي مو راسره يو ځائي چيلئ څرولي ؟ لقمان حكيم اوفرمائيل چي آؤ هم هغه يم ، هغه كس تپوس اوكړو چي بيا درته دا مقام څنګه حاصل شو چي دالله ﷻ مخلوق دي عزت كوی او ستاسو د خبرو آوريدو دپاره دلري لري نه راجمع كيږی . لقمان حكيم اوفرمائيل چي ددي وجه زما دوه كارونه دی . يو دا چي هميشه دپاره رښتيا وئيل . بل دا چي د فضول خبرو نه ځان ساتل([1]) . او يو روايت كښي دی چي لقمان حكيم اوفرمائيل چي زما يو څوكارونو زه دي مقام ته راورسولم . كه تاسو داسي اوكړل نو دا مقام به تاسو ته هم حاصل شی . هغه كارونه دادی چي خپل نظر ښكته ساتل ، ژبه بنده ساتل ، په حلالي روزئ باندي صبر كول ، د خپل شرمګاه حفاظت كول ، په خبرو كښي په رښتيا باندي ټينګ اوسيدل ، لوظ قول پوره كول ، دميلمه عزت او قدر كول ، د ګوانډي او همسايه ساتنه كول ، فضول كار او كلام پريښودل ، [ ابن كثير]([2]) .

**لقمان حكيم ته د وركړی حكمت نه څۀ مراد دی ؟** د حكمت لفظ په قرآن پاک كښي ډيرو معنو دپاره استعمال شوي دي ، علم ، عقل ، حلم او بردباری ، پيغمبرئ او د رائي د حقوالی دپاره . ابو حيان فرمائی چي د حكمت نه مراد هغه كلام دي چي خلق تري نصيحت حاصل كړی او دهغوئ په زړونو كښي اثر اوكړی او خلق ئي نورو ته د رسولو دپاره ځان سره محفوظ كړی([3]) .

ابن عباس ﷺ اوفرمائيل چي حكمت نه مراد عقل ، پوهه او ذهين توب دي . او ځيني حضرات فرمائی چي دعمل په جوړ عمل كول حكمت دي . او حقيقت دادي چي ددي ترمينځه هيڅ تضاد نشته . دا ټول ځيزونه په حكمت كښي داخل دی . پورته د تفسير په خلاصه كښي د حكمت ترجمه دانشمندی او تفسير ئي په علم يا عمل سره كړي شوي دي . دا ډير واضح او ښكاره دی .

دي آيت مبارک كښي لقمان حكيم ته د حكمت وركولو بيان راغلو او وروسته ئي داسي اوفرمائيل چي ﴿أَنِ اشْكُرْ لِيْ﴾ دي كښي يو احتمال خو دادي چي قلنا محذوف اومنلي شی ، مطلب به ئي دا وی چي مونږ لقمان حكيم ته حكمت وركړو . او دا حكم مو وركړو چي زما شكر ادا كوئ . او ځينو حضراتو دا هم فرمائيلی دی چي ﴿أَنِ اشْكُرْ لِيْ﴾ پخپله دحكمت تفسير داسي دي چي لقمان حكيم ته وركړي حكمت دا وو چي مونږ ورته دشكر حكم وركړو ، او هغوئ پري عمل اوكړو . دي صورت كښي به مطلب دا وی چي د الله ﷻ د نعمتونو شكر ګزار كيدل دټول نه لوئي حكمت دي . وروسته ئي دا ضباط او واضح كړل چي د شكر ګزارئ داحكم مونږ څه خپلي فائدي دپاره نه دي وركړي . زمونږ د چا شكر ته حاجت نشته . بلكه دا مو پخپله هم ددوئ د فائدي دپاره وركړي دي . ولي چي زمونږ طريقه داده چي څوک زمونږ د نعمت شكر ادا كوی نو مونږ د هغوئ په حكمت كښي نور هم زياتوالئ راولو .

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ٦٠
[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٣٣٤
[3] ) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ٩، ص ١٠٢

وروسي د لقمان عليه السلام د حکمت څو کلمات بیان کړي شوي دي چې خپل ځوئي ته ئې کړي وي، قرآن کریم دغه کلمات ځکه نقل کړل چې نور خلق هم ترې فائده واخلي.

دغه کلماتو کښې ټولو نه اول د عقیدو صحیح کول دي. او په دې کښې د ټولو نه رومبئ خبره داده چې الله تعالیٰ لره د ټولې دنیا خالق او مالک داسې اوبولې چې هیڅوک په کښې ورسره شریک نه کړې. ولې چې د لته د ټولو نه زیات لوئې ظلم ددې نه بل نشي کیدلې چې د الله تعالیٰ څه مخلوق د الله تعالیٰ برابر او گرځولې شي. ځکه فرمائي چې ﴿يٰبُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ ۣ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ﴾ وروسې د لقمان عليه السلام نور هم کلمات بیانولې شي چې خپل ځوئې ته ئې د نصیحت په غرض وئیلی وو. خو په مینځ کښې الله تعالیٰ یو بل حکم دا اوفرمائیلو چې هرکله شرک لوئې ظلم دې نو دهغې خواته مه ورځۀ اګرچې دې دپاره د مور پلار حکم هم درته اوشي.

**د والدینو شکر گزاری او تابعداری فرض ده مګر د الله تعالیٰ دحکم پخلاف د هیچا تابعداری کول جائز نه دي:** یعنې مونږ اګر چې اولاد ته د خپل مور پلار د تابعدارئ او شکر کولو ډیر تاکید کړې دې، او دخپلې شکر گزارئ او فرمانبردارئ سره سره مو د والدینو د شکر گزارئ او تابعدارئ حکم مو ورکړې دې خو شرک داسې لوئې ظلم او سنګین جرم دې چې هغه د مورپلار په وئیلو او مجبوره کولو سره هم چا دپاره نه شي جائز کیدې. او که مور پلار څوک دالله تعالیٰ سره په شرک کولو مجبوره کړي نو په دغې معامله کښې دهغوئ خبره منل نه هم جائز نه دي.

دلته د والدینو دحقوقو او تابعدارئ او فرمانبردارئ حکم ورکړې شونو ددې حکمت ئې دا اوښودلو چې مور ئې دده په ګېډه ګرځولو او ساتلو، حفاظت کولو کښې ډیره خوارې کړې ده. نهه میاشتې ئې پخپله ګېډه کښې اوساتلو، چې ورسره ئې کمزوری وخت په وخت زیاتیده. دده پیدا کولو نه پس هم ده ته ئې پئ ورکول. په دې وجه د ماشوم په خصمانه [تربیت] کښې هرکله چې د مور زیاته خواری ده نو الله تعالیٰ ددې حق وړاندې اولړلو، فرمائي چې ﴿وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ ۚ حَمَلَتْهُ اُمُّهٗ وَهْنًا عَلٰى وَهْنٍ وَّفِصٰلُهٗ فِيْ عَامَيْنِ﴾ وروسې په ﴿وَاِنْ جَاهَدٰكَ﴾ کښې دا ښائي چې الله تعالیٰ سره بل څوک شریکول د والدینو په غوښتنه هم حرام دي.

**د اسلام د عدل بې مثاله قانون:** او په داسې صورت کښې چې مور پلار ئې په شرک کولو باندې مجبوره کوي او دالله تعالیٰ حکم داوي چې دا حکم ئې مه منئ نو په طبعي ډول انسان په یوحد باندې قائم نشي پاتې کیدې. دې کښې د امکان وو چې څوې د خپل مور او پلار سره بد تمیزي او بد کلامي او بداخلاقي شروع کړي او ددوئ توهین اوکړي او اسلام یو دعدل قانون دې په دې وجه د شرک په معامله کښې د والدینو د حکم نه منلو سره یې دا حکم هم ورکړی چې ﴿وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوْفًا﴾ مطلب دا چې ددین په باره کښې تاسو ددوئ خبره مه منئ مګر په دنیوي خدمت او عزت کښې ئې څه کمې مه راولئ. مال پرې لګوئ جسماني خدمت ئې کوئ، او ددنیا په معامله کښې د عام دستور مطابق روزګار ورسره کوئ. بې ادبي ئې مه کوئ، ددوئ د خبرې جواب په دې شان مه ورکوئ چې زړه ئې ورسره خفه شي. البته د شرک په باره کښې ددوئ د خفګان هم څه پرواه مه کوئ. اودا خبره ئې مه منئ.

**فائده:** په آیت کښې دتي نه دپریکولو دوه کاله موده د عام عادت مطابق خودلې شوې ده. دې نه زیاتې مودې دپاره د تي ورکولو حکم نه معلومیږي. ددې مسئلې تشریح به د سورة

احقاف دآیت ﴿وحمله وفصاله ثلثون شهرا﴾(۱) لاندې انشاء الله چې راشي.

**دلقمان حکیم دویم وصیت د عقیدې باره کښې** :: هغه دادې چې ددې مضبوط اعتقاد لرل پکار دی چې د آسمانونو اوزمکې او په دې کښې موجوده د ذرې ذرې نه دالله ﷻ فراخه علم راچاپیره دې، او په ټولو باندې کامل قدرت لري ، کوم څیز چې د ډیر وړوکوالی په وجه په عامو نظرونو کښې نه راځي . دغه شان هغه څیز چې ډیر زیات لرې یا په سختو سختو تیرو او پردو کښې پټ وی ، هغه دالله ﷻ دعلم او نظر نه نشي پټیدې هغه چې کوم لره غواړي او چرته ئې غواړي نو حاضرولې یې شي.

د ﴿يٰبُنَيَّ اِنَّهَآ اِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ الاية﴾ هم دغه مطلب دې او دا په خپله هم دا سلام بنیادی عقیده ده چې دالله ﷻ علم او قدرت دهر څه نه راچاپیره دې اودتوحید دعقیدې لوئې دلیل دې.

**د لقمان حکیم دریم وصیت د عمل د سمولو باره کښې** :: واجب عملونه خو ډیر دی خو په دې ټولو کښې د ټولو نه لوئې او زیات ضروری عمل مونځ دې . او دې سره سره د نورو عملونو د سمولو ذریعه هم دې لکه الله ﷻ فرمائي چې :

﴿اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾(۲)ځکه ئې د واجبو عملونو څینې یواځې ددې ذکر داسې اوفرمائیلو چې : ﴿يٰبُنَيَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ﴾ یعني ائې ځما بچوړیه مونځ قائموه ] څنګه چې مخکښې تیر شوی دی چې د مونځ قائمولو مطلب صرف مونځ کول نه دی بلکه ددې ټول ارکان او آداب په پوره پوره شان پخپل ځائې راوړل ددې د وختونو پابندی کول او په دې باندې همیشوالئ کول دی.

**د لقمان حکیم څلورم وصیت د خلقو داصلاح باره کښې** :: هرکله چې اسلام یو اجتماعی دین دې چې ځانی اصلاح سره سره د ګنړې اصلاح کول هم ددې لړنئ او نظام ضروری برخه ده . ځکه د مونځ پشان زیاتې ضروری فریضې سره د امر بالمعروف او نهی عن المنکر فریضه داسې بیان کړې شوه چې خلقو ته د نیکو کارونو بلنه ورکوئ او دبدو کارونو نه ئې منع کوئ. لکه فرمائی چې ﴿وَاْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ﴾ دا دوه فریضې داسې دی چې یوې سره خپل اصلاح کیږی او بلې سره د مخلوق اصلاح کیږی. دا دواړه داسې دی چې په دواړو کښې ډیره خواری کول راځي. چې په هغې باندې ټینګ پاتې کیدل څه آسان کار نه دې. خصوصا کله چې د خلقو اصلاح په امر بالمعروف او نهی عن المنکر سره کولې شی نو ددې په بدل کښې اکثر دښمنی او اختلافات پیدا کیږی. ځکه ئې دې سره دا وصیت هم اوفرمائیلو چې ﴿وَاصْبِرْ عَلٰى مَآ اَصَابَكَ اِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ﴾ په دې کارونو کښې د راپیښیدونکو تکلیفونو باندې د صبر او مستقل مزاجئ نه کار اخله.

**د لقمان حکیم پنځم وصیت د ژوند روزګارمعاشرې د آدابو باره کښې** :: ﴿وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ﴾ ﴿وَلَا تُصَعِّرْ﴾ د صعر نه مشتق دې چې د اوښ یو داسې ناجوړتیا ده چې ورسره ئې څټ آوړی. څنګه چې انسانانو کښې لقوه او فالج مشهوره ناجوړتیا ده چې ورسره ئې مخ او خله کږیږی. مراد ترې نه مخ اړول دی یعنی داسې مه کوئ چې خلقو سره د ملاقات او خبرو کولو په وخت ترې مخ

(۱) ترجمه: او دده دحمل زمانه او د تی نه پریکول په دیرشو میاشتو کښې پوره شو.
(۲) ترجمه: بیشکه مونځ د خرابو او دبے حیایۍ کارونو نه منع کوي.

اړوي. چې دمخ تاوولو او تکبر کولو نخښه ده او د شریفو خویونو نه خلاف خبره ده.
﴿وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا﴾ د مرح معنی په نازنخرو سره تلل دی. مطلب ئې دادې چې هر کله د زمکې نه پیدا شوی یې او دا په ټولو عنصرونو کښې زیات لاندې عنصر دې نو کله چې ته په دې باندې ګرځې راګرځې خپل حقیقت او پیژنه په ناز نخرو مه ګرځه چې د متکبرانو طریقه ده څکه ورپسې فرمائی چې: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ﴾ یعنی الله ﷻ لوئی کوونکی فخر کوونکی نه خوښوی.
﴿وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ﴾ یعنی پخپل چال کښې میانه تلل اختیار کړئ. مه خو په تړپکو ګرځه چې دشرافت نه خلاف دی، څنګه چې په حدیث شریف کښې راغلی دی چې په تلو کښې ډیره تلوار کول د مؤمن رونق خرابوی [جامع صغیر د ابی هریره رضي الله عنه نه] (۱) او په دغسې تګ کښې خپل ځان او نورو ته هم تکلیف ور رسول دی. مه ډیر رور [کرار] ګرځه چې یا خو تواضع نما تکبر دې یا د ښځو په شان دې، یاد هغې بیمارانو عادت دې چې په داسې کولو مجبوره وی، ړومبې صورت خو بیخی حرام دې. دویم هم څکه ناجائز دې چې ښځو سره ځان یو شان کول دی کله چې ددې قصد پکښې شوې وی. کنی د نارینا دپاره دا یو عیب دې او دویم صورت کښې د الله ﷻ ناشکری څکه ده چې سره د جوړ والی د ناروغتیا هیئت اختیار کړی (۲).
عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائیل چې صحابه کرام رضي الله عنهم به د یهودو پشان په منډه ګرځیدونه منع کولې شو اود نصرانیانو پشان په مزه مزه ګرځیدو نه به هم منع کولې شو او حکم دا وو چې درمیانه تګ باندې ګرځئ.
کله چې عائشه صدیقه رضي الله عنها په مزه مزه تلونکې داسې یو سړې اولیدو لکه چې مرې نو ددې باره کښې ئې تپوس اوکړو چې داسې ولې ځی؟ خلقو ورته اووئیل چې دا یو قاری دې. ددغې زمانې قاری به ددین عالم هم وو. په دغه موقع عائشه صدیقه رضي الله عنها اوفرمائیل چې عمر بن الخطاب رضي الله عنه دده نه زیات قاری وو. خو د هغوئ عادت دا وو چې تیز به ګرځیدل. [داسې تیز نه چې کوم نه منع راغلې ده] او کله به ئې چې خبره کوله نو په دې شان چې خلق ئې په ښه شان آوری (۳). یعنی دومره په مزه به ئې خبره نه کوله چې خلقو ته به ئې په آوریدو کښې تکلیف وو یا به په بیا بیا تپوس کولو سره پرې پوهیدو.
﴿وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ﴾ یعنی آواز لږ شان ښکته کړه] یعنی دضرورت نه ئې زیات په زوره مه اوباسه او شور مه کوه څنګه چې اوس اوس دعمر فاروق رضي الله عنه د خبرو طریقه بیان کړې شوه. دې پسې فرمائی چې ﴿إِنَّ أَنكَرَ الْأَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِيرِ﴾ یعنی په خاروؤ کښې ډیره ناکاره آواز د خرو دې] چې ډیر شور کوی.
دلته د زیست روزګار په باره کښې څلور څیزونه بیان کړې شو. اول دا چې خلقو سره د ملاقات او خبرو کولو په موقع په تکبر سره مخ مه ګرځوئ. دویم دا چې په تړپکو او نازونخرو مه ګرځئ. بلکه په درمیانه چال سره ګرځئ. څلورم دا چې ډیر په زوره زوره خبرې مه کوئ. د

(۱) کنز العمال رقم الحدیث: ٤١٦٢٠، وجامع الاحادیث للسیوطی رقم الحدیث: ١٣١٠٨
(۲) روح المعانی: ج ١٥، ص ٤٤٥
(۳) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ١٥، ص ٤٤٥

رسول کریم ﷺ په عادتونو مبارکو او خویونو مبارکو کښې دا ټول څیزونه جمع وو.
په شمائل ترمذی کښې حسین رضی الله عنه فرمائیلي دي چې ما د خپل والد صاحب علي رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چې خلقو سره به د رسول الله ﷺ د کیناستو پاسیدو څه طریقه وه؟ هغوئ اوفرمائیل چې: كان دائم البشر سهل الخلق لين الجانب ليس بفظ ولا غليظ ولا صخاب في الاسواق ولا فحاش ولا عياب ولا مشاح يتغافل عما يشتهي ولا يؤيس منه ولا يخيب فيه قد ترك نفسه من ثلث المراء والاكبار وما لا يعنيه([1])
نبي کریم ﷺ به همیشه خوشحاله ښکاریدل په اخلاقو کښې ئې نرمي او په کړو وړو کښې ئې آساني وه، طبیعت مبارک ئې سخت نه وو. خبره ئې هم ترشه نه وه. نبي کریم ﷺ شور کوونکي او فحش ویونکي نه وو په چا به ئې څه وته او عیب نه لګوله. بخیلي به ئې نه کوله. چې کوم څیز به ئې خوښ نه وو نو دده به ئې ترې کوله خو نور به ئې ترې نا امیده کول هم نه که هغه به حلال وو او دچا مینه به ورته هم کیده د خپلې ناخوښې څیز به ئې په بل نه چتې کولو بلکه چپ به پرې پاتې کیدل. درې څیزونه ئې بیخي پریخودي وو جګړه کول، تکبر کول، بې کاره څیز سره مشغولیدل او لګیا کیدل.

| |
|---|
| اَلَمْ تَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ |
| ایا نه وینئ تاسو \| چې بیشکه الله \| تابع کړي دي \| |
| ایا تاسو دا نه وینئ چې الله ﷻ داسمانونو |
| لَكُمْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ |
| ستاسو دپاره \| هغه څیزونه \| چې په آسمانونو کښې دي \| او هغه \| چې په زمکه کښې دي \| |
| او دزمکې ټول څیزونه ستاسو په خدمت کښې لګیا کړي دي \| |
| وَاَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهٗ ظَاهِرَةً وَّبَاطِنَةً ؕ وَمِنَ النَّاسِ |
| او پوره کړي دي الله \| په تاسو باندې \| نعمتونه خپل \| ښکاره \| او پټ \| او ځینې دخلقو نه |
| اوتاسو ته ئې خپل ښکاره او پټ نعمتونه درکړي دي \| اوبعضې خلق داسې دي |
| مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى |
| هغه څوك دي \| چې جګړې کوي \| په باره دالله کښې \| بې دعلم نه \| او بې داهدایت نه \| |
| چې دالله ﷻ په باره کښې بغیر دڅه واقفیت نه او بغیر د څه دلیل نه او بغیر د یوروښانه |
| وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ ۝ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ |
| او بې دکتاب روښانه نه \| او کله چې \| اوونیلې شي \| دوئ ته \| چې پیروی اوکړئ \| دهغه [کتاب] \| |
| کتاب نه [تاسره] جګړې کوي \| اوکله چې ورته اوونیلې شي چې د هغه حکمونو تابعداري کوئ |
| اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا |
| چې نازل کړي دي الله \| نو وائي دوئ \| بلکه \| مونږه پیروي کوو \| دهغه څیز \| چې موندلې دي مونږه |
| چې الله ﷻ نازل کړي دي \| نو داوائي چې نه مونږ خو به د هغه لار روان یو \| چې مونږ پرې |

([1]) جامع الترمذی، شمائل الترمذی، باب ما جاء في خلق رسول الله صلی الله علیه وسلم: ج ۱، ص ۲۴

عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطٰنُ يَدْعُوْهُمْ اِلٰى عَذَابِ

په هغې باندې | پلاران زمونږه | آيا اگر كه وى | شيطان | چې رابلى دوئ | عذاب |

خپل پلارنيكه روان موندلى دى | اگر كه په دغه لار باندې ئې شيطان د دوزخ

السَّعِيْرِ ۞ وَمَنْ يُّسْلِمْ وَجْهَهٗٓ اِلَى اللّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ

دوور ته | او هغه څوك | چې اوسپارى | ځان خپل | الله ته | او هغه وى | نيك عمله انسان

انگار ته راولى | او څوك چې خپل مخ الله ﷻ ته اوسپارى | او په اخلاص سره نيكى كوى

فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ؕ وَاِلَى اللّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ۞

په حقيقت كښى هغه اونيوله | كړئ محكمه | او خاص الله ته | خاتمه ده | دكارونو |

نو هغه كړئى مضبوطه اونيوله | او آخر دټولو كارونو انجام الله ﷻ سره دې

وَمَنْ كَفَرَ فَلَا يَحْزُنْكَ كُفْرُهٗ ؕ اِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ

اوهغه څوك | چې كفر ئې اوكړو | پس غمژن دې نه كړى تا | كفر دهغه | خاص مونږ ته | واپس راتلل دى ددوئ

او چا چې كفر غوره كړو | نو ته دهغوئ دكفر په وجه غم مه كوه | مونږ ته به دوئ ټول واپس كيږي

فَنُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ

پس خبر به كړو مونږ دوئ لره | په هغه عملونو | چې كړى دى دوئ | بيشكه الله | ښه عالم دې

نومونږ به ورته ټول كارونه په گوته كړو | بيشكه الله ﷻ ته دزړونو راوزونه ښه

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۞ نُمَتِّعُهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ

په خبرو دسينو باندې | مونږ نفع وركوو دوئ ته | لږه | بيا به خه راكاږو مونږ دوئ

معلوم دى | مونږ دوى ته لږ شان مهلت وركوو | اوبيا به ئې يو سخت

اِلٰى عَذَابٍ غَلِيْظٍ ۞ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

عذاب | سخت ته | او كه چرى | ته تپوس اوكړې ددوئ نه | چې چا پيدا كړى دى | آسمانونه

عذاب طرفته راكاږو | اوكه ته ترې نه تپوس اوكړې چې دا آسمانونه او زمكه چا پيدا كړدى دى

وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ

او زمكه | نو ضرور به اووائى | چې الله | ورته اووايه | چې ثنا الله لره ده | بلكه | اكثر ددوئ

نو جواب كښې به اووائى چې الله ﷻ | نو ته ورته اووايه چې ټول تعريفونه الله ﷻ لره دى | خو په دوئ كښې

لَا يَعْلَمُوْنَ ۞ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

نه | پوهيږى | الله لره دى | هغه څه | چې په آسمانونو كښى دى | او په زمكه كښى دى

زيات خلق نه پوهيږى | په زمكه او آسمانونو كښې چه څه دى هرڅه دالله ﷻ ملكيت دى

اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ۞ وَلَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ

بيشكه الله | محتاجه نه دى | ستائيلى شوى دى | او كه چرى | هغه ټول څيزونه | چې په زمكه كښى دى

بيشكه الله ﷻ بې نيازه ستائيلى شوى دى | اوكه دزمكې په مخ باندې چې څومره ونې دى

مِنۡ شَجَرَةٍ اَقۡلَامٌ وَّالۡبَحۡرُ يَمُدُّهٗ

د ونو نه | شي قلمونه | او درياب شي [سياهي] | چي امداد اوكړي دهغې سره

قلمونه شي | او سمندر ئې سياهي جوړه شي | او ددې د مدد دپاره

مِنۡۢ بَعۡدِهٖ سَبۡعَةُ اَبۡحُرٍ مَّا نَفِدَتۡ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ؕ

روستو دختميدو دهغې نه | اوه دريابونه نور | نو ختمې به نه شي | كلمې دالله [دليكلو نه]

اووه سمندرونه نور راشي | ............نو بيا به هم دالله ﷻ صفات ختم نشي

اِنَّ اللّٰهَ عَزِيۡزٌ حَكِيۡمٌ ﴿۲۷﴾ مَا خَلۡقُكُمۡ وَلَا بَعۡثُكُمۡ

بيشكه الله | غالب دې | دحكمت خاوند دې | نه دى پيداكول ستاسو | او نه دوباره ژوندى كول ستاسو

بيشكه الله غالب او صاحب د حكمت دې | ستاسو په اول خل پيداكول او بيا دوباره ژوندى كول

اِلَّا كَنَفۡسٍ وَّاحِدَةٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيۡعٌۢ بَصِيۡرٌ ﴿۲۸﴾

مگر دى | پشان دنفس | يو | بيشكه الله | هر څه اوريدونكې | هر څه ليدونكې دې

بيخى ديو سړي د راپيداكولو پشان دى | الله ﷻ هره خبره آورى او هر عمل وينى گورى

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُوۡلِجُ الَّيۡلَ فِى النَّهَارِ وَيُوۡلِجُ النَّهَارَ

اياته گورې نه | چې بيشكه الله | ننباسى | شپه | په ورځ كښې | ننباسى | ورځ

آيا تاته نه دى معلومه چې الله ﷻ شپه په ورځ كښې او ورځ په شپه كښې

فِى الَّيۡلِ وَسَخَّرَ الشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ ۫ كُلٌّ يَّجۡرِىۡۤ

په شپه كښى | او تابع كړى ئې دى | نمر | او سپوږمۍ | دا ټول | روان دى |

داخلوى | ............او نمر او سپوږمۍ ئې تابع كړى دى | دا ټول [مخلوقات] د يوې مقررې

اِلٰۤى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّاَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرٌ ﴿۲۹﴾ ذٰلِكَ

دنيټې مقررې پورې | او بيشكه الله | په هغه كارونو | چې كوئ ئې تاسو | خبر دې | دا كار

نيټې پورې روان لگيا دى | او الله ﷻ ستاسو د كارونو نه خبر دې | ............دا څكه

بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الۡحَقُّ وَاَنَّ مَا يَدۡعُوۡنَ

په سبب ددې چې بيشكه الله چې دې | هم دې حق دې | او بيشكه | هغه | چې رابلى ئې دا خلق

چې الله ﷻ په خپله هستۍ كښې په خپله كامل دې | او دوئ چې دالله ﷻ نه سوا

مِنۡ دُوۡنِهِ الۡبَاطِلُ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الۡعَلِىُّ الۡكَبِيۡرُ ﴿۳۰﴾

ابې دهغه نه | باطل دى | او بيشكه الله چې دې | هم دې اوچت دې | لوئې دې

دنور چا بلنه كوى | هغه ټول باطل دى | او الله ﷻ دهر څيزنه اوچت او ډير لوئې دې

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ الۡفُلۡكَ تَجۡرِىۡ فِى الۡبَحۡرِ بِنِعۡمَتِ اللّٰهِ

آيا ته گورې نه | چې بيشكه كشتۍ | گرزى | په درياب كښى | په فضل دالله سره |

آيا ته گورې نه چې دالله ﷻ په فضل سره بېړۍ په درياب كښې روانې دى

لِيُرِيَكُمْ مِّنْ اٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

دپاره ددې چې اوښائي تاسو ته | دنښو خپلو نه | بيشکه په دې کار کښې | ډيرې نښې دی |

چې تاسو ته د خپل قدرت نښې اوښائی | بيشکه چې په دې کښې دهر صبر کونکی

لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ۝ وَاِذَا غَشِيَهُمْ مَّوْجٌ

دپاره دهر صبر کونکی | شکر ايستونکی | او کله چې | لاندې کړی دوئ لره | يوه چپه |

اوهر شکرګذار دپاره نښې دی | اوهرکله چې د [سمندرونو] چپې دڅپرونو پشان

كَالظُّلَلِ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ فَلَمَّا

پشان دچترئ | نورابلی الله | په دا حال کښې چې خالص کونکی وی | هغه لره | دين | خوهر کله چې

په دوئ باندې راوخيژی | نو دوئ ډير په اخلاص سره الله ﷻ رابلل شروع کړی | خو چې کله

نَجّٰىهُمْ اِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ؕ وَمَا يَجْحَدُ

بچ کړی دوئ لره | وچې ته | نوځينی ددوئ نه | صحيح پاتې شی په عقيده کښې | او انکار نۀ کوی

هغوئ د اوچې طرفته نجات مومی | نو ډير لږ خلق په کښې په اعتدال پاتې کيږی | او زمونږ

بِاٰيٰتِنَاۤ اِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُوْرٍ ۝

دآيتونو [نښو] زمونږ نه | مګر | هر غدار | ناشکره |

دآيتونو نه هغه خلق انکار کوی اچې کوم بې لوظه ناشکره وی |

### آسان ترجمه قرآن

آيا نه ګورئ تاسو چه يقيناً الله تعالیٰ په کار لګولې دی تاسو لره هغه څه چه په آسمانونو کښې دی، او هغه څه چه په زمکه کښې دی، او پوره کړې ئې دی په تاسو باندې نعمتونه خپل ظاهری او باطنی، او بيا هم بعضې د خلقو نه هغه څوک دی چه بحثونه کوی په باره د الله تعالیٰ کښې بغير د څه پوهې نه او بغير د هدايت نه او بغير د کتاب روښانه نه، او کله چه اوويلې شی، دوی ته چه تابعداری اوکړئ، دهغه څه چه الله تعالیٰ رالیږلې دی، نو وائی دوی، بلکه مونږ خو په هغې طريقې باندې چليږو، په کومه باندې چه مونږ خپل پلار نيکه موندلې دې، اګرچه شيطان هغې (پلار نيکه) لره رابلی عذاب د اور سوزونکې ته، نو آيا بيا به هم (هغوی پسې روان وی؟) اوڅوک چه فرمانبرداری سره خپل ذات الله تعالیٰ طرف ته کړی او نيک عمل کونکې وی، نو هغه يقيناً ډيره مضبوطه رسۍ اونيوله، او د ټولو کارونو آخری انجام الله تعالیٰ ته حواله دې، او (اے پيغمبره) چا چه کفر اختيار کړو، نو تا لره دې دهغه کفر په غم کښې وانه چوی، آخر هغه لره مونږ طرف ته راګرځيدل دی بيا به مونږ هغه ته خبر ورکړو، چه هغه څه عمل کړې دې. يقيناً الله تعالیٰ په سينو کښې پټو خبرو باندې ښه پوهيږی مونږ هغوی ته د مزو اخستلو څه موقع ورکوؤ، بيا به مونږ هغوی لره يو سخت عذاب ته راکاږو، او که ته ددوی نه تپوس اوکړې چه هغه څوک دې، چه آسمانونه او زمکه ئې پيدا کړې دی؟ نو ضرور به دا وائی چه : الله، اووايه الحمد لله ددې باوجود په دوی کښې اکثر خلق دعقل نه کار نه اخلی خاص د الله تعالیٰ دپاره دی، هغه څه چه په آسمانونو کښې دی او هغه

څه چه په زمکه کښې دی، بې شکه الله تعالیٰ چه دې هغه د ټولو نه بې پرواه [بې حاجته] دې، او په خپله د تعریف قابل دې او په زمکه کښې چه څومره اونې دې، که هغه قلمونه جوړ شي، او دا چه څومره سمندرونه دی، ددې نه علاوه اووه سمندرونه نور هم ددې سره ملاؤ شي. (اوهغې نه سیاهي جوړه شي، او دالله تعالیٰ صفات لیکل شروع کړي) نو بیا به هم د الله تعالیٰ خبرې ختمې نشي. حقیقت دادې چه الله تعالیٰ د اقتدار مالک هم دې، او د حکمت مالک هم دې. تاسو ټولو لره پیدا کول او دوباره ژوندی کول (د الله تعالیٰ دپاره) داسې دې، لکه یو انسان لره (پیدا کول او دوباره ژوندې کول) یقیناً الله تعالیٰ هره خبره اوري، او هر څیز ویني. آیا تاسو نه دي کتلې چه الله تعالیٰ شپې لره په ورځ کښې ننباسي، او ورځې لره په شپه کښې ننباسي، او هغه نمر او سپوږمۍ لره په کار باندې لګولې دی، چه هر یو ددوی نه یو مقررې نیټې پورې روان دی، او (آیا تاته دا معلومه نه ده) چه الله تعالیٰ ستاسو په عملونو باندې خبردار دې دا ټول هر څه ددې دپاره دی، چه د الله تعالیٰ وجود رښتونې دې، او دهغه نه سوا (کومو معبودانو لره) چه دا مشرکان رابلي هغه بے بنیاد (باطل) دی، او هم دا الله تعالیٰ دې، چه د هغه شان ډیر اوچت دې، او دهغه ذات ډیر لوئې دې. آیا تا نه دي لیدلي چه کشتۍ په سمندر کښې د الله تعالیٰ په مهربانئ سره روانې دی، دې دپاره چه هغه تاسو ته خپلې د قدرت څه نښې اوښائي یقیناً په دې کښې د هر هغه سړي دپاره ډیرې نښې دی، چه صبرناک او ډیر زیات شکرګزار وی، او چه کله چپې د وریځو پشان په هغوی باندې راشي، نو هغوی الله تعالیٰ لره داسې رابلي، چه په دغه وخت کښې دهغوی اعتقاد خالص په الله تعالیٰ باندې وی بیا چه کله الله تعالیٰ هغوی بچ کړي، او اوچې ته ئې راولي، نو په هغوی کښې څه خلق دی، چه په نیغه لار باندې اوسیږي (او باقي بیا شرک کښې مبتلا شي) او زمونږ د آیتونو نه انکار هغه څوک کوي، چه پوخ بې لوظه او ډیر زیات ناشکره وی.

### خلاصه تفسیر

﴿اَلَمْ تَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ﴾ [آیا تاسو خلقو ته] ددلیلونو په لیدو [دا خبره نه ده معلومه شوې چې الله تعالی ﴿سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾ ټولو څیزونو لره] په واسطه سره یا بې د واسطې نه [ستاسو په کار کښې لګولي دی څه چې په اسمانونو کښې] موجود [دی او څه چې په مزکه کښې] موجود [دی ﴿وَاَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهٗ ظَاهِرَةً وَّبَاطِنَةً﴾ او هغه په تاسو خپل نعمتونه ظاهری او باطنی پوره کړی دی] ظاهری هغه دی چې په سترګو او غوږونو وغیره سره معلومیږی او باطنی هغه دی چې په عقل سره معلومیږی او دنعمتونو نه مراد هغه دی چې داسمانونو اومزکې په مسخرکولو مرتب کیږی نو په دې سره دټولو مخاطبو خلقو په اسلام مشرف کیدل نه لازمیږی ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ [اوسره ددې چې] ددې دلیل نه توحید ثابتیږی مګر [ځنې خلق داسې دی چې دالله تعالی په باره کښې] یعنی دهغه د توحید په باره کښې [بې دڅه پوهې نه ] یعنی ضروری علم نه ﴿وَّلَا هُدًى﴾ [اوبې ددلیل] یعنی علم استدلال عقلی [نه ﴿وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ﴾ اوبې دڅه روښن کتاب] یعنی علم استدلال نقلی [نه جګړه کوی ﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ﴾ اوهرکله چې هغوی ته ووئیلې شی چې دهغه څیز تابعدری کوئ کوم چې الله تعالی نازل کړې دې ] یعنی په حق ثابتوونکو دلیلونو کښې غورکوئ او دهغې پیروی وکړئ [نو] په جواب کښې ﴿قَالُوْا﴾ [وائی چې] مونږ دهغې پیروی [نه] کوو ﴿بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ

اٰبَآءَنَا ؕ﴾ بلکه[مونږ] خوبه [صرف دهغې تابعداری کوو په کومه چې مونږ خپل مشران موندلی دی] وړاندپه دوی رد دې چې ﴿اَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطٰنُ يَدْعُوْهُمْ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ۝﴾ [ایا که شیطان ددوی مشران ددوزخ عذاب ته] یعنی ګمراهۍ ته چې ددوزخ دعذاب سبب دې [بللی نو بیابه هم] دهغوی پیروی کوی مطلب دادې چې داسې ضدیان دی چې سره ددې چې دوی دلیل طرف ته بللې شی مګر بیا هم بې دلیله بلکه د دلیل خلاف محض دګمراه پلار نیکه په لاره چلیږی دا خو حالت دې دګمراهانو ﴿وَمَنْ يُّسْلِمْ وَجْهَهٗۤ اِلَى اللّٰهِ﴾ [اوکوم سړې چې] دحق په تابعدارئ کولوسره [خپل مخ دالله تعالی طرف ته بنکته کړی] یعنی فرمانبرداری اختیارکړی په عقیدوکښې هم او په عملونو کښې هم ددې نه مراد اسلام او توحیددې [او] ددې سره ﴿وَهُوَ مُحْسِنٌ﴾[هغه مخلص هم وی] یعنی محض ظاهری اسلام ئې نه وی ﴿فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ؕ﴾[نوهغه سړی لویه مضبوطه کړئ ونیوله] یعنی د هغه سړی په شان شو چا چې دمضبوطې رسئ حلقه اوکړئی په لاس کښې ونیوه او دغورزیدو نه په امن شو دغه شان دا سړې دهلاکت او تاوان نه مخفوظ شو ﴿وَاِلَى اللّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ۝﴾[او اخردټولو کارونوانجام دالله تعالی طرف ته رسیږی] پس داعملونه یعنی دباطل پیروی اود حق پیروی به هم دهغه په حضور کښې پیش کیږی نو هغه به هریوته مناسب جزا اوسزا ورکوی ﴿وَمَنْ﴾[اوکوم سړې چې] دحق ثابتوونکودلیلونو سره ﴿كَفَرَ فَلَا يَحْزُنْكَ كُفْرُهٗ ؕ﴾[کفرکوی نو ستا دپاره دهغه کفر دغم باعث کیدل نه دی پکار] یعنی ته غم مه کوه ﴿اِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ﴾[ددې ټولو مونږ ته واپسی ده ﴿فَنُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ﴾نومونږ به دې ټولوته وښایو کوم کوم څه چې هغوی] په دنیاکښې [کول] څکه چې ﴿اِنَّ اللّٰهَ﴾[الله تعالی ته] خو﴿عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ۝﴾[دزړونو خبرې ] هم [ښې معلومې دی ] نو دظاهری عملونو معامله خوظاهره ده نومونږ نه څه کاریبتنه دې ټول به ښکاره کړو اومناسب سزا به ورکړو په دې وجه تاسوڅه غم مه کوئ دا خلق که محض دڅو ورځوپه عیش نازیږی نو دا ددوی لویه غلطی ده څکه چې دادهمیشه ژوند نه دې بلکه ﴿نُمَتِّعُهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ اِلٰى عَذَابٍ غَلِيْظٍ۝﴾[مونږ دوی ته دڅو ورځو عیش ورکړې دې بیابه مونږ دوی رابنکودلی شوی یو سخت عذاب طرف ته راولو] پس په دې نازیدل جهالت دې [او] مونږ چې دوی کوم توحیدته رابلو دهغې مقدمات خو په خپله داخلق هم منی مګر ددې نه صحیح نتیجې ته درسیدو کارنه اخلئ چنانچې ﴿وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ﴾[که ته ددوی نه تپوس وکړې﴿مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ چې اسمانونه اومزکه چا پیداکړی دی﴿لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ﴾ نو دوی به خامخا وائی چې الله تعالی] په دې ﴿قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ﴾[تاسو ووایئ چې الحمد لله] کومه مقدمه چې اهمه وه هغه خو ستاسو په اقرار سره ثابته شوه او دویمه مقدمه خو نهایت ظاهره ده چې کوم شې په خپله مخلوق اوجوړشوې وی هغه د عبادت لائق نه شی کیدې پس مطلوب ثابت شو لیکن دا خلق مطلوب نه منی ﴿بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ۝﴾ [بلکه په دوی کښې اکثر] خودامجموعه دمقدماتوهم [نه پیژنی ] چنانچې نورو ښکاروٴ مقدمو طرف ته هم توجه نه کوی چې معبود کیدل صرف دخالق ذات دی او دالله تعالی دغه شان دې چې ﴿لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ﴾[څه چې په اسمانونو او په مزکه کښې موجود دی ټول صرف دالله تعالی ] ملکیت [دی] پس سلطنت خودهغه هم دغسې دی ﴿اِنَّ اللّٰهَ﴾[او بیشکه الله تعالی] په خپله په خپل ذات کښې هم ﴿هُوَ الْغَنِيُّ﴾[ خاص هغه بې نیازه] او﴿الْحَمِيْدُ۝﴾ [دټولو خو بیانو

مالك دي] نو دالوهيت مالك او قابل هم هغه دي [او] د هغه خو بياني دومره زياتې دي
چې ﴿وَلَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ﴾ [څومره اونې په ټوله مزكه كښې دى كه هغه ټول
قلمونه جوړ شی] يعنى دعامو مستعملو قلمونو په برابرئ د ټولو اجزاؤ نه قلمونه جوړشي او
ظاهره ده چې دغه شان يوه يوه اونه كښې په رزګونو قلمونه تياريدې شي ﴿وَّالْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْ بَعْدِهٖ
سَبْعَةُ اَبْحُرٍ﴾ [اودا كوم چې سمندر دې ددې نه علاوه اووه سمندرونه] دسياهئ په ځاى [په دې
كښې نور شامل شی] اوبيا په دې قلمونو او په دې سياهئ باندې دالله تعالى كمالات ليكل
شروع كړې شی [نو [ټول قلمونه او سياهئ به ختمې شی او ﴿مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ﴾ [دالله تعالى
خبرې ] يعنى هغه كلمې په كوموسره چې دالله تعالى دكمالاتو بيان كيدې شی [به ختمې نه
شی ﴿اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ بيشكه خداىٔ تعالى زبردست حكمت والا دې] چې هغه په قدرت
كښې هم كامل دې او په علم كښې هم او دا دواړه صفتونه چونكه دټولو صفتونو اوكارونو سره
تعلق لرى پدې وجه پس دعموم نه ئې دا خصوصا بيان كړل او ددې كمال صفت دقدرت يوه
فرعه عالم اخرت هم دې كوم لره چې ناپوهه خلق مشكل ګڼړى حال دادې چې هغه داسې قادر
دې چې ﴿مَا خَلْقُكُمْ﴾ [ستاسو دټولو] په اول وار [پيدا كول ﴿وَلَا بَعْثُكُمْ﴾ [او] دويم وار ژوندى
كول] دهغه په نزد [بس داسې دى ﴿اِلَّا كَنَفْسٍ وَّاحِدَةٍ﴾ لكه چې ديو سړى ] پيدا كول او ژوندى
كول اګر چې دلته مقصود دقرينې دمقام نه دبيا پورته كولو ذكر فرمائيل دى ليكن په ذكر
دپيدا كولوئ دليل نور قوى شو ﴿اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ بَصِيْرٌ﴾ [بيشكه الله تعالى هرڅه اورى او هرڅه
وينى ] پس كوم خلق چې سره ددې دليلونو نه دقيامت نه انكار كوى او په دې جرات سره فسق
او فجور كوى داټول اوړى وينى دوى لره به سزا وركړې وراند بيا دتوحيد بيان دې چې ﴿اَلَمْ تَرَ
اَنَّ اللّٰهَ﴾ [اے مخاطبه اياتاته دامعلومه نه ده چې الله تعالى ] ﴿يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي
الَّيْلِ﴾ [ د شپې] اجزاء [لره په ورځ كښې او] د [ورځې ] اجزاؤ [لره په شپه كښې داخلوى
﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ﴾ اودهٔ نمر او سپوږمئ لره په كار كښې لګولى دى ﴿كُلٌّ يَّجْرِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى﴾
چې هريو ترمقرره وخته پوره ] يعنى ترقيامته [به چليږى او] اياتاته [دا] معلومه نه ده ﴿وَاَنَّ
اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ﴾ [چې الله تعالى ستاسو دټولودعملونو پوره پوره خبر لرى ] پس ددې علمى
او عقلى كمال مقتضى داده چې شرك پريښودې شی او بره چې كوم ددې ذكر شوو كارونو
اختصاص دحق تعالى سره بيان شوې دې ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ﴾ [دا] اختصاص [په دې سبب
سره دې چې الله تعالى په خپل ذات كښې كامل ] او واجب الوجود [دې ﴿وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ
دُوْنِهِ الْبَاطِلُ﴾ او دكومو څيزونو چې دالله تعالى نه سوا دا خلق عبادت كوى بالكل بې بنياده
دى ﴿وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ﴾ بيشكه او الله تعالى خاص هغه عالى شان او] دټولونه [لوئ دې ]
په دې وجه دا ټول تصرفات دهغه دپاره مختص دى البته كه نورموجودات باطل او فانى
اوممكن نه وې بلكه نعوذبالله څوك بل هم واجب الوجود وې نو بيا دا تصرفات به الله تعالى
سره مختص نه وې لكه چې ظاهره ده
﴿اَلَمْ تَرَ اَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ﴾ [اے مخاطبه اياتاته] دتوحيد [دا] دليل [معلوم نه دې چې
دالله تعالى په فضل سره كشتئ په درياب كښې چليږى ددې دپاره ﴿لِيُرِيَكُمْ مِّنْ اٰيٰتِهٖ﴾ چې تاسو
ته خپلې] دقدرت [نښې ونښانې] چنانچې دهر ممكن وجود دخپل پيداكوونكى د وجود دليل

دي په دې طور ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ﴾ [په دې كښې] هم دقدرت [نښې دی ﴿لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ﴾ د هر داسې سړی دپاره كوم چې صابراو شاكر وی ] مراد ددې نه مؤمن دې چې په صبراو شكر كښې كامل والې دده صفت دې دارنګ صبر اوشكر محرك دې دتذكراو تدبر دعالم دپاره او داستدلال دپاره تذكر او تدبر ضروری دې په دې وجه دا دواړه وصفونه دلته مناسب شول خاصكر دكشتۍ دحالت په اعتبارسره چې دچپوپورته كيدل محل دصبر دې او په سلامتی سره غاړې ته رسيدل محل دشكر دې پس كوم خلق چې په ټولو واقعاتوكښې فكر كوی داستدلال توفيق هغوته كيږی [او] لكه چې بره په ايت [ولئن سالتهم] كښې د دليل دمقدمو اعتراف ددې كفارو دطرف نه ثابت دې څنې وخت په خپله دنتيجه د دليل يعنی دتوحيدهم اعتراف كوی چې توحيد ترې نه ښه واضحه شو چنانچې ﴿وَاِذَا غَشِيَهُمْ مَّوْجٌ كَالظُّلَلِ﴾ [هركله چې دې خلقو لره چپې دسائبانونو] يعنی وريځو [په شان ] دهرطرف نه [ګيركړی ﴿دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ﴾ نو دوئ په خالصه عقيده سره الله تعالی لره بلې ﴿فَلَمَّا نَجّٰهُمْ اِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ﴾ بيا چې كله دوی ته نجات وركړی او اوچې ته ئې راولی پس څنې خو په دوی كښې په اعتدال باندوی] يعنی دشرك كوږ والې پريږدی او توحيد چې برابره لاره ده اختيار كړی [او] څنې بيا زمونږ دايتونونه منكر شی او ﴿وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُوْرٍ﴾ [زمونږ دايتونونه بس هغه خلق انكار كوی كوم چې بدعهده اوناشكره دی] چې په كشتۍ كښې ئې كوم د توحيد عهد كړې وو هغه ئې مات كړو او اوچې ته دراتلو مقتضا وه شكر كول هغه ئې پريښودو

## معارف او مسائل

﴿اَلَمْ تَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾ د سورة په شروع كښې كفارو او مشركانو ته په دې باندې خبرداری وركول وو چې د الله ﷻ د راچاپيره علم د قدرت د ننداړو ليدلو باوجود داخلق خپل كفر او شرك باندې ټينګ دی او بل اړخ ته د فرمانبردارو مؤمنانو تعريف، صفت او نيک انجام بيان شوې وو، په مينځ كښې د لقمان حكيم د وصيتونو بيان هم په دغې حيث هم ددغې مضمونونو مكمل كول وو اوس په دې آيتونو كښې د الله ﷻ د علم او قدرت د راچاپيره والی او په مخلوق باندې دهغه د انعاماتو او احساناتو ذكر كولو نه پس توحيد ته بلنه وركول دی.

﴿سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾ يعنی تابع كړل الله ﷻ ستاسو دپاره هغه ټول څيزونه چې په آسمانونو او زمكه كښې دی. د مسخر كولو مشهوره معنی د فرمان تابع كول دی. دلته پرې داسوال پيدا كيږی چې اول خود زمكې ټول څيزونه هم دانسان دحكم تابع نه دی. بلكه ډير څيزونه دده دمزاج په خلاف كار كوی. خصوصا كوم څيزونه چې په آسمانونو كښې دی دهغې د تابع فرمان كيدو خو ئې هيڅ احتمال نشته.

جواب ئې دادې چې د تسخير معنی په زبردستۍ سره په يو خاص كار كښې لګيا كول دی. انسان دپاره د زمكې او آسمان مسخر كولو مطلب دادې چې دا ټول ئې د انسان په خدمت كولو او په فائده وررسولو كښې لګيا كړی دی. ډير ئې په كښې د ده د حكم هم تابع كړی دی چې دهغې استعمال په خپله خوښه كوی. او ډير څيزونه داسې دی چې دالله ﷻ په حكم په دې كښې د الله ﷻ څه حكمت وی، لكه آسمانی مخلوق، ګرځنده ستوری، بريښنا، او باران وغيره. كه دائې د انسان د حكم تابع ګرځولې وې نو ددوئ د طبيعتونو، مزاجونو او حالتونو د اختلافاتو

اثر به په دغه څیزونو پریوتو ، یو انسان به دا غوښتل چې نمر دې وختی راوخیژی چې ددهٔ ضرورت پوره شی ،بل به دا غوښتل چې ناوخته دې راوخیژی چې ددهٔ ضرورت پوره شی ،یوبه دننه په خپل محفوظ کور کښې ناست وو باران بهٔ ئې غوښتولو بل به په ډاګه په سفر کښې وو باران به ئې نه غوښتلو. نو داسې کیدو سره به ډیر نقصانونه راولاړیدل. ځکه الله ﷻ صرف د انسان په خدمت کښې دغه څیزونه اولګول خو ددهٔ د حکم تابع ئې اونه ګرځول چې دا هم یو قسم مسخر کول دی. والله اعلم.

﴿وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً﴾ د اسباغ معنی مکمل کول دی ، دټولې جملې معنی دا شوه چې: الله ﷻ په تاسو باندې ظاهری او باطنی ټول نعمتونه مکمل کړل ، ظاهری نعمتونو نه مراد هغه دی چې په پنځو حوادسو سره محسوس کولې شی. لکه د شکل ښکلا دانسانی اندامونو جوړوالې او برابر والې او هر اندام په دې شان جوړول چې په انسانی کارونو کښې مددګار وی او هغه شکل او صورت هم نه ورانوی. د غه شان رزق ، مال ، دولت ، د ژوند تیرولو سامانونه روغتیا او عافیت دا ټول ظاهری او محسوس نعمتونه دی. دغه شان دین اسلام آسانول او د الله ﷻ او د رسول ﷺ د فرمانبردارئ توفیق کیدل او په نورو دینونو باندې ددین اسلام غالب کیدل او د دښمنانو په مقابله کښې د مسلمانانو مدد کیدل هم په دغې ظاهری نعمتونو کښې داخل دی. او باطنی نعمتونه هغه دی چې د انسان د زړه سره تعلق ساتی لکه ایمان ، د الله ﷻ معرفت ، علم ، عقل ، ښه اخلاق ، په ګناهونو باندې پرده اچول او په جرمونو باندې سمدستی سزا نه ورکول وغیره.

﴿وَلَوْ أَنَّمَا فِي الْأَرْضِ مِن شَجَرَةٍ أَقْلَامٌ﴾ دې آیت مبارک کښې الله ﷻ د خپلو معلوماتو او دخپل قدرت د تصرفاتو او دخپلو نعمتونو یو مثال ورکړې دی چې دهغې څه حد نشته دې. نه خو په ژبه هغه ټول اداکولې شی او نه په څه قلم سره هغه لیکلې شی. ددې مثال ئې داسې اوفرمائیلو چې که د ټولو ونو ددنیا او د څانګو د تنو وغیره نه قلمونه جوړ کړې شی او ټول سمندرونه دې دپاره سیاهی جوړه کړې شی او دا ټول هر څه د الله ﷻ په قدرتونو او تصرفاتو لیکلو باندې اخته شی نو سمندرونه به ټول ختم شی او معلومات او تصرفات به ختم نشی. یواځې دا موجوده سمندرونه نه بلکه ددې پشان اووهٔ نور سمندرونه ورسره کړې شی نو هغه ټول به هم ختم شی خو دالله ﷻ کلمات به ختم نشی. دالله ﷻ د کلماتو نه مراد دهغه دعلم او حکمت کلمات دی [روح و مظهری](۱)

دې کښې د قدرت نښې او د الله ﷻ نعمتونه هم داخل دی. د اووۀ سمندرونو مطلب دا نه دې چې ګنی دا په دنیا کښې چرته موجود دی بلکه ددې نه مراد فرض کول دی ، یعنی فرض کړئی که ددې یو سمندر سره نور اووهٔ سمندرونه هم ورسره یوځائې کړې شی نو دالله ﷻ کلمات بهٔ اوند لیکلې شی ، د اووۀ سمندرونو نه مطلب صرف اووه مراد نه دی بلکه دامحاوره ده. مراد تری کثرت دې ، ددې دلیل د قرآن عظیم الشان په یو بل آیت مبارک کښې داسې دې چې: ﴿قُل لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَن تَنفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا﴾ یعنی که دالله ﷻ د کلماتو د لیکلو دپاره سمندرونه سیاهی جوړه شی نو سمندرونه به ختم شی خو دالله ﷻ

(۱) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۵، ص ۴۶۰، وتفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۲۶۱

کلمات به ختم نشي ، اګر چې ورسره ددې پشان سمندرونه نور هم شامل شي . بيا به هم د الله ﷻ کلمات ليکل ختم نشي او د غه سمندرونه به ختم شي . خو مطلب ترې اوؤه نه بلکه بې حده زيات سمندورنه دی که کرړونو او اربونو نه هم زيات وی ولې چې ددې څه انتها به وی او د الله ﷻ د کلماتو او معلوماتو څه انتها نشته دې .

ځينې روايتونو کښې راغلی دی چې دا آيت مبارک د يهودو عالمانو د يو سوال په جواب کښې نازل شوې دې . هغه داسې چې کله رسول الله ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړو نو ورته د يهودو يو څو عالمان راغلل او وې وئيل چې د قرآن پاک ددې آيت ﴿ وما اوتيتم من العلم الا قليلا ﴾ يعنی تاسو ته ندی درکړئی شوی مګر ډير کم علم ددې څخه څوك مراد دې؟ که مونږ ترې نه مطلب يو نو مونږ ته خو تورات راکړې شوې دې چې ﴿ تبيان لكل شئ ﴾ د هر څيز بيان دې . معلوميږی داسې چې دې نه ستاسو قوم مراد دې چې هيڅ آسمانی کتاب ورسره نشته ، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې زما مراد تر ټول دی خواه که يهود دی ، نصاری دی او پيغمبران وغيره دی . او که ټول انسانان وی ، پاتې شو د تورات علم نو هغه هم د الله ﷻ د علم په مقابله کښې ډير لږ دی او بيا د تورات ټول علم تاسو ته حاصل هم نه دې . نو هم ددې خبرو اترو په تائيد کښې دا آيت نازل شو چې ﴿ وَلَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ ﴾ [ ابن کثير ](۱).

يَاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا
اے خلقو | ځان اوساتئ دغضب
| اتې خلقو ! دخپل رب د

رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ
درب خپل نه | اواويريږئ | دهغه ورځې نه | چې بدله به نه ورکوی | يو پلار | د طرفه دځوی خپل نه
عذاب نه اوويريږئ | اودهغې ورځې نه اويريږئ | چې يو پلار به دخپل ځوئې بدله نشي

وَلَا مَوْلُوْدٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْئًا
اونه به يو ځوئې وی | چې هغه بدله ورکونکې وی | د طرفه دپلار خپل نه | هيڅ قدرله
.....ورکولې | اونه به يو ځوئې د خپل پلار په څه کار راشي

اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا
بيشکه وعده د الله | حقه ده | پس په دوکه کښی دوانه چوی تاسو لره | ژوند ددنيا |
بيشکه د الله ﷻ وعده ريښتوني ده | نو ددنيا ژوند مو په دهوکه کښې وانه چوی

وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ
اونه دې دوکه کړی تاسو | په معامله دالله کښی | دوکه باز [شيطان] | بيشکه الله چې دې | خاص هم دهغه سره دې
اونه دهوکه باز شيطان مو د الله ﷻ په حق کښې دهوکه کښې واچوی | بيشکه الله ﷻ ته د قيامت

۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۶، ص ۳۴۹

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عِلْمُ السَّاعَةِ | وَيُنَزِّلُ | الْغَيْثَ | وَيَعْلَمُ | مَا | فِي الْأَرْحَامِ |
| علم دقیامت دساعت | او نازلوی هغه | باران | او پیژنی هغه | هغه څه | چې په رحمونو کښې دي |
| علم دي \| او هم هغه باران وروی \| او هم هغه د رحم دننه [ماشوم] پیژنی | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا تَدْرِي | نَفْسٌ | مَّاذَا تَكْسِبُ | غَدًا | وَمَا تَدْرِي | نَفْسٌ |
| اونه پوهیږي | یو نفس | چې څه کار به کوی هغه | صباله | اونه پوهیږي | یونفس |
| او هیچاته معلومه نه ده \| چې صبا به څه کوی \| او هیچا ته معلومه نه ده چې کوم ځائې | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِأَيِّ أَرْضٍ | تَمُوتُ | إِنَّ اللَّهَ | عَلِيمٌ | خَبِيرٌ |
| چې په کومه زمکه | به مری هغه | بیشکه الله | په هر څه عالم دي | خبردار دي |
| به مړ کیږي \| بیشکه الله ﷻ ته هرڅه معلوم دی \| او په هرڅه پوهه دي | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اے خلقوا د خپل پروردگار (د ناراضګی) نه اویریږئ، او اویریږئ دهغې ورځې نه، په کومه ورځ به چه پلار د خپل ځوی په کار نه راځی، او نه به د ځوی دا جرأت وی چه هغه د خپل پلار په کار راشی. یقین اوکړئ، چه د الله تعالٰی وعده رشتونې ده. پس تاسو لره دې چرې هم دا دنیوی ژوند په دهوکه کښې وانه چوی، او تاسو لره دې چرې هم شیطان د الله تعالٰی په معامله کښې په دهوکه کښې وانه چوی (هغه شیطان) چه د ټولو نه لوئې دهوکه باز دې. یقیناً د قیامت د وخت علم الله تعالٰی سره دې هم هغه باران راوروی، او هم هغه پوهیږی، چه د میاندو په خیټو کښې څه دی، او هیچا ته دا پته نشته، چه هغه به صبا څه کار کوی، او هیچا ته دا پته نشته، چه په کومه زمکه به هغه ته مرګ راځی، بې شکه الله تعالٰی د هر څیز علم لرونکې دې، او د هرې خبرې نه پوره خبر دې.

## خلاصه تفسیر

﴿يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾ [اے خلقو دخپل رب نه ویره کوئ] اوکفر اوشرك پریږدئ ﴿وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِي وَالِدٌ عَن وَلَدِهِ﴾ [او دهغې ورځې نه وویریږئ په کومه کښې چې نه پلار دخپل ځوئ دطرف نه څه مطالبه ادا کولې شی ﴿وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِ شَيْئًا﴾ اونه څوك ځوئ شته چې هغه دخپل پلار دطرف نه یوه ذره هم مطالبه ادا کړی ] او دا ورځ خامخا راتلونکې ده ځکه چې ددې په نسبت دالله تعالی وعده ده او ﴿إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ﴾ [یقینا دالله تعالی وعده رښتونې وی ﴿فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا﴾ پس تاسولره د ددنیا ژوند په دوکه کښې وانه چوی] چې په دې کښې مشغوله شئ او ددغې ورځې نه غافله پاتې شئ ﴿وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ﴾ [اونه د تاسولره دوکه باز] شیطان [دالله تعالی په نسبت په دوکه کښې وغورزوی] چې تاسودده په دې لمسه کښې راشئ چې الله تعالی به تاسو لره عذاب درنه کړی لکه چې به یٔ وئیل [ ولئن رجعت الی ربی ان لی عنده للحسنی ] ([1]) ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ بیشکه خاص الله تعالی ته د قیامت خبردې ﴿وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾ او هغه] دخپل علم مطابق [باران وروی] پس د هغه علم قدرت هم ددې

[1]) ترجمه: او که زه خدائے ته واپس ورسولے شوم نو زما به هلته هم ښکلے برخه وی.

سره خاص دي ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ﴾ [ او هغه پوه دې څه چې] هلك يا جينۍ دحاملې [په رحم کښې دې ﴿وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا﴾ اويوسړې نه پوهيږي چې هغه به صبا څه کارکوي] په دې هم هغه عالم دي ﴿وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ﴾ [ اويوسړې نه دې پوه چې دې به په کومه مزکه مري] ددې علم هم هغه ته دې او ددې څيزونو څه تخصيص دې څومره غيب چې دي ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾ [بيشکه الله تعالى په دې هرڅه باندپوه] اود دغونه [خبردار دې] بل څوك په دې کښې شريك نشته

## معارف او مسائل

﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾ ددې دوؤ مذکوره آيتونو څيني په رومبی آيت کښې مؤمنانو ، کافرانو او عامو خلقو ته په خطاب کولو سره د الله ﷻ ، قيامت او حساب کتاب نه اوويرولي شو . او ددې دپاره د تيارئ هدايت ورته اوکړې شو ، فرمائي چې ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾ يعنى ائي خلقو ويريږئ د خپل پروردگار نه ، د لته د الله ﷻ د نورو نومونو په ځائې رب نوم راؤړو کښې اشاره دې طرفته ده چې الله ﷻ نه ويريدل ، هغسې نه دی څنګه چې زمرې ،درنده ، دښمن وغيره نه عادتا ويريدل وی . ولې چې الله ﷻ خو ستاسو رب دې ، پالونکې دې ، د هغه نه داسې څه خطره نه دی کول پکار بلکه داسې ويره تر کول پکار دی څنګه چې خپلو بزرګانو او مشرګانو نه دهغوئ د بزرګئ او لويئ په وجه کولې شی ، يا څنګه چې يو شاګرد د استاذ نه ويريږی . حالانکه دوئ يې دښمنان يا ضرر رسان ورته نه وی خو کوم هيبت او بزرګی چې د کشرانو په زړونو کښې وی هغه ددغې مشرانو په تابعدارئ باندې مجبوره کوی . دلته هم دغه مراد دې چې د الله ﷻ لوئې اوهيبت دې ستاسو په زړونو باندې وی چې تاسو د هغه مکمله فرمانبرداری په آسانئ سره اوکړې شئ .

﴿وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِي وَالِدٌ عَن وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِ شَيْئًا﴾ يعنى د هغې ورځې نه ويريږئ چې په هغه کښې به نه څوک پلار خپل ځوئې ته نفع رسولې شی اونه به څوک ځوئې پلار ته څه نفع رسان وی .

دې نه مراد هغه پلار ځوئې دی چې يو مؤمن او بل کافر وی . دوئ په خپل مينځ کښې يو بل سره هيڅ مدد نشی کولې . ددې خاص کولو وجه د قرآن پاک د نورو آيتونو او د حديث پاک د روايتونو نه ښکاره کيږی چې د قيامت په ورځ به مور پلار او اولاد د يو بل شفاعت کوی چې کامياب به هم وی(١) لکه قرآن پاک فرمائی چې ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾ يعنى چا چې ايمان راوړو او اولاد ئې هم په ايمان کښې د هغوئ تابع شو نو دهغوئ اولاد به دصالحانو مورپلار درجې ته اورسوؤ .

اګر چې د اولاد عملونه ئې ددغې درجو قابل به نه وی خو د پلارانو مياندو دنيك عمل په برکت به هغوئ ته په قيامت کښې هم دا نفع رسيږی چې د مورپلار درجې ته به رسولې شی . خو شرط دادې چې اولاد ئې مؤمنان وی اګر چې عمل ئې ددغې درجې قابل نه وی .

داشان بل يو ايت مبارك کښې راغلی دې چې ﴿جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَن صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ﴾ يعنى دهميشه اوسيدو په جنتونو کښې به داخليږی او ورسره به هغه خلق هم

---

(١) اوګورئ: المعجم الكبير رقم الحديث: ١٢٢٤٧، ومجمع الزوائد رقم الحديث: ١١٣٦٩

داخلیږي چې د دوئ مورپلار بیبیانې خاوندان ددې جوګه یعنې مؤمنان وي .
ددې دواړو آیتونو نه ثابت شو چې مور پلار او اولاد دغسې خاوندان بیبیانې ،که مؤمنان وي نو یو بل ته به په محشر کښې فائده رسولې شي ، دغه شان د حدیثو په ګڼړو روایتونو کښې منقول دي چې اولاد به د مورپلار شفاعت کول منقول دي ددې آیت مبارك دا ضابطه چې هیڅ پلار به خوې ته اوهیڅ خوې به پلار ته په محشر کښې فائده نشي رسولې دا په هغه صورت کښې ده چې یو مؤمن وي بل کافر [مظهري] [۱].
**فائده**: دلته دا خبره قابل غور ده چې پلاربه خوې ته فائده نشي وررسولې. دلته یې په جمله فعلیه کښې ﴿لَا يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ﴾ سره داسې بیان کړې شو او بل طرفته دوه تغیره اوکړې شو. یو دا چې دا جمله یې د اسمیه په صورت سره بیان کړه. بل دا چې په دې کښې لفظ د ولد په ځائې مولود اختیار کړه. په دې کښې حکمت دادې چې د جمله اسمیه په نسبت فعلیه زیاته مؤکد وي. په دې تغیر کښې یې دې طرفته اشاره اوکړه چې کومه په پلار او اولاد کښې ده چې د پلار محبت اولاد سره ډیر زیات وي . ددې برعکس د اولاد دمحبت دا درجه په دنیا کښې نه وي ، په محشر کښې د نفع رسولو نفی خو د دواړو څخه اوکړې شوه. خو د اولاد عدم نفع رسول یې مؤکد سره اوفرمائیل اود لفظ ولد په ځائې د مولود لفظ اختیارولو کښې حکمت دادې چې مولود صرف اولاد ته وئیلې کیږي او لفظ د ولد عام دې ، د اولاد اولاد ته هم وئیلې کیږي. په دې کښې د دویم طرف څخه هم ددې مضمون تائید دا شان شوې دې چې پخپله صلبي خوې به هم د پلار په کار نه راځي. نو نمسی او کړوسې وغیره د هغوی حال خو معلوم دې [چې یهڅ فائده به نشي رسولې]
په دویم آیت مبارك کښې دپنځو څیزونوعلم الله ﷻ سره خاص کړې شوې دې چې بل هیڅ مخلوق سره دهغې علم نشته دې ، او هم په دې باندې سورة لقمان ختمیږي .
﴿اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْاَرْحَامِ ۭ وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا ۭ وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌۢ بِاَيِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ ۭ﴾ یعنې الله ﷻ سره د قیامت علم دې چې دکوم کال په کومه نیټه به راځي ، اوهم هغه باران وروی او هم هغه پیژني چې دمور په خیټه کښې [ جینئ ده که هلك او په څه شکل وصورت کښې ده ] او هیڅوك نه پیژني چې هغه بهٔ صبا څه ګټي ؟ اوهیڅوك نه پیژني چې هغه به په کومه زمکه کښې مري .
په ړومبو دریو څیزونو کښې اګر چې دا په ډاګه اونه وئیلې شو چې ددې علم سوا دالله ﷻ نه بل چا سره نشته ، خو ورپسې داسې عنوان کیخودې شو چې معلومه شي چې ددې علم هم سوا دالله ﷻ نه بل هیڅوك نه لري . پاتې دوؤ څیزونو کښې خودا په ډاګه کړې شو چې ددې علم دالله ﷻ نه سوا بل څوك نه لري . هم دې پنځو څیزونو ته د سورة انعام په آیت کښې ﴿مَفَاتِحُ الْغَيْبِ﴾ وئیلې شوې دي فرمائي چې ﴿وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ ۭ﴾ یعنې یواځې الله تعالی سره د مفاتح الغیب علم شته بل هیچا سره نشته . دغه شان یو حدیث پاك کښې د دې ته مفاتیح الغیب وئیلې شوي دي [۲] . مفاتح او مفاتیح دواړه د مفتاح جمع ده . ددې معنی

---

[۱] تفسیر المظهري تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۲۶۴
[۲] صحیح البخاري، کتاب التفسیر، سورة لقمان، باب ان الله عنده علم الساعة : ج ۲، ص ۷۰۴

کنجی ده چې په هغې سره تالا پرانیستې شی ، دې نه مراد د غیب اصول دی چې د غیب معلومات پرې پرانیستې شی .

**دعلم غیب مسئله**:: ددې مسئلې ضروری تفصیل د سورة نمل دآیت ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ﴾([1]) لاندې تیر شوېدې . دې کښې دا بیان راغلی دې چې علم غیب مطلقا الله ﷻ دپاره په ښکاره خاص دې چې د ټول امت عقیده ده خوا ددې امت وړاندې خلق دی او که روستو ، اوس دې آیت کښې چې په خصوصیت سره دا بیان اوشو چې ددې څیزونو علم بل هیڅ مخلوق ته نشته ، صرف الله ﷻ ته ددې علم دې ، دا څه تخصص دپاره نه دی ګنی د سورة نمل آیت سره به ئې بې سمونی راشی ، بلکه ددې پنځو څیزونو خاص اهتمام خودلو دپاره ددې بیان راغلې دې . ددې خاص کولو او اهتمام کولو وجه داده چې انسان ددې پنځو څیزونو د معلوماتو شوق لری.دغه شان نجومیان او جوګیان او کوډګر هم دځپل علم غیب ثابتولو دپاره هم ددې پنځو څیزونو خبرونه خلقو ته ورکوی . او یو حدیث پاک کښې هم راغلی دی چې یو کس ددې پنځو څیزونو باره کښې نبی کریم ﷺ نه تپوس کړې وو چې هم دا آیت پرې نازل شو چې په کښې ددې پنځو څیزونو علم الله ﷻ سره مخصوص ګیدل ثابت شوی دی [روح]([2])

دابن عمر رضی الله عنه او ابن مسعود رضی الله عنه په روایت دا ارشاد راغلې دې ﴿اوتيت مفاتح كل شيء الا الخمس﴾ [احمد په روایت د ابن کثیر]([3]) دې کښې د اوتیت لفظ پخپله دا خبره ښکاره کړه چې ددې پنځو څیزونو نه سوا د نورو څیزونو علم رسول الله ﷺ ته دوحی په ذریعه حاصل شوې وو. څکه هغې ته علم غیب نشی وئیلې . ولې چې کوم پټ څیزونه پیغمبر ته د وحی په ذریعه یا اولیاء کرامو ته دالهام په ذریعه الله ﷻ اوښائی هغه په حقیقت کښې علم غیب نه وی چې د هغې په وجه ورته عالم الغیب اووئیلې شی بلکه هغه انباء الغیب یادیږی . الله تعالی کله چې غواړی او څومره چې غواړی خپلو فرشتو ، رسولانو او مقبول بندګانو ته ورکوی . قرآن کښې دې ته انباء الغیب وئیلې شوی دی . لکه فرمائی چې : ﴿ذَٰلِكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ﴾([4]) په دې بناء د حدیث مطلب دا شو چې دا پنځه څیزونه الله ﷻ خپل ذات سره داسې خاص کړی دی چې د انباء الغیب په صورت کښې ئې هم ددې علم چا پیغمبر یا فرشتې ته نه دې ورکړې البته د نورو غیبونو څه نه څه علم پیغمبرانو ﷺ ته دوحی په ذریعه ورکولې شی . دې تقریر سره د دې پنځو څیزونو د خصوصی ذکر بله وجه هم معلومه شوه .

**یوه شبه او دهغې جواب**: تیر شوې آیت مبارک نه دا ثابت شو چې مطلق علم الغیب کوم چې الله ﷻ سره خصوصیت لری په هغې کښې هم په خاص ډول سره دا پنځه بیان شوی څیزونه داسې دې چې علم ئې یو پیغمبر ته د وحی په ذریعه نشی ورکولې . ددې تقاضا داده چې دا څیزونه دې هیچا ته په هیڅ صورت کښې معلوم نه وی . حالانکه د امت د ډیرو اولیاء الله نه داسې بې شمیره واقعات منقول دی چې هغوئ کله دباران خبر ورکړې دې د څه حمل باره کښې ئې څه

[1]) ترجمه:اوته ووایه چه په آسمانونوکښې او دزمکے په مخ بغیر دالله تعالی نه بل هیڅوک په غیبونه پوهیږی.
[2]) روح المعانی: ج ١٥، ص ٤٧٣
[3]) مسنداحمد، مسند عبدالله بن عباس رضی الله عنهما رقم الحدیث:٥٧١٢، وتفسیرابن کثیر:ج ٦، ص ٣٥٣
[4]) ترجمه: دا دغیبو خبرونه دی چه مونږ ې تاته د وحی په ذریعه راولیږو.

خبر ورکړې دې دچا په باره کښې ئې داخبر ورکړې دې چې په آئنده کښې به دا کار کوي یا به نه کوي ، د چا د مرګ ځائې بې هم تاکلې خودلې دې او داپیشنګوئ په لیدلو کتلو سره صحیح ثابته شوه .

دغه شان ځینې نجومیان یا د رمل جفر وغیره پوهان ددې ځیزونو باره کښې خبرونه ورکوي چې کله کله صحیح هم اوخیژي . نو بیا ددې علم الله ﷻ سره څنګه خاص کیدې شي ؟

ددې خو یو جواب هغه دې چې په سورهٔ نمل کښې په تفصیل سره راغلې دې . او په لنډو اوس اوس دلته بیان شو چې علم غیب په حقیقت کښې هغې علم ته وئیلې شي چې د طبعي سبب په واسطې سره نه وي بلکه بې واسطې پخپله وي . دا ځیزونه چې پیغمبرانو ﷺ ته د وحی په ذریعه او اولیاء الله ته په ذریعه د الهام اونجومیانو ته د حسابونو او طبعي اسبابونو په ذریعه حاصل شي نو هغه علم غیب نه بلکه انباء الغیب وي چې په جزئ او شخصي معامله کښې ئې یو مخلوق ته حاصلیدل دې آیت مبارک سره بې سمونه څکه نه دي چې ددې آیت مبارک حاصل دادې چې ددې پنځو ځیزونو کلي علم چې ټولو مخلوقاتو او ټولو حالاتو نه راچاپیره دې هیچا ته الله ﷻ په ذریعه د الهام یاوحی نه دې ورکړې ، په څینې څینې واقعه کښې جزئ علم په ذریعه د الهام حاصلیدل دې سره بې سمونه نه دي .

دې نه علاوه د علم نه مراد علم قطعي دې چې الله ﷻ نه سوا د بل هیچا نشي کیدې ، ولې چې ولی ته د الهام په ذریعه حاصل شوې علم قطعي نه وي ، په هغې کښې د مغالطو ډیر احتمال نه پاتې کیږي . او د نجومیانو وغیره په خبرو کښې خو روزمره مشاهده کیږي چې په شلو دروغو کښې ددوئ په مشکله دوه خبرونه صحیح راخیژي نو دې ته علم قطعي ورته نشي وئیلې کیدې .

**دعلم غیب د مسئلې باره کښې یو مهمه فائده** :: استاد محترم مولانا شبیر احمد عثماني صاحب رحمه الله پخپلو فوائد د تفسیر[1] کښې یو مختصره ټول ارخیزه خبره کړیده چې دغسې ټول راولاړ شوي اشکالونه پرې ختمیږي . هغه دادي چې د غیب دوه قسمونه دي ، یو احکام غیبیه دي لکه دشریعت احکام چې په کښې د الله ﷻ د ذات او صفاتو علم داخل دې کوم ته چې دعقائدو علم وئیلې شي او هغه ټول شرعي احکام هم چې ترې دا معلومیږي چې د الله ﷻ کوم کارونه خوښ دي او کوم ناخوښه ، دا ټول ځیزونه هم د غیب دي .

دویم قسم د اکوان غیبیه علم یعني په دنیا کښې د راپیښیدونکو واقعاتو علم ، نو د اول قسم غائبو ځیزونو علم الله ﷻ خپلو پیغمبرانو او رسولانو ﷺ ته ورکړې دې . اودا ئې په قرآن عظیم الشان کښې داسې بیان کړې دې چې ﴿فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِ أَحَدًا ۝ إِلَّا مَنِ ارْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ﴾ یعني الله ﷻ په خپلو غیبو هیڅوک نه خبروي سوا د هغې رسول نه چې الله ﷻ ئې دې کار دپاره چونړ کړي .

او دویم قسم یعني اکوان غیبیه د دې علم کلي خو ا الله ﷻ هیچاته نه ورکوي هغه د الله ﷻ ذات سره مخصوصه دې مګر دخاص خاص واقعاتو علم جزئ کله چې اوغواړي او څومره چې اوغواړي ورکوي . په دې شا ن اصل علم غیب خو ټول په یو مخه الله ﷻ سره مخصوص دې ،

---

[1] تفسیر عثمانی تحت هذه الآیة: ج ۲،ص ۳۳۱

بیا د خپل علم غیب ځینې د غیبي احکامو علم خو د عادت له مخه انبیاء کرامو ﷺ ته د وحی په ذریعه ښائی چې هم دغه علم ددوئ ﷺ د پیغمبری مقصد دې. دغیبی اکوانو جزئ علم هم پیغمبرانو ﷺ ته دو حی یا الهام په ذریعه څومره چې الله ﷻ ته منظوره وی ورکوی چې دالله ﷻ د طرفنه ورکړې شوې علم دې، دې ته د حقیقی معنی په اعتبار سره علم غیب نشي وئیلې بلکه د غیب خبرونه ورته وئیلې شی.

**د آیت دالفاظو سره تړلې فائدې** :: دې ایت مبارک کښې په یو خاص اهتمام سره هغه پنځه ځیزونه بیانول مقصود دی چې علم ئې الله ﷻ سره مخصوص دې. ددې ظاهری تقاضا دا وه چې هم په هغه یو عنوان سره پنځه ځیزونه شمیر شوې وې او وئیلې شوې وې چې ددې علم د الله ﷻ ذات سره خاص دې. چا مخلوق ته ددې علم نه دې ورکړې شوې خو په بیان شوې آیت کښې داسې اونکړې شو بلکه د ړومبو دریو ځیزونو علم خو ئې الله ﷻ دپاره په مثبت ډول خاص کول بیان کړل او د دوؤ ځیزونو علم ئې د غیر الله نه نفی کړو او په ړومبو دریو ځیزونو کښې ئې هم دقیامت د علم بیان په دې شان اوکړو چې ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ یعنی خالص الله ﷻ سره د قیامت علم دې. او د دویم ځیز عنوان ئې په جملې فعلې سره داسې بدل کړو چې ﴿وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾ یعنی الله ﷻ باران راښکته کوی. دې کښې د باران د علم ذکر د سره نشته. بلکه صرف د راښکته کولو بیان ئې دې. د دریم ځیز بیان ئې په عنوان بدلولو سره داسې اوفرمائیلو چې ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ﴾ د عنوان دې بدلولو ته د بلاغت دکلام یو تفنن هم وئیلې شی. او په غور کولو په دې کښې څه نور حکمتونه هم معلومیږی. چې بیان القرآن کښې تهانوی رحمه الله بیان کړې دې[1]

خلاصه ئې داده چې آخری دوؤ ځیزونه پخپله د انسان د ذات متعلق حالات دی چې صبا به انسان څه کټی اودا چې په کومه زمکه کښې به مری. دې کښې پخپله دا احتمال کیدې شی چې انسان ددې علم حاصل کړی ځکه په دې دواړو کښې په خصوصیت سره د غیر الله ﷻ علم ئې نفی کړې بیان کړو. دې سره دا په ښکاره ډول ثابت شو چې د ړومبو دریو ځیزونو علم بغیر د الله ﷻ نه هیچا ته نشی کیدې. چې کله انسان خپل عملونه او کسبونه او ددې انتها یعنی مرګ او ددې ځائې نه پیژنی نو د آسمان ځیزونه دباران راښکته کیدل او د مور د خیټې د ننه په تیرو کښې پټ ځیزونه به څه اوپیژنی؟ او په آخری ځیز کښې صرف دابیان راغلې دې چې انسان صرف دمرګ د ځائې علم نه لری. سره ددې چې د مرګ ځائې یواځې نه بلکه دمرګ وخت هم انسان ته نه دې معلوم. ددې وجې داده چې د ظاهری حالاتو په بناء انسان څه قدرې پوهیږی چې چرته څوک اوسیږی هلته به مری او کم نه کم چرته به چې انسان مری هغه خو دغه وخت هم په دنیا کښې موجود وی په خلاف د مرګ د وخت نه، چې اوس موجود نه دې، په آئنده کښې به موجود شی. نو هرکله چې څوک د مرګ ځائې نشی پیژندې نو دمرګ وخت به څنګه اوپیژنی.

خلاصه دا شوه چې دیو ځیز دنفی نه خودبخود د نورو ځیزونو نفی په درجه اولی معلومیږی. ځکه ئې دواړه په منفی عنوان سره بیان کړل او ړومبی درې ځیزونه خو په ظاهری حالاتو

---

[1]) بیان القرآن تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۳٦

کښې د انسان د وس نه پخپله بهر دی په دې کښې د انسان د علم دخل نه کیدل واضح دی ، ځکه په دې کښې مثبت عنوان اختیار کړو. او خصوصیت ئې الله ﷻ سره بیان کړې شو. او په دې کښې ئې ړومبئ جمله د جمله اسمیه او وروستې دوه جملې د جملهٔ فعلیه په عنوان سره په ذکر کولو کښې شاید دا حکمت دې چې قیامت خو یو تاکلې څیز دې په کښې تجدد یعنی نوې والئ نشته په خلاف د باران د نازلیدو او حمل نه چې په حالاتو کښې یې نوې والئ هم داسې په مخه کیږی او جمله فعلیه په نوی والی باندې دلالت کوی ځکه په دواړو کښې جمله فعلیه استعمال کړې شوه او په دې دواړو کښې هم د حمل په حالاتو کښې خو د علم الهی بیان اوفرمائیلو ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ﴾ او د باران په نازلیدو کښې د علم ذکر دسره نشته ، وجه ئې داده چې دلته ئې د باران د نازولو د بیان په ترڅ کښې داهم اوخودل چې باران هم د الله ﷻ په کولو سره راځی کوم سره چې د انسان زرګونه فائدې تړلی دی. او دا د چا په تصرف کښې نه دی. او ا لله ﷻ سره ددې د علم خاصوالې خو په روانئ د کلام سره ثابتیږی. والله سبحانه و تعالی اعلم.

تمت سورة لقمان بحمد الله وسبحانه فی ۵ ذی الحجة ۱۳۹۱ هجری یوم الاثنین.

| ایاتونه | سورة السجدة مکیة وهی ثلاثون اٰیة وثلاث رکوعات | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۳۰ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان　　زیات رحم کونکې دې | ۳ |

الٓمّٓ ۞ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞

ال م | نازلیدل | ددې کتاب | چې نشته شك | په دې کښې | دطرفه درب العالمین نه دی |

الف لام میم ، دا نازل شوې کتاب دې | چې هیڅ شک په کښې نشته | درب العالمین دطرفنه راغلې دې

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۚ بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ

آیا وائی دا خلق | چې دځانه ئې جوړ کړې دې دا قرآن | بلکه دا حق دې | دطرفه درب ستانه دې |

آیا دا خلق وائی چې پیغمبر داکتاب دځانه جوړ کړې دې | نه ، بلکه داستا د رب د طرفه په حقه راغلې دې

لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اَتٰىهُمْ مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ

دپاره ددې چې ته اویروې | هغه قوم | چې نه دې راغلې هغوئ ته | څوك یرونکې | مخکښی ستانه |

چې ته پرې هغه قوم ویروې | چې ستا نه وړاندې ورته هیڅ ویرونکې نه دې راغلې

لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ ۞

دپاره ددې چې هغوئ | نیغه لار بیا مومی |

کیدې شی چې دوئ په سمه روان شی |

**آسان ترجمه قرآن**

**الٓمّٓ، درب العالمین د طرف نه دا یو داسې کتاب نازلولې شی، چه په دې کښې د شک هیڅ خبره نشته. آیا خلق وائی چه پیغمبر دا کتاب د ځان نه جوړ کړې دې؟ نا! (اے پیغمبره) دا خو هغه رښتیا دی، چه ستا د**

پروردګار د طرف نه راغلې دی چه ته ددې په ذریعې سره هغه خلق خبردار کړې، چه هغوی ته ستا نه مخکښې هیڅوک خبردار کونکې نه دې راغلې دې دپاره چه هغوی په صحیح لاره باندې راشي.

## خلاصه تفسیر

﴿الٓمٓ﴾ الله تعالی ته ددې معنی معلومه ده ﴿تَنزِيلُ الْكِتَابِ﴾[دانازل شوې کتاب دې] او﴿لَا رَيْبَ فِيهِ﴾[په دې کښې هیڅ شبهه نشته] او﴿مِن رَّبِّ الْعَالَمِينَ﴾[دا د رب العلمین دطرف نه دې] لکه چې ددې کتاب اعجاز په خپله ددې دلیل دې ﴿أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ﴾[ایا دا] منکر [خلق دا وائي چې پیغمبر] صلی الله علیه وسلم داپه [خپل زړۀ کښې جوړکړې دې ] یعنی دا وینا محض لغوه او دروغ ده دا جوړشوې نه دې ﴿بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ﴾[بلکه دارښتوني کتاب دې ستا د رب دطرف نه] راغلې دې ﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّا أَتَاهُم مِّن نَّذِيرٍ مِّن قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ﴾ [چې ته ] ددې په ذریعه [داسې خلقو لره] د الله تعالی دعذاب نه [وویروې کوموته چې تانه وړاند ویرونکې نه وو راغلې چې لار بیا مومی.

## معارف او مسائل

﴿مَّا أَتَاهُم مِّن نَّذِيرٍ﴾ دلته د نذیر نه مراد رسول دې. مطلب دادې چې دمکې په قریشو کښې د رسول الله ﷺ نه وړاندې څوک رسول نه وو راغلې. دې نه دا نه لازمیږي چې تر اوسه پورې دوی ته د پیغمبرانو ﷺ بلنه هم نه وه رارسیدلې. ځکه چې قرآن کریم بل ځائې کښې په ښکاره فرمائی چې ﴿وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ﴾ داسې یو امت او ټولې په دنیا کښې نشته چې ورته دالله ﷻ طرفته بلونکی او ترې ویرونکې نه وی راغلې.

دې ایت مبارک کښې د نذیرلفظ په خپلې عامې معنی کښې دې. یعنی الله ﷻ ته بلنه ورکونکې چې هغه رسول یا پیغمبر وی یا ددوی څوک خلیفه ،نائب یا عالم دین وی. نو دې آیت سره دا ثابتیږی چې ټولو امتونو او ډلو ته د توحید بلنه رسیدلې ده. دا په خپل ځائې صحیح درست او دالله ﷻ د عام رحمت تقاضا ده لکه ابو حیان اوفرمائیل چې د توحید او ایمان بلنه په هٔ زمانه ، په هٔ مکان او په هٔ قوم کښې چرې هم نه ده بنده شوې. کله چې په یو پیغمبرۍ باندې اوږده زمانه به تیره شوه او ددغې نبوت علم لرونکی علماء به کم پاتې شو نو څوک بل نبی به راولیږلې شو ، په دې بنا وئیلې شی چې عربو قومونو کښې به هم د توحید د ضرورت بلنه به رومبې نه ضرور رارسیدلې وی. خو ضروری نه ده چه دې دپاره دې څوک پیغمبر یا رسول ﷺ راغلې وی. کیدیشی چې دې کار دپاره دهغوی ﷺ نائبان او علماء کرام راغلی وی.

پدې سورة یا د سورة یاسین د نورو آیتونو نه چې داثابتیږی چې دعربو قریشو ته د نبی کریم ﷺ نه مخکښې نذیر نه وو راغلې. نو ضروری خبره ده چې دې نه مراد اصطلاحی رسول او نبی وی. یعنی دې قوم ته د نبی کریم ﷺ نه وړاندې څوک نبی او رسول نه وو راغلې. اګرچې په نورو ذریعو سره دغلته هم دایمان او توحید بلنه رسیدلې وی.

دفترت یعنی درسول الله ﷺ د پیغمبر کیدو نه آګاهو[مخکښې] د ډیرو حضراتو باره کښې دا ثابتیږی چې هغوی دابراهیم ﷺ او د اسماعیل ﷺ په دین باندې قائم وو. په توحید باندې د هغوی ایمان وو ، بت پرستی ئې نه کوله او بتانو دپاره د قربانۍ ورکولو نه به ئې ډډه کوله.

په روح المعانی[۱] کښې د موسی بن عقبه د مغازی نه دا روایت نقل کړې شوې دې چې زید بن عمرو بن نفیل به قریش د بت پرستئ نه منع کول. او د بتانو په نوم باندې قربانی ورکول به ئې بد ګڼړل او د مشرکانو د ذبح کړو څاروؤ غوښه به ئې نه خوړله. حالانکه د رسول الله ﷺ د پیغمبر کیدو نه اګاهو [مخکښې] هغه وفات شوې وو او نبی کریم ﷺ سره ئې ملاقات نه وو شوې. دوئ په هغه کال وفات شو چې کله قریشو د بیت الله شریف تعمیر کولو. یعنی دا واقعه دنبوت نه پنځه کاله مخکښې شوې وه[۲].

او ابو داؤدطیالسی د زید بن عمرو بن نفیل د ځوئې سعید بن زید رضی الله عنه نه چې په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې په عشره مبشره کښې داخل دی دا روایت کړې دې چې هغوئ رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چې زما دپلار چې څه حال وو هغه تاسو ته معلوم دې چې په توحید کلک او د بت پرستئ منکر وو نو آیا زه دهغه دپاره د بخښنې دعا کولې شم. نو رسول کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې آؤ هغه دپاره د بخښنې دعا کول جائز دی. هغوئ به د قیامت په ورځ د مستقل امت په صورت کښې راپاسی. [روح][۳]

دغه شان ورقه بن نوفل دپیغمبرئ د زمانې دشروع کیدو نه اود قرآن پاک د نازلیدو په ابتدائی زمانه کښې موجود وو. په توحید قائم وو. او رسول الله ﷺ سره ئې د خپل مدد اظهار کړې وو. نو دې بیا وفات شو، دا واقعات ثابتوی چې عرب قومونه هم د الله ﷻ او دایمان او توحید بلنې نه محرومه خو نه وو خو پخپله په دوئ کښې څوک نبی نه وو راغلې، والله اعلم. دې درې وارو آیتونو کښې ددې ثبوت دې چې قران پاک او رسول ﷺ په حقه دی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ | الَّذِیْ | خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ[۱۱] | |
| الله | هغه ذات دې | چې پیدا ئې کړل | آسمانونه | |
| الله هغه ذات دې چې آسمانونه اوزمکه اوددې په مینځ کښې | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْاَرْضَ | وَمَا | بَیْنَهُمَا | فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ | ثُمَّ |
| او زمکه | او هغه | چې په منځ ددې دواړو کښې دی | په شپږو ورځو کښې | بیا |
| چې څه دی هغه ئې په شپږو ورځو کښې پیدا کړی دی ......... بیا په | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ ؕ | مَا لَكُمْ | مِّنْ دُوْنِهٖ | مِنْ وَّلِیٍّ | وَّلَا شَفِیْعٍ ؕ |
| برابر شو په عرش باندې | نشته دې تاسو لره | بې دهغه نه | څوک دوست | او نه څوک سفارشی |
| عرش باندې قائم شو | د هغه نه سوا ستاسو دپاره نه څوک مددګار شته او نه څوک سفارشی | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ۝ | یُدَبِّرُ | الْاَمْرَ | مِنَ السَّمَآءِ | اِلَی الْاَرْضِ |
| آیا نو تاسو نصیحت نه قبلوئ | بندوبست کوی | دکار [دمعاملاتو] | د آسمان نه | د زمکې پورې |
| آیا تاسو ددې نه سبق نه اخلئ | هغه د آسمان نه تر زمکې پورې دهر کار بندوبست کوی | | | |

[۱] روح المعانی: ج ۱۵، ص ۴۸۵
[۲] صحیح البخاری، باب مناقب الانصار، حدیث زید بن عمرو بن نفیل: ج ۱، ص ۵۳۹
[۳] روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۵، ص ۴۸۵، ۴۸۶، ومسند الطیالسی رقم الحدیث: ۲۲۸

ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا

بیا خیژی | هغه ته | په یوه داسې ورځ کښې | چې دې مقدار دهغې | زر کاله | دهغه مودې نه

بیا به هر کار هغه ته په داسې ورځ کښې پیش کیږی | چې دهغې مقدار به ستاسو د حساب

تَعُدُّونَ ﴿٥﴾ ذَٰلِكَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيزُ

چې شماروئ ئې تاسو | هم دغه الله | عالم دې | په هر پټ | او ښکاره | غالب دې |

مطابق پوره زر کاله وی | همدا الله ﷻ دې چې په پټو او په ښکاره ټولو څیزونو عالم دې | زبردست

الرَّحِيمُ ﴿٦﴾ الَّذِي أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُ

مهربانه دې | هغه ذات | چې ډیر ښۀ ئې جوړ کړې دې | هر څیز | چې جوړ کړې دې هغه |

او مهربان دې | هرڅه چې ئې جوړ کړی دی | هغه ډیر ښه [او محکم] ئې جوړ کړی دی

وَبَدَأَ خَلْقَ الْإِنسَانِ مِن طِينٍ ﴿٧﴾ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُ

او شروع اوکړه هغه | دپیدائش دانسان | دختې نه | بیا ئې شروع کړل | پیدا کول دنسل دهغه

اود انسان پیدائش ئې د ښاورې نه شروع کړې دې | بیا د هغه نسل ئې د نچوړ شوؤ

مِن سُلَالَةٍ مِّن مَّاءٍ مَّهِينٍ ﴿٨﴾ ثُمَّ سَوَّاهُ وَنَفَخَ

دست [یعنې نطفې] نه | داوبو سپکونه | بیا ئې برابر کړو قالب دهغه | او پوک ئې کړو |

اوبې قدره اوبو نه اوچلولو | بیا ئې د هغه اندامونه روغ کړل | او په کښې ئې

فِيهِ مِن رُّوحِهِ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ

په هغې کښې | دروح خپل نه | او درې کړل | تاسو له | غوږونه | او سترګې |

دخپل طرفنه روح پوک وهلو | اوتاسو ته ئې غوږونه ، سترګې او زړونه درکړل

وَالْأَفْئِدَةَ ۚ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴿٩﴾

او زړونه | ډیر لږ دې | هغه شکر | چې تاسو ئې اوباسئ |

مګر تاسو ډیر لږ شکر ادا کوئ |

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالیٰ هغه ذات دې، چه هغه آسمانونه او زمکه او ددې په مینځ کښې ټول څیزونه په شپږو ورځو کښې پیدا کړې دی. بیا هغه په عرش باندې استواء اوفرمائیله دهغه نه ماسوا ستاسودپاره نه څوک ساتونکې شته، اونه څوک سفارشی شته لو آیا بیا هم تاسو نصیحت ته توجه نه ورکوئ؟ هغه د آسمان نه تر زمکې پورې دهر کار انتظام په خپله کوی، بیا هغه کار په داسې ورځ کښې هغه ته بره رسیږی، چه دهغې مقدار ستاسو د شمار په حساب سره زر کاله دې. هغه د هر پټ او ښکاره څیز علم لرونکې دې، دهغه اقتدار هم کامل دې، او رحمت ئې هم کامل دې. هغه چه کوم څیز هم پیدا کړې دې، هغه ئې ښائسته جوړ کړې دې او دانسان د تخلیق ابتداء ئې د ختې نه کړې ده، بیا ئې دهغه نسل د یو نچوړ شوې بیقدره(حقیرو) اوبو نه چلولې دې بیا ئې هغه برابر کړو، او په هغه کښې ئې خپل روح پوک وهلو، او

(اے انسانانو) ستاسو دپاره ئې غوږونه، سترګې او زړونه پیدا کړل، تاسو خلق ډیر کم شکر اوباسئ.

**خلاصه تفسیر**

﴿اَللّٰهُ الَّذِیْ﴾ [خاص الله تعالی دې ﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَیْنَهُمَا فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ﴾چاچې اسمانونو او مزکې لره او هغه مخلوق لره کوم چې ددې دواړو په مینځ کښې ] موجود[دی] د[شپږو ورځو] په مقدار [کښې پیداکړل ﴿ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ﴾ بیاپه عرش ] کوم چې مشابه دې د تخت د سلطنت سره داسې [قائم] او جلوه فرما [شو ] کوم چې دده دشان سره لایق دې هغه داسې عظیم دې چې ﴿مَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِیٍّ وَّلَا شَفِیْعٍ﴾[بغیرددهٔ] د رضا او اذن [نه نه ستاسو څوك مددګار شته اونه سفارش کوونکې] البته په اذن سره به شفاعت کیږي او دمدد سره به اذن متعلق نه وي ﴿اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ﴾[پس ایاتاسو پوهیږئ نه] چې د داسې ذات څوك شریك نشته او [هغه] داسې دې چې ﴿یُدَبِّرُ الْاَمْرَ مِنَ السَّمَآءِ اِلَی الْاَرْضِ﴾[داسمان نه واخله ترمزکې پورې] څومره کارونه چې دی [دهرکار] هغه [تدبیر] اوانتظام [کوی ﴿] ثُمَّ یَعْرُجُ اِلَیْهِ فِیْ یَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗۤ اَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ﴾ بیا هرکار به دهغه حضور ته رسیږي په یوداسې ورځ کښې دکومې مقدار چې به ستاسو دشمیر موافق یو زر کاله وي] یعنی په قیامت کښې به ټول کارونه او ددې متعلقات دهغه په حضور کښې پیش کیږي لکه دا قول دالله تعالی دې [والیه یرجع الامر کله][۱] ﴿ذٰلِكَ عٰلِمُ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِیْزُ الرَّحِیْمُ﴾[هغه دې پوه په پټو او په ظاهرو څیزونو زبردست رحمت والا﴿الَّذِیْۤ اَحْسَنَ كُلَّ شَیْءٍ خَلَقَهٗ﴾ هغه چې څه شي ئې جوړکړو ښه ئې جوړکړو] یعنی دکوم مصلحت دپاره چې ئې جوړکړو دهغې مناسب ئې جوړکړو ﴿وَبَدَاَ خَلْقَ الْاِنْسَانِ مِنْ طِیْنٍ﴾[او دانسان] یعنی ادم ﷺ [پیدائش ئې خاورې نه شروع کړو﴿ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهٗ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِیْنٍ﴾ بیائې د دهٔ ] انسان یعنی ادم ﷺ [نسل لره دنچوړ د اخلاطو یعنی یوبې قدره او بونه] یعنی نطفې نه کومه چې فضله ده دهضم رابع دغذاچې څلوراخلاط وینه بلغم سودا صفراپه کښې جوړیږي [جوړکړو ﴿ثُمَّ سَوّٰىهُ وَنَفَخَ فِیْهِ مِنْ رُّوْحِهٖ﴾ بیا] دموړ په رحم کښې [ئې دده اندامونه برابرکړل او په دهٔ کښې ئې] د [خپل ] طرف نه [روح پوك وهلو او] پس ستاسو دپیدا کیدو نه ئې ﴿وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ﴾ [تاسولره غوږونه سترګې او زړهٔ] یعنی ظاهری او باطنی ادراکات [درکړل ] او ددې ټولو خبرو کومې چې په قدرت او انعام باند دلالت کوی مقتضا داوه چې شکر موکولې چې ددې فرداعظم توحیددې مګر﴿قَلِیْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ﴾[تاسوخلق ډیرکم شکرکوئ] یعنی نه یې کوئ

**معارف او مسائل**

**دقیامت د ورځې اوږدوالئ** :: ﴿فِیْ یَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗۤ اَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ﴾ یعنی ستاسو په شمیر به ددغې ورځې اندازه د زرو کالو وي . او سورة معارج په آیت کښې راځی چې ﴿فِیْ یَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِیْنَ اَلْفَ سَنَةٍ﴾ یعنی ددې ورځې اندازه به پنځوس زره کاله وي.

ددې یو برابر[سیدها] شان جواب دادې کوم چې په بیان القرآن کښې اختیار کړې شوی دې ،

[۱]) ترجمه: د ټولو امور رجوع (واپسی) هم دهغه ذات طرف ته ده.

هغه دا چې داورځ به دومره هیبتناکه وي چې خلقو ته به ډیره اوږده دخپلو ګناهونو په نسبت ښکاري. ډیرو زیاتو ګناهګارو ته به پنځوس زره کاله ښکاري، او درجه په درجه دګناهونو دکموالي په نسبت به څینې ته دديې نه کمه ښکاري. تر دې چې د ټولو نه کمو ګناهګارو ته به زره کاله یعني دا اوږدوالی به دخپلو ګناهونو په نسبت وي(¹).

تفسیر روح المعاني کښې د صوفیاء کرامو او علماء کرامو نه نور هم توجیهات نقل شوي دي(²) خو هغه ټول قیاسونه دي، هغې کښې هیڅ یو توجیه هم داسې نه ده چې د قران پاک مدلول ورته اوونیلې شي یا څه یقیني خبره وي. نو د ټولو نه ښه طریقه هغه ده کومه چې سلفو صالحینو اختیار کړې ده، هغه داسې چې دلته د یو او پنځوسو فرق ئې الله ﷻ ته حواله کړې دې. او پخپله ئې فقط دومره فرمائیلي دي چې مونږ ته معلومه نه ده.

ابن عباس رضي الله عنهما ددې متعلق اوفرمائیل چې:-

﴿هما یومان ذکرهما الله تعالی في کتابه الله اعلم بهما واکره ان اقول في کتاب الله مالا اعلم﴾ [اخرجه عبدالرزاق والحاکم وصححه](³) یعني دا دوه ورځې دي چې ذکر ئې الله ﷻ پخپل کتاب کښې کړې دې. او هم الله ﷻ ددې حقیقت پیژني. او زه دا بد ګنړم چې قرآن پاک کښې داسې خبره اوکړم چې علم ئې نه لرم.

**د دنیا هریو څیز خپل ذات کښې نه دې خرابې په کښې دغلط استعمال په وجه راځي:** ﴿الَّذِيٓ أَحۡسَنَ كُلَّ شَيۡءٍ خَلَقَهُۥ﴾ یعني الله ﷻ هغه ذات دې چې هغه د هر یو څیز خلقت ښکلې او زیات غوره جوړ کړې دې ،وجه ئې دا ده چې دې جهان کښې الله ﷻ څه پیدا کړل هغه ئې د خلقو د ښیګړې دپاره پیدا کړي دي. څنګه چې هریو څیز د خپل ذات تر مخه یو ښائست لري، پدې ټولو څیزونو کښې یې زیات ښکلې او بهتر انسان جوړ کړې دې لکه پخپله الله ﷻ فرمائي چې ﴿لَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ فِيٓ أَحۡسَنِ تَقۡوِيمٖ﴾ یعني مونږ انسان په زیات ښکلي تقویم کښې او زیات غوره شکل او صورت کښې پیدا کړې دې. نور ټول مخلوقات که هر څومره خراب ښکاره شي لکه سپې، خنزیر، مار، لړم، زمرې او شرمخ وغیره ځناور چې څه په کښې زهرجن او څه په کښې درندګان دي خو د ټولې دنیا د ښیګړې په اعتباره سره په دې کښې هیڅ یو هم خراب نه دې. لکه چا څه ښه ونیلي دي چې:

نہیں ہے چیز نکمی کوئی زمانے میں — کوئی برا نہیں قدرت کے کارخانے میں

زمانه کښې هیڅ یو څیز هم بیکاره نه دې دقدرت په کارخانه کښې هیڅ یو څیز خراب نشته.

حکیم الامت رحمه الله فرمائیلي دي چې په ﴿كُلَّ شَيۡءٍ﴾ کښې جواهر او اعراض [ذوات او صفات] ټول داخل دي، جواهر یعني ذواتو نه مراد حیوانات نباتات، جمادات وغیره دي. او اعراضو یعني صفاتو نه مراد اخلاق او اعمال هم مراد دي. تر دې پورې چې کوم اخلاق خراب خودلې شي لکه غصه، حرص، شهوت وغیره دا هم پخپله خراب نه دي، دا هله خراب شي چې بې ځایه او په غلطه طریقه استعمال شي. پخپل محل کښې او په خپله طریقه چې استعمال شي نو

¹) بیان القرآن: ج ۹، ص ۲۸

²) تفصیل دپاره اوګورئ: روح المعاني تحت هذه الآیة: ج ۱۵، ص ۴۹۲

³) المستدرک للحاکم، رقم الحدیث: ۸۸۰۳، کتاب الاهوال.

په دې کښې هيڅ خراب نه دې . ددې خلاصه هم دا راؤخي چې هر يو څيز په پيدائشي ډول ښه او بهتر دې چې خرابيږي نو په خرابه طريقه او په بې محله استعمالولو سره خرابيږي . يعنې دهر يو څيز خپل محل او خپله طريقه ئې هغه ده چې الله ﷻ ئې اجازت ورکړې وي او د کومو چې اجازت نشته هغه خراب دي ، والله اعلم .

﴿وَبَدَاَ خَلْقَ الْاِنْسَانِ مِنْ طِيْنٍ﴾ دې نه مخکښې د اخودلې شوي دي چې الله ﷻ هر يو څيز ښه پيدا کړې دې ، وروستې ئې دانسان بيان اوفرمائيلو چې هغه د ټولو نه زيات ښکلې دې . دې سره ئې د خپل کامل قدرت ښکاره کولو په غرض دا اوفرمائيل چې کوم انسان مو د ټول مخلوق نه زيات غوره جوړ کړې دې ، دهغې وجه دا نه ده چې دهغه د پيدائش ماده گنې د ټولونه زياته اعلي او ښکلې ده . بلکه د ټولو ماده خو د ټولونه ذليل څيز منى نه جوړه کړې شوه . بيا قدرت کامله او حکمت بالغه دغه ذليل ترين څيز دکوم ځائې نه کوم ځائې ته اورسولو چې اشرف المخلوقات ئې اوگرځولو .

| | | |
|---|---|---|
| عَاِذَا | وَقَالُوْٓا | |
| اووائي دوئ ۔ ايا هر کله چې | | |
| او دوئ وائي چې هرکله مونږ په زمکه............ | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَلْ | لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۭ | ءَاِنَّا | فِي الْاَرْضِ | ضَلَلْنَا |
| بلکه | [بيا راپيدا کيږو] | په پيداوښت نوى کښې ۔ نو ايا مونږ به | په زمکه کښې | ورک شو مونږ |
| خبره دا ده چې............ | | نوايا مونږ به بيا دوباره راژوندي کولې شو | | کښې ختم شو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَتَوَفّٰىكُمْ | قُلْ | كٰفِرُوْنَ ۝۱۰ | بِلِقَاۗئِ رَبِّهِمْ | هُمْ |
| چې په قبضه کښې به اخلې تاسو | ورته اووايه | انکار کونکي دي | دملاقات درب خپل نه | دوئ |
| [ائې پيغمبره] اووايه چې............ | | منکر دي | دا خلق د خپل رب دملاقات نه | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ | بِكُمْ | وُكِّلَ | الَّذِيْ | مَلَكُ الْمَوْتِ |
| بيا به رب خپل ته | په تاسو | چې مقرر کړې شوى ده | هغه فرښته | فرښته دمرگ |
| نو بيا به خپل رب ته واپس | | ستاسو روحونه به قبض کوي | چې په تاسو مقرر دي | ملک الموت |

| | | | |
|---|---|---|---|
| نَاكِسُوْا | اِذِ الْمُجْرِمُوْنَ | وَلَوْ تَرٰٓى | تُرْجَعُوْنَ ۝۱۱ |
| ټيټ نيونکي وى | کله چې مجرمان خلق | او کاش چې اووينې ته | واپس کړې شئ تاسو |
| چې هغوئ به خپل خدائې ته سرونه ټيټ | | اوکاش ! ته هغه مجرمان اووينې | کولې شئ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَسَمِعْنَا | اَبْصَرْنَا | رَبَّنَآ | عِنْدَ رَبِّهِمْ ۭ | رُءُوْسِهِمْ |
| ښه واوريدل مونږه | ښه اوليدل مونږه | اے ربه زمونږه | په دربار درب خپل کښې | سرونو خپلو لره |
| ائې زمونږه ربه اوس زمونږ سترگې او غوږونه پرانستې شول | | [او وائي به] | | نيولى وى |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُوْقِنُوْنَ ۝۱۲ | اِنَّا | صَالِحًا | نَعْمَلْ | فَارْجِعْنَا |
| [اوس] يقين کونکي يو | بيشکه مونږه | نيک | چې عمل اوکړو مونږ | پس واپس اوليږه مونږه |
| زمونږ اوس يقين اوشو | | چې مونږ نيک عمل اوگړوا | | نو واپس مو دنيا ته اوليږه |

وَلَوْ شِئْنَا لَاٰتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدٰىهَا وَلٰكِنْ

او که غوښتلي مونږه | نو خامخا به ورکړې وو مونږ | هر نفس ته | هدایت دهغه [داول نه] | الیکن

او که مونږ ته منظوروې | نو هر چا ته به مو خپله لاره ورکړې وه | خوزما دطرفنه داخبره

حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّيْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ

ثابته شوه هغه خبره | دطرفه زمانه | چې خامخا به زه ډکوم | دوزخ | دپیریانونه | او دانسانانونه

فیصله شوې ده | چې دوزخ به د [بدکارو] پیریانو او بنیادمو دواړو نه ډکوم

اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۳﴾ فَذُوْقُوْا بِمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ۚ

دټولو نه | پس اوڅکئ مزه | دهغه عمل | چې هیر کړو تاسو | ملاقات | ددې ورځې ستاسو |

نو اوس [دخپل عمل] خوند اوڅکئ | څکه چې ددې ورځې راتګ مو

اِنَّا نَسِيْنٰكُمْ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا

نو بیشکه مونږ | هیر کړئ مونږه تاسو | اواوڅکئ | عذاب دهمیشوالی | په سبب دهغې عمل |

هیر کړې او ونن مونږ تاسو هیر کړئ او د خپلو عملونو په بدل کښې دهمیشه عذاب

كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴﴾ اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا

چې وئ تاسو | چې کوئ به مو | بیشکه هم دا خبره ده | چې ایمان راوړي | په آیتونو زمونږ |

خوندونه اوڅکئ | ......... بیشکه زمونږ په آیتونو باندې هغه څوک ایمان

الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا

هغه کسان | کله چې | ورته نصیحت کیږي | په دې آیتونو سره | نو پریوزي | سجده کونکي |

راوړي | چې څه وخت ورته یادولې شي | دا آیتونه نو په سجده کښې پریوځي

وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۱۵﴾ تَتَجَافٰى

او تسبیح وائي | دثنا درب خپل سره | او هغوئ | تکبر نه کوي | جدا وي |

او دخپل رب حمد او ثناء وائي | او هغوئ تکبر نه کوي | ........... د هغوئ اړخونه

جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۡ

ډډې دهغوئ | دځایونو دخوب نه | رابللی هغوئ | رب خپل | دیرې | او دطمعې سره |

دخوب دځایونونه په ډډه وي | او خپل رب ته دویرې او امید دواړو تر مینځه دعا کوي

وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۱۶﴾ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ

او دهغې رزق نه | چې ورکړې دې مونږ هغوئ ته | خرچ کوي | پس نه دې خبر | یو نفس |

او څه چې مو هغوئ ته ورکړې دی دهغې نه خرچ کوي | نو هیچا ته معلومه نه ده | چې د هغه

مَّآ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءً

دهغه څیز نه | چې پټ ساتلې شوي دي | دپاره دهغوئ | دیخوالی دسترګو نه | دپاره دجزاء |

دپاره د سترګو دیخوالی څومره ډیرنعمتونه تیار پراته دی | ........... دغه دهغوئ

بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٧﴾ اَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ

دهغه عمل | چې وو هغوئ | چې کوو به ئې | آیا پس هغه څوک | چې وي | مومن | کیدې شي پشان دهغه چا

دخپلو عملونو بدله ده | آیا څوک چې مومن وي | هغه د هغه چا پشان کیدې شي

كَانَ فَاسِقًا ؕ لَا يَسْتَوٗنَ ﴿١٨﴾ اَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

چې وي | فاسق | نه شي برابریدې دا دواړه | هر چې دی | هغه کسان | چې ایمان ئې راوړې دې |

کوم چې فاسق وي | دوئ هیڅ کله نشي برابریدې | ........چا چې ایمان راوړو او

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ جَنّٰتُ الْمَاْوٰى نُزُلًا

او کړي ئې دی عملونه | نیک | پس وی هغوئ لره | جنتونه | داوسیدو | په طور دمیلمستیا |

نیک عملونه ئې اوکړل | د هغوئ داوسیدو دپاره به باغونه وي | ..............دا به ملمستیا وي

بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٩﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ

په سبب دهغې عملونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | او هر چې دی | هغه کسان |

دهغوئ دهغه عملونو په بدله کښې کوم چه هغوی کول | .........اوکومو کسانو چې نافرمانی کړې

فَسَقُوْا فَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ؕ كُلَّمَآ اَرَادُوْٓا

چې فسق ئې اختیار کړې دې | پس ځائ داوسیدو دهغوئ | وور دې | هر کله چې | اراده اوکړي هغوئ

وی | نو د هغوئ د استوګنې ځائې اور دې | ..........کله چې ترې د وتلو اراده اوکړي

اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَآ اُعِيْدُوْا فِيْهَا وَقِيْلَ

چې اوځی | دهغې نه | نو واپس به اوورغورزولې شي | په هغې کښې | اوونیلې کیږي به |

نوهغوی به په کښې واپس اوغورزولې شي | ............................او ورته به اوونیلې شي

لَهُمْ ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿٢٠﴾

هغوئ ته | اوڅکئ | عذاب دوور | هغه وور | چې وئ تاسو | هغې لره | چې دروغ به مو ګنړلو |

چې اوس دهغې دوزخ دعذاب خوند اوڅکئ | چې تاسو به دروغ ګنړلو

وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ مِّنَ الْعَذَابِ الْاَدْنٰى دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ

او خامخا به مونږ څکوو دوئ ته | دعذاب | نزدې نه | مخکښې | دعذاب | لوئ نه |

اومونږ به ورته دهغه لوئې عذاب نه وړاندې دلته نزدې سزا هم ورکړو |

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٢١﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ

دپاره ددې چې دوئ | واپس شی [بغاوت] نه | او څوک دې | ډیر ظالم | دهغه چانه |

کیدې شي چې دوئ [حقې لارې] ته واپس شی | او د هغه چا نه غټ ظالم څوک کیدې شي

ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ثُمَّ اَعْرَضَ عَنْهَا ؕ

چې نصیحت اوکړې شي هغه ته | په آیتونو | درب خپل سره | بیا | مخ واړوی | دهغې نه |

چې دخپل رب آیتونه ورته رایاد کړې شي | اودې ترې نه بیا هم مخ اړوی

| | | |
|---|---|---|
| إِنَّا | مِنَ الْمُجْرِمِينَ | مُنْتَقِمُونَ ۝۲۲ |
| بیشکه مونږه | د داسې مجرمانو نه | خامخا بدله اخستونکي یو |

مونږ به خامخا د مجرمانو نه بدله اخلو |

## آسان ترجمه قرآن

او دا خلق وائي، چه کله مونږ په زمکه کښې (خاوړې شو) او ورک شو، نو آيا هغه وخت کښې به مونږ په نوې پيدائش سره پيدا کيږو؟ خبره په اصل کښې داده چه دا خلق د خپل پروردګار سره د ملاقات نه انکاري دي، او وایه چه تاسو لره به د مرګ هغه فرشته پوره پوره وصول کړي، کومه چه په تاسو باندې مقرر ده، بيا به تاسو واپس خپل پروردګار طرف ته بوتلې شئ. او کاش چه ته هغه منظر اووينې چه کله دا مجرمان خلق د خپل رب مخکښې سر ټيټې ولاړ وي، (وائي به چه) اے زمونږ پروردګاره! زمونږه سترګې او زمونږ غوږونه کهولاؤ شو، د دې وجې نه مونږ (دنيا ته) دوباره اوليږه، د دې د پاره چه مونږ نيک عملونه اوکړو، مونږ ته بنه طريقې سره يقين راغلې دې. او که مونږ غوختلې، نو هر سړي ته به مو (مخکښې نه) د هغه هدايت ورکړې وې، ليکن هغه خبره چه زما د طرف نه وئيلې شوې وه، مقرر شوې ده، چه: زه به جهنم لره د پيريانو او انسانانو ټولو نه ضرور ډکوم اوس (د جنهم) مزه اوڅکئ، ځکه چه تاسو د دې ورځې ملاقات هير کړې وو، مونږ هم تاسو هير کړې يئ. څه چه تاسو په (دنيا کښې) کول، د هغې بدله کښې اوس د هميشه عذاب مزه اوڅکئ. زمونږ په آيتونو هغه خلق ايمان راوړي چه د هغوی حال دا دې، چه کله هغوی ته د دې آيتونو په ذريعې سره نصيحت کولې شي، نو هغوی سجده کښې پريوځي، او د خپل پروردګار حمد سره سره د هغه تسبيح کوي، او لوئې نه کوی د هغوی اړخونه (د شپې په وخت کښې) د خپلو بسترو نه جدا وي او هغوی خپل پروردګار لره د ويرې او اميد (په جذباتو سره) رابلي او مونږ چه هغوی ته کوم رزق ورکړې دې، هغوی د هغې نه (د نيکۍ په کارونو کښې) خرچ کوي. نو هيڅ يو نفس ته پته نشته چه د د غسې خلقو د پاره د سترګو د يخ والي څه څه سامان د هغوی د عملونو په بدله کښې پټ ساتلې شوې دې آيا (اوښايئ) چه کوم سړې مومن وي، هغه د هغې سړي برابر دې، چه فاسق دې؟ (ظاهره خبره ده) چه دا برابر کيدې نشي نو چه کومو خلقو ايمان راوړې دې، او نيک عملونه کوي، د هغوی د پاره د مستقل اوسيدو د پاره باغونه دي، چه هغوی ته به د رومبۍ ميلمستيا په طور سره ورکولې شي، د هغوی د عملونو په صله کښې، کوم (عملونه) چه هغوی کول. پاتې شو هغه خلق چه نافرماني ئې کړې ده، د هغوی مستقل د اوسيدو ځائې جهنم دې، چه کله هم هغوی د دې نه وتل اوغواړي، نو واپس کولې به شي هغې ته، او هغوی ته به وئيلې شي، چه د اور کوم عذاب ته تاسو دروغ وئيل، د هغې مزه اوڅکئ. او د دې لوئې عذاب نه به مخکښې هم مونږ هغوی ته د د دې نه کمې درجې والا د عذاب مزه ضرور څکوو کيدې شي، چه دوئ منع شي او د هغه نه به لوئې ظالم څوک وي، چه هغه ته د خپل پروردګار د آيتونو په ذريعې سره نصيحت اوکړې شو، نو هغه د هغې نه مخ واړولو مونږ به يقيناً د داسې مجرمانو نه بدله اخلو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالُوٓا۟ ءَإِذَا ضَلَلْنَا فِى ٱلْأَرْضِ﴾ [او دا] کافران [خلق واني چې مونږ کله په مزکه کښې] ملاوشو [نیست نابود شو ﴿ءَإِنَّا لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍۭ﴾ نو ایا مونږ به بیا] په قیامت کښې [د نوی سره ژوندی شو] او داخلق په دې بیا پورته کیدو صرف تعجب نه کوی لکه چې په ظاهره د دوی دعنوان نه معلومیږی ﴿بَلْ هُم بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ كَـٰفِرُونَ﴾ [بلکه] په حقیقت کښې [هغه خلق دخپل رب سره دملاویدونه منکر دی] او دا استفهام د دوی انکار دې ﴿قُلْ﴾ [ته] په جواب کښې [وفرمایه ﴿يَتَوَفَّىٰكُم مَّلَكُ ٱلْمَوْتِ﴾ چې ستاسو روح دمرګ فرښته قبض کوی ﴿ٱلَّذِى وُكِّلَ بِكُمْ﴾ کومه چې په تاسو] دالله تعالى دطرف نه [مقرر ده ﴿ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ﴾ بیابه تاسو دخپل رب طرف ته واپس راوستې شئ] په جواب کښې اصل مقصود خودا [ترجعون] دې او [یتوفکم] په مینځ کښې زیاتول د ویرولو دپاره دی چې مرګ هم د فرښتې په ذریعه راځی کومې چې به تاسو دروح اخستو په وخت کښې وهی ټکوی هم لکه چې په بل ایت کښې دی [ولوتری اذیتوفی الذین کفروا الملئکة یضربون وجوههم وادبارهم الغ][1] پس دمرګ انجام صرف په خاوړو کښې ملاویدل نه شو لکه چې ستاسو دخبرې [ءاذاضللنا الغ] نه معلومیږی [او] ددې واپس کیدو په وخت کښې چې ترجعون پرې دلالت کوی ﴿وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ [که ته] ددې خلقو حال [ووینې نو عجیبه حال به ووینې هرکله چې دا مجرمان خلق] ﴿ د ډیرشرم نه [دخپل رب په وړاند سرونه ښکته کړی ] ولاړ [وی] او وائی به ﴿رَبَّنَآ﴾ [چې اے زمونږ پروردګاره] اوس ﴿أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا﴾ [زمونږ سترګې او غوږونه وسپړدې ] شول او خلاص شول او معلومه شوه چې پیغمبرانو څه وئیلی وو ټول حق وو ﴿فَٱرْجِعْنَا نَعْمَلْ صَـٰلِحًا﴾ [پس مونږ لره] دنیاته [بیا ولیږلئ مونږ به] اوس چې لاړشو ښه [نیک کارونه وکړو] ﴿إِنَّا مُوقِنُونَ﴾ اوس [زمونږ پوره یقین راغې او] دا وینا به د دوی محض بې کاره وی ځکه چې ﴿وَلَوْ شِئْنَا﴾ [که مونږ ته ] دا [منظوره وې] چې خامخا دوی په لاره شی ﴿لَـَٔاتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدَىٰهَا﴾ [نومونږ به هریو سړی ته ددهٔ ] دنجات [لاره ] مقصود ته درسیدو په درجه کښې خامخا [ورکوله] لکه چې هدایت په معنی دلاره ښودلو دوی ته ورکول کیږی ﴿وَلَـٰكِنْ حَقَّ ٱلْقَوْلُ مِنِّى﴾ [اولیکن زما] خو [دا] ازلی تقدیری [خبره ده] په ډیرو حکمتونو سره [ثابته شوې د ه﴿لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ ٱلْجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ أَجْمَعِينَ﴾ چې زهٔ به جهنم لره دپیریانو او انسانانو دواړو] کښې چې کوم کافران وی نه خامخا ډکوم ] اوبیان دځنې حکمتونو دسوره هود په اخر کښې دداسې ایت په تفسیر کښې تیرشوې دې [نو] دوی ته به ووئیلې شی چې ﴿فَذُوقُوا۟ بِمَا نَسِيتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَـٰذَآ﴾ [اوس ددې مزه وڅکئ چې تاسو خپلې دې ورځې راتلولره هیره کړې وه﴿إِنَّا نَسِينَـٰكُمْ﴾ مونږ تاسوهیر کړئ ] یعنی درحمت نه مو محرومه کړئ چې دې ته ئې هیرول مجازا ووئیل [او] مونږ چې دا وایو چې مزه وڅکئ نو دیوې دوه ورځونه بلکه ددې حقیقت دادې چې ﴿وَذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلْخُلْدِ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ [دخپلو] بدو [عملونو په وجه دهمیشه عذاب مزه وڅکئ ] داخو دکفارو حال او د دوی انجام شو وړاند دمؤمنانو دحال او

---

1) ترجمه: او که ته هغه وخت ووینې کله چه فرښتې دکافرانو روحونه قبض کوی، هغوی ددوی په مخونو او ددوی په شاګانو ګزارونه کوی.

انجام ذکر دې يعنی ﴿إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا﴾ [بس زمونږ په ايتونو خو هغه خلق ايمان راوړی چې هرکله دوی ته هغه ايتونه ورياد کړې شی نو هغوی په سجده پريوځی ] چې ددې تحقيق دسوره مريم په څلورم رکوع کښې شوې دې ﴿وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ﴾[او دخپل رب په ثناء صفت کښې شروع شی ﴿وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ۝﴾ او داخلق ] دايمان نه [تکبرنه کوی] لکه چې دکافر حال راغلې دې [وَلَّى مُسْتَكْبِرًا](۱) دا خو د دوی دتصديق او اقرار او اخلاص حال وو او دعملونو حال یٔ داې چې دشپې ﴿تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ﴾[ د دوی ډډې د خوب دخايونو نه جدا وی] خواه دفرض مونځ دماسختن دپاره ياد تهجد دمونځ دپاره هم او په دې سره ټول روايتونه جمع شول او يواځې جدانه وی [بلکه په دې طور] جدا وی﴿يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا﴾ [چې هغه خلق خپل رب لره] ثواب [په اميد سره او] داعذاب [ په ويره سره بلی ] په دې کښې مونځ او دعا او ذکر ټول راغلل ﴿وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ۝﴾[او زمونږ دورکړو څيزونو نه خرڅ کوی] مطلب دادې چې دايمان راوړونکو دا صفتونه دی چې په دې کښې څنې دنفس ايمان موقوف عليه دی او څنې دکمال ايمان ﴿فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ﴾[پس هيچاته خبرنشته چه کوم کوم د سترګو ديخوالی سامانونه دداسې خلقو دپاره په خزانه دغيب کښې موجود دی﴿ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ۝ ﴾ دا دوی ته د دوی د] نيکو[عملونو صله ملاؤده] هرکله چې دواړو فريقو حال او انجام معلوم شو [نو] اوس ووايئ ﴿أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا كَمَن كَانَ فَاسِقًا﴾[کوم سړې چې مؤمن وی ايا هغه د هغه سړی په شان به وی کوم چې بې حکم] يعنی کافر[وی] نا ﴿لَّا يَسْتَوُونَ۝﴾[هغوی په خپل مينځ کښې] نه په حال او نه په انجام سره [برابريدې نه شی ] چنانچې معلومه شوې هم ده او خاص په انجام کښې دنه برابريدو تفصيل دتاکيد دپاره بيا هم واوړیٔ چې ﴿أَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾[کوم خلق چه ايمان راوړی او دوی نيك کارونه وکړی﴿فَلَهُمْ جَنَّاتُ الْمَأْوَىٰ﴾ پس د دوی دپاره دهميشه اوسيدو جنتونه دی﴿نُزُلًا بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ۝﴾ کوم چې د دوی د] نيکو[ عملونوپه بدله کښې په طور د دوی دميلمستيا دی] يعنی دميلمه په شان به دوی ته دا څيزو نه په عزت او اکرام سره ملاويږی نه چې د سوال کوونکو محتاج په شان په بې قدرئ او بې وقعتئ سره ﴿وَأَمَّا الَّذِينَ فَسَقُوا فَمَأْوَاهُمُ النَّارُ﴾[اوکوم خلق چې بې حکم وو پس د دوی ځائ دوزخ دې﴿كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا﴾ هغه خلق چې هرکله ددې نه بهر وتل غواړی] او غاړې ته ورايسته کيږی اګر چې په وجه دڅور والی او د دروازو دجرنده کيدو وتلې نه شی مګر په داسې وخت کښې داحرکت طبعی وی ﴿أُعِيدُوا فِيهَا﴾[نو بيا به دې ته ورديکه کولې شی ﴿وَقِيلَ لَهُمْ ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ۝﴾ او دوی ته به ووئيلې شی چې د دوزخ هغه عذاب وڅکئ کوم چې تاسو دروغژن کولو] او دعذاب وعده شوې خو به په اخرت کښې وی ﴿وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ﴾[اومونږ به دوی ته دنژدې ] يعنی په دنيا کښې راتلونکې [عذاب هم﴿دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ﴾ دهغې لوئ عذاب ] چې وعده یٔ په اخرت کښې ده [نه وړاندوڅکوو] لکه مرضونه مصبتونه لکه چې په درمنثور کښې مرفوعا او موقوفا دی څکه چې مرضونه او افتونه موافق د وضاحت د قرآن اکثر د بدو عملونو په سبب سره وی

---

(۱) ترجمه: نو هغه کس ترے نه په غرور سره مخ واړوی۔

﴿لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾(۱) [ددې دپاره چې داخلق] متاثره شي دكفرنه [او اپس شي] لكه دا قول دالله تعالى دې [ظهرالفساد] تر [يرجعون] پورې بياچې څوك واپس نه شي دهغه دپاره لوئ عذاب دې [او] په داسې خلقو دعذاب راتلو څه تعجب نه دى كول پكار خكه چې ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ﴾ [دهغې سړي نه زيات ظالم به څوك وي كوم ته چې دده درب ايتونه ورياد كړې شي ﴿ثُمَّ أَعْرَضَ عَنْهَا﴾ بيا هغه ددغونه ډډه وكړي ] نو د ده دعذاب په مستحق كيدو كښې څه شبهه ده په دې وجه ﴿إِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِينَ مُنْتَقِمُونَ﴾ [مونږ به دداسې مجرمانو نه بدله واخلو]

## معارف او مسائل

﴿قُلْ يَتَوَفَّاكُمْ مَلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ﴾ دې نه وړاندې ايت كښې د قيامت منكرانو ته خبر دارې او د دوئ دتعجب كولو جواب وو چې ددوئ تعجب دا وو چې د مرګ نه پس هركله چې به ښاورو سره ښاورې شي نو دوباره به څنګه ژوندي كيږي ؟ دې آيت مبارك كښې دا بيان دې چې خپل مرګ ته خيال اوكړئ او غور اوكړئ چې هغه پخپله د الله ﷻ د قدرت يوه لويه نښداره ده . تاسو دخپل غفلت اوجهل په وجه داګنړئ چې انسان پخپله همداسې مري ، خو خبره دا نه ده بلكه د الله ﷻ په نزد ستاسو د مرګ يو وخت مقررشوې دې چې د هغې انتظام باندې فرښتې مقرر دى . ددغې فرښتو مشر او رهنما عزرائيل ﷺ دې چې د ټولې دنيا دمرګونو انتظام كوى . دالله ﷻ د طرفنه د چا چې څه وخت چرته مرګ نيټه شوې دې هم په هغه شان د هغه روح قبض كوى . دې ايت مبارك كښې هم ددې بيان دې چې په كښې ملك الموت په لفظ دمفرد ذكر شوې دې . چې مراد ترې عزرائيل ﷺ دې . خو په يو بل آيت مبارك كښې قرآن پاك فرمائى چې ﴿الذين تتوفهم الملائكة﴾(۲) دلته الملائكة جمع راوړې شوې دې ، دې كښې اشاره ده چې عزرائيل ﷺ يواځې داكار نه كوى ، ده سره نورې فرښتې هم دې كار كښې شاملې وى .

**د روح قبض كيدو او د ملك الموت په باره كښې څينې تفصيلات:** د تفسير امام مجاهد رحمه الله اوفرمائيلو چې ټوله دنيا د ملك الموت په وړاندې داسې ده لكه د يو انسان وړاندې چې يو لوښې پرانيستې پليټ كښې چې دانې پرتې وى . هغه چې كومه اوچتول غواړى هغسې اوكړى . دا مضمون د يو مرفوع حديث هم دې [ قرطبى په تذكره كښې ](۳)

او په يو حديث مبارك كښې دى چې رسول الله ﷺ هر كله چې د يو انصارى صحابى سرغاړې ته ملك الموت اوليدو نو ورته ئې اوفرمائيل چې زما صحابى سره د نرمئ سلوك كوه . ملك الموت ورته اوفرمائيل چې تاسو تسلى ساتئ زه هر يو مؤمن سره د نرمى سلوك كوم او وې وئيل چې څومره بنيادم په ښارونو ، كلو ، ځنګلونو ، غرونو او دريابونو كښې چې آباد دى زه په دوئ كښې هر يو كس د ورځې پنځه خله ګورم زه هر كشر ، مشر ، نيغ په نيغه پيژنم ، بيا ئې اووئيل چې اې محمد ﷺ زه دا هر څه د الله ﷻ په حكم سره كوم ورنه پخپله خوښه زه د يو ماشى د روح قبض كولو توان نه لرم(۴)

---

۱) ترجمه: په اوچه او لونده (هر ځائے) كښې دخلقو دبدو عملونو په وجه فساد خوريږى،دے دپاره چه الله تعالى دوى ته دځينے عملونو دسزا خوند وڅكوى شايد چه دوئ منع شي.
۲) ترجمه: چه فرښتو ترے نه روحونه د كفر په حالت كښې قبض كړى وو.
۳) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۱۴، ص ۹۴
۴) المعجم الكبير للطبراني، رقم الحديث: ۴۰۷۵، ومجمع الزوائد، رقم الحديث: ۳۹۲۸

**آیا د ځناورو روح هم ملک الموت قبض کوي !:** د حدیث ددې بیان شوې روایت نه معلومیږي چې د ماشي روح هم ملک الموت قبض کوي. امام مالک رحمه الله د یو سوال په جواب کښې دغسې فرمائیلي دي. خو د ځینې روایتونو نه معلومیږي چې فرشتې صرف دا نسانانو روحونه قبض کوي. ولې چې الله جل جلاله انسان له عزت او شرافت ورکړې دې. نور حیوانات خالص د الله جل جلاله په حکم سره د فرشتې د واسطې نه بغیر مري، [ ابن عطیه د قرطبی نه ][1] هم دا مضمون ابو الشیخ عقیلي، دیلمي وغیره د انس رضی الله عنه په روایت سره مرفوعا نقل کړې دې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې څاروی او نور دننه دزمکې مخلوق ټول د الله جل جلاله په تسبیح کښې اخته دي. [ دا ددوئ ژوند دې ] کله چې تسبیح وئیل پریږدي نو الله جل جلاله ئې روح قبض کړي، د ځناورو روح قبض کول ملک الموت ته نه دي سپارلې شوي. ددې مضمون یو حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما نه هم روایت کړې شوې دې. [مظهری][2]

په یو روایت کښې راغلي دي چې کله الله جل جلاله عزرائیل علیه السلام ته د ټولې دنیا مرګونه اوسپارل نو عزرائیل علیه السلام عرض اوکړو چې یاالله جل جلاله ! ماته دې داسې خدمت اوسپارلو چې ټوله دنیا او ټول بنیادم به راته بد وائي او ما به په بدو سره یادوي. الله جل جلاله اوفرمائیل چې مونږ ددې انتظام داسې کړې دې چې مونږ. دمرګ ظاهري سببونه کیخودل چې دهغې په وجه به ټول خلق دغې تکلیفونو، مرضونو او غمونو دردونو ته دمرګ نسبت کوي. نو تاته به څوک بد نه وائي. [ قرطبي په تفسیر ا و تذکره کښې ][3] او امام بغوی رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړې دې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې ټول مرضونه دردونه او زخمونه د مرګ پیغام راوړونکي دي، انسان ته خپل مرګ رایادوي. کله چې دمرګ وخت راشي نو ملک الموت مړکیدونکي ته داسې خطاب کوي چې ائې دالله جل جلاله بنده ما دخپلو راتلو نه وړاندې څومره خبرونه، څومره پیغامونه راوړونکي په مخه راولیږل، مرضونه او داسې پیښې مې هم درته راولیږلې چې ستا مخه د مرګ تیارۍ ته راواړوي. اوس زه راورسیدم دغسې بل څه پیغام، خبر او خبر راوړنکۍ پاتې نشو. اوس به ته ضرور دخپل رب حکم مني، که په خوښۍ وي او که په ناخوښۍ؟ [ مظهری][4]

**مسئله:** ملک الموت هم د چا د مرګ وخت وړاندې نه نه پیژني، هله خبر شئ چې د الله جل جلاله حکم ورته اوشي چې د فلاني روح قبض کړه.[احمد او ابن ابی الدنیا دمعمر نه،[مظهری][5]

﴿تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا﴾ په تیرو شوؤ آیتونو کښې کافرانو، مشرکانو او دقیامت منکرانو ته خبرداری ورکړې شوې دې، وروستو ﴿إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا﴾ نه د مخلصانو مؤمنانو خاص صفتونه او دوئ دپاره لوړ درجات بیان شوي دي. دې آیت مبارک کښې د دوئ یو صفت دا خودلې شوې دې چې د دوئ اړخونه د خپلو بسترو نه بیل کیدو سره پورته شي او

---

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٩٣

[2] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ٧، ص ٢٧١، وكنزالعمال، رقم الحديث: ١٩٢١، وتذكرة الموضوعات، رقم الحديث: ١٧٨٢

[3] ) تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٩٤، والتذكرة للقرطبي، باب ما جاء في سبب قبض ملك الموت الارواح الخلق: ج ١، ص ٧٩

[4] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ٧، ص ٢٧٠

[5] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ٧، ص ٢٧٠

د الله ﷻ په ذکر او دعا کښې مشغول شی ځکه چې دوئ د الله ﷻ د ناراضګئ او عذاب نه ویرېږی. او دهغه د رحمت او ثواب امیدوار پاتې کېږی. د امید او ویرې دا ترون دې د دعا او ذکر دپاره لیواله ساتی.

**د تهجدو مونځ**: د بسترو نه د پورته کیدو او په ذکر او دعا کښې دمشغولیدو نه مراد جمهورو مفسرینو د تهجدو مونځ او نفلونه بیان کړی دی چې د اوده کیدو نه پس د راویښیدو سره کولې شی. [داقول د حسن رضی الله عنه، مجاهد رضی الله عنه، مالک رحمه الله، او اوزاعی رحمه الله دې] څنګه چې د حدیثو د روایتونو نه هم ددې تائید کېږی.

په مسند احمد رحمه الله، ترمذی او نسائی وغیره کښې د معاذ بن جبل رضی الله عنه نه روایت دې چې هغوئ رضی الله عنه اوفرمائیل چې یو ځل زه رسول الله ﷺ سره په سفر کښې ملګرې اوم، په دغې دوران کښې یو ځل د صبا په وخت زه نبی کریم ﷺ ته ورنزدې شوم او عرض مې اوکړو چې یارسول الله ﷺ! ما ته داسې څه عمل اوښایئ چې ما په جنت کښې داخل کړی او جهنم نه مې لرې کړی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې تا دیو لوئې څیز سوال اوکړو خو چا دپاره چې الله ﷻ ئې آسانول اوغواړی نو هغه دپاره آسان شی. وې فرمائیل چې هغه عمل دادې چې د الله ﷻ عبادت کوئ او ورسره هیڅوک مه شریکوئ، او مونځ قائموئ، زکوة ورکوئ او د رمضان المبارک روژې نیسئ، دبیت الله شریف حج کوئ، او بیا ئې اوفرمائیل چې اوس درته د خیر یعنی نیکئ بابونه اوښایم؟ هغه دادی چې روژه ډهال دې، [چې عذاب نه مو ساتی] او صدقه یعنی خیرات کول د مسلمان دګناهونو اور مړ کوی. دغسې دسړی مونځ کول په نیمه شپه کښې او ددې فرمائیلو سره ئې د قرآن پاک دا آیت مبارک تلاوت کړو چې ﴿تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ﴾[1]

ابوالدرداء رضی الله عنه، قتاده رحمه الله او ضحاک رحمه الله فرمائیلی دی چې بسترونه اړخونه چې لرې ساتی دا هغه خلق هم کیدې شی چې د ماسختن مونځ په جمع اوکړی. بیا د صبا مونځ په جمع اوکړی. او ترمذی کښې په صحیح سند سره د انس رضی الله عنه نه روایت دې چې ﴿تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ﴾ د هغې مونځ ګزارو باره کښې نازل شوې دې چې دماسختن مونځ نه وړاندې اوده کیږی. اود ماسختن دمونځ په جمع سره انتظار کوی[2].

ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې دا آیت مبارک دهغه خلقو باره کښې نازل شوې دې چې د ماښام او د ماسختن د مونځ ترمینځه نفلونه ادا کوی [رواه محمد بن نصر][3] او ابن عباس رضی الله عنه ددې آیت باره کښې اوفرمائیل چې څوک کله ویښ شی دالله ﷻ ذکر په ناستې، ولاړه، او اړخ او تکیه لګولې کوی. دا خلق هم په کښې داخل دی[4].

---

[1] ) جامع الترمذی، أبواب الإيمان، باب ما جا فی حرمة الصلاة: ج ۲، ص ۸۹، ومسند أحمد، حديث معاذ بن جبل رضی الله تعالی عنه رقم الحديث: ۲۲۶۶۵

[2] ) جامع الترمذی، أبواب التفسير، باب ومن سورة السجدة: ج ۲، ص ۱۵۵ بالاختصار۔

[3] ) مجمع الزوائد، رقم الحديث: ۱۱۲۶۶، ومسند البزار، رقم الحديث: ۱۲۶۴

[4] ) روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۱۶، ص ۸

ابن کثیر اود تفسیر نورو امامانو اوفرمائیل چې په دې ټولو قولونو کښې څه بې سمونې نشته ، صحیح خبره داده چې دا آیت دغې ټولو لره شامل دې او د آخرې شپې مونځ په دې ټولو کښې زيات اعلى او زيات غوره دې ، بيان القران کښې هم دا غوره کړې شوې دې[1].

او اسماء بنت يزيد رضي الله عنها نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې کله الله ﷻ اولين او آخرين د قيامت په ورځ راجمع کړی نو د الله ﷻ د طرفنه به يو آواز کوونکې اودريږي چې آواز به ئې ټول مخلوق آوری ، هغه به په دې شان نعره کړی چې : اهل محشر به نن خبر شي چې د الله ﷻ په نزد څوک د عزت حقدار دی. بيابه دغه فرشته نعره کړی چې په اهل محشر کښې دې هغه خلق اودريږي چې صفت ئې دا وو چې ﴿تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ﴾ يعنې اړخونه به ئې د بسترو نه بيل وو. پدې آواز به دا خلق اودريږي چې شمير به ئې کم وی [ابن کثير رحمه الله ][2] او هم ددې روايت په څينې الفاظو کښې دی چې دا خلق به بې حسابه جنت ته داخل کړې شي . دې نه پس به نور ټول راپاسی چې حساب به ترې اخستې شي ، [مظهری][3]

﴿وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ ادنى د اقرب په معنى کښې دی چې د زيات نزدې معنى ورکوی . اود عذاب ادنى نه مراد ددنيا مصيبتونه ، آفتونه او مرضونه وغيره دی . اود عذاب اکبر نه مراد د آخرت عذاب دې .

**د دنيا مصيبتونه هغې خلقو دپاره رحمت وی چې الله ﷻ ته رجوع کوی** :: مطلب دادې چې الله ﷻ په ډيرو خلقو مصيبتونه دې دپاره راولی چې په خپلو خپلو ګناهونو ئې خبر کړی . او هغوئ د خپلو خپلو دغې ګناهونو نه واوړی او د آخرت د عذاب اکبر نه خلاصې بيا مومی .

دې آيت نه معلومه شوه چې ګناهګارو دپاره ددنيا مصيبتونه ، آفتونه ، مرضونه او تکليفونه هم يو قسم رحمتونه دی چې غفلت نه واوړی او د آخرت د عذاب نه خلاص شي . البته کوم خلق چې په آفتونو هم الله ﷻ طرفته راؤنه ګرځی نو هغوئ دپاره دا غبرګ عذاب شی . يو ددې دنيا نغد او بل د آخرت عذاب اکبر . په پيغمبرانو عليهم السلام او اولياء کرامو باندې راتلونکی آفتونه او مصيبتونه بل شان لری . دا په هغوئ باندې داسې امتحان او آزميښت وی چې دهغوئ د رجې ورسره پورته کولې شی ، ددې پيژند ګلو داسې کيږی چې د دغې راپيښنو په وخت هم د هغوئ زړونه جمع وی او دا ټول هر څه د الله ﷻ د طرفنه ګنړی . والله اعلم .

**دڅينې جرمونو سزا دآخرت نه وړاندې په دنيا کښې هم ملاويږی** :: ﴿إِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِينَ مُنْتَقِمُونَ﴾ دمجرمين لفظ هر قسم مجرمانو لره شامل دې او دانتقام نه مراد هم عام دې چې په دنيا کښې وی او که آخرت کښې اوکه دواړو کښې وی مګر دحديث پاک دڅينو روايتونو نه معلوميږی چې درې ګناهونه داسې دی چې سزا ئې دآخرت نه وړاندې په دنيا کښې هم ملاويږی . يو دحق په خلاف جنډو او نعرو سره ښه په ډاګه کوشش کول دويم د والدينو نافرمانی کول ، دريم دظالم سره مدد کول ، [ ابن جرير د معاذ بن جبل رضي الله عنه نه ][4].

---

[1] ) بيان القرآن: ج ۹، ص ۲۹

[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٧٠، ومسند اسحاق بن راهويه، رقم الحديث: ٢٣

[3] ) تفسير المظهرى: ج ٧، ص ٢٧٤، وشعب الإيمان، رقم الحديث: ٣٢٤٤

[4] ) المعجم الكبير، رقم الحديث: ١٦٨٦٩

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ
اوخامخا ورکړې دې مونږ | موسی ته | کتاب | پس مه کیږه ته | په شك کښې | دملاقات ددغه څیز نه
او مونږ موسی ﷺ ته کتاب [تورات] ورکړې وو | نو ته دالله ﷻ سره په ملاقات کښې هیڅ شک مه کوه

وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۝ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ
او جوړ کړې وؤ مونږ هغه | هدایت | دپاره دبنی اسرائیلو | او جوړ کړل مونږه | دهغوئ نه |
او هغه مو د بنی اسرائیلو دپاره دهدایت سبب ګرځولې وو | او په هغوئ کښې مو نور

اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا
اماما ن [مشران] | چې لاره به ئې [خلقو ته] ښودله | په حکم زمونږ سره | هر کله چې صبر اوکړو هغوئ
ډیر پیشوایان پیدا کړی وو | چې زمونږ په حکم به ئې خلقو ته نیغه لاره خودله | څکه چې دغه نیکانو

وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ۝ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ
اوو هغوئ | په ایتونو زمونږ باندې | چې یقین به ئې کوؤ | بیشکه | رب ستاسو | هم هغه به
صبر کولو | او زمونږ په آیتونو به ئې یقین کولو | ............ بیشکه ستا رب به

يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا
فیصله اوکړی | په منځ ددې بنی اسرائیلو کښی | په ورځ دقیامت | دهغه خبرو | چې وؤ هغوئ
پخپله دقیامت په ورځ ددوئ په مینځ کښې د هغه خبرو په باره کښې فیصله اوکړي | کومو کښې چې

فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۝ اَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ
په هغې کښې | چې اختلاف به ئې کولو | آیا هدایت ملاؤ نه شو دوئ ته | چې څومره ډیر
دوی اختلاف کولو | ............ آیا دوئ ددې خبرې نه هم سبق وانه خستلو | چې مونږ

اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ يَمْشُوْنَ فِيْ مَسٰكِنِهِمْ
هلاك کړې دی مونږه | مخکښې ددوئ نه | قومونه | چې ګرځي دوئ | په کورونو دهغوئ کښی
ددوئ نه وړاندې څومره قومونه هلاک کړی دی | چې نن دوئ دهغوئ په کورونو تیریږي راتیریږي

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ ؕ اَفَلَا يَسْمَعُوْنَ ۝ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا
بیشکه په دې کښی | ډیرې نښې دی | آیا دوئ اوری نه | آیا اونه ګوری دوئ | چې مونږه
بیشکه په دې کښې لوئې نښې دی | نو آیا دوئ نه آوری | آیا دوئ چرې غور نه دې کړې

نَسُوْقُ الْمَآءَ اِلَى الْاَرْضِ الْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا
بیایوؤ | اوبه | زمکې | وچې | ته | پس راوباسو مونږه | په هغې سره | فصل |
چې اوچې زمکې طرفته اوبه رسوو | ............ نو مونږ ددې په ذریعه فصلونه

تَاْكُلُ مِنْهُ اَنْعَامُهُمْ وَاَنْفُسُهُمْ ؕ اَفَلَا يُبْصِرُوْنَ ۝
چې خوراك کوی | دهغې نه | څاروی ددوئ | او نفسونه ددوئ | آیا دوئ ګوری نه |
راټوکوو | ............ چې ددوئ څاروی او پخپله دوی ئې هم اوخوری | آیا دوئ وینی نه ؟

وَيَقُولُونَ مَتٰى هٰذَا الْفَتْحُ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِينَ ۝٢٨ قُلْ

او وائي دوئ | کله به وی | دافتح [فیصله] | که یئ تاسو | رښتینی | ورته اووایه

او دوئ وائی که تاسو ریښتونی یئ نو اوښائي چې دا آخری فیصله به کله وی | ورته اووایه

يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنْفَعُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِيمَانُهُمْ

په ورځ دفیصلې به | فائده اونه رسوی | هغه کسانوته | چې کفر ئې کړې دې | ایمان راوړل د هغوئ

د فیصلې په ورځ به کافرانو ته ایمان هیڅ فائده نه ورکوی | اونه به ورته څه

وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ۝٢٩ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَانْتَظِرْ

اونه به | هغوئ ته | مهلت ملاویږی | پس اوګرزوه مخ | ددوئ نه | او انتظار کوه ته

مهلت ورکړې شی | ....................... نو ته ددوئ دوینا خیال مه ساته |او[دحق دغلبې] انتظار کوه

إِنَّهُمْ مُنْتَظِرُونَ ۝٣٠ ع

بیشکه دوئ هم | انتظار کونکی دی |

دوئ هم [لګیا دی] انتظار کوی

## آسان ترجمه قرآن

اوحقیقت دادې چه موںږ موسٰی علیه السلام ته کتاب ورکړې وو، لهٰذا (اے پیغمبره) ته ددې په ملاویدو کښې شک کښې مه پریوځه او موںږ هغه کتاب د بنی اسرائیلو دپاره هدایت جوړ کړې وو اوموںږ په هغوی کښې څه خلقو لره چه کله هغوی صبر اوکړو، داسې پیشوایان جوړ کړل، چه زموںږ په حکم سره ئې خلقو ته لاره ښودله او هغوی زموںږ په آیتونو باندې یقین لرلو. یقیناً ستا پروردګار به د قیامت په ورځ د دغې خلقو په مینځ کښې دهغې خبرو فیصله اوکړی، په کومو کښې چه هغوی اختلاف کولو. او آیا دوی (کافرانو) ته ددې خبرې نه څه هدایت ملاؤ نشو چه ددوی نه مخکښې څومره قومونه موںږ هلاک کړې دی چه دهغوی په کورونو کښې دوی په خپله ګرځی راګرځی؟ یقیناً په دې کښې دهغې خلقو دپاره لوئې نښې دی نو آیا دا خلق نه اوری ؟ او آیا دوی نه دی لیدلې، چه موںږ اوبه اوچې زمکې طرف ته راکاږو، بیا راؤباسو موںږ په هغې سره فصل، چه دهغې نه ددوی څاروی هم خوراک کوی، او دوی په خپله هم، نو آیا دوی هیڅ نه ویني؟ او دوی دا وائی، چه که تاسو رشتوني یئ، نو دا فیصله به کله کیږی؟ ورته اووایه چه: په کومه ورځ فیصله اوشی، په هغه ورځ به کافرانو ته دهغوی ایمان راوړل هیڅ فائده نه ورکوی، او نه به هغوی ته څه مهلت ورکولې شی. لهٰذا (اے پیغمبره) ته د دغې خلقو پرواه مه کوه، او انتظار کوه، دوی هم انتظار کونکې دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ﴾[اوموںږ موسی] عليه السلام [لره ] ستاسو په شان [کتاب ورکړې وو] چې په اشاعت کښې ئې ده تکلیفونه برداشت کړل دغه شان تالره هم برداشت کول پکار دی یوه تسلی خو داشوه بیا ئې دغه شان تالره هم کتاب درکړو ﴿فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ﴾[پس ته د] خپل

[دې] کتاب [په ملاویدو کښې شك مه کوه] لکه داقول دالله تعالی دې [وانك لتلقی القرآن](۱)
مطلب داچې تـه صـاحب کتـاب صاحب خطاب يې پس هرکله چې تـه دالله تعالی پـه نزد داسې
مقبول يې نوکه يو څو احمقان تانه قبلوی نو هيڅ دغم خبره نه ده يوه دتسلۍ خبره داشوه ﴿وَجَعَلْنٰهُ
هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ [اومونږ دې] کتاب دموسی عليه السلام [لره دبنی اسرائيلو دپاره موجب دهدايت
جوړکړې وو] دغـه شان ستاپه کتـاب سره بـه هم ډيروتـه هدايت وشی تـه خوشحاله اوسـه يـوه
تسلی داشوه ﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً﴾ [اومونږ په دوی] بنی اسرائيلو[کښې ډيرو لره] ددين [پيشوايان
جوړکړی وو ﴿يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا﴾ کومو چې زمونږ په حکم سره به هدايت کولو هرکله چې
هغوخلقو] په تکليف [صبرکولو ﴿وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ﴾ اوزمونږ په ايتونو يې يقين لرلو [په دې
وجه به يې ددې په اشاعت اومخلوق تـه پـه هدايت کښې مشقت براداشت کولو] دا تسلی ده
مؤمنانو ته چې تاسو خلق صبر کوئ اوهرکله چې تاسوديقين خاوندان يئ او ديقين مقتضا
صبرکول دی نو تاسوله صبر ضروری دې دغه وخت بـه مونږ تاسولره هم ددين امامان جوړکړو
دا تسلی خو د دنيا په اعتبار سره ده او يوه تسلی داخرت پـه اعتبارسره تاسوله ساتل پکاردی
او دغه کار دتسلۍ موجب دادې چې ﴿اِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ [بيشکه ستا رب به
دقيامت په ورځ ددې ټولو په مينځ کښې ] عملی [فيصله وکړی ﴿فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ﴾ په هغو
کارونو کښې په کومو کښې چې دوی په خپل مينځ کښې اختلاف کولو] يعنی مؤمنان بـه پـه
جنت کښې اوکافران به په دوزخ کښې واچوی او قيامت هم څه لرې نه دې په دې سره هم تسلی
حاصلول پکار دی او ددې مضمون په اوريدو کفارو دوه شبهې کولې شوې يوه داچې مونږ
دانه منو چې دالله تعالی زمونږ کفر ناخوښه دې لکه ديفصل نـه معلوميږی دويمـه دا چې مونږ
قيامت لره ناممکن ګڼړو وراندې د داړو ددفع دپاره دوه مضمونونه دی اول داچې دوی تـه کوم
دکفر په بدوالی کښې شبهه ده نو ﴿اَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ﴾ [ايا دوی تـه پـه
دې خبره بانـد رهنمـائی ونـه شوه چې مونږ د هغـو نـه وړانـدې] ددوی دکفر اوشرك پـه سبب
[څومره امتونه هلاك کړی دی] چې د دوی دهلاکت دطريقې نـه دارنګ دنبی دپيشګويۍ نـه
پس په طور دخرق عـادت واقـع کيـدو نـه دالله تعالی غـضب معلوميـدو چې پـه دې سره دکفر
مبغوض کيدل صفا واضح کيږی ﴿يَمْشُوْنَ فِيْ مَسٰكِنِهِمْ﴾ [دکومو داوسيدو پـه ځايونو کښې چې
داخلق] دشام دسفر په وخت کښې [ځی راځی] تيريږی ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ﴾ [يقينا پـه دې] کـار
[کښې] خو[صفانښې ] دمبغوضيت دکفر موجود [دی ﴿اَفَلَا يَسْمَعُوْنَ﴾ ايادا خلق ] ددې تيرو
امتونو قصې [نه اوری ] کومې چې مشهورې دی او پـه ژبوو ئيلې کيږی دويـم مـضمون داچې
دوی ته کومه شبهه دقيامت په نه واقع کيدو کښې ده نو ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا نَسُوْقُ الْمَآءَ اِلَى الْاَرْضِ الْجُرُزِ﴾
[ايادوی دې خبرې ته نه دی کتلی چې مونږ] د وريځو يـانهرونوغيره پـه ذريعـه [اوچې مزکې

۱) ترجمه: او يقينی خبره ده چه تا ته قرآن د حکيم او عليم ذات دطرف نه درکولے شی۔

طرف ته اوبه رسوو ﴿فَنُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا﴾ بيا ددې په ذريعه فصل پېدا كوو ﴿تَأْكُلُ مِنْهُ اَنْعَامُهُمْ وَاَنْفُسُهُمْ﴾ چې دهغې نه ددوی څاروی او دوی په خپله خوری] ﴿اَفَلَا يُبْصِرُوْنَ﴾ نو ايا داخبره شپه اوورځ [وينی نه ] داصفا نمونه ده دمرګ نه پس دژوندی كيدو لكه ډير ځايه ددې داتقرير تيرشوې دې پس دواړه شبهې دفع شوې ﴿وَيَقُوْلُوْنَ﴾ [اوداخلق ] چې دقيامت او فيصلې ذكر واوری په طور دزر راتلو او مسخرو [وائی ﴿مَتٰى هٰذَا الْفَتْحُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾ چې كه تاسو] په دې خبره كښې [رښتونی يئ نو] وښايئ دافيصله به كله وی] تاسو عبث ددې تقاضا كوئ تاسو دپاره خو دغه پوره دمصيبت ورځ ده ځكه ﴿قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِيْمَانُهُمْ﴾ [ته وفرمايه چې ددې فيصلې په روځ به كافرانوته ددوی ايمان راوړل] بالكل [نفع ورنه كړی ] او دايو صورت د دوی دبچاؤ وو او دامفقود دې [او] نفع نجات څه كوې ﴿وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ﴾ [دوی ته به مهلت هم نه ملاويږی پس ] اے پيغمبر ﷺ ﴿فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾ [ددوی خبروته خيال مه كوه] ځكه چې په خيال كولو سره به غمژن كيږی ﴿وَانْتَظِرْ اِنَّهُمْ مُّنْتَظِرُوْنَ﴾ [اوته ] د وعده شوې فيصلې ]انتظار كوه هغوی هم [ په خپل خيال كښې ستا دضرر] منتظردی لكه د دوی دا قول دې [نتربص به ريب المنون](¹) مګر معلومه به شی چې دچاانتظار مطابق د واقع دې او دچانه دې لكه داقول دالله تعالى دې د دوی په جواب كښې [قل تربصوافانی معكم من المتربصين](²)

## معارف او مسائل

﴿فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ﴾ لقائه د ملاقات معنی وركوی . اوس په دې آيت مبارك كښې د چا ملاقات چا سره ترې مراد دې . دې كښې د اهل تفسير اقوال مختلف دی . يو هغه دې چې د تفسير په خلاصه كښې اختيار كړې شوې دې چې د لقائه ضمير كتاب يعنی قرآن ته راجع دې ، په دغې بناء مطلب ئې دا راؤختو چې څنګه موسى ﷺ ته الله ﷻ كتاب وركړو ائې محمد ﷺ تاسو هم دخپل كتاب په راتلو كښې څه شك مه كوئ لكه چې په يوبل آيت مبارك كښې د قرآن پاک متعلق داسې الفاظ راغلی دی چې ﴿وَاِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ﴾(³)

او ابن عباس ﷺ او قتاده ﷺ نه ددې تفسير داسې منقول دې چې دلقائه ضمير موسى ﷺ ته راجع دې ، او په دې آيت مبارك كښې د رسول الله ﷺ ملاقات موسى ﷺ سره د كيدو خبر وركړې شوې دې . او فرمائيلی ئې دی چې تاسو په دې كښې شك مه كوئ چې ملاقات به مو د موسى ﷺ سره كيږی . نو يو ملاقات ئې د معراج په شپه ورسره شويدې چې د صحيح احاديثو نه ثابت دی بيا په قيامت كښې ئې ورسره ملاقات كيدل هم ثابت دی .

او حسن بصری ﷺ ددې تفسير دا كړې دې چې څنګه موسى ﷺ ته يو كتاب وركړې شو او خلقو هغه په دروغه اوبللو او هغه ته ئې تكليفونه وركړل ، تاسو يقين ساتئ چې دا ټول

---

(¹) ترجمه: او مونږ دده په حقله د زمانے د حادثاتو انتظار كوو.
(²) ترجمه: ته ورته ووايه چه تاسو هم انتظار كوی او زه هم تاسو سره انتظاركوم.
(³) ترجمه: او تا ته قرآن د حكيم او عليم ذات دطرف نه دركولے شی.

څیزونه به تاسو ته هم راپیښیږي . څکه تاسو ﷺ د کافرانو د تکلیفونو نه مه خفه کیږئ .
بلکه د پیغمبرانو ﷺ د سنت په ډول ئې برداشت کوئ .

**دیو قوم د مقتداء او پیشوا جوړیدو دپاره دوه شرطونه** :: ﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوا ۖ وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يُوقِنُونَ﴾ یعنی مونږ د بنی اسرائیلو ځینې څه خلق امامان او پیشوایان جوړ کړل چې دخپلو پیغمبرانو ﷺ د نائبانو په حیثیت د الله ﷻ په اجازت سره به ئې خلقو ته هدایت ورکولو کله چې هغوئ صبر اوکړو او کله چې زمونږ په آیتونو باندې یقین لرلو .
دې آیت مبارک کښې د بنی اسرائیلو د عالمانو ځینې څه عالمانو لره د امامت او پیشوایئ درجه ورکړې شوه دهغې دوه وجې بیان شوی دی . اوله صبر کول ، دویمه د الله ﷻ په آیتونو باندې یقین کول . د صبر کولو مطلب د عربئ ژبې په اعتبار سره ډیر فراخه او عام دې . ددې لفظی معنی تړل او مضبوط پاتې کیدل دی . د لته د صبر نه مراد د الله ﷻ د حکمونو په پابندئ باندې مضبوط پاتې کیدل او د هغې څیزونونه خپل نفس منع کول دی کوم چې الله ﷻ حرام یا مکروه ګرځولی دی . دې کښې د شریعت د ټولو حکمونو پابندی کول داخل دی . او دا ډیر لوئې عملی کمال دې ، دویم سبب ددې د الله ﷻ په آیتونو باندې یقین لرل . دې کښې د آیتونو په مطلب ځان پوهول او ددې نه پس پرې یقین ساتل دواړه داخل دی ، دا ډیر لوئې عملی کمال دې .
خلاصه داده چې د امامت او پیشوایئ جوګه د الله ﷻ په نزد صرف هغه خلق دی چې په علم او عمل دواړو کښې کامل وی . د طبعی ترتیب مطابق عملی کمال په علمی باندې وړاندې وی خو دلته په علمی کمال باندې عملی کمال وړاندې کولو کښې دې ته اشاره ده چې د الله ﷻ په نزد هغه علم څه اعتبار نه لری چې ورسره عمل نه وی .
ابن کثیر ﷫ د ځینې عالمانو دا قول ددې آیت په تفسیر کښې نقل کړې دې چې ﴿ بالصبر واليقين تنال الامامة فى الدين ﴾ هم د صبر او یقین په ذریعه په دین کښې د پیشوایئ درجه حاصلیدې شی[1] .
﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَسُوقُ الْمَاءَ إِلَى الْأَرْضِ الْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا﴾ آیا دا خلق نه ګوری چې مونږ اوچې زمکې ته په ځینې موقعو کښې په زمکه او به ورو چې ورسره ددوئ فصلونه راټوکیږی . جرز اوچې زمکې ته وئیلې شی چې یو بوټې په کښې نه راټوکیږی .

**دزمکې د اوبو خور خاص حکیمانه نظام** :: د اوچې زمکې خړوبولو او په دې کښې دبوټو رازرغونولو بیان ځائې په ځائې قرآن کښې داسې راغلې دې چې په دغه زمکه باندې باران

[1] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٣٧٤

وریږي . ورسره زمکه تازه شي او د زرغني کولو جوګه شي خو دې آیت مبارک کښې ئې اوفرمائیل چې د باران په ځائې زمکې ته روانې اوبه ورولو په هغې ئې خروبوؤ او زرغنه په کښې کوؤ . یعنی چرته په نورو زمکو باران اوشي ،هلته د ولو ، نهرونو او لختو په ذریعه زمکه پرې خروبوی چرته چې باران نه کیږي .

دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې ځینې زمکه دومره نرمه او کچه وی چې باران ته دټینګې نه وی که هلته پوره باران اوورولې شي نو عمارتونه به ویران شي ، ونې به دبیخه راؤغوزیږي، ځکه قدرت داسې زمکو دپاره دا نظام جوړ کړې دې چې باران په هغو زمکو ورولې شي کومې چې ددغې برداشت لرلې شي . بیا ددغې ځائې نه ولې روانې کړی داسې زمکو ته ئې اورسوی چې باران نشي برداشت کولې . لکه د مصر زمکه شوه ، او ځینې مفسرینو ددې مصداق د یمن او شام زمکې ګرځولی دی . [ځنګه چې روایت شوې دې د ابن عباس رضي الله عنه او حسن رحمه الله نه ][1] .

خو صحیح خبره داده چې دا مضمون داسې ټولو زمکو دپاره شامل دې او د مصر زمکه په خصوصیت سره دې کښې شامله ده چرته چې باران ډیر کم کیږي . خو د حبشې دملک د بارانونو اوبه د رود نیل په ذریعه مصر ته راځی او دهغه ځائې نه ښاوره ځان سره راؤړی چې په کښې د زرغونولو ماده زیاته وی په دې وجه د مصر خلق د نوؤ اوبو او نوې ښاورې نه هر کال فائده پورته کوی، سره ددې چې پخپله بارانونه په کښې نه کیږي . ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحۡسَنُ الۡخٰلِقِيۡنَ﴾

﴿وَيَقُوۡلُوۡنَ مَتٰى هٰذَا الۡفَتۡحُ﴾ یعنی کافران دا وائی چې هغه فتح به څه وخت وی د کومې بیان چې تاسو کوئی . چې مؤمنان به په کافرانو باندې غالب راځی ، موږ ته خو ددې څه نخښه نه ښکاری ، موږ خو دا ګورو چې مسلمانان په ویره ویره پټ پټ ګرځی .

ددې جواب کښې الله تعالی فرمائی چې ﴿قُلۡ يَوۡمَ الۡفَتۡحِ لَا يَنۡفَعُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡۤا اِيۡمَانُهُمۡ﴾ یعنی ائې محمد صلی الله علیه وسلم! د دوئ په جواب کښې دا اوفرمائې چې تاسو زموږ دفتح د ورځې باره کښې موږ نه څه تپوس کوئ هغه ورځ خو به ستاسو دمصیبت اوزیان ورځ وی. یعنی د فتح ورځ به ستاسو د عذاب او مصیبت ورځ وی ، که دا په دنیا کښې وی لکه د بدر په غزا کښې اوشو او که په آخرت کښې وی،اوکله چې دالله تعالی عذاب په چا باندې راشي نو بیا د هغه ایمان نه قبلیږي. [ابن کثیر][2]

او ځینې حضراتو د ﴿هٰذَا الۡفَتۡحُ﴾ معنی د قیامت ورځ کړې ده چې په خلاصه د تفسیر کښې اختیار کړې شوه. والله سبحانه وتعالی اعلم .

تمت سورة السجدة بحمد الله سبحانه فی لیلة عرفة من ذي الحجة ۱۳۹۱ هجري

---

[1] ) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱٦، ص ۲۳

[2] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ۳٦٤

| آیاتونه | سورة الاحزاب مدنية وهي ثلاث وسبعون اٰية وتسع رکوعات | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۷۳ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۹ |

| يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ | اتَّقِ اللّٰهَ | وَلَا تُطِعِ الۡكٰفِرِيۡنَ | وَالۡمُنٰفِقِيۡنَ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|
| اے نبی | او یریږه د الله نه | او مه منه خبره دکافرانو | او دمنافقانو | بیشکه الله |

انې نبی ﷺ ته د الله ﷻ نه ویره کوه او دکافرانو او منافقانو خلقو تابعداری مه کوه | بیشکه الله ﷻ

| كَانَ عَلِيۡمًا | حَكِيۡمًا ۙ | وَّاتَّبِعۡ | مَا | يُوۡحٰۤى | اِلَيۡكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دې عالم په هر څه | ښه حکمت والا | او پیروی کوه | دهغه خبری | چې دکومې وحی کیږی | تاته |

ډیر ښه پوهه او صاحب دحکمت دې | او دخپل رب نه چې درته کومه وحی کیږی | ..........

| مِنۡ رَّبِّكَ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | كَانَ | بِمَا | تَعۡمَلُوۡنَ | خَبِيۡرًا ۙ |
|---|---|---|---|---|---|
| دطرفه درب ستا نه | بیشکه الله | دې | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | ښه خبردار |

.......... | دهغې تابعداری کوه | بیشکه الله ﷻ ستاسو په کارونو خبر دې

| وَّتَوَكَّلۡ | عَلَى اللّٰهِ ؕ | وَكَفٰى | بِاللّٰهِ | وَكِيۡلًا |
|---|---|---|---|---|
| او توکل کوه | په الله باندې | او کافی دې | الله | کار جوړونکې |

اوپه الله ﷻ بهروسه کوه |... او هم هغه الله ﷻ کافی کارساز دې |

## آسان ترجمه قرآن

اے نبی! د الله تعالی نه ویریږه، او د کافرانو او منافقانو خبره مه منه بے شکه الله تعالی لوئې علم والا، لوئې حکمت والا دې .اوستا د پروردګار د طرف نه چه تا باندې کومه وحې رالیږلې کیږی، دهغې تابعداری کوه تاسو چه څه کوئ، الله تعالی یقینی طور سره دهغې نه پوره خبر دې، او په الله تعالی باندې بهروسه ساته او کار جوړولو دپاره الله تعالی بالکل کافی دې،

## خلاصه تفسیر

﴿يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللّٰهَ﴾ [ اے نبی د الله تعالی نه ویره کوه] دبل چانه ویره مه کوه او د دوی په دوره دباؤ ذره پرواه ونه کړې ﴿وَلَا تُطِعِ الۡكٰفِرِيۡنَ وَالۡمُنٰفِقِيۡنَ ؕ﴾ [او د کافرانو [کوم چې په ډاګه د دین خلاف مشورې کوی [او دمنافقانو] کوم چې په پټه دهغوی سره یودی] خبره مه منه [بلکه دالله تعالی خبره منه] ﴿اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا ۙ﴾ [بیشکه الله تعالی لوئ علم والا لوئ حکمت والا دې ] دهغه هریو حکم په فائدو او مصلحتونو باند مشتمل دې [او] دالله تعالی خبره منل دادی چې ﴿وَّاتَّبِعۡ مَا يُوۡحٰۤى اِلَيۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ ؕ﴾ [ستاد پروردګار دطرفه چې کوم حکم په تا وحی کیږې په هغې چلیږه] او اے خلقو ﴿اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرًا ۙ﴾ [بیشکه ستاسو دخلقو دټولو عملونو نه الله تعالی پوره پوره خبردار دې] په تاسو کښې چې څوک زمونږ دپیغمبر مخالفت او مزا حمت

کوي مونږ به دتولو سره پوره شو [او] اے نبي [ته] ددې خلقو د دوره دباؤ په معامله کښې ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۚ﴾ [په الله تعالى توکل ساته ﴿وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا﴾ او الله تعالى پوره کارساز دې] دهغه په مقابله کښې ددې خلقو هیڅ تدبیر نه شي چلیدې په دې وجه هیڅ فکر مه کوه البته که دالله تعالى حکمت د څه امتحان مقتضي شي او دهغې په وجه څه عارضي تکلیف درته ورسیږي نو دا ضرر نه دې بلکه عین نفع ده

## معارف او مسائل

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللّٰهَ﴾دا مدني سورت دې ، ددې زیات مضمونونه دې باره کښې دي چې رسول الله ﷺ الله تعالى سره خصوصیت لري او د الله تعالى محبوب دې ، په دغې سلسله کښې دابیان راغلي دې چې د نبي کريم ﷺ تعظیم کول واجب دی او ورته زیان رسول حرام دی. دابیان په مختلفو عنوانونو سره شوېدې.دسورة نورمضمونونه هم ګویا کښې ددغې بیان مکمل کول دی.

**شان نزول** :: ددې سورت د نازلیدو باره کښې څو روایتونه منقول دی. یو دا چې کله رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو نو هلته د مدینې منورې چا پیر چل کښې د یهودو قبیلې بنوقریضه بنونضیر او بنو قینقاع وغیره آبادې وې. د رحمة للعالمین کوشش او خواهش دا وو چې داخلق مسلمانان شی ، ناڅاپه د دوئ یو څو کسان د نبي کريم ﷺ خدمت کښې حاضریدل شروع شو.دوئ اصل کښې منافقان وو چې دمسلمانئ دعوی ئې کوله. نبي کريم ﷺ دا غنیمت اوګنړل چې که دوئ مسلمانان شي نو نورو ته به د اسلام بلنه ورکول آسان شی. څکه به نبي کريم ﷺ دغه خلقو سره ناکام [ګذاره] کولو. د دوئ د مشرانو ، کشرانو به ئې ډیر خاطر کولو ، که دوئ به څۀ خراب کار اوکړو نو ددینی ښیګړې په خاطر به پرې نبي کريم ﷺ غوږونه کانړه کړل څکه په دې باره کښې د سورۀ احزاب دا ړومبی آیتونه نازل شو [ قرطبی][1].

ابن جریر رحمہ اللہ د ابن عباس رضی اللہ عنہ نه ددې د شان نزول باره کښې نقل کړی دی چې هجرت نه پس د مکې مکرمې څه کافران ولید بن مغیره او شیبه بن ربیعه مدینې منورې ته راغلل او رسول الله ﷺ ته ئې دا پیشکش اوکړو چې مونږ د مکې مکرمې ټول قریش به خپل نیم مال تاسو ته درکړو خو دا د پیغمبرئ دعوی پریږدئی. دغه شان د مدینې منورې منافقانو او یهودو نبي کريم ﷺ ته دا دهمکی ورکړه که تاسو ﷺ د خپلې دعوې نه روستو نه شوئ نو مونږ به تاسو لره اووژنو نو پدې موقع دا آیتونه مبارک نازل شو[2].

دریمه واقعه ثعلبي او واحدي بغیر د سند نه دا نقل کړې ده چې ابوسفیان ، عکرمه بن ابی جهل او ابوالاعور سلمي په هغه زمانه کښې مدینې منورې ته راغلل چې صلح حدیبیه په دې شوې وه چې دمکې کافران او مسلمانان به یو بل سره جنګ نه کوی.

دغه خلقو رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چې تاسو زمونږ د معبودانو بد بیانول پریږدئی ، صرف دومره وایئ چې دا معبودان به هم شفاعت کوي او فائده به رسوی. چې داسې اوشی نو مونږ به تاسو او ستاسو رب خپلې مخې ته پریږدو. او جګړه به ختمه شی.

---

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ١١٤
[2] ) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ١٦، ص ٢٨

رسول الله ﷺ او ټولو مسلمانانو ته د غه خبره ډيره بده او ناکاره ښکاره شوه ، مسلمانانو ني د وژلو تکل اوکړو خو رسول الله ﷺ منع کړل چې داسې څکه نشي کيدې چې مونږ دوئ سره د صلح لوظ ،قول کړې دې . په دغه موقعه دا آيتونه نازل شو [روح](۱)
دا روايتونه اګر چې مختلف دی خوبې سمونی په کښې هيڅ هم نشته . څکه دغه ټول واقعات ددغې آيتونو شان نزول جوړيد شی .
دې آيتونو کښې رسول الله ﷺ ته دوه حکمونه کړې شوی دی ، اول دا چې ﴿اِتَّقِ اللّٰهَ﴾ يعنی الله تعالی نه اوويريږئ. او بل : ﴿وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ﴾ يعنی د کافرانو خبره مه منئ . الله تعالی نه دويرې کولو حکم څکه ورکړې شو چې ددغه خلقو قتلول ، لوظ ، قول ماتول وو چې حرام دی . او د کافرانو د خبرې نه منلو حکم ورته څکه اوشو چې د دغې خلقو ټول فرمائشونه د منلو جوګه نه وو ، تفصيل ئې مخکښې راځی .
﴿يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللّٰهَ﴾ الله ﷻ رسول کريم ﷺ ته داخاص عزت ورکړې دې چې په ټول قرآن کريم کښې ئې لکه د نورو پيغمبرانو ﷺ په نوم مبارک سره مخاطب نه دې ګرځولې . لکه يا آدم ، يانوح يا ابراهيم ، ياموسی ، نو نبی کريم ﷺ په نوم مبارک سره نه بلکه په لقب يعنی د رسول يا نبی وغيره سره مخاطب ګرځولې شوی دی . صرف په څلورو ځايونو کښې د نبی کريم ﷺ نوم مبارک څکه راغلې دې چې هلته دهغوئ پيغمبری ضباطول ضروری وو .
دې خطاب کښې نبی کريم ته دوه حکمونه ورکړې شوی دی . يو د الله ﷻ نه د ويريدو چې د مکې مشرکانو سره کړې لوظنامې خلاف ورزی او نه شی . بل حکم د مشرکانو ، منافقانو او يهودو د خبرې نه منلو حکم ورته شوې دې . دلته دا سوال پيدا کيږی چې هر کله نبی کريم ﷺ د هر قسم ګناه نه معصوم دې ، وعده خلافی هم ګناه کبيره ده . اود کفارو او مشرکانو کومې خبرې چې په شان نزول کښې پورته بيان شوی دی د هغې منل هم ګناه عظيم ده.نو دوئ پخپله ددې څخه محفوظ وو. بيا ددې حکم ضرورت ولې راپيښ شو .
روح المعانی کښې دی چې ددې منع کولو مراد په آئنده کښې هم په دې احکامو باندې قائم پاتې شی(۲) څنګه چې په دغه واقعه کښې رسول کريم په دې باندې قائم پاتې شو . اود ﴿اِتَّقِ اللّٰهَ﴾ حکم ئې څکه مقدم کړو چې مسلمانانو ددغې مشرکانو د د وژلو اراده کړې وه چا سره چې د صلح لوظنامه شوې وه . په دې وجه د وعده خلافی څخه د بچ کيدو هدايت لفظ ﴿اِتَّقِ اللّٰهَ﴾ په ذريعه مقدم کړې شو.په خلاف د کافرانو ، مشرکانو او يهودو دخبرې نه منل نو ددې اراده هيچا نه وه کړې څکه ئې روستو کړه .
څينې مفسرينو حضراتو فرمائيلی دی چې ددې حکم مطلب مسلمانانو د امت ته آورول دی اګر چې خطاب رسول کريم ﷺ ته دې . ولې چې نبی کريم ﷺ نه خو ددې څه احتمال نه شو کيدې ، نو په دې ډول دغه حکم ډير مهم اوګرځيدو چې هرکله پخپله نبی کريم ﷺ ددې حکم مخاطب دی نو د امت بل څوک غرې به ددې څخه څنګه پاتې شی .
او ابن کثير رحمہ اللہ فرمائيلی دی چې دې آيت مبارک کښې دا کافرانو او مشرکانو د اطاعت نه

---

(۱) روح المعانی: ج ۱۶، ص ۲۸، والدرالمنثور:ج ۸، ص:۱۲۱
(۲) روح المعانی: ج ۱۶، ص ۲۹

منع ده یعنی دَ کافرانو اومنافقانو خبرې مه منه اومه دَ هغوی په مشورو باندې کاربند کيږه او مه دَ هغوی خبرې دَ قبليدو په اراده اوره(۱). ولې چې په دا صورت کښې ترې مشوره اخستل راپيښيدې شی ، پدې بناء د خبرې نه منلو حکم ورته ورکړې شو چې دعادت ترمخه مشوره کول او زياته ناسته پاسته چا سره کول د هغه دخبرې منلو سبب جوړيږی. خلاصه دا شوه چې دلته ئې نبی کريم ﷺ دخبرې منلو د اسبابو څخه منع کړې دې څکه چې دخبرې منلو احتمال خو د نبی کريم ﷺ نه بيخی نشو کيدې.

پاتې شو دا سوال چې په مذکوره آيت مبارك کښې د کافرانو د طرفه خلاف شرع او خلاف حق خبرو کولو اظهار خو څه بعيد نه دی د هغوئ داطاعت منع کول هم ښکاره دی. مګر که منافقانو نبی کريم ﷺ ته د اسلام خلاف څه خبره اوکړه نو بيا خو هغوئ منافقين پاتې نشو په ښکاره کافر شو ، ددوئ د جدا ذکر کولو څه ضرورت وو؟ جواب دادې چې کيدې شی چې منافقانو په ښکاره داسلام خلاف څه خبره نه وی کړې خودنورو کافرانو په تائيد کښې يې څه جمله وئيلې وی.

دمنافقانو کومه واقعه چې په شان نزول کښې پورته بيان کړې شوې ده که هغه د نازليدو سبب اوګرځولې شی نو پدې کښې څۀ اشکال نشته څکه چې ددې واقعې اعتبار سره نبی کريم منع کړې شوې دې. چې دې د مسلمانئ دعوئ کوونکويهودو سره زياته همدردی مه کوئ.

ددې آيت مبارک په آخر کښې ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ فرمائيلو سره دا حکمت بيان کړې شو چې کوم پورته ورکړې شوی دی چې کله الله ﷻ نه ويريږئ او د کافرانو اومنافقانو خبرمه منئ څکه چې د عواقب امور او نتائج پيژندونکې صرف الله ﷻ دې چې حکيم ذات دې. هم هغه ذات دبندګانو خيګړې پيژنی. دا يې په دې وجه اوفرمائيل چې د منافقانو او کافرانو څينې خبرې داسې هم وې چې هغې د شر او فساد کميدل او خپلو کښې د رواداری فضا قائميدل وغيره فوائد حاصليدې شو. خو الله ﷻ ددې څخه منع اوفرمائيل چې دې خلقو سره رواداری د مصلحت څخه خلاف د ه او ددې انجام ښه نه دی.

﴿وَاتَّبِعْ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا﴾ دا هم مخکښې حکم تکمله ده چې ائې نبی ﷺ د کافرانو او منافقانو په خبرو کښې مه راځئ. د هغوئ خبره مه منئ بلکه ائې نبی ﷺ او صحابۀ کرام د هغې تابعداری کوئ چې د وحی په ذريعه تاسو ته خولې شوې ده . هرکله چې په دې خطاب کښې صحابه کرام ﷺ او عام مسلمانان هم شامل دی څکه ئې دې دپاره په آخر کښې د جمع صيغه راوړله او ﴿بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ سره خبرداري ورکړې شو.

﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا﴾ دا هم د هغې حکم تکميل دې په کوم کښې چې الله ﷻ فرمائی چې ائې نبی ﷺ د خلقو په خبرو باندې غوږ مه ايږده او دخپل مقصد په کاميابئ کښې يواځې په الله ﷻ تکيه کوی ، څکه چې هم هغه کافی کارساز دې چې هغه موجود دې نو تاسو ته د بل چا د روا دارئ ضرورت نشته دې.

**مسئله**: دې بيان شوی آيتونو نه ثابته شوه چې په دينی کارونو کښې د کافرانو نه مشوره اخستل هم جائز نه دی ، البته کوم څيزونه چې تجربې وغيره سره تعلق لری هغې کښې ترې مشوره اخستل څه بديت نه لری. والله اعلم.

---

۱) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٣٧٥

مَا جَعَلَ اللّٰهُ

| نهٔ دی پیدا کړی | الله |

| ............... الله ﷻ دهیچا

لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ ۚ وَمَا جَعَلَ اَزْوَاجَكُمُ

یو سړی لره | دوه زړونه | په دننه بدن دهغه کښې | اونهٔ دی ګرځولی | ښځې ستاسو |

په سینه کښې دوه زړونه نه دی پیدا کړي | اوتاسو چې دکومو ښځو نه ظهار اوکړئ.

الّٰٓئِيْ تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ وَمَا جَعَلَ

هغه ښځې | چې تاسو ظهار کوئ | دهغوئ سره | میندې ستاسو | اونهٔ ئې دی جوړ کړی |

هغه ئې ستاسو میاندې نه دی ګرځولي | اونه ئې ستاسو په خوی توب سره نیولی هلکان [په رښتیا]

اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ ؕ ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ ؕ

دخلې بللی خامن ستاسو | حقیقی ځامن ستاسو | داخبری دی ستاسو | په خلو ستاسو |

ستاسوحقیقی خامن ګرځولی دی | ............... داخو هسې ستاسو دخلې خبرې دی

وَاللّٰهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيْلَ ۝ اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ

او الله | وائی | حق | او هغه | ښائی | لاره صحیح | رابلئ دوئ | پلارانو خپلو ته |

اوالله ﷻ حقه خبره کوی | او هغه نیغه لار ښائی | ............ دغه هلکان دخپلو پلارانو په نومونو بلئ

هُوَ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ لَّمْ تَعْلَمُوْٓا اٰبَآءَهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ

دا ډیره دانصاف خبره ده | په نز دالله | اوکه معلوم نهٔ وی تاسو ته | پلاران ددوئ | پس دوئ رونړه دی ستاسو

دا خبره د الله ﷻ په نزد ډیره دانصاف ده | نوکه تاسو ئې پلاران نه پیژنئ | نوهغوئ ستاسو دینی رونړه

فِي الدِّيْنِ وَمَوَالِيْكُمْ ؕ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْمَآ

په دین کښې | او دوستان دی ستاسو | او نشته په تاسو باندې | ګناه | په هغې کښې |

او دوستان دی | ............ اوکه په دې کښې درنه څه غلطی اوشی | نو هیڅ ګناه

اَخْطَاْتُمْ بِهٖ ۙ وَلٰكِنْ مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوْبُكُمْ ؕ

چې خطاشئ تاسو | په هغې | اولیکن شته ګناه | په هغې کښې | چې دکومې اراده اوکړی | زړونه ستاسو

درباندې نشته | خو ګناه په هغه صورت کښې ده | چې څه تاسو د زړه په اراده سره اوکړئ

وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝

او | دې الله | بښونکې | مهربانه |

اوالله ﷻ بښونکې اومهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالی د هیڅ یو سړی په سینه کښې دوه زړونه نه دی پیدا کړي. او تاسو چه کومو ښځو لره د مور د ملا سره تشبیه ورکوئ، (الله تعالی) هغوی لره ستاسو میاندې نه دی جوړې کړي او نه ئې ستاسو په خولې

بللې شوې ځامنو لره ستاسو حقيقي ځامن جوړ کړې دي، دا خو صرف خبرې دي ، چه تاسو ئې په خپلو خولو بانديې وايئ، او الله تعالى هغه خبره وائي، چه حق وي، او هم هغه نيغه لار ښائي، تاسو دغې (په خوله بللې شوې) ځامنو لره دهغوي د پلارانو نومونو سره رابلئ، هم دا طريقه د الله تعالى په نزد پوره انصاف والا ده او که تاسو ته دهغوي پلاران معلوم نه وي، نو هغه ستاسو ديني ورونړه او ستاسو دوستان دي او ستاسو نه چه کومه غلطي اوشي دهغې په تاسو بانديې هيڅ ګناه نشته، البته چه کومه خبره تاسو دخپل زړه په قصد سره او کړئ (په هغې بانديې ګناه شته) بې شکه الله تعالى ډير بخښونکې او ډير مهربانه دې.

## خلاصه تفسير

﴿مَا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ﴾ [الله تعالى ديوسړي په سينه کښې دوه زړونه نه دي جوړ کړي او] دغه شان ﴿وَمَا جَعَلَ اَزْوَاجَكُمُ الّٰٓـِٔيْ تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ اُمَّهٰتِكُمْ﴾ [ستاسو هغو بيبيانو لره دکومو سره چې تاسو ظهار کوئ ستاسو ميندې نه دي جوړې کړي او] دغه شان پوه شئ چې ﴿وَمَا جَعَلَ اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ﴾ [ستاسو دخلې وئيلو ځامنولره ستاسو] رښتوني [ځامن] هم [نه دي جوړ کړي ﴿ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ﴾ دا ستاسو دخلو وئيلې خبره ده ] چې غلطه ده د واقع مطابق نه ده ﴿وَاللّٰهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيْلَ﴾ [او الله تعالى حقه خبره کوي او هم هغه نيغه لار ښائي] او هر کله چې ستاسو په خلې وئيلې ځوئ په واقع کښې ستاسو ځوئ نه دې نو ﴿اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ﴾ [تاسو دوی ته] دمتبنی جوړونکی ځوئ مه وايئ بلکه [د دوی د] حقيقی [پلارانو طرف ته نسبت کوئ ﴿هُوَ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ﴾ دا د الله تعالى په نزد حقه خبره ده ﴿فَاِنْ لَّمْ تَعْلَمُوْٓا اٰبَآءَهُمْ﴾ او که تاسو د دوی پلاران نه پيژنئ نو ] دوی ته خپل ورونړه يا خپل دوستان وايئ بلئ ئې ځکه چې اخر ﴿فَاِخْوَانُكُمْ فِي الدِّيْنِ وَمَوَالِيْكُمْ﴾ [هغه ستاسو ديني ورونړه دي او ستاسو دوستان دي ﴿وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْمَآ اَخْطَاْتُمْ بِهٖ﴾ او تاسو نه چې په دې کښې کومه غلطي وشي نو په دې کښې په تاسو هيڅ ګناه نشته ﴿وَلٰكِنْ مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوْبُكُمْ﴾ ليکن البته کومه چې تاسو په زړه سره اراده وکړی ووايئ] نو په دې سره به ګناه وي [او] که د دې نه هم معافی وغواړئ نو معاف به شئ ځکه ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا﴾ [چې الله تعالى غفور رحيم دې]

## معارف او مسائل

﴿مَا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ﴾ په تير شوؤ آيتونو کښې رسو ل کريم ﷺ ته الله ﷻ دا هدايت کړې دې چې د کافرانو او مشرکانو په مشورو باندې د عمل کولو او د خبرې منلو نه ئې دده کوه. اوس په دې آيتونو کښې د کافرانو د درې رسمونو او د باطلو خيالاتو رد کوی . ړومبئ خبره دا وه چې د جاهليت د زمانې عربو کښې د ډير ذهين بنده باره کښې به يې داسې وئيل چې دده په سينه کښې دوه زړونه دی ،ددغې عربو يو بل رسم دا وو چې خپله ښځه به ئې د خپلې مور د شا يا دبل اندام پشان يو ځل او بلله نو هميشه دپاره به ئې په ځان حرامه ګنړله. او هيچرې به ئې بيا خپله ښځه کوله نه . دې عمل ته به ئې ظهار وئيلو. دا دظهر نه مشتق دې او ددې معنی ملا ، او شا ده.

دريم رسم دا وو چې چا به يو پردی هلک ته ځوئې اووئيلو نو هغه به د هغه د اصلی ځوئې پشان بللې شو او په هر څه کښې به د اصلی ځوئې پشان ګرځولې شو. لکه په ميراث کښې به

هم د اصلي ځوئي پشان حصه دار و ددغې خاندان کومې زنانه به چې په اصلي ځوئي باندې حرام وې ، هغه به په دغې پرکتې یعني ناځکه ځوئي هم حرامې وې ، او داسې به هم وه چې ځنګه د اصلي ځوئي ښځه د هغه په پلار یعني اصلي سخر باندې همیشه دپاره حرامه وه اګر چې ځوئي ئې طلاق هم ورکړې وی دغسې به د پرکتې ښځه هم همیشه دپاره دهغې پلندر سخر باندې حرامه ګرځولې شوه.

د جاهلیت د زمانې دادرې باطل خیالونه او رسمونه وو ، په دې کښې رومبنۍ خبرې اګر چې مذهبي عقیدې یا عمل سره تعلق نه لرلو ځکه اسلامي شریعت ته ددې تردید کولو ضرورت نه وو ، دا صرف د تشریح اود طب د فن معامله وه چې د انسان سینه کښې یو زړه وی او که دوه زړونه هم کیدیشي ؟ په دې بنا کیدیشي چې ددې باطلوالي هم دنورو دوؤ مسئلو د تائید او تمهید په ډول بیان کړې شو چې ځنګه دجاهلیت دخلقو دا وئیل چې باطل دی چې دیو انسان سینه کښې دوه زړونه هم کیدیشي او دا باطلوالي عام او خاص ټول پیژني . دغه شان دظهار او متبني یعني پرکتې په مسئلو کښې هم ددوئ خیالات باطل دی .

پاتې دوه مسئلې شوې چې یو دظهار ده او بله د متبني یعني پر کتي ده ، ددې احکام دهغې معاشرتي او خانداني مسئلو ځیني دی چې په اسلام کښې خاص اهمیت لري . تردې پورې چې جزئیات او تفصیلات یې هم الله ﷻ په قرآن کریم کښې پخپله بیان فرمائیلي دی داسې ئې اونه کړل چې اصول ئې پخپله بیان کړل ، او تفصیل بیانول ئې پیغمبر ﷺ ته حواله کړل . په دې دواړو مسئلو کښې د جاهلیت د زمانې خلقو خالص د خپلو خواهشاتو په بنیاد دحلالو ، حرامو ، جائز او ناجائزو ځان نه . قانونونه جوړ کړی وو . د حق دین فرض دا وو چې هغه دې باطلو رسمونو او خیالاتو لره باطل اوګرځوی او حق خبره په ډاګه کړی ځکه فرمائي چې ﴿وَمَا جَعَلَ أَزْوَاجَكُمُ الَّٰئِي تُظَٰهِرُونَ مِنْهُنَّ أُمَّهَٰتِكُمْ﴾ یعني ستاسو داغلط خیال دې چې ځوک خپلې بیبي ته مور یا دمور پشان اووائي نو هغه به ئې ګني اصلي مور جوړیدو سره پرې همیشه حرامه شي . داسې نه ده بلکه ستاسو مور هم هغه ده چې تاسو ترې پیدا شوی یئ . په دې شان قرآن پاک د جاهلیت د خلقو خیال باطل کړو چې په ظهار کولو سره درباندې خپله بي بي همیشه دپاره نه حرامیږي . البته په دغسې خبره شرعي اثر دا مرتب کیږي چې دغسې وئیل ګناه ده چې ځان ترې ساتل واجب دی . او د ظهار په کفاره ادا کولو سره ورته خپله بي بي حلالیږي . ددې تفصیل په سورة مجادله کښې راتلونکې دې ،

بله مسئله د متبني یعني پرکتي ده فرمائي چې ﴿وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَآءَكُمْ أَبْنَآءَكُمْ﴾ ادعیا د دعي جمع ده . دا هغه هلک دې چې ځوک ورته صرف په خوله ځوئې اووائي . مطلب دادې چې ځنګه د انسان په سینه کښې دوه زړونه نشي کیدې ، خپلې بي بي ته مور یا د مور په شان اووائي نو هغه اصلي مورنه جوړیږي ، دغه شان په ځوئې والی نیولې هلک اصلي ځوئې نشي جوړیدې چې ګنی د میراث حصه دار به جوړ شي او نه به پرې د نکاح د حراموالي مسئلې پیدا کیږي . چې ګنی د هغه طلاقه کړې شوې ښځه به ئې په هغه پلندر باندې همیشه همیشه دپاره حرامه وی چا چې ورته صرف په خوله ځوئې وئیلې وی .

هرکله چې ددې مسئلې اثر په نورو ډیرو معاملو هم پریوځي ، ځکه الله ﷻ فرمائي چې دغسې هلک خپل اصل پلار ته منسوب کوئ چې په دغه ډیرو معاملو ئې غلط اثر پریوځي .

د بخاری او مسلم وغیره په حواله د ابن عمر رضی الله عنه یو حدیث کښې راغلی دی چې ددې ایت د نازلیدو نه رومبې مونږ زید بن حارثه رضی الله عنه په زید بن محمد صلی الله علیه وسلم بللو. [ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته ځوئې وئیلی وو] خو ددې آیت مبارک نزول سره مونږ دغه عادت پریخودو[1].

**مسئله** :: دې نه معلومه شوه چې څوک پردو ورو ته ځوئې وائی مطلب ئې صرف ورسره مینه کول وی نو دا اګر چې روا دی خوبیاهم ښه نه دی چې د منع صورت کښې دا خل دی [روح المعانی دخفاجی نه په بیضاوی باندې] [2]. او دا هغه معامله ده چې د عربو قریش ئې په غلطئ کښې واچول او لوی، ګناه ئې داسې په سرو ا خسته چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم به ئې په دې بد وئیل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دخپل متبنی طلاقې بی بی سره نکاح کړې وه. حالانکه زید بن حارثه رضی الله عنه ئې خپل اصلی ځوئې نه وو بلکه صرف په خوله ئې ورته ځوئې فرمائیلی وو. بیان ئې هم په دې سورت کښې را روان دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلنَّبِیُّ | اَوْلٰی | بِالْمُؤْمِنِیْنَ | |
| نبی صلی الله علیه وسلم | دیر لائق دی | دمومنانو سره | |
| .............نبی صلی الله علیه وسلم په مومنانو باندې د هغوئ دخپلو ځانونو | | | |
| مِنْ اَنْفُسِهِمْ | وَاَزْوَاجُهٗ | اُمَّهٰتُهُمْ ؕ | وَاُولُوا الْاَرْحَامِ |
| دهغوئ دخپل ذات نه هم | او ښځې دنبی صلی الله علیه وسلم | میندې دهغوئ دی | او خاوندان دخپلوئ |
| نه هم زیات حق لری | .........اوددهٔ بیبیانې دمسلمانانو میاندې دی او خپل خپلوان | | |
| بَعْضُهُمْ | اَوْلٰی | بِبَعْضٍ | فِیْ كِتٰبِ اللّٰهِ | مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ |
| خینې ددوئ | زیات لائق دی | دځینو نورو سره | په کتاب دالله کښې | دمومنانونه |
| دالله جل جلاله په کتاب کښې دنورو [عامو] مسلمانانو اومهاجرینو په مقابله کښې | | | | |
| وَالْمُهٰجِرِیْنَ | اِلَّاۤ اَنْ | تَفْعَلُوْۤا اِلٰۤی اَوْلِیٰٓئِكُمْ | مَّعْرُوْفًا ؕ |
| اودمهاجرینو نه | مګر دا | چې اوکړې تاسو ددوستانو خپلوسره | څه احسان [ښیګړه] |
| زیات تعلق لری | خو که تاسو خپلو دوستانو سره څه نیک سلوک کول غواړئ نو کولې شئ | | |
| كَانَ ذٰلِكَ | فِی الْكِتٰبِ | مَسْطُوْرًا ۞ | |
| دې دا حکم | په کتاب کښې | لیکلې شوې | |
| داخبره په لوح محفوظ کښې لیکلې شوې ده | | | |

## آسان ترجمه قرآن

د ایمان والو دپاره دا پیغمبر علیه السلام دهغوی د ځانونو نه هم زیات نزدې دې، او دهغه بیبیانې د مسلمانانو میاندې دی، دهغې باوجود د خیښې رشته دار (اولوالارحام) د نورو مؤمنانو او مهاجرینو

[1] ) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، سورة الأحزاب، باب ادعوهم الأبائهم: ج ۲، ص ۷۰۵، وصحیح مسلم، کتاب الفضائل، باب من فضائل زید بن حارثة وابنه اسامة رضی الله عنهما: ج ۲،ص ۲۸۳

[2] ) روح المعانی: ج ١٦، ص ٣٨

مقابله کښې د يو بل نه زيات (د ميراث په معامله کښې) ډير حقدار دي مګر دا چه تاسو دخپلو دوستانو (په حق کښې څه وصيت کولو سره ښه سلوک) سره څه نيکي اوکړئ، دا خبره په کتاب کښې ليکلې شوې ده.

## خلاصه تفسير

﴿اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ﴾ [نبي] ﷺ [دمؤمنانو سره د دوی دنفس] او ذات [نه هم زيات تعلق ساتي] ځکه چې دانسان نفس خو کله دۀ ته نفع رسوی کله نقصان ځکه چې که نفس ښه وی او ښو کارونو طرف ته څي نو نفع ده اوکه بدو کارونو طرف ته څي نو په خپله خپل نفس دخپل ځان دپاره مصيبت جوړشي په خلاف دنبي کريم ﷺ نه چې د دوی تعليم سراسر نفع او خيرخير دې او خپل نفس که ښه هم وی اونيکئ طرف ته څي خو بيا هم ددۀ نفع دنبي کريم ﷺ دنفعې سره نه شي برابريدې ځکه چې خپل نفس ته خو په خير او شر مصلحت او مضرت کښې غلطي هم کيدې شي او دۀ ته دمصلحت او مضرت پوره علم هم نه وی په خلاف دنبي‌کريم ﷺ نه چې د دوی په تعليماتو کښې دهيڅ مغالطې خطره نشته او هرکله چې په نفع رسولو کښې نبي کريم ﷺ زمونږ دځان او زمونږ دنفس نه هم زيات دې نو د دوی ﷺ حق په مونږ زمونږ دځان نه هم زيات دې اوهغه حق دادې چې په هرکار کښې د دوی ﷺ اطاعت وشي او د دوی ﷺ تعظيم او تکريم دټول مخلوقات نه زيات وکړو ﴿وَاَزْوَاجُهٗٓ اُمَّهٰتُهُمْ﴾ [او د دوی ﷺ بيبيانې ﷺ د دغو ] مؤمنانو [ميندې دی] يعنی د ذکر شوی تقرير نه معلومه شوه چې نبي کريم ﷺ دمؤمنانو دپاره روحاني پلار دې کوم چې د دوی دخپل ذات نه هم په دوی زيات مشفق مهربان دې په دې مناسبت سره د دوی ﷺ پاکې بيبيانې ﷺ د امت ميندې شوې يعنی په تعظيم او تکريم کښې د دوی ﷺ حق دميندو په شان دې

دې ايت پاکو بيبيانو ﷺ لره صراحتا دامت ميندې او نبي کريم ﷺ لره اشارتا دامت روحاني پلار مقرر کړو نو په دې سره هم دغه شان يو التباس او اشتباه کيدې شوه څنګه اشتباه چې متبنی لره غير حقيقي پلار طرف ته په نسبت کولو کښې کيده چې ددې نه دا نتيجه راويستلې شوه چې دامت مسلمانان ټول په خپل مينځ کښې حقيقي ورونړه خويندې شول نو د دوی په مينځ کښې به نکاح تعلق حرام شي او د ميراث په احکامو کښې به هم هرمسلمان دبل وارث مقرر شي دې التباس لره دلرې کولو دپاره ئې دايت په اخر کښې وفرمائيل ﴿وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ﴾ [رشته دار دالله په کتاب ] يعنی حکم شرعی [کښې ديوبل سره ] په ميراث کښې [زيات تعلق لری ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ﴾ په نسبت دنورو مؤمنانو او مهاجرينو﴿اِلَّآ اَنْ تَفْعَلُوْٓا اِلٰٓى اَوْلِيٰٓئِكُمْ مَّعْرُوْفًا﴾ مګر داچې تاسو دخپلو] دې [ دوستانوسره] په طور د وصيت [څه سلوك کول غواړی نو هغه جائز دی ﴿كَانَ ذٰلِكَ فِى الْكِتٰبِ مَسْطُوْرًا﴾ داخبره په لوح محفوظ کښې ليکلې شوې ده] چې دهجرت په ابتداء کښې يې دايماني ورورولئ په بنا مهاجرينو لره دانصارو دميراث حقدار جوړکړی وو مګر په اخر کښې به دميراث تقسيم درشته دارئ او رحمونو په بنياد باند وی

## معارف او مسائل

﴿اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ﴾ د تير شوی بيان تر مخه دسورة احزاب زيات مضمونونه د رسول الله ﷺ د تعظيم او نبي کريم ﷺ ته د تکليف رسولو د حراموالی باره کښې وو. دسورت په

شروع کښې د مشرکانو او منافقانو د تکلیف رسولو په بیانولو سره نبی کریم ﷺ ته هدایات ورکړې شو ، دې پسې د جاهلیت درې رسمونه باطل اوګرځولې شو په هغې کښې آخری رسم نبی کریم ﷺ ته د تکلیف رسولو متعلق وو.ځکه چې کافرانو پرې په دې وجه بد وئیلی وو چې نبی کریم ﷺ د خپل متبنی زید بن حارثه رضی الله عنه طلاقې شوې بی بی سره نکاح اوکړه . خلقو ته به ئې وئیل چې ګنی ده د خپل اصلی ځوئې بی بی سره ئې نکاح کړې ده .

پدې شان د سورت د شروع نه تر دې ځائې پورې نبی کریم ﷺ ته د زبان رسولو مضمون را روان وو ، اوس دې ایت مبارک کښې دابیان دې چې د ټولو خلقو نه زیات د نبی کریم ﷺ تعظیم او تابعداری کول واجب دی .

﴿اَلنَّبِیُّ اَوْلٰی بِالْمُؤْمِنِیْنَ﴾ د ﴿اَوْلٰی بِالْمُؤْمِنِیْنَ﴾ کوم مطلب چې د تفسیر په خلاصه کښې بیان کړې شوې دې هغه د ابن عطیه رحمه الله قول دې چې هغې لره قرطبی او اکثرو مفسرینو اختیار کړې دې (۱) . حاصل ئې دادې چې هر مسلمانانو لره د خپل مور ، پلار نه زیات ستاسو حکم منل واجب دی.که مور پلار ورنه د نبی کریم ﷺ خلاف څه حکم اوکړی نو په هغې عمل کول جائز نه دی . دغه شان دخپل ځان په خواهشاتو باندې هم دنبی کریم ﷺ په حکم عمل کول وراندې دی .

د صحیح بخاری شریف وغیره په حواله د ابی هریره رضی الله عنه د روایت دې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې :: مامن مؤمن الاوانااولی الناس به فی الدنیا والآخرة اقرءوان شئتم ﴿اَلنَّبِیُّ اَوْلٰی بِالْمُؤْمِنِیْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ﴾ (۲)

داسې څوک مؤمن نشته چې په دنیا کښې او آخرت کښې به هغه ته زهٔ د ټولو انسانانو نه زیات اولی او اقرب نه یم که غواړئ نو ددې تصدیق دپاره د قرآن دا آیت اولولئ چې ﴿اَلنَّبِیُّ اَوْلٰی بِالْمُؤْمِنِیْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ﴾ .

حاصل دادې چې زه په هر مؤمن مسلمان باندې د ټولې دنیا نه زیات مشفق او مهربانه یم . ښکاره خبره ده چې ددې لازمی نتیجه دا پکار ده چې هر مؤمن دې رسول الله ﷺ سره د ټولو خلقو نه زیاته مینه لری ، لکه په یو حدیث کښې راغلی دی چې :

لایؤمن احدکم حتی اکون احب الیه من والده وولده والناس اجمعین (۳)

تاسو کښې څوک تر هغه وخت پورې مؤمن نشی کیدې تر څو چې د هغه زړه کښې زما مینه د خپل پلار ، ځوئې او ټولو خلقو نه زیاته نه شی .

﴿وَاَزْوَاجُهٗۤ اُمَّهٰتُهُمْ﴾ ازواج مطهرات ته ئې دعزت په لحاظ میاندې اوفرمائیلې ، د پردې ، میراث او د نکاح حکمونه پدې نه مرتب کیږی . او د ازواج مطهراتو سره د امتی نکاح ورسره حرامیدل په یو بل مستقل آیت سره ثابت دی . په دې وجه دا ضروری نه دی چې د نکاح حرمت دې د میندو کیدو په وجه وی .

---

۱ ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۱۴، ص ۱۲۲

۲ ) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب سورة الأحزاب: ج ۲، ص ۷۰۵

۳ ) صحیح البخاری، کتاب الإیمان، باب حب الرسول صلی الله علیه وسلم من الإیمان: ج ۱، ص ۷۹، وصحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب وجوب محبة الرسول صلی الله علیه وسلم: ج ۱، ص ۴۹، وتفسیر المظهری: ج ۷، ص ۲۸۶

**مسئله** :: دې آيت مبارک نه ثابت شو چې دازواج مطهرات ﷺ په شان کښې څه معمولي بې ادبي کول څکه حرام دی چې ازواج مطهرات د امت میانديې دی . او په دې وجه خو نور زيات هم حرام دی چې په دې رسول الله ﷺ ته تکليف رسی .

﴿وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ﴾ د ﴿وَأُولُوا الْأَرْحَامِ﴾ لفظي معنى تولو خپلوانو لره شامليږي ، که هغه عصبه وي او که ذوی الارحام وي . د فقه اصطلاحي فرق دلته مراد نه دې .

مطلب ئې دا شو چې د ازواج مطهرات درجه اگر چې د خپل مور پلار نه هم وړانديې ده خو د ميراث په احکامو کښې ددې هيڅ دخل نشته بلکه ميراث به د نسبي او نورې سخرګنې وغيره خپلوئ په بنياد باندې تقسيمولې شي .

دا سلام په ابتداء کښې د روحاني او ايماني تعلق په بنياد باندې ميراث تقسيميدو ، بيا دا منسوخ شو ، او اوس د رشته دارئ او خپلوئ په بنياد تقسيميږي . د ناسخ او منسوخ پوره تفصيل په سورة انفال کښې تير شو بدې .

﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ پسې ﴿وَالْمُهَاجِرِينَ﴾ ذکر کول د دوئ ﷺ خصوصيت او امتياز خودلو دپاره دی. څيني حضراتو فرمائيلي دی چې دلته مؤمنين نه مراد انصار او مهاجرينو نه مراد قريش دی . مهاجرينو سره د مقابله کيدو په وجه د مؤمنين لفظ انصارو دپاره کيدل معلوم شو . په دې صورت کښې به د هجرت په وجه د ميراث اخستو حکم منسوخ شي . څنګه چې د هجرت په ابتداء کښې رسول الله ﷺ د مهاجرينو او انصارو ترمينځه د ميراث تقسيمول دهجرت او مواخاة په بنياد مقرر کړی وو چې په دې آيت سره هغه هم منسوخ شو . [قرطبي][1]

﴿إِلَّا أَنْ تَفْعَلُوا إِلَىٰ أَوْلِيَائِكُمْ مَعْرُوفًا﴾ يعنې ميراث اخستل خو به صرف د خپلوئ په تعلق سره کيدې شي غير خپلوان به وارث نشي کيدې البته د ايماني رورولئ په بنياد په خپلې خوښه د څه ورکولو په هر حال اختيار شته دې ، پخپل ژوند کښې هم د ډالئ په ډول د وئ ته ورکولې شي ، اودمرګ نه پس دوئ دپاره وصيت هم کولې شي .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | وَإِذْ | أَخَذْنَا |
| | | | | او ياده کړه کله چې | واغيستـه مونږه |
| او هغه وخت چې مونږ دټولو پيغمبرانو | | | | | |
| مِنَ النَّبِيِّينَ | مِيثَاقَهُمْ | وَمِنْكَ | وَمِنْ نُوحٍ | وَإِبْرَاهِيمَ | وَمُوسَىٰ |
| دټولو پيغمبرانو نه | وعده دهغوئ | او ستا نه [هم] | او دنوح نه | او دابراهيم نه | او دموسى نه |
| نه وعده واخسته | ...........او ستا نه هم او د نوح ﷺ او ابراهيم ﷺ او دموسى ﷺ | | | | |
| وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ | وَأَخَذْنَا | مِنْهُمْ | مِيثَاقًا | غَلِيظًا | |
| او دعيسى خوئ دمريم نه | او واغستـه مونږه | دهغوئ نه | وعده | پخه محکمه | |
| او عيسى خوئي دمريم ﷺ نه هم | اوددې ټولو نه مونږه پوخ لوظ واخستلو . | | | | |

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ١٢٣، ١٢٤

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِيَسْـَٔلَ | الصّٰدِقِيْنَ | عَنْ صِدْقِهِمْ | وَاَعَدَّ |
| دپاره ددې چې پوښتنه اوکړی \| درښتنو خلقو نه \| په باره دصدق دهغوئ کښې \| او تیار کړې دي الله | | | |
| چې الله ﷻ د ریښتونو خلقو نه د هغوی د رښتیاؤ په حق کښې تپوس اوکړی \| ...........او د کافرانو | | | |
| لِلْكٰفِرِيْنَ | عَذَابًا | اَلِيْمًا ۸ | |
| دپاره دکافرانو \| عذاب \| درد ناك \| | | | |
| دپاره ئي دردناك عذاب تيار کړې دي \| | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او (اے پیغمبره) هغه وخت یاد کره، چه کله مونږ د ټولو نبیانو نه وعده اخستلې وه، او ستا نه هم، او د نوح، ابراهیم او موسٰی او عیسٰی بن مریم نه هم، او مونږ دهغوی نه ډیره پخه وعده اخستلې وه دې دپاره چه الله تعالٰی د رشتونو خلقو نه دهغوی رشتیاؤ باره کښې پوښتنه اوکړی اوهغه د کافرانو دپاره یو دردناک عذاب تیار کړې دې،

## خلاصه تفسیر

[او] هغه وخت قابل ذکر دې ﴿وَاِذْ اَخَذْنَا مِنَ النَّبِيّٖنَ مِيْثَاقَهُمْ﴾ [کله چې مونږ دټولو پیغمبرانو نه د دوی اقرار واخستو] چې دالله تعالی داحکامو تابعداری کوی چې په دې کښې دالله تعالی مخلوق ته تبلیغ اودعوت او دیو بل سره تعاون او تناصر هم داخل دی [او] په دې پیغمبرانو کښې ئ ﴿وَمِنْكَ﴾ [ستانه هم] اقرار واخستو ﴿وَمِنْ نُّوْحٍ وَّاِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ﴾ [او دنوح عليه السلام اوابراهیم عليه السلام او موسی عليه السلام اوعیسی عليه السلام خوئ دمریم] [نه هم او] داځه معمولی عهد او اقرار نه وو بلکه ﴿وَاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا﴾ [مونږ ددې ټولونه ښه پوخ عهد واخستو ﴿لِيَسْـَٔلَ الصّٰدِقِيْنَ عَنْ صِدْقِهِمْ﴾ ددې دپاره چې] دقیامت په ورځ [ددې رښتونو خلقو نه] یعنی انبیاء عليهم السلام نه] د دوی درښتیاؤ تحقیقات وکړو] چې د دوی شرافت او عزت او په نه منونکو حجت مکمل شی ددې عهد او ددې دتحقیقاتونه د دوه خبرو وجوب ثابت شو چې اول دوحی په خاوند دخپلې وحی تابعداری واجب ده دویم اوکوم عام خلق چې دوحی خاوندان نه دی په هغوی دخپل وحی دخاوند پیغمبر دتابعداریٔ وجوب ﴿وَاَعَدَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا اَلِيْمًا﴾ [او د کافرانو دپاره] کوم چې دوحی دخاوند دتابعداریٔ نه منحرف دی [الله تعالی دردناك عذاب تيار کړې دی]

## معارف او مسائل

﴿وَاِذْ اَخَذْنَا مِنَ النَّبِيّٖنَ مِيْثَاقَهُمْ﴾ دسورة په شروع کښې رسول کریم ﷺ ته د خپلې وحی د تابعداریٔ حکم ورکړې شوې دې . لکه فرمائی چې :-

﴿وَّاتَّبِعْ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ﴾ او په تیر شوی آیت ﴿اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ﴾ کښې په مؤمنانو باندې د صاحب وحی په حکمونو باندې چليدل واجب کړې شوی دی .

هم ددې دواړو خبرو ښه ثابتولو او ظاهرولو دپاره په دغه دوؤ آیتونو کښې دوه مضمونونه یعنی صاحب وحی دپاره د خپلې وحی او غیر صاحب وحی دپاره د صاحب وحی تابعداری کول واجب دی .

**د پیغمبرانو ﷺ په وعده** :: د پیغمبرانو ﷺ نه اخستې شوې لوظ د هغې لوظ نه علاوه دې کوم چې عامو خلقو نه اخستې شوې دې لکه په مشکوٰة شریف کښې د امام احمد رحمه الله په مرفوع روایت کښې راغلې دی چې :

[1] [خصوا بمیثاق الرسالة والنبوة وهو قوله تعالى: وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ [الاية ]] [2] مضبوط لوظ د پیغمبرانو ﷺ نه ددې خبرې اخستې شوې وو چې دوئ ﷺ به د خپلې پیغمبرئ فرائض ادا کوی. یو به د بل تصدیق کوی او مدد به ئې کوی. لکه چې ابن جریر رحمه الله او ابن ابی حاتم رحمه الله وغیره قتاده رحمه الله نه روایت کړې دې [3] ، او د یو روایت تر مخه د پیغمبرانو ﷺ په دغه پوخ لوظ کښې دا هم شامل وو چې هغوئ ټول دې ددې اعلان اوکړی چې [ محمد رسول الله لانبی بعده] یعنې محمد ﷺ دالله تعالى رسول او خاتم النبیین دې چې دهغوئ نه پس به بل هیڅوک نبی نه وی [4] . د پیغمبرانو ﷺ دا پوخ لوظ د عامو خلقو د آیت ﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ [5] د لوظ نه پس اخستې شوېدې [ روح و مظهری] [6] .

﴿وَمِنْكَ وَمِنْ نُوحٍ﴾ دپیغمبرانو ﷺ دعام ذکر کولو نه پس دپنځو پیغمبرانو ﷺ خصوصی ذکر د خاص امتیاز اوشرف په بنا باندې کړې شوې دې کوم چې ورته د پیغمبرانو ﷺ په ډله کښې حاصل دې. په دوئ ﷺ کښې په منک سره د رسول الله ﷺ ذکر د ټولو نه ړومبی اوشو حالانکه د ټولو نه آخر کښې پیغمبری ورکړې شوې ده. ددې وجه حدیث داسې بیانوی.

[کنت اول الناس فی الخلق واخرهم فی البعث] په پیدائش او تکوین کښې زه دټولو خلقو نه وړاندې او په پیغمبرئ کښې روستو یم [ ابن سعد او ابو نعیم په حلیه کښې د میسرة المفجر او طبرانی په الکبیر کښې د ابن عباس رضی الله عنه نه [ مظهری] [7] .

| | | | |
|---|---|---|---|
| | يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | اذْكُرُوا |
| | اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | یاد کړئ |
| | اے ایمان والو ! دالله ﷻ احسان یاد کړئ | | |
| نِعْمَةَ اللَّهِ | عَلَيْكُمْ | إِذْ جَاءَتْكُمْ | جُنُودٌ |
| نعمت [احسان] دالله | چې کړې ئې دې په تاسو باندې | کله چې راغلې تاسو ته | لښکرې |
| څه وخت چې د [غزوه خندق په موقع] په تاسو باندې ډیرې لښکرې راوختلې | | | |

[1] ) ترجمه: او خاص کړ انبیاء علیهم السلام نه یوه پخه وعده اغستلے شوې وه د رسالت او نبوت په باره کښې، هم دا خبره په دے ایت کښې بیان شوې ده. واذاخذنا من النبین میثاقهم الآیة.

[2] ) مسند أحمد، رقم الحديث: ۲۱۸۳۳، ومشكوٰة كتاب الإيمان، باب الإيمان بالقدر: ج ۱، ص ۲٤

[3] ) تفسير الطبرى تحت هذه الآية: ج ۲۰، ص ۲۱۳، روح المعانى: ج ١٦، ص ٤٦

[4] ) روح المعانى: ج ١٦، ص ٤٦، وتفسير القرطبى تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ١٢٧

[5] ) ترجمه: ایا زه ستاسو رب نه یم.

[6] ) روح المعانى: ج ١٦، ص ٤٦، وتفسير المظهرى: ج ۷، ص ۲۸۷

[7] ) كنز العمال رقم الحديث: ۳۱۹۱٦، وجامع الاحاديث للسيوطى رقم الحديث: ١٥٨٣١، وتفسير المظهرى: ج ۷، ص ۲۸۸

فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا ۚ وَكَانَ اللَّهُ

پس اولیږل مونږه | په هغوئ باندې | سیلئ | او لښکرې | چې نه لیدلې تاسو هغه | او دې الله |

نو مونږ پرې یوه سیلئ راوستله او داسې [غیبي] لښکرې مو راولیږلې اچې تاسو نه لیدلې | او تاسو چې

بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا ﴿٩﴾ إِذْ جَاءُوكُم

په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | لیدونکې | کله چې | راغلل هغوئ په تاسو |

څه کول هغه الله تعالی لیدل | څه وخت چې هغوئ ستاسونه د پورته طرف نه او ستاسو دلاندې طرفنه

مِّن فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ

دپاس طرف ستاسو نه | او دښکته طرف | ستاسو نه | او کله چې | خړ شو | نظر دسترګو |

په تاسو راوختل | او [له ویرې نه] ستاسو سترګې بوتې راوتې وې۔

وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا ﴿١٠﴾

اوورسیدل | زړونه | چنغړ کونوته | او ګمانونه اوکړل تاسو | په الله | قسما قسم ګمانونه |

او زړونه مو خلې ته راغلی وو | او تاسو په الله ﷻ باندې رنګ رنګ ګمانونه کول

هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا ﴿١١﴾

په دغه وخت کښې | وآزمائیلې شو | مومنان | او اوجړقولې شو | په جړقولو سختو سره |

په دغه موقع د مسلمانانو پوره امتحان واخستې شو | او په زوره زوره اوجړقولې شو

وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ

او یاد کړه کله چې | وئیل | منافقانو | او هغه کسانو | چې په زړونو دهغوئ کښې | مرض وو

او څه وخت چې منافقانو او هغه کسانو چې په زړونو کښې ئې بیماری وه [دا] وینا کوله

مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا ﴿١٢﴾ وَإِذْ قَالَت

چې وعده نه ده کړې زمونږ سره | الله | او رسول دهغه | مګر ددوکې | او کله چې [اووئیل |

چې مونږ سره خو الله ﷻ او د هغه رسول د دهوکې وعده کړې وه | او څه وخت چې د دوی یوې ډلې

طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا ۚ

یوې ډلې | دهغوئ نه | اے دیثرب [مدینې] خلقو | نشته هیڅ ځائې | تاسو لره | نو واپس شئ |

او وئیل | اے دمدینې خلقو ! تاسو [ددښمن مقابلې ته ! نشئ ټینګیدې | نو واپس لاړشئ

وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا

او اجازت غواړي | یوه ډله | دهغوئ نه | دنبی ﷺ نه | وائې هغوئ | کورونه زمونږه |

او یو ډلې د [پیغمبر نه] نه د واپس تلو اجازت غوښتلو ........ دائې او وئیل چې زمونږ کورونه په

عَوْرَةٌ ۛ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ ۛ إِنْ يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا ﴿١٣﴾

غیر محفوظ دی | حال دا چې نه دی هغه | غیر محفوظ | نه لري اراده دوی | مګر | دتیښتې |

ډاګه پراته دی | حالانکه هغه په ډاګه نه وو | خو دوی صرف د تیښتې لار کتله

وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِمْ مِنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا

او که چرې داخل شوې وې داکافران | په هغوی باندې | داطرافو دمدينې ښار نه | بيا | طلب شوې وې دهغوی نه

او که چرې د مدينې د طرف نه پرې څوک راننوځي | او دوی ته دفساد جوړولو وينا اوکړي

الْفِتْنَةَ لَآتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا

دفتنې جوړولو | نوخامخا به ورغلي وې هغې له | اووخت به نه وو تير کړې هغوی | په جوړولو دفتنې کښې

نو په هغې پسې به | په منډه | ورشي | او په دغه کورونو کښې به ډير لږ | ناست |

إِلَّا يَسِيرًا ﴿١٤﴾ وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللَّهَ مِنْ قَبْلُ

مګر ډير لږ | اووږ | دا خلق | چې وعده ئې کړې وه دالله سره | مخکښې ددې نه |

پاتې شي | او حال دا دې چې دې خلقو داول نه الله ﷻ سره دا وعده کړې وه

لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ ۚ وَكَانَ عَهْدُ اللَّهِ مَسْئُولًا ﴿١٥﴾ قُلْ

چې نه به ګرزوي شاګاني | او ده | وعده الله | چې تپوس به ئې خامخا کيږي | ورته اووايه |

چې دوی به تيښته نه کوي | او دالله ﷻ سره شوې وعده خو خامخا غوښتلې شي | ته ورته اووايه

لَنْ يَنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ إِنْ فَرَرْتُمْ مِنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ

هرګز به فائيده درنکړي تاسو له | دا تيښته | که اوتښتيدئ تاسو | د مرګ نه | يا دقتل نه

چې تيښته هيڅ فائده نه شي درکولې | ..................که تاسو دمرګ يا دقتل نه تښتئ

وَإِذًا لَا تُمَتَّعُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٦﴾ قُلْ مَنْ ذَا الَّذِي

نو بيا به | ادژوند نه فائيده وانغستلې شي | مګر | لږه | ورته اووايه | څوک دې هغه کس |

او په دغه وخت کښې به درته د معمولي فائدې نه سوا بل هيڅ په لاس درنشي | ورته اووايه څوک به

يَعْصِمُكُمْ مِنَ اللَّهِ إِنْ أَرَادَ بِكُمْ سُوءًا أَوْ أَرَادَ

چې اوساتي تاسو | دالله نه | که اراده اوکړي الله | په تاسو باندې | دنقصان | ضرر | يا اراده اوکړي

تاسو دالله ﷻ نه بچ کړي | که چرې هغه تاسو ته تکليف درکول اوغواړي | يا که په

بِكُمْ رَحْمَةً ۚ وَلَا يَجِدُونَ لَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ

په تاسو باندې | درحمت | اونه شي موندې دوئ | دپاره دخانونو خپلو | په مقابله دالله کښې |

تاسو مهرباني کول اوغواړي | انو څوک يې منع کولې شي | اودوئ دالله ﷻ نه بغير

وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿١٧﴾ قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الْمُعَوِّقِينَ

څوک دوست | اونه مددګار | بيشکه ښه پيژني الله | مخه بندونکي | په کار دجنګ کښې | |

بل څوک دوست يا مددګار موندلې نشي | الله ﷻ په تاسو کښې هغه کسان ښه پيژني

مِنۡكُمۡ وَالۡقَآئِلِيۡنَ لِاِخۡوَانِهِمۡ هَلُمَّ اِلَيۡنَا ۚ وَلَا يَاۡتُوۡنَ

ستاسو نه | او ویونکی | رونړو خپلو ته | چې راځئ | زمونږ طرفته | اونه راځي هغوئ |

[چې په جهاد کښې دشریکیدو نه] منع کوی [اوخپلوورونړو ته وائی چې زمونږ طرفته راشئ

الۡبَاۡسَ اِلَّا قَلِيۡلًا (۱۸) اَشِحَّةً عَلَيۡكُمۡ ۖۚ فَاِذَا

جنګ ته | مګر | لږ | چې سخت بخیلان دی | په تاسو باندې [په ملګرتیا کښې] | پس هر کله

او خپله هم په جنګ کښې شرکت نه کوی مګر ډیر کم | ستاسو په حق کښې ډیرشومان دی

جَآءَ الۡخَوۡفُ رَاَيۡتَهُمۡ يَنۡظُرُوۡنَ اِلَيۡكَ تَدُوۡرُ اَعۡيُنُهُمۡ

چې راشی یره | نو وینې ته هغوئ لره | چې ګوری | تاته | چاپیره ګرځی سترګې دهغوئ |

نو هر کله چې دویرې وخت راشی | نو ته ئې وینې چې داسې درته ګوری چې [له ویرې نه] ددوئ سترګې

كَالَّذِىۡ يُغۡشٰى عَلَيۡهِ مِنَ الۡمَوۡتِ ۚ فَاِذَا

پشان دهغه چا | چې بیهوشی راوستلې شوی وی | په هغه باندې | دمرګ نه | پس هر کله چې

تاوراتاؤ کیږی | لکه چې دمرګ بې هوشی پرې راغلی وی | خو چې ویره [ترې نه]

ذَهَبَ الۡخَوۡفُ سَلَقُوۡكُمۡ بِاَلۡسِنَةٍ حِدَادٍ اَشِحَّةً عَلَى الۡخَيۡرِ ؕ

لاړه شی یره | نو ملاویږی | ستاسو سره | په ژبوتیرو سره | زیات حریصان | په خیر باندې |

لاړه شی | نو دوئ د مال غنیمت په لالچ کښې په تیزو ژبو سره تاسو ته پیغورونه درکوی

اُولٰٓئِكَ لَمۡ يُؤۡمِنُوۡا فَاَحۡبَطَ اللّٰهُ اَعۡمَالَهُمۡ ؕ وَكَانَ

دا کسان چې دی [دوئ] هر ګز ایمان نه دی راوړی | پس ضائع کړل الله | عملونه ددوئ | او دی دا کار

دې خلقو هډو ایمان نه دې راوړئ | نو الله ﷻ ددوئ ټول عملونه برباد کړل

ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيۡرًا (۱۹) يَحۡسَبُوۡنَ الۡاَحۡزَابَ لَمۡ يَذۡهَبُوۡا ۚ

په الله باندې | آسان | ګمان کوی دوئ | په حمله کونکو ډلو باندې | چې لانه دی تلی هغوئ

او دا خبره الله ته ډیره آسانه ده [دوئ دا ګمان کوی چې] په مدینه باندې حمله کونکې لښکرې لا واپس تلې نه دی

وَاِنۡ يَّاۡتِ الۡاَحۡزَابُ يَوَدُّوۡا لَوۡ اَنَّهُمۡ بَادُوۡنَ

او که بیا راشی [حمله اوکړی] | ډلې | نو خوښوی به دوئ | کاش چې دوئ | اوسیدونکی وې |

او که دغه لښکرې بیا راشی نو دوئ به دا غوره اوګڼړی | چې بهر په میرو کښې ډیره وی

فِى الۡاَعۡرَابِ يَسۡاَلُوۡنَ عَنۡ اَنۡۢبَآئِكُمۡ ؕ وَلَوۡ كَانُوۡا

په بانډو کښې | چې تپوسونه ئې کولې [دلرې نه] | دخبرونو [یعنی حالاتو] ستاسو | او که وې دوئ

.........تش ستاسو د حالاتو تپوسونه یې کولې | او که چرې دوئ تاسو سره هم وی

فِيۡكُمۡ مَّا قٰتَلُوۡۤا اِلَّا قَلِيۡلًا ۧ لَقَدۡ كَانَ لَكُمۡ

په منځ ستاسو کښې | نه به وو کړې جنګ دوئ | مګر لږ | په تحقیق سره ده | ستاسو دپاره

نو په جنګ کښې به ډیره کمه حصه اخلې | [مسلمانانو!] تاسو دپاره [په دې سختو حالاتو] کښې درسول الله

فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ | أُسْوَةٌ | حَسَنَةٌ | لِّمَنْ كَانَ | يَرْجُوا | اللّٰهَ

په رسول دالله کښې | نمونه | ښه بهتره | دپاره دهغه چا | چې امید لري هغوئ | دملاقات دالله |

په ذات کښې ښائسته نمونه موجوده ده | داسې خلقودپاره چې دالله ﷻ اودقیامت دورځې

وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ | وَذَكَرَ اللّٰهَ | كَثِيْرًا ﴿٢١﴾ | وَلَمَّا | رَاَ | الْمُؤْمِنُوْنَ

او دورځې دآخرت | او یادوی الله | ډیر | او هر کله چې | اولیدلې | مومنانو |

نه ویربږی | اوالله ﷻ ډیر ډیر یادوی |............. او څه وخت چې مومنانو دغه لښکرې اولیدلې نو

الْاَحْزَابَ ۙ | قَالُوْا | هٰذَا مَا | وَعَدَنَا اللّٰهُ

لښکرې | نو اووئیل دوئ | دا هغه څیز دې | چې ددې وعدې کړې وه زمونږ سره الله |

وې وئیل | چې دا خوهغه موقع ده چې الله ﷻ او د هغه رسول دکومې وعده کړې وه

وَرَسُوْلُهٗ | وَصَدَقَ اللّٰهُ | وَرَسُوْلُهٗ ۙ | وَمَا زَادَهُمْ | اِلَّآ

او رسول دهغه | او رښتیا وه خبره دالله | او درسول دهغه | او زیات نۀ کړو دوئ لره دې واقعې | مګر

............ اوالله ﷻ اودهٔ رسول ﷺ رښتیا وئیلی وو | اود کفارو دې حملې

اِيْمَانًا | وَّتَسْلِيْمًا ﴿٢٢﴾ | مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ | رِجَالٌ | صَدَقُوْا

ایمان | او غاړه ایښودل ددوئ | ځینی دمومنانونه | داسې سړی [خلق] دی | چې رښتیاکړه هغوئ |

ددوئ ایمان او اطاعت نور هم زیات کړو | په مومنانو کښې بعضې داسې دی | چې دالله ﷻ سره ئې

مَا | عَاهَدُوا | اللّٰهَ | عَلَيْهِ ۚ | فَمِنْهُمْ | مَّنْ

هغه خبره | چې وعده کړې وه هغوئ | دالله سره | په هغې باندې | پس ځینی دهغوئ نه | هغه څوك دی

خپل لوظ په رښتیا پوره کړو |.........نو په دوی کښې خوځینې هغه دی چې خپله منښته پوره کړه

قَضٰى | نَحْبَهٗ | وَمِنْهُمْ | مَّنْ | يَّنْتَظِرُ ۖ | وَمَا بَدَّلُوْا

چې پوره ئې کړو | نذر خپل | اوځینی دهغوئ نه | هغه دی | چې انتظار کوی | اوبدل ئې نۀ کړو عمل خپل

او څوک په کښې لا د وخت انتظار کوی | اودوئ په خپله رویه کښې ! ذره بر بدل

تَبْدِيْلًا ﴿٢٣﴾ ۙ | لِيَجْزِيَ | اللّٰهُ | الصّٰدِقِيْنَ | بِصِدْقِهِمْ

په بدلولو سره | دپاره ددې چې بدله ورکړی | الله | رښتینو مسلمانانوته | درښتینولۍ دهغوئ

نشو | دا واقعه ځکه اوشوه | چې الله ﷻ ریښتونو مسلمانانو ته ددوئ درښتیاؤ اجر ورکړی

وَيُعَذِّبَ | الْمُنٰفِقِيْنَ | اِنْ شَآءَ | اَوْ يَتُوْبَ | عَلَيْهِمْ ۭ

او چې سزا ورکړی | منافقانوله | که خوښه ئې شی | یا رجوع په رحمت سره وکړی | په هغوئ باندې

او منافقانو ته که چرې اوغواړی نو سزاورکړی | ..............یا د هغوئ توبه قبوله کړی

اِنَّ اللّٰهَ | كَانَ | غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا ﴿٢٤﴾ ۚ | وَرَدَّ اللّٰهُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا

بیشکه الله | دې | بخښونکې | مهربانه | او واپس کړل الله | هغه کسان | چې کفر ئې کړې وو

بیشکه الله ﷻ بښونکې مهربان دې |............اوالله ﷻ کافران په غصه کښې ډک واپس کړل

| |
|---|
| بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوْا خَيْرًا ۭ وَكَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ |
| دغصې دهغوئ سره \| چې حاصل ئې نهٔ کړو \| هیڅ خیر \| او کافي شو الله \| دمومنانو دطرفنه |
| اود هغوئ هیڅ مراد پوره نه شو \| اوهم الله ﷻ مومنانو دپاره په جنګ کښې |
| الْقِتَالَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ قَوِيًّا عَزِيْزًا ۞ وَاَنْزَلَ الَّذِيْنَ |
| دپاره دجنګ \| او دې الله \| قوت والا غالب \| او راکوز کړل الله \| هغه کسان |
| کافي شو \| اوالله ﷻ ډیر قوي اوزبردست دې \| او په اهل کتابو کښې چې کومو خلقو [دمکې] |
| ظَاهَرُوْهُمْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ صَيَاصِيْهِمْ |
| چې امداد ئې کړې وو دحمله کونکو سره \| داهل کتابونه \| دقلاګانو دهغوئ نه |
| دکافرانو مدد کړې وو\| هغوئ ئې دقلعه ګانو نه لاندې راکوز کړل |
| وَقَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ فَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ وَتَأْسِرُوْنَ |
| اووائې چوڼ \| په زړونو دهغوئ کښې \| داسې رعب \| چې یوه ډله \| قتلوله تاسو\| او قید کوله تاسو |
| اودهغوئ په زړونو کښې ئې ستاسو رعب واچولو \| چې بعضې مو ترې اوژل \| او بعضې مو ترې |
| فَرِيْقًا ۞ وَاَوْرَثَكُمْ اَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ |
| بله ډله \| او په میراث کښې ئې درکړه تاسو له \| زمکه دهغوئ \| اوکورونه دهغوئ \| اومالونه دهغوئ |
| بندیان کړل \| اوتاسو ئې د هغوئ د زمکو اودکورونو اود نورو مالونو مالکان کړئ |
| وَاَرْضًا لَّمْ تَطَئُوْهَا ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ |
| او هغه زمکه \| چې نه وۀ کېښودلې قدم تاسو په هغې \| او دې الله \| په هر څیز باندې |
| اودهغې زمکې چې تاسوپرې [ دجنګ په غرض] قدم قدرې ایخودې نه وو \| او الله په هرڅه پوره پوره |
| قَدِيْرًا ۞ |
| قادر \| |
| قدرت لرې \| |

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والؤ یاد کړئ، الله تعالیٰ په تاسو باندې هغه وخت کښې څرنګه انعام اوکړو چه کله په تاسو باندې ډیرې لښکرې راوختې، بیا مونږ په هغوی باندې یوه سیلۍ راؤلیږله، او داسې لښکرې هم چه تاسو ته په نظر نه راتلې، او تاسو چه څه کول الله تعالیٰ هغه لیدل. یاد کړئ چه کله هغوی په تاسو باندې ستاسو د بره طرف نه هم راغلل، او ستاسو د لاندې طرف نه هم (راغلل) او کله چه سترګې کږې شوې وې، او زړونه خولو له راغلي وو، او تاسو د الله تعالیٰ په باره کښې قسما قسم ګمانونه کول په دغې موقع د ایمان والو لوئې آزمائش اوکړې شو، او هغوی اوجړقولې شو په جړقیدو سختو سره او یاد کړئ، چه کله منافقانو او هغه کسانو چه دهغوی په زړونو کښې مرض دې، دا اووئیل چه: الله تعالیٰ او دهغه رسول چه مونږ سره کومه وعده کړې ده، هغه د دهوکې نه سوا هیڅ نه دی او چه کله په هغوی کښې څه

خلقو اووئیل چه : اے د یثرب خلقوا ستاسو دپاره دلته د ایساریدو هیڅ موقع نشته . پس واپس لاړ
شئ، او د هغوی نه څه خلقوؔ نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) نه دې وئیلو سره (کور ته د تللو) اجازت
غوختلو چه زمونږ کورونه غیر محفوظ دی حالانکه هغه غیر محفوظ نه وو، بلکه دهغوی مقصد صرف دا
وو، چه (په څه طریقې سره) اوتښتی. او که دشمن مدینې منورې ته د څلور واړو طرفونو نه راننوځی، بیا
دوی ته فساد کښې د شاملیدو دپاره اووئیلې شی، نو دوی به هغې کښې ضرور شامل شی، او (هغه وخت به)
په کورونو کښې ډیر کم پاتې کیږی او حقیقت دادې چه دوی د الله تعالی سره ددې نه مخکښې دا وعده
کړې وه، چه دوی به شاګانې نه ګرځوی، او د الله تعالی سره کړې شوې وعدې باره کښې به تپوس خامخا
کیږی. (اے پیغمبره، دوی ته) اووایه چه: که تاسو د مرګ نه یا د قتل نه اوتښتئ هم، نو دا تښتیدل
تاسو ته هیڅ فائده نه درکوی او په دغه صورت کښې تاسو ته چه کوم د ژوند تیرولو موقع درکړې شی،
هغه به ډیره لږه وی، اووایه چه: څوک دی چه تاسو د الله تعالی نه بچ کړی، که هغه تاسو ته څه بدی در
رسولو اراده اوکړی، یا (څوک دی چه دهغه رحمت لره منع کړی) که هغه په تاسو باندې د رحمت کولو
اراده اوکړی؟ او د الله تعالی نه سوا دغه خلقو ته نه څوک ساتونکې ملاویدې شی او نه څوک مددګار. الله
تعالی په تاسو کښې هغه خلقو لره ښه پیژنی چه (په جهاد کښې) رکاوټونه اچوی، او خپلو ورونړو ته وائی چه
مونږ ته راشئ او خپله جنګ ته راځی نه، او که راځی هم نو ډیر کم راځی، (اوهغه هم) تاسو سره لالچ
دپاره پس چه کله د خطرې موقع راشی، نو دوی تاسو طرف ته کړو سترګو سره داسې ګوری، لکه چه په چا
باندې د مرګ بے هوشی راغلې وی، بیا چه کله خطره ختمه شی، نو ستاسو مخکښې د مال په حرص کښې
تیزې تیزې ژبې چلوی دې خلقو چرې هم ایمان نه دې راوړې، ددې وجې نه الله تعالی ددوی اعمال
ضائع کړې دی، او دا خبره الله تعالی دپاره ډیره آسانه ده. دوی دا ګنړی، چه (ددشمنانو) لښکرې لا
تراوسه پورې تلې نه دې، او که هغه لښکرې (دوباره) راشی، نو ددوی خواهش به دا وی، چه باندړو ته لاړ
شی او هلته کښې اوسیږی، (او هلته کښې ناست وی) او ستاسو خبرونه معلوموی او که ستاسو په مینځ کښې
وی هم، نو په جنګ کښې به ډیره کمه حصه اخلی. حقیقت دادې چه ستاسو دپاره د رسول الله (صلی الله
علیه وسلم) په ذات کښې یوه بهترینه نمونه ده، هر هغه سړی دپاره چه د الله تعالی نه اوؔد آخرت دورځې
نه اُمیدساتی، اوپه کثرت سره دالله تعالی ذکر کوی. او کوم خلق چه ایمان لری، چه کله هغوی (د دشمن)
لښکرې اولیدې، نو هغوی اووئیل چه دا هم هغه خبره ده، چه دهغې وعده مونږ سره الله تعالی او دهغه
رسول کړې وه او الله تعالی او دهغه رسول رښتیا وئیلې وو، او دې واقعې دهغوی په ایمان او د تابعدارئ
په جذبه کښې نور هم زیاتوالې اوکړو په دغې ایمان والو کښې هغه خلق هم دی، چه الله تعالی سره ئې
کوم لوظ کړې وو، هغه ئې رښتیا کړو، بیا په هغوی کښې څه خلق هغه دی چه هغوی خپله منخته پوره
کړه، اوڅه خلق هغه دی، چه په انتظار کښې دی اوهغوی (په خپلو ارادو کښې) هیڅ تبدیلی اونه کړه، (دا
واقعه ددې دپاره اوشوه) چه الله تعالی رښتینو خلقو ته دهغوی د رښتیاؤ انعام ورکړی، او منافقانو ته که
اوغواړی عذاب ورکړی، یا دهغوی توبه قبوله کړی الله تعالی یقیناً ډیر بخونکې دې، او ډیر مهربان
دې. اوکوم خلق چه کافران وو، الله تعالی هغوی سره دهغوی دغصې او غضب نه داسې واپس کړل، چه
هغوی هیڅ فائده حاصله نه کړه او د مومنانو د طرف نه په جنګ کښې الله تعالی خپله کافی شو، او الله تعالی

دلوئي قوت او دلوئي اقتدار مالک دي. او کومو اهل کتابو چه ددوی (دښمنانو) مدد کړي وو، هغوی لره الله تعالی دهغوی د قلعونه را کوز کړل او دهغوی په زړونو کښې ئې داسې رعب واچولو. چه (اے مسلمانانو) په هغوی کښې څه تاسو قتل کړل، او څه لره مو قيديان جوړ کړل. او الله تعالى تاسو دهغوی د زمکو، د هغوی د کورونو، او دهغوی د دولت وارثان جوړ کړئ او د يوې داسې زمکې هم، چه هغې ته لاتر اوسه پورې ستاسو قدمونه نه دی رسيدلي او الله تعالى په هر څيز باندې پوره قدرت لري.

## خلاصه تفسير

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ [اے ايماندارو ﴿اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ يادکړئ دالله تعالى انعام چې په تاسوئ کړې دې ﴿إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُودٌ﴾ هرکله چې په تاسو ډيرې لښکر راوختلې] يعنى دعيينه لښکر او دابوسفيان لښکر او ديهودو بنى قريظه ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَمْ تَرَوْهَا﴾ [بيامونږ په] دوی يوه سيلئ راوليږله چې هغوی ئې پريشانه کړل او خيمې ئې ورلره وويستلې [او] دفرښتو [داسې فوج مو درولېږلو کوم چې تاسوته] په عام طور سره [نه ښکاريدو] اګر چې ځنې صحابه کرامو مثلاً حضرت حذيفه ﷺ ځنو ملائکو لره په شکل دانسان هم وليدې او د کفارولښکرته دجاسوسئ دپاره تلې وو هلته يې دا اواز هم واوريدو چې تښتئ تښتئ او په دې واقعه کښې ملائکو جنګ نه دې کړې صرف دکفارو په زړونو کښې درعب اچولو دپاره رالیږلې شوې وې ﴿وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا﴾ [او الله تعالى ستاسو] ددغې وخت [عملونو لره ليدل] چې تاسو به اوږد او پلن او ژور خندق کنستلو کښې لوئ محنت تير کړو بيا دکفارو په مقابله کښې په لوئ استقلال سره ثابت قدم پاتې شوئ او په دې خوشحاله شوئى او ستاسو امدادئ وکړو دا واقعه هغه وخت شوې وه ﴿إِذْ جَاءُوكُمْ مِنْ فَوْقِكُمْ﴾ [کله چې هغه] دښمنان [خلق په تاسو] دهرطرف نه [راوختل دپاسه طرف نه ﴿وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ﴾ او لاند طرف نه هم] يعنى ځنې قبيلې دمدينې دلاند طرف نه او ځنې قبلې ددې دپاس طرف نه ﴿وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ﴾ [او کله چې سترګې] دويرې نه [وازې په وازې پاتې شوې ﴿وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ﴾ او زړونه خلې ته راختلې وو ﴿وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا﴾ او تاسو خلقو په الله تعالى قسم قسم ګمانونه کول] لکه چې دسختئ په موقعو کښې په طبعى طور سره مختلفې وسوسې راځى او دا دغير اختيارى کيدو په وجه هيڅ ګناه نه ده اونه ددې قول منافی دې کوم چې وراند داهل ايمانو راځى [ هذا ما وعدنا الله ورسوله وصدق الله ورسوله] ځکه چې په دې کښې دلفظ د هذا اشاره داحزابو دراختلو طرف ته ده چونکه ددې خبرد الله تعالى دطرف نه ورکړې شوې ووپه دې وجه داخو يقينى وه ليکن انجام ددې واقعې ئې نه وو ښودلې په دې وجه په دې کښې دمختلفو احتمالاتو د غالب کيدو او مغلوب کيدو پيدا کيدل وو ﴿هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ [په دغه موقع دمسلمانانو] پوره [پوره امتحان وشو] چې دوی پرې پوره وختل ﴿وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا﴾ [او] سخته [زلزله کښې وغورزولې شول او] دا واقعه هغه وخت شوې وه ﴿وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ﴾ [کله چې منافقانو او هغو خلقو د کومو په زړونو کښې چې] دنفاق اوشك [مرض دې داسې وئيل ﴿مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا﴾ چې مونږ سره خو الله تعالى او دهغه رسول محض د دوکې وعده کړې ده](۱) لکه چې

(۱) روح المعاني: ج ١٦، ص ٥٤، ودلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث: ١٣٠٦

معتب بن قشير او دده ملګرو دا خبره هغه وخت کړې وه چې دخندق کنستلو په وخت کښې دکدالئ لګيدو سره څو پيرې د اور شغلې راووتلې او نبي کريم ﷺ دهر وار سره ارشاد وفرمائيلو چې ماته دفارس روم او شام محلونه په دې رڼړا کښې په نظر راغلل او الله تعالى د هغې دفتح کولو وعده فرمائيلې ده هرکله چې دفوجونو دجمع کيدو په وخت کښې پريشانى جوړه شوه نو هغو خلقو ووئيل چې حالت خو دادې او په دې دشام او روم دفتح کولو خوشخبرئ اوړولې کيږي دا محض دوکه ده ګويا هغوى دا دالله تعالى وعده نه ګڼړله اونه يې دوى ﷺ لره رسول ګڼړلو نو بيا دا وينا [ماوعدناالله ورسوله] يا خو صرف دحکايت په درجه کښې ده اويا په طور د فرض او مسخرې ده [او] دا واقعه د هغه وخت وه ﴿وَإِذْ قَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ﴾ [کله چې په دوى] منافقانو [کښې خنوخلقو] د جنګ نورو حاضرينو ته [ووئيل ﴿يَٰٓأَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ﴾ چې اثي ديثرب ] يعنى دمدينې [خلقو] دلته ستاسو [دپاتې کيدو وموقع نه ده] څکه چې دلته پاتې کيدل دمرګ خلې ته ورتلل دى [پس] خپلو کورونو ته ﴿فَارْجِعُوا۟﴾ [واپس شئ] دا خبره اوس بن قيظى کړې وه په دې کښې څه نور خلق هم شريك وو ﴿وَيَسْتَـْٔذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ ٱلنَّبِىَّ﴾ [او خنوخلقو] په دې منافقانو کښې [دنبى] ﷺ [نه] خپلو کورونو ته دواپس تللو [اجازت غوښتلو ﴿يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ﴾ او وئيل يې چې زمونږ کورونه غير محفوظ دى] يعنى صرف ښځې او بچى پاتې دى ديوالونه داطمينان قابل نه دى هسې نه غل ورته راننوځى دا قول دابو عرابه او دځينو نورو بنى حارثه وو [حال داؤو چې هغه]د دوى په خيال کښې ﴿وَمَا هِىَ بِعَوْرَةٍ﴾ [غير محفوظ نه دى] يعنى دوى ته دغل وغيره ويره هرګز نشته او نه يې په واپس تلو سره دانيت شته چې ګوند انتظام يې قابل اطمينان کړى واپس راشى ﴿إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا﴾ [دوى محض تښتيدل غواړى او] د دوى داحالت دې چې ﴿وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا﴾ [که په مدينه کښې ددې د] ټولو [ اطرافونه په دوى] هرکله چې دوى په خپلو کورونو کښې وى [څوك] لښکر دکفارو [راننوځى ﴿ثُمَّ سُئِلُوا۟ ٱلْفِتْنَةَ﴾ بيا د دوى نه دفساد] يعنى دمسلمانانو سره دجنګيدو [درخواست وکړى ﴿لَءَاتَوْهَا﴾ نو دوى به] فورا [دې ] فساد [لره منظور کړى ﴿وَمَا تَلَبَّثُوا۟ بِهَآ إِلَّا يَسِيرًا﴾ او په دغو کورونو کښې به ډير کم پاتې شى] يعنى دومره توقف به وى چې څوك دډ ته درخواست وکړى او دې يې منظور کړى او ددې نه پس هغه فورا تيارشى او دمسلمانانو مقابلې ته ورسيږى او دکورونو هيڅ خيال هم ونه کړى چې ګوندمونږ خو دنورو په لوټ مارپسې څو چرته څوك زمونږ کور لوټ نه کړى نو که د دوى واقعى د حفاظت قصد وى نو اوس ولې په کورونو کښې نه پاتې کيږى ددې نه صفا معلومه شوه چې په اصل کښې د دوى دمسلمانانو سره دښمنى او دکفارو سره محبت دې په دې وجه دسړو په ګنړوالى سره هم د مسلمانانو مدد نه خوښوى باقى دکورنوخبره داخو هسې بهانه ده ﴿وَلَقَدْ كَانُوا۟ عَٰهَدُوا۟ ٱللَّهَ مِن قَبْلُ﴾ [حال دادې چې دې خلقو] ددې نه [وړاند دالله تعالى سره عهد کړې وو چې] د دښمن په مقابله کښې ﴿لَا يُوَلُّونَ ٱلْأَدْبَٰرَ﴾ [شابه نه کړو] داعهد يې هغه وخت کړې وو کله چې په بدر کښې څنې دشريکيدو نه پاتې شوى وو نو څنې منافقانو هم هسې دډېو په سر وئيلى وو چې افسوس مونږ شريك نه شو چې داسې موکړى وې هغسې موکړى وې هرکله چې وخت راغې نو ټول معلوم شول ﴿وَكَانَ عَهْدُ ٱللَّهِ مَسْـُٔولًا﴾ [او دالله تعالى سره چې کوم ] داقسم

[عهد کولې شی ددې تپوس به کیږي ﴿قُلْ﴾ ته] دوی ته [اوفرمایه چې] تاسو چې کومې تیښتې کوئ لکه چې الله تعالی فرمائی [ان یریدون الا فرارا] ﴿لَّن يَنفَعَكُمُ الْفِرَارُ إِن فَرَرْتُم مِّنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ وَإِذًا لَّا تُمَتَّعُونَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ تاسو ته تیښته [ هیڅ فائده نه درکوی که تاسو دمرګ یا قتل څخه تښتئ او په دې حالت [د تښتیدلو] کښې بغیر دلږو ورځونه] چې دغه باقی عمرمقدر دې [نور زیات] د ژوندنه [نفع نه شئ اخستې] یعنی په تیښته عمرنه شئ زیاتولې ځکه چې ددې وخت مقدر دې او کله چې مقدر دې نوکه ونه تښتئ هم دمرګ نه وړاندنه شئ مړۀ کیدې پس نه په قرار پاتې کیدو کښې څه ضرر شته اونه په تیښته کښې څه نفع پس تیښته محض بې عقلی ده او دتقدیر ددې مسئلې د تحقیق دپاره دوی ته ﴿قُلْ مَن ذَا الَّذِي يَعْصِمُكُم مِّنَ اللَّهِ﴾ [ داهم وفرمایه چې هغه څوك دې چې تاسو به د الله تعالی نه بچ کړي ﴿إِنْ أَرَادَ بِكُمْ سُوءًا﴾ که هغه تاسوته بد رسول وغواړي] مثلاً ستاسوهلاکول وغواړي نو آیا تاسولره څوك بچ کولې شی لکه چې تاسو تیښته نفعمنده ګڼړئ ﴿أَوْ أَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً﴾ [یا هغه څوك دې کوم چې دالله تعالی فضل لره ستاسو نه منع کړي که هغه په تاسو فضل کول وغواړي] مثلا هغه موژوندی ساتل غواړي کوم چې دنیوی رحمت دې نو څوك ددې مانع کیدې شی؟ لکه چې ستاسو خیال دې چې په جنګ کښې پاتې کیدل قطع کوونکې دژوندګڼړئ [او] هغه خلق دې واوری چې ﴿وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا﴾ [دالله تعالی نه سوا به نه څوك خپل حمایتی بیامومی] کوم چې نفع ورته ورسوی [ او نه څوك مددګار چې دضررنه ئې بچ ] کړي اوس دتقدیر دمسئلې نه پس بیا دمنافقانو دتشنیع سلسله ده یعنی ﴿قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الْمُعَوِّقِينَ مِنكُمْ﴾ [الله تعالی په تاسوکښې هغو خلقو لره] ښه [پیژنی کوم چې] نورو لره جنګ ته [دتلونه مانع کیږي ﴿وَالْقَائِلِينَ لِإِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ إِلَيْنَا﴾ اوکوم چې خپلو] دکلی یاوطن [ورڼرو ته وائی مونږ ته راشئ] هلته خپل ځانونه ولې وژنئ دا خبره یو سړی خپل حقیقی وروړته کړې وه او دغه وخت دې ویونکی غوښه روټئ خوړه مسلمان وروړته ووئیل افسوس ته دومره په ارام کښې ئې او نبی کریم ﷺ په داسې تکلیف کښې هغه ورته ووئیل صاحبه ته هم دلته راځه [او] د دوی دبز دلئ حرص او بخل دا حال دې چې ﴿وَلَا يَأْتُونَ الْبَأْسَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ [جنګ ته ډیرکم راځی] په کوم کښې چې ذره نوم کیږي دا خو ددوی بزدلی ده اوکه راځی هم نو ﴿أَشِحَّةً عَلَيْكُمْ﴾ [ستاسوپه حق کښې بخیلان وی] یعنی په راتلوکښې د دوی لوئ نیت داوی چې ټول غنیمت مسلمانانو ته ملاؤ نه شی تش په نوم شریکیدو سره به په غنیمت کښې دشریکیدو دعوی خو په څه درجه کښې کولې شی [پس] هرکله چې ددوی بزدلی او بخل دواړه کارونه ثابت شوی دی نو ددې مجموعې اثر دادې چې ﴿فَإِذَا﴾ [پس هرکله] ﴿جَاءَ الْخَوْفُ رَأَيْتَهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ﴾ [چه د ویرې موقع راپیښیږي نو تاسوئ وینئ چې هغوی ستاسوطرف ته داسې ګوری چې په سترګو ئې چکرې راځی ﴿كَالَّذِي يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ﴾ لکه چې په چا دمرګ بې هوشی راغلې وی] دا خو دبزدلئ اثر شو ﴿فَإِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ﴾ [بیا چې هرکله دغه ویره لرې شی نو تاسو ته په تیزو تیزو ژبو سره پیغور درکوی ﴿أَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ﴾ د] غنیمت په [مال حرص کوونکی] یعنی د غنیمت دمال اخستو دپاره زرۀ زخمی کوونکې خبرې کوی چې ولې مونږ درسره شریك نه وو؟ او زمونږ په مدد سره مو فتح ونه کړه؟ دا اثر دبخل او حرص دې دامعامله د دوی تاسوسره ده او دالله

تعالى سره د دوی معامله داده چې ﴿أُولَٰٓئِكَ﴾ [ داخلق] د اول نه ﴿لَمۡ يُؤۡمِنُواْ﴾ [مؤمنان نه دی ﴿فَأَحۡبَطَ ٱللَّهُ أَعۡمَٰلَهُمۡۚ﴾ نو الله تعالى د دوی ټول عملونه] نیك د وراندنه [بې كاره كړي دی] په اخرت كښې به ورته هیڅ ثواب ملاؤنه شي ﴿وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٗا﴾ [او داخبره دالله تعالى په نزد ډیره اسانه ده] څوك ورسره مزاحمت نه شی كولې چې مونږ ددغو عملونو صله وركړو دا حالت خو د دوی دفوجونو دجمع كیدو په وخت كښې وو مګر د دوی بزدلی دومره زیاته شوې ده چې دفوجونو دتلو نه پس هم ﴿يَحۡسَبُونَ ٱلۡأَحۡزَابَ لَمۡ يَذۡهَبُواْۖ﴾ [د دې خلقو داخیال دې چې] تراوسه [دالښكر تلې نه دې] او د ډیرې بزدلۍ نه د دوی داحالت دې ﴿وَإِن يَأۡتِ ٱلۡأَحۡزَابُ يَوَدُّواْ﴾ [چې كه بالفرض [دا] تلې [خلق] بیا واپس [راشي] نو بیاخو[داخلق] به دځان دپاره [هم دا خوښوی ﴿لَوۡ أَنَّهُم بَادُونَ فِي ٱلۡأَعۡرَابِ﴾ چې كاش مونږه] چرته [بهر باندېو ته تلی وې] هلته ناست وې د راتلونكونه مو ﴿يَسۡـَٔلُونَ عَنۡ أَنۢبَآئِكُمۡۖ﴾ [ستاسو دخبرونو تپوس كولې] او دازړه سیزونكې جنګ مو په خپلو سترګو سره نه لیدې ﴿وَلَوۡ كَانُواْ فِيكُم﴾ [اوكه چرې] اتفاقا ټول یا څنې باندوته لاړ نه شي [بلكه په تاسوكښې وی ﴿مَّا قَٰتَلُوٓاْ إِلَّا قَلِيلٗا﴾ [نوبیاهم] دغه وخت ورله هیڅ غیرت نه ورځی او هسې دنوم كولو دپاره [به څه لږشان جنګ وكړی] وراند ددې بیان دې چې په جنګ كښې دنبی كریم ﷺ په شان ثابت قدم پاتې كیدل او دده اقتدا او تابعداری دایمان مقتضا ده چې منافقانو ته شرم وراندې كړی چې سره د ایمان ددعوې نه ئې دایمان د مقتضی نه خلاف وكړو او مخلصانو ته خوشخبری ملاؤشي چې داخلق خامخا مصداق د [من كان یرجواالله الخ] دی پس ارشاد فرمائی چې ﴿لَّقَدۡ كَانَ لَكُمۡ فِي رَسُولِ ٱللَّهِ أُسۡوَةٌ حَسَنَةٞ لِّمَن كَانَ يَرۡجُواْ ٱللَّهَ وَٱلۡيَوۡمَ ٱلۡأٓخِرَ وَذَكَرَ ٱللَّهَ كَثِيرٗا﴾ [یقینا تاسو خلقو دپاره یعنی دداسې سړی دپاره كوم چې د الله تعالى نه او دورځې داخرت نه ویریږی او ډیرذكر دالله تعالى كوی] یعنی كامل مؤمن وی دده دپاره [درسول الله] صلی الله علیه وسلم یوه [عمده نمونه موجوده وه] چې هركله دوی ﷺ په خپله شریك وو نو ددوی ﷺ نه زیات په تاسوكښې څوك خوږ دې چې هغه اقتداء نه كوی او خپل ځان بچ ساتی [او] وراند دمنافقانو په مقابله كښې دمؤمنانو مخلصانوذكر دې ﴿وَلَمَّا رَءَا ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ٱلۡأَحۡزَابَ﴾ [هركله چې مؤمنانو دا لښكرې ولیدې ﴿قَالُواْ هَٰذَا مَا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ﴾ نو وې وئیل چې داهغه موقع [ده دكومې چې مونږ ته د الله تعالى رسول ﷺ خبر راكړې دې] چنانچه دسوره بقره په دې ایت كښې د دې نژدې اشاره په صراحت سره موجوده ده [ام حسبتم ان تدخلوا الجنة] تردې قول پورې [وزلزلوا] خكه چې سوره بقره په نزول كښې دسوره احزاب نه وړومبې دې كذا فی الاتقان(¹) ﴿وَصَدَقَ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥۚ﴾ [او الله اورسول رښتیا فرمائیلی وو ﴿وَمَا زَادَهُمۡ إِلَّآ إِيمَٰنٗا وَتَسۡلِيمٗا﴾ او په دې] لښكر ولیدو [سره] كومه چې رښتونی پیشګوئی ده [د دوی په ایمان او اطاعت كښې ترقی وشوه] دا وصف دټولو مؤمنانو مشترك دې اوځنې صفتونه په څنو مؤمنانو كښې خاص هم دی بیان ئې دادې چې ﴿مِّنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ رِجَالٞ صَدَقُواْ مَا عَٰهَدُواْ ٱللَّهَ عَلَيۡهِۖ﴾ [په دې مؤمنانو كښې څنې خلق داسې هم دی چې دوی دكومې خبرې دالله تعالى سره عهد كړې وو په هغې كښې رښتونې شول] ددې تقسیم دامطلب نه دې چې څنو مسلمانانو عهد كړې وو او رښتونی نه شول

¹) الاتقان النوع الاول، معرفة المكی والمدنی: ج ۱، ص ۱۰

بلکه دا تقسیم په دې بناباند دې چې څنو دسره عهد نه ووکړې او بغیر د عهد نه ثابت قدم پاتې شول ددې عهد کوونکو د ذکر وضاحت په مقابله د برنی ایت کښې دې کوم چې د منافقانو په حق کښې دې [ولقدکانواعهدواالله الخ] او مراد د دې عهد کوونکو نه حضرت انس بن النضر او ددهٔ ملګرې دی دا حضرات اتفاقا دبدر په غزاء کښې نه وو شریك شوی نو افسوس ئې کولو او عهد ئې وکړو چې که اوس جهادپیښ شو نو په دې کښې به زمونږ سر تیره کوشش ولیدې شی(۱) مطلب ئې دا وو چې مخ به ونه ګرځوو اګر که مړهٔ شو ﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ﴾ [بیاپه دې] عهدکوونکو[کښې ] دوه قسمونه شول [څنې خو په دوی کښې هغه دی کومو چې خپل نذرونه پوره کړل] مراد هغه عهددې دکوم چې دنذر په شان واقع کیدل واجب وی مطلب دادې چې شهیدان شول او تر اخر وخته پورې ئې مخ ونه ګرځولو چنانچې حضرت انس بن نضر په احد کښې شهیدان شوې وو دغه شان حضرت مصعب ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ یَّنْتَظِرُ﴾[او څنې په دوی کښې] ددې عهد دپوره کولو داخری اثر یعنی شهادت [مشتاق دی] لاتراوسه نه دی شهیدان شوی ﴿وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِیْلًا﴾ [او] تراوسه [دوی] په دې کښې [یوه ذره تغیر او تبدیل نه دی کړې] یعنی په خپله اراده قائم دی پس ټول قوم په دوه قسمه دې یو منافقان دکومو چې بره بیان وشو اودویم مؤمنان ،بیا مؤمنان په دوه قسمه دی عهدکوونکی اوغیرعهدکوونکی او په ثابت قدمئ کښې دواړه مشترك دی لکه چې دا قول دالله تعالی دې [لمارای المومنون الخ] بیاعهدکوونکی په دوه قسمه دی شهیدان او منتظر دشهادت ټول څلور قسمونه په دې ایتونوکښې ذکر دی وړاند ددې غزا یو حکمت بیان فرمائی چې ﴿لِّیَجْزِیَ اللّٰهُ الصّٰدِقِیْنَ بِصِدْقِهِمْ﴾ [دا واقعه په دې وجه وشوه چې الله تعالی رښتونو مسلمانانوته د دوی صله ورکړی ﴿وَیُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِیْنَ اِنْ شَآءَ﴾ او منافقانولره که غواړی سزا ورکړی ﴿اَوْ یَتُوْبَ عَلَیْهِمْ﴾ یا که اوغواړی دوی لره] دنفاق نه [دتوبې توفیق ورکړی] ځکه چې په داسې مصیبتونو کښې دمخلص او ځان ښودنکی تمیزکیږی اوکله کله دملامتې په وجه ځان ښودونکی هم متاثره شی او مخلصان جوړشی او څنې په خپل حال هم پاتې شی ﴿اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِیْمًا﴾ [بیشکه الله غفور او رحیم دې]

په دې وجه دتوبې قبلیدل لرې خبره نه ده په دې کښې ترغیب دې دتوبې [او] تردې پورې دمسلمانانو د ډلې دمختلف قسمه حالات ذکر وو اوس وړاند دکفارو مخالفینو دحالاتو ذکردې چې ﴿وَرَدَّ اللّٰهُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِغَیْظِهِمْ﴾ [الله تعالی کافرانولره] یعنی مشرکانو لره [دغصې نه ډك] دمدینې نه [واپس کړل ﴿لَمْ یَنَالُوْا خَیْرًا﴾ چې د دوی هیڅ مراد هم پوره نه شو] او دوی دغصې نه ډك وو ﴿وَكَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِیْنَ الْقِتَالَ﴾ [او په جنګ کښې الله تعالی دمسلمانانو دپاره په خپله کافی شو] یعنی کفاروته دروایتی جنګ نوبت هم رانغې چې دمخکښې نه دفع شو او سپك شان جنګ په مختلف طور سره منفی نه دې [او] دغه شان دکافرانو واپس کول څه عجیبه مه ګنړئ ځکه چې ﴿وَكَانَ اللّٰهُ قَوِیًّا عَزِیْزًا﴾ [الله تعالی لوئ قوت والا زبردست دې] هغه ته هیڅ ګرانه نه ده دا خو دمشرکانو حال شو [او] دویمه ډله په مخالفینو کښې دیهود بنی قریظه

(۱) صحيح البخاری، کتاب الجهاد، باب قول الله من المؤمنين رجال الخ: ج ۱، ص ۳۹۳، وجامع الترمذی، أبواب التفسير، باب سورة الاحزاب: ج ۲، ص ۱۵۵

وه وړاند دهغوی ذکر دې ﴿وَاَنۡزَلَ الَّذِيۡنَ ظَاهَرُوۡهُمۡ مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ مِنۡ صَيَاصِيۡهِمۡ﴾ [کومو اهل کتابو چې ددې] مشرکانو [مدد کړې وو هغوی لره] الله تعالی [دهغوی دقلاګانونه] په کومو کښې چې هغوی محصور وو [لاند راکوز کړل ﴿وَقَذَفَ فِيۡ قُلُوۡبِهِمُ الرُّعۡبَ﴾ او دهغوی په زړونو کښې ئې ستاسو رعب وغورزولو] چې په دې سره دوی راکوز شول او بیا ﴿فَرِيۡقًا تَقۡتُلُوۡنَ وَتَاۡسِرُوۡنَ فَرِيۡقًا﴾ [ځنو لره تاسو قتلول او ځنولره تاسو قیدول ﴿وَاَوۡرَثَكُمۡ اَرۡضَهُمۡ وَدِيَارَهُمۡ وَاَمۡوَالَهُمۡ﴾ اود هغوی دمزکو او دکورونو اومالونوئ تاسو مالکان جوړ کړئ ﴿وَاَرۡضًا لَّمۡ تَطَـُٔوۡهَا﴾ او د داسې مزکې هم] ئې تاسولره په خپل علم ازلی کښې مالکان جوړ کړی یئ: [په کومې چې تاسو] تراوسه [قدم] هم [نه دې ایښودې] په دې کښې خوشخبری ده دمستقلو فتحوعموما او یا دخیبر د فتح خصوصا کومه چې ددې نه لږ وروستو اوشوه ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرًا﴾ [او الله تعالی په هرڅه پوره قدرت لری] په دې وجه دا کارونه څه لری نه دی

## معارف او مسائل

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوا اذۡكُرُوۡا نِعۡمَةَ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ﴾ په تیر شوی آیتونو کښې د رسول الله ﷺ د شان لوئی بیان شوې وه او مسلمانانو ته دا هدایت وو چې تاسو د نبی کریم ﷺ مکمله تابعداری کوئ. دې مناسبت سره د اپوره دوه رکوع د قرآن عظیم الشان د غزوه احزاب باره کښې نازلې شوی دی. دې کښې دا بیان دې چې د کافرانو ګنړې ډلې په مسلمانانو باندې په یو ځل د حملې کولو د پاره مدینې منورې ته راؤرسیدلې ، دغه سخت وخت او سختې پیښه کښې په مسلمانانو باندې د الله ﷻ د انعامونو او درسول الله ﷺ د ګنړو معجزوبیان دې ، ددې په ترخ [بغل] کښې د ژوند د مختلفو اړخونو باره کښې هدایتونه دی او احکام دی ، هم ددې بې شماره هدایتونو په وجه لویو مفسرینو دلته د احزاب واقعه په خاص تفصیل سره لیکلې ده. خصوصا قرطبی رحمة الله علیه او مظهری وغیره ځکه د احزاب دواقعې څه تفصیل سره ددغې هدایتونو لیکلې شی چې اکثره برخه په کښې د قرطبی اومظهری نه راخستې شوې ده. چرته چې څه برخه د بل کتاب نه راخستې شوې ده هلته د هغې حواله ورکړې شوې ده.

## د غزوهٔ احزاب واقعه

احزاب د حزب جمع ده ، د ډلې معنی ورکوی. دې غزه کښې دکافرانو مختلفې ډلې مدینه منوره باندې په یو ځل حمله کولو دپاره راجمع شوې وې چې مسلمانان بیخی ختم کړی. ځکه ددې نوم غزوهٔ احزاب کیخودې شو. دغه غزه کښې د دښمن د لارې بندولو په غرض د رسول الله ﷺ په حکم خندق کنستې شوې وو. ځکه ورته غزوهٔ خندق هم وئیلې شی. او غزوهٔ بنی قریظه کومه چې د غزوهٔ احزاب نه سمدستی پس شوې وه او په دې آیتونو کښې د هغې هم بیان دې ، حقیقت کښې هغه د غزوهٔ احزاب یوه برخه وه لکه چې د واقعې د تفصیل نه به معلومه شی.

رسول الله ﷺ کله چې مدینې منورې ته هجرت اوکړو د هغې په دویم کال د غزوهٔ بدر واقعه راپیښه شوه ، په دریم کال د احد غزا راپیښه شوه. او په څلورم کال دا غزوهٔ احزاب راپیښه شوه. د ځینې روایتونو تر مخه دا دهجرت په پنځم کال راپیښه شوې وه ، خو د هجرت کولو د ابتداء نه تر دغې وخته پورې د کافرانو حملې په مسلمانانو باندې جاری وی. هرکله چې غزوهٔ

احزاب ښه په زور ، طاقت ، جوش ، مضبوط ،قول ، لوظ او په اتفاق سره راولاړه کړي وه .
څکه رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ﷺ ته دا ډيره سخته پريوتي وه . ددغه کافرانو جنګي
ځوانان دولسو نه تر پنځلسو زرو[۱۵۰۰۰] پوري خودلي شوي دي . او بل اړخ ته مسلمانانو
ټول دري زره وو . هيڅ سامان ورسره نه وو . اودسختي يخني موسم وو. لکه قرآن پاک ددي
سختي په دي شان هيبتناکه بيانوي . ﴿زَاغَتِ الْاَبْصَارُ﴾ يعني ستركي وازي پاتي شوي .
﴿وَبَلَغَتِ الْقُلُوْبُ الْحَنَاجِرَ﴾ يعني زړونه خلوته راتلل ، ﴿وَزُلْزِلُوْا زِلْزَالًا شَدِيْدًا﴾ يعني سخته زلزله پري
راوستي شوه . خو سره ددي دومره سختئ مسلمانانو سره د الله ﷻ کافي مدد اوشو چي
انجام ئي د مسلمانانو داسي فتح او بري راؤختو چي ورسره د ټولو مخالفو ډلو ، کافرانو ،
مشرکانو ، يهودو او منافقانو ملاګاني ماتي شوي ، تر دي چي هغوئ بيا دپاره په مسلمانانو
باندي دحملي کولو جوګه نه شو ، په دي بنا دا غزه د کفر او اسلام آخري جنګ ووچي د
مديني منوري په مبارکه زمکه د هجرت په څلورم کال ياپنځم کال شوي وو.
د دي واقعي ابتداء داسي اوشه چي د يهودو د قبيلي بني نضير او قبيله ابي وائل تقريبا شل
کسان چي رسول الله ﷺ سره ئي سخته دښمني لرله . مکي مکرمي ته ورغلل ، قريشي
سرداران ئي مسلمانانو سره جنګ کولو دپاره رانيغ کړل ، قريشي سردارانو دا ګڼړله چي
څنګه مسلمانان زمونږ بت پرستئ ته کفر وائي او زمونږ مذهب په د غي بنا خراب بولي نو
ديهودو هم دغه خيال دي ، زمونږ جوړښت به دوئ سره څنګه راشي . څکه ئي يهودو ته دا
سوال وړاندي کړو چي هرکله تاسو خبريئ چي زمونږ او د محمد ﷺ ترمينځه ديني او مذهبي
اختلاف دي اوتاسو خلق اهل کتاب او اهل علم يئ او ل راته دا خبره اوښايئ چي ستاسو په
نزد زمونږ دين زيات غوره دي او که دهغوئ ؟

**سياسي ډلو کښي دروغ ويل څه نوي خبره نه ده ::** دغه يهودو د خپل دين او ضمير په خلاف ورته دا
جواب ورکړو چي ستاسو دين د محمد ﷺ ددين نه زيات غوره دي ، په دي سره ددغي خلقو
څه قدري تسلي اوشوه . خو بيا هم فيصله دا اوشوه چي يو خوا دا شل کسا ن او بل خوا
پنځوس قريشي سرداران به مسجد حرام ته ورشو . دبيت الله شريف ديوالونو سره به سني
جوختي اولګوؤ الله تعالى سره به دا لوظ اوکړو چي په مونږ کښي يو کس هم تر څو ژوندي
وي نو د محمد ﷺ خلاف به جنګ کوؤ.

**دالله تعالى د زغم او مهرباني يوه عجيبه ننداره ::** دالله ﷻ په کور کښي بيت الله شريف سره کوم
خلق چي جوخت ولاړو او دالله ﷻ د غي دښمنانو دهغه پاک ذات درسول ﷺ په خلاف د
جنګ کولو لوظ اوکړو ، ښه په تسلئ شو او د جنګ نوي جذبي سره واپس شو ، بل خوا د
الله ﷻ زغم او مهربانئ ته ګورئ چي ددي لوظ ، قول ، انجام څه شو؟ نو په آخر د قيصي
کښي به معلومه شي چي د جنګ نه مخ په شا اوتښتيدل .
دغه يهوديان دغه ځائي نه د عربو يو جنګيالئ لوئي قبيلي غطفان له ورغلل او هغوئ ئي
ددغي شوي لوظ ، قول د تفصيل نه آګاه کړل . او ورته ئي اوويل چي تاسو هم په دي کار
کښي شريک شئ چي دمسلمانانو جرړي اوباسو . او ورته ئي دا رشوت هم پيش کړو چي د
خيبر د کهجورو د يو کال پيداوار او د ځيني روايتونو تر مخه د نيم کال پيداوار به بني
غطفان ته ورکوؤ . د بني غطفان سردار عيينه بن حصين په دي شرط ورسره اومنله . او ورسره

په جنګ کښې دغه خلق هم شامل شو.
د دغه لوظونو قولونو په جوړ د مکې مکرمې نه دقریشو لښکر د ابی سفیان په مشرئ کښې روان شو، په دې کښې څلور زره ځوانان، درې سوه آسونه، یو زر اوښان سره د سامانونو په مرالظهران کښې جمع شو. دغه ځائې قبیله اسلم، قبیله اشجع، بنومره، نبوکنانه، فزاره او غطفان ورسره یو ځائې شوې چې د ټولو شمیر په څنې روایتونو کښې لس زره، څینو کښې دولس زره، او څینو کښې پنځلس زره بیان شوې دې.

**مدینه منوره باندې د ټولو نه لویه حمله** :: غزوه بدر کښې د مسلمانانو مخالف لښکر د زر ځوانانو وو، بیا داحد په غزا کښې د درې زرو کسانو او دا ځل هم د مخالف لښکر شمیر د هر اولنئ ځل نه زیات وو دغسې سامان هم او د عربو د ټولو قبیلو اود یهودو رایوځائې شوې طاقت وو.

**د مسلمانانو جنګې تیارې، په الله ﷻ توکل، یو بل سره مشوره کول، د خپل وس مطابق مادي وسلې راغونډول** :: کله چې رسول الله ﷺ د دغې ټولو حالاتو نه خبر شو نو په خوله مبارکه باندې ئې اول کلمه دا وه چې ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِیْلُ﴾ یعنی مونږ. دپاره الله ﷻ کافي دې او هم هغه زمونږ کارساز دې. دې نه پس ئې د مهاجرینو او انصارو د رائې خاوندانو نه مشوره واخسته. اګر چې صاحب د وحی ته حقیقت کښې د مشورې اخستو ضرورت نه وی، نبی ﷺ خو نیغ په نیغه دالله تعالی په اجازت سره کار کولو خو په مشوره کښې دوه فائدې وې، یوه دا چې امت دپاره د مشورې سنت طریقه جاری کړی، بله دا چې د مؤمنانو د زړونو ترمینځه د تړون او یو والی نوی کول او یو بل سره خپل مینځ کښې د لاس مدد کولو جذبه بیدارول وو، دې نه پس د دفاع او جنګ په مادي وسائلو باندې غور اوشو. په دغه کښې سلمان فارسی ؓ هم شامل وو. چې اوس ئې د یو یهودی د مصنوعی غلامئ نه خلاصې بیا موندې وو. او اسلامی خدمتونو دپاره تیار شوې وو. سلمان فارسی ؓ مشوره ورکړه چې زمونږ د فارس په علاقه کښې د دښمن دحملې د لارې ایسارولو دپاره بادشاهان خندقونه کنی، رسول الله ﷺ دغه مشوره قبوله کړه او د خندق کنستو حکم ئې ورکړو او پخپله هم پدغه کار کولو کښې شریک شو.

**دخندق کنستل** :: دا خندق دجبل سلع په شا د ټولې لارې د اوږد والی په جوړ کنستل مقرر کړې شو چې د مدینې منورې دکوم قطبی یعنی شمالی اړخ نه پرې دښمن راتلې شو. ددې خندق د اوږدوالی او پلنوالی کرښه پخپله رسول الله ﷺ راښکله، دغه خندق دشیخین نه شروع شو او د سلع تر نمر لوئیدیز کوټ [کونج] پورې راورسیدو، دې نه پس ئې هغه نور هم زیات کړو. او هغه ځائې پورې ئې اورسولو چې چرته د بطحان او راتونا وادیانې سره یوځائې کیږی. د دغه خندق ټول اوږدوالی تقریبا درې نیم میله وو او د پلنوالی او ژور والی صحیح اندازه ئې د څه روایت نه معلومه نشوه، خو ښکاریږی چې پلنوالې او ژوروالې به ئې هم دومره وو چې د دښمن پورې وتل به پرې ګران وو. د سلمان فارسی ؓ د خندق د کنستو په واقعه کښې داسې بیان شوې دی چې سلمان فارسی ؓ به هره ورځ پنځه ګزه اوږد او پنځه ګزه ژور خندق کنستو، [مظهری][1] په دې بنا دا وئیلې شی چې د خندق ژور والئ پنځه ګزه وو.

---

[1]) تفسیر المظهری: ج ۷، ص ۹۲

**د اسلامي لښکر تعداد** :: دغه وخت د ټولو مسلمانانو د لښکر شمیر درې زره کسان او ورسره ټول شپږ دېرش آسونه وو.

**د بالغیدو عمر پنځلس کاله اوټاکلې شو** :: اسلامي جوش له کبله څه نا بالغه ماشومان هم په اسلامي لښکر کښې شامل شو خو رسول الله ﷺ هغه ماشومان را واپس کړل چې پنځلسو کالو ته ئې عمر نه وو رسیدلې. پنځلس کلن هلکان ئې په کښې شامل کړل چې په کښې عبدالله بن عمر رضي الله عنه، زید بن ثابت رضي الله عنه، ابوسعید خدري رضي الله عنه او براء بن عازب رضي الله عنه شامل وو.
کله چې د غه اسلامي لښکر مقابلې دپاره روان شو نو په دې کښې شامل منافقان ترې په لارې کښې لاړل. څوک ترې په پټه اووتل او چا د دروغو بهانې جوړې کړې. او رسول الله ﷺ نه ئې د واپس کیدو اجازت اوغوښتو. دا په لښکر کښې د ننه یو بل یو آفت راپیښ شو، په دې آیتونو کښې د منافقانو باره کښې هم څو آیتونه نازل شو. [ قرطبي ][1].

**د قبائلي او نسبي قومیتونو انتظامي معاشرتي بیلتون اسلامي یو والي او اسلامي قومیت سره بې سمونه نه دي** :: رسول الله ﷺ دې جهاد دپاره دمهاجرینو جنډه زید بن حارثه رضي الله عنه ته حواله کړه. او د انصارو جنډه ئې سعد بن عباده رضي الله عنه ته حواله کړه. دغه وخت دمهاجرینو او انصارو ترمینځه د مواخات تعلقات ډیر مضبوط قائم وو او ټول سره رونړه رونړه وو، مګر د انتظامي سهولت په خاطر د مهاجرینو او انصارو مشری بیله بیله کړې شوه. دې نه معلومه شوه چې اسلامي قومیت، اسلامي یو والئ د انتظامي او معاشرتي تقسیم سره بې سمونه نه دې بلکه په هره ډله باندې د ذمه دارئ د پیټې په اچولو سره د خپل مینځ اعتبار او مدد جذبه مضبوطیږي، او ددې جنګ د ټولو نه په ړومبی کار خندق کنستو کښې یو بل سره دغه لاس او مدد ګول داسې اولیدې شو.

**د خندق د کنستو کار په ټول لښکر اوویشلې شو** :: رسول الله ﷺ د ټول لښکر په ټولو مهاجرینو او انصارو د خندق کنستو کار داسې اوویشلو چې د لسو لسو کسانو جماعت ئې جوړ کړو چې د څلویښتو څلویښتو ګزو د خندق کنستو د دغې لسو لسو کسانو جماعت په ذمه دارئ اوګرځولې شو. چونکه چې سلمان فارسي رضي الله عنه د خندق کنستل ماهر، ددې مشوره ورکوونکې ، واقف او مضبوط سړې وو ، نه انصاري وو او نه مهاجر، نو د دوئ رضي الله عنه په سر د انصارو او مهاجرینو په مینځ کښې د مقابلې صورت داسې پیدا شو چې انصارو به خپله ډله کښې شاملولو او مهاجرینو به خپل جماعت کښې. ددې په نتیجه کښې رسول الله ﷺ ددې جګړې ختمولو دپاره داسې اوفرمائیل چې: [ سلمان منا اهل البیت ] یعنې سلمان زمونږ په اهل بیتو کښې شامل دې[2].

**دکار د جوګه والي اعتبار سره د ملکي، غیر ملکي، مقامي او غیر مقامي په مینځ کښې بیلتون** :: نن زمانه کښې د بل ملک او غیر مقامي بنده دخپل ملک مقامي بنده سره یو شان نشي ګڼرلې، خو دغلته خلقو په دې فخر محسوسولو چې ورسره د کار جوګه او ماهر بنده ملګرې شي. رسول

---

[1] ) تفسیر القرطبي: ج ١٤، ص ١٢٩

[2] ) المعجم الکبیر، رقم الحدیث: ٦٠٤٠

الله ﷺ دغه جګړه په دې شان ختمه کړه چې سلمان فارسي رضي الله عنه ئې د خپل اهل غړي اوګرځولو. او د سلمان فارسي رضي الله عنه عزت ئې نور هم زيات کړو. سلمان فارسي سره څه انصار او څه مهاجرين ئې يوځائې کړل او سلمان فارسي رضي الله عنه سره د لسو کسانو ټولې برابر کړو چې په کښې عمرو بن عوف رضي الله عنه او حذيفه رضي الله عنه وغيره دمهاجرينو نه شامل وو.

**يوه لويه معجزه** :: يوه لويه واقعه دا راپيښه شوه چې د سلمان فارسي رضي الله عنه په برخه ځائې د خندق کښې يو سخت ګټ [کاڼړی] رابرسيره شو ، د سلمان فارسي رضي الله عنه ملګري عمرو بن عوف رضي الله عنه اوفرمائيل چې دغې ګټ زمونږ اوزار مات کړل او مونږ د هغې د ماتولو نه پاتې راغلو. دوئ فرمائي چې ما سلمان فارسي رضي الله عنه ته اووئيل چې دغه ګټ به په ځائې پريږدو ، دې خوا کښې به خندق اوکنو او اصلي خندق سره به ئې يو ځائې کړو که څه کوږوالې په کښې راشي نو خير دې خو بيا هم د رسول الله ﷺ نه په کښې مشوره واخلئ ، هسې نه چې د رسول الله ﷺ د مرضئ نه خلاف اوشي.

**دقدرت خبرداري ورکول** :: دې درې نيم ميله خندق کنستو کښې هيچاته هم څه بنديز او مشکل راپيښ نشو . صرف سلمان فارسي رضي الله عنه ته راپيښ شو چا چې دخندق کنستو مشوره ورکړې وه . او هم د سلمان فارسي رضي الله عنه په مشوره باندې خندق کنستل جاري وو. الله ﷻ هغوئ ته اوخودل چې د خندق په کنستو او جوړولو کښې هم الله ﷻ ته دماتې کولو نه سوا بل څه علاج نشته ، اوزار وغيره په کښې هيڅ کار نشي کولې . دې سره دغې حضراتو رضي الله عنهم ته د قدرت دا تعليم ورکول وو ، اکر چې د خپل وس په جوړ مادي سامان اسباب او طاقت جمع کول فرض دی خو په هغې تکيه او بهروسه کول صحيح نه دی. که دغه سامان وغيره راجمع کړې شي ، بيا هم تکيه په الله ﷻ باندې کول پکار دی.

سلمان فارسي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او حال ئې ورته بيان کړو . نبي کريم ﷺ هم دخندق په خپله برخه کنلو کښې مصروف وو. او دغه ځائې نه ئې بناورې لرې کولې . براء بن عازب رضي الله عنه اوفرمائيل چې ما دغه وخت اوليدل چې د نبي کريم ﷺ بدن مبارک د ګردونو نه داسې ډک شوې وو چې د خيټې اوشا مبارکې څرمن مبارکه ئې په نظر نه راتله. بيا هم رسول الله ﷺ هغوئ ته څه مشوره يا حکم اونه فرمائيلو بلکه پخپله ورسره دغې موقعې ته لاړل. پخپله ورکوز شو ، کودالـه ئې پخپل لاس مبارک کښې واخسته، په دغه ګټ ئې ګزارونه اوکړل او دا آيت مبارک ئې اولوستو چې ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا﴾ يعنې ستا درب نعمت په رښتيا مکمل شو . دې يو ګزار سره هغه دريمه برخه ګټ مات شو او دې سره يو رڼړا ددغې ګټ نه رابرخيره شوه ، بيا ئې چې دويم ګزار ورکړو نو دغه آيت مبارک ئې تر آخره پورې اولوستو چې ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا﴾ (۱) دې سره بله دويمه برخه د ګټ ماته شوه ، په دريم څل ګزار کولو سره ئې بيا دغه آيت مبارک اولوستو نو پاتې ګټ هم مات شو او رسول الله ﷺ د خندق نه بهر تشريف راړو. او خپل هغه څادر مبارک ئې راپورته کړو چې کوم ئې د خندق په غاړه ايخودې وو او يو خوا ته ئې تشريف کيخودو. دغه وخت ورته سلمان

(۱) ترجمه: او ستا درب خبره د رښتينوالي او دانصاف په اعتبار سره کامله ده.

فارسي ﷺ اوفرمائيل چې کله تاسو په کټ باندې ګزا رکولو نو ما اوليدل چې يوه رڼرا ترې راووتله. نبي کريم ﷺ سلمان فارسي ﷺ ته اوفرمائيل چې تا رښتيا دغه رڼرا ليدلې ده؟ هغوئ عرض اوکړو چې آؤ، ما واقعي په خپلو سترګو دغه رڼرا ليدلې ده.

رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې ما په اول ځل رڼرا کښې ديمن او دکسرئ محلونه ليدلي دي، او جبرائيل امين راته اوخودل چې ستاسو امت به دغه ښارونه فتح کوي او په دويم ځل رڼرا کښې راته د روميانو سره محلونه اوخودلې شو[1] او جبرائيل امين راته دا زيرې راکړو چې ستاسو امت بهٔ دا ښارونه فتح کوي. ددې ارشاد په آوريدو سره د ټولو مسلمانانو تسلي وشوه. او د آئند په ټولو فتوحاتو باندې ئې يقين اوشو.

**د منافقانو پېغور ورکول او د مسلمانانو بې مثله ايماني يقين:** دا وخت چې کوم منافقان د خندق په کنستو کښې شامل وو هغوئ اوويل چې تاسو ته د محمد ﷺ خبرې عجيبه نه لګي چې نبي کريم ﷺ درسره څنګه باطلې او بې بنياده وعدې کوي چې د يثرب د خندق په ژروالي کښې نبي کريم ﷺ ته د حيره او مدائن د کسرئ محلونه په نظر راځي او دا هم فرمائي چې تاسو خلق به دا فتح کوئ. خپل ځان اوګورئ چې ځان نه هم خبر نه يئ. ورو، لويو متيازو کولو ته برابر نه يئ. آيا تاسو به دکسرئ وغيره ملک فتح کړې شئ. دې باره کښې ددې اوسنو آيتونو څنې دا آيت نازل شو: ﴿وَاِذۡ يَقُوۡلُ الۡمُنٰفِقُوۡنَ وَالَّذِيۡنَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُوۡلُهٗۤ اِلَّا غُرُوۡرًا﴾ دلته په ﴿اَلَّذِيۡنَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ﴾ کښې هم دمنافقانو حال بيان کړې شوې دې. چې په زړه کښې ئې دمنافقت مرض پټ وو، په ژور نظر چې اوګورئ چې خندق کنستونکي صحابه کرام ﷺ د کافرانو په ګيره کښې وو، د خندق کنستو دپاره څوک مزدوران او خادمان نه وو، پخپله ئې دغه خوارې کوله. اګر چې د سختې يخنئ نه ټول تنګ وو. هر طرفته ويره ويره وه. په ښکاره خو د خپلو خلاصيدو او باقي پاتې کيدو يقين کول هم آسان نه دي، ددنيا د لويو سلطنتونو روم او کسرئ فتح کولو په زيرئ باندې به يقين ئې څنګه اوشي؟ خود ايمان قيمت دټولو عملونو نه زيات څکه دې چې د اسبابو او حالاتو ټولوڅخه سرار خلاف کيدو په وخت دوئ ته بيا هم د نبي کريم ﷺ په ارشاد کښې لږ شان شك او شبه پيدا نشوه

**دې واقعه کښې امت دپاره خاص هدايت چې مشرانو ته د کشرانو په هر تکليف او مشقت کښې شامل پاتې کيدل بکار دي:** دا چاته معلومه نه ده چې صحابه کرام ﷺ په نبي کريم ﷺ باندې دومره ځان قرباني کوونکي وو چې په نبي کريم ﷺ باندې ئې دګل ګزار هم نه خوښولو. دخندق دکنستو مشقت اوتکليف ته ئې پريخودل خو ډيره لرې خبره وه. خو رسول اکرم ﷺ امت ته د تعليم ورکولو په خاطر د صحابه کرامو ﷺ د زړه ساتلو دپاره په دغه محنت او مشقت کولو کښې ورسره يو شان برخه واخسته. د صحابه کرامو ﷺ ځان قرباني هم د نبي کريم ﷺ د کاملو صفتونو او د پيغمبرئ په بنياد وو، مګر ظاهري سببونو کښې يو لوئې سبب دا هم وو چې هر محنت، مشقت، تنګئ او تکليف کښې به نبي کريم ﷺ دټولو عوامو پشان ورسره شريکيدل. هلته دحاکم او محکوم بادشاه او رعيت اود اقتدار دخاوند او د عوامو ترمينځه د بيلتون هيڅ تصور هم نه پيدا کيدو. او کله چې د اسلام بادشاهانو دغه طريقه پريخوده نو دغې

[1]) سنن النسائي، كتاب الجهاد، باب غزوة الترک والحبشة: ج ۲، ص ۶۳، ۶۴

وخت نه دابيلتونونه راولاړ شو او قسما قسم فتنې ئې په خپلې لمن کښې راوړې

**په مشکلاتو باندې قابو موندلو نسخه:** کله چې نبی کريم ﷺ به هغې ګټې باندې ګزار کولو نو دا قرآني آيت ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا ۚ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ﴾ به ئې لوستو. معلومه شوه چې د څه مشکل حل کولو د پاره ددې آيت مبارک تلاوت کول يوه مجربه نسخه ده.

**د صحابه کرامو ﷺ ايثار او خپل مينځ کښې يو بل سره مدد کول:** څنګه چې معلومه شوه چې د خندق دهر لسو ګزو په کنستو به لس لس کسان ټاکلې شوی وو خو په دې کښې به څه تکړه کسان هم وو چې خپل کار به ئې ختم کړو نو دا به ئې نه ګڼړل چې ګنی زما ذمه پوره شوه بس کيناسته به بلکه بل کمزوری سره به ئې مدد کولو چې دهغه د ذمې کار خلاص کړی [قرطبي ومظهری][1].

**درې نيم ميله خندق په شپږو ورځو کښې مکمل شو:** هم ددې خندق کنستو په دوران کښې دامشهوره واقعه راپيښه شوه چې يو ورځ جابر اوليدل چې رسول الله ﷺ سخت اوږې شوې دې. جابر ﷺ خپل کور ته لاړو او خپلې بی بی ته ئې اووئيل چې په کور کښې که څه وی نو پاخه ئې کړه د رسول الله ﷺ د سختې لوږې حالت ته زه نشم کتې. بی بی ورته اووئيل چې زمونږ په کور کښې يو وړئی اوربشې پرتې دی ، هغه به اوره کړم. زمونږ په ټول يو وړئ درې نيم سره جوړيږی. بی بی ئې په اوړه کولو او پخولو کښې اخته شوه. کور کښې ئې يو چيلې وو ، جابر ﷺ هغه ذبح کړو او غوښه ئې تياره کړه او د رسول الله ﷺ رابللو دپاره روان شو ، بی بی ئې ورپسې آواز اوکړو چې ګوره رسول الله ﷺ سره صحابه کرام ﷺ ډير دی ، صرف نبی کريم ﷺ راولې. هسې نه چې اوشرميږو او د صحابه کرامو ﷺ زيات شمير راشی. جابر ﷺ لاړو او نبی کريم ﷺ ته ئې دا ټول حال بيان کړو. نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ټول لښکر ته اعلان اوکړئ چې راځئ جابر ﷺ ستاسو ډوډئ کړيده.

داسې حالت کښې چې سره د لوئې جماعت خپل کور ته راورسيدو نو بی بی ئې سخته پريشانه شوه او تپوس ئې اوکړو چې نبی کريم ﷺ دې د اصل حالت نه ولې خبر نه کړو؟ د پخلی د اندازې نه به دې خبر کړې وو؟ جابر ﷺ اوفرمائيل چې ما ټول هر څه ورته بيان کړی وو ، نو بی بی ئې تسلی ښکاره کړه او وې وئيل چې بيا خو زمونږ هيڅ فکر نشته دې ، نبی کريم ﷺ مالک دې په خپله خوښه به هر څه کوی[2].

تفصيل سره د واقعې بيانولو ضرورت نشته دې. دومره نتيجه ترې معلوموول کافی دی چې پخپله رسول الله ﷺ پخپل لاس مبارک سره ټولو ته د روټئ او پخکړی ورکولو او دهغې د خوړلو انتظام اوکړو چې ټولې ډلې ښه په مړه ګيډه خوراک اوکړو نو ما اوکتل چې د کټوئ غوښه هم څه کمه شوې نه وه. او اغړلی اوړه هم په خپل حالت باندې ښکاريدل. مونږ ټول کور ترې نه په مړه ګيډه خوراک اوکړو او چې کوم پاتې شو نو هغه مو په ګوانډ کښې تقسيم کړو.
هرکله چې په شپږو ورځو کښې د خندق د کنستو نه فارغ شو نو د احزاب لښکر راورسيدو ، رسول الله ﷺ ا وصحابه کرامو ﷺ غر خپلې شاته اولرلو او د فوج صف بندی ئې اوکړه.

---

[1]) تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ١٣٠ .
[2]) صحيح البخاري، کتاب المغازی، باب غزوة الخندق: ج ٢، ص ٥٨٨، ٥٨٩

**د بنی قریظه دیهودو وعده ماتول او احزاب کښې شریکېدل** :: سامان نه ډک پک د دولسو زرو ځوانانو لښکر سره د درې زرو تس لاشو کسانو مقابله کول دعقل اوقياس نه بهر خبره وه . بل په کښې دامصیبت راپېښ شو چې په ا حزاب کښې د بنی نضير قبيلې سردار حيی بن اخطب چا چې ټولو لره د رسول کریم ﷺ اودمسلمانانو په دشمنۍ کولو باندې جمع کولو کښې لوې کار کړې وو مدينې منورې ته راغلو چې بنی قریظه د ځان سره ملګری کړی . دا هغه سړې دې چې د رسول الله ﷺ او د مسلمانانو په دښمنۍ باندې د راجمع کولو غټ کار کړې وو. دبنی قريظه او درسول ا لله ﷺ ترمينځه د صلح په لوظ نامه باندې دستخطونه شوی وو. او په دې شان دواړه طرفونه د يو بل نه بې فکره شوی وو. او د بنی قريظه سردار کعب بن اسد وو. حيی بن اخطب چې دغلته ا ورسيدو او کعب پرې خبر شو نو دخپلې قلعې دروازه ئې بنده کړه چې حيی راسره ملاقات اونه کړی . خو حيی ورته ډېر آوازونه کول ، په دروازې پرانيستو سره ئې ډېر ټينګار اوکړو خو کعب د دننه؛ نه ورته جواب ورکړو چې مونږ خو محمد ﷺ سره صلح کړې ده . او تر ننه پورې مونږ د نبی کریم ﷺ نه د لوظ د پابندۍ او رښتياؤ نه سوا بل هيڅ نه دی ليدلی . ځکه ورسره مونږ هم دلوظ نامې پابندی کوؤ. تاسره ملګرتيا نشو کولې . ډېر وخت پورې داسې خبرې اترې روانې وې . خو آخر چې کله ئې کعب ته ډېر غيرت ورکړو نو هغه دروازه بيرته کړه . هر کله چې دننه ورغلو نو بنی قريظه ئې پخپله چالاکۍ ځان سره کړل او په احزاب کښې ئې ورسره د شريکيدو وعده اوکړه . کعب چې کله دا خبر نورو سردارانو ته ورکړو نو هغوئ ټولو ورته اوئيل چې هسې دهوکه شوې چې مسلمانانو سره دې بې وجې لوظ مات کړو او احزاب سره په ملګری کيدو دې ځان په خطره کښې واچولو. کعب هم په خپلو کړو پښيمانه وو. خو بيا هيڅ نشو کيدې . آخر دغه لوظ ماتول د بنی قريظه د هلاکت او بربادۍ سبب جوړ شو . اوددې بيان روستو راروان دې .

نبی کريم ﷺ او صحابه کرام ﷺ چې په دې خبر شو نو په داسې وخت ددوئ په لوظ ماتولو باندې ډېر زيات خفه شو. او دا فکر ورسره مل شو چې داحزاب د لار بندولو دپاره مونږ خندق اوکنستو او دا خلق خو په مدينه کښې دننه دی ، دوئ نه به د ځان ساتلو څه صورت کيدې شی ؟ دلته قرآن پاک کښې ددې جملې ﴿مِّن فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ﴾ تفسير ځينې مفسرينو دا کړې دې چې د فوق طرفنه مطلب بنو قريظه او د اسفل نه مراد باقی احزاب دی يعنی دواړو قسمو خلقو په تاسو حمله اوکړه .

رسول کريم ﷺ ددغې لوظ ماتولو حقيقت او صحيح صورت حال معلومولو دپاره د انصارو نه د اوس قبيلې سعد بن معاذ ﷺ اودخزرج قبيلې نه دهغوئ سردار سعد بن عباده ﷺ د وفد په شکل کښې کعب ته وراوليږل چې ورسره دخبرو کولو نه پس که خبره دروغ اوخته نو د ټولو صحابهٔ کرامو ﷺ په وړاندې دې ښه په ډاګه بيان کړی اوکه خبره صحيح ثابته شوه نو په اشارو کښې دې بيان کړی چې صرف مونږ پرې پوهه شو او په عامو صحابه کرامو ﷺ ددې اثر اونشی .

دغه دواړه صحابه کرام ﷺ چې هلته اورسيدل نو د وعدې ماتولو ښکاره ثبوتونه ئې اوليدل . کعب سره ئې خبرې هم سختې اوشوې او په واپسۍ کښې ئې د هغوئ د هدايت مطابق د دغه لوظ ماتولو بيان هم اوکړو.

دغـه وخـت د يهـودو د بنـي قريظـه خلق چـې د مـسلمانانو حليـف ملگـري وو ، هغـوئ هـم مسلمانانو پـه خلاف د جنـګ كـولـو دپـاره راؤوتـل . اود منافقانو راز هـم ښكاره شـو كـوم چـې مسلمانانو سره په ظاهره شامل شوی وو. په هغوئ کښې خو بعضو د رسـول الله ﷺ پخلاف خبرې كول شروع كړې لكه څنګه چې مخكښې بيـان شـو چـې : ﴿وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا﴾ او بعضو پـه څـه بهانو او چـل ول سره نبی کریم ﷺ نـه اجازت اوغوښتلو اوميدان جنګ نه اوتښتيدل لكـه فرمائي چـې :: ﴿إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ﴾ اوس د ميـدان جنګ صورت دا وو چې دخندق بهر غاړې ته احزاب وو ، چې دننه نشو راتلې اودننه غاړې ته مسلمانان پراتـه وو. دواړو طرفونو يو بـل بانـدې صرف غشـي ورويشتل . داشان تقريبا يـوه مياشت تيره شوه . نه خو سم په ډاګه جنګ اوشو او نـه څـه د جنګ نـه بې فكرى كيدې شـوه . شپه او ورځ به صحابه كرام ﷺ او رسـول الله ﷺ د خندق په غاړه ددې حفاظت كولو. اګر چې نبی کریم ﷺ پخپله هم تكليف تيرولو ، بيا هم دصحابه كرامو ﷺ د تكليف دپـاره ډيـر خفـه كيدل ولې چې نبی کریم ﷺ سخت بې آرامه او پريشانه وو.

**د رسول الله کریم ﷺ يو جنګي تدبير** :: د رسـول الله ﷺ پـه علم كښې دا خبره راغلې وه چې د غطفان قبيلې رئيس يهوديانو سره په دې شرط ملګرتيا قبوله كړه چې په رشوت كښې بـه ورتـه هر كال د خيبر كهجورې وركوى . نو نبی کریم ﷺ د غطفان دوؤ سردارانو عيينـه بـن حـصن اوابو الحارث ابن عمرو ته قاصد اوليږلو چې مونږ بـه درتـه د مـديني منـورې دريمـه حصه برخـه ميوه دركوؤ كه تاسو ددې ميدان جنګ نه لاړئ . دا خبرې اترې جارى وې چې دواړه سـرداران په دې راضى شو . په لوظ نامه باندې دستخط كول رانـزدې شـوى وو ، مګر پدغـه موقعـه هـم دخپل عادت مبارک په جوړ صحابه كرامو ﷺ سره ئې مشوره اوكړه . د اوس اوخزرج قبيلـو دوؤ بزرګانو سعدينو يعنى سعد بن عباده ﷺ او سعد بـن معـاذ ﷺ ئـې راؤ بلـل او مـشوره ئـې ترې وا خسته .

**سعد ﷺ ايماني غيرت او پوخ قصد** :: دواړو عرض اوكړو چې يارسول الله ﷺ كه تاسو تـه دالله ﷻ د طرفنه ددې حكم شوې وى نو په دې خو مـونږ د څـه وئيلـو حـق نـه لـرو . او دا بـهٔ قبـول كـړو. ګنى نو داراته اوښايئ چې آيا ستاسو خپلـه طبعي رائې ده اوكـه پـه مـونږ مـو داتكليف پيـرزو نشى چې دې نه مونږ خلاصول غواړئ ؟

نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چې نـه دالله ﷻ امـر راتـه شـوى دې او نـه دا ځمـا خپلـه طبعي رائې ده بلكه ستاسو تكليف ته په كتلو مې دا صورت اختيـار كـړو . سعدبن عباده ﷺ عرض اوكـړو چې يارسول الله ﷺ ! مونږ چې كله د بتانو عبادت كولو او مونږ الله تعـالى نـه پيـژندو. او د الله تعالى عبادت مو نه كولو. دغه وخت كښې هم ددغه خلقو دا همت نه وو چې زمونږ دښـار ديـوې دانې طمع دار شى . دا بيله خبره وه چې دوئ به زمونږ ميلمانه شو او پـه دوئ بانـدې بـه مـو دغـه خوراک اوخرولو او يا بهٔ ئې زمونږ نه پـه رقـم يعنـى پيـسو واخـستو. نـن چـې مـونږ تـه الله ﷻ خپله پيژندګلو اوكړه او مونږ ته ئې داسلام راوړلو عزت نصيب كـړو نـو اوس بـهٔ ورتـه خپلې ميوې او مالونه وركوؤ؟ دوئ سره زمونږ د صلح كولو هيڅ ضرورت نشته دې . دوئ سره بـه زمونږ فيصله صرف په توره باندې وى چې الله تعالى بهٔ ئې كوى .

هر کله چې نبی کریم ﷺ د سعد بن عباده رضی الله عنه مضبوطیا او ایمانی قوت اولیدو نو وې فرمائیل چې ستاسو خوښه ، څه چې تاسو غواړئ نو هغه کوئ. سعد رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ د لاس مبارک نه د لوظ نا مې خط واخستو او خط ئې ترې اوران کړو. تر اوسه لا په دې دستخط نه وو شوې . د غطفان قبیلې دواړه سردران عیینه او حارث هم دلته موجود وو او دې صلحې ته تیار شوی وو چې هغوئ د صحابه کرامو دغه مضبوطیا اولیده نو پخپله ئې هم زړونه په ریپدو شو.

**دسعدبن معاذ زخمي کیدل اود نبی کریم ﷺ دعا** :: یو خوا د خندق د دواړو طرفونو دغشو او دکانړو ویشتو سلسله جاری وه ، سعد بن معاذ رضی الله عنه د بنی حارثه قلعه ته ورغلو چرته چې زنانه بیبیانې محفوظ کړې شوې وې ، دغه ځائې کښې ددوئ مور بی بی رضی الله عنها او عائشه صدیقه رضی الله عنها هم موجودې وې . او تر دې وخته پورې لا د پردې احکام نه وو راغلی . عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چې ما اولیدل چې معاذ رضی الله عنه یو وړه شان زغره اچولې وه چې لاسونه ئې ترې بهر راوتلی وو. مور بی بی رضی الله عنها ورته اوفرمائیل چې زر لاړشه او نبی کریم ﷺ سره په لښکر کښې شامل شه . ما د هغوئ مور بی بی رضی الله عنها ته اووئیل که ددوئ لویه زغره وې نو ډیره به ښه وې . ولې چې زۀ ددوئ په لاسونو او پښو ویریږم چې زغرې نه بهر راوتلی دی . مور بی بی رضی الله عنها ئې اوفرمائیل چې هیڅ پرواه نشته چې الله ﷻ غواړی هغه به کیږی.

سعدبن معاذ رضی الله عنه کله چې لښکر ته اورسیدو نو په غشی اولګیدو چې اکحل رګ ئې پریکړې شو ، دغه وخت سعد رضی الله عنه دعا اوکړه چې یا الله ﷻ ! که بیا په نبی کریم ﷺ باندې څه حمله کیدونکې وې نو ما دهغې دپاره روغ کړې . ولې چې ددې نه سوا څما بله آسره نشته دې چې زۀ دغه قوم سره جنګ اوکړم چاچې رسول الله ﷺ ته زیانونه رسولی دی . خپل وطن نه ئې بې دخله کړې دې . او نبی کریم ﷺ ته ئې دروغژن وئیلی دی . او ائې الله ﷻ ! که ستا په علم کښې د جنګ سلسله ختمه شوې وی نو د شهادت مرګ مې نصیب کړه . خو تر هغه وخته پورې مې مه مرکوه چې د بنی قریظه نه مې د تګئ بدل نه وی اخستې . او په دوئ مې زړه نه وی یخ کړې.

الله ﷻ ددوئ رضی الله عنه د واړه دعاګانې قبولې کړې . د احزاب دا واقعه الله ﷻ د کافرانو آخری حمله اوګرځوله ، ورپسې د مسلمانانو د فتوحاتو دور شروع شو ، اول خیبر ، بیا مکه مکرمه او بیا نورې علاقې فتحه شوې . د بنی قریظه واقعه را روانه ده چې د هغوئ کسان راوستې شو او د هغوئ فیصله سعد بن معاذ رضی الله عنه ته اوسپارلې شوه ، د سعد بن معاذ رضی الله عنه د فیصلې مطابق د هغوئ ځوانان اووژلې شو او ښځې ماشومان ئې قیدیان جوړ کړې شو.

د احزاب په دې واقعه کښې به صحابه کرامو رضی الله عنهم اورسول الله ﷺ ټوله شپه د خندق څوکئ [چوکیداری] کوله که څه لږ وخت به آرام دپاره ځملاستل او یو طرفته به شور شو ، نبی کریم ﷺ به وسله تیاره کړه اومیدان ته به اووتل.

ام المومنین عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چې دشپې به داسې اوشو چې رسول الله ﷺ به لږ شان آر ام دپاره راغلل ، څه آواز به ئې واوریدو نو زر به بهر راووتل . بیا به ئې آرام دپاره څه لږه شان ډډۀ لګولې وه چې څه آواز به ئې واوریدو نو بهر به زر راووتل.

ام المؤمنین ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چې زۀ په ډیرو غذاګانو لکه غذوۀ مریسیع ، خیبر ، حدیبیه ، فتح مکه او غزوۀ حنین کښې نبی کریم ﷺ سره پاتې شوې یم ، په هیڅ یو غزا کښې نبی

کریم ﷺ دومره به پریشانه نه وو لکه چې په احزاب کښې وو. دې غزا کښې مسلمانان ډېر تيپيان شوي وو. د سختې يخنۍ تکليف هم ورته رسيدلې وو. ورسره د خوراک څکاک مواد هم ډېر کم وو. [ مظهری ][1].

**د رسول الله ﷺ څلور مونځونه پدې جهاد کښې قضا شو:** يو ځل دغې غزا کښې کافرانو دا منصوبه جوړه کړه چې دخندق نه هغه طرفته لاړ شئ. اوټول په يو جمع په مسلمانانو باندې حمله اوکړي. پدې جوش او طمع را مخکښې شو او سخت غشي ئې اوورول. په دغه ورځ نبي کريم ﷺ او ټول صحابه کرام ﷺ دومره مصروف وو چې د مونځ کولو موقع ورته ملاؤ نشوه، څلور مونځونه ئې د ماسختن په وخت کښې اوکړل.

**د رسول الله ﷺ د عاګانې:** کله چې په مسلمانانو باندې ډيره زياته سخته شوه نو رسول الله ﷺ د احزاب کافرانو ته خيرې اوکړې[2] او درې ورځې پير [دو شنبه]، نهې [سه شنبه] او چارشنبه ئې په مسجد فتح کښې پرله پسې داحزاب د شکست او تيښتې دپاره خيرې او د مسلمانانو د برى او فتح دپاره ئې دعاګانې کولې. د چارشنبې په ورځ د ماسپخين او مازيګر ترمينځه دعا قبوله شوه او رسول الله ﷺ خوشحاله خوشحاله د صحابه کرامو ﷺ طرفته تشريف راوړو او د فتح زيرې ئې ور باندې اوکړو. صحابه کرام ﷺ فرمائي چې ددغه وخت نه پس هيڅ يو مسلمان ته څه تکليف اونه رسيدو. [ مظهری ][3].

**لار صفا کيدل او د فتح سبونه شروع کيدل:** د دښمنانو په صفونو کښې د غطفان قبيله يو لوئې طاقت وو. الله ﷻ هم په دوئ کښې ديو کس نعيم بن مسعود ﷺ په زړه کښې ايمان واچولو او د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو او خپل اسلام ئې ښکاره کړو. او دا ئې اوفرمائيل چې زما د اسلام قبلولونه څما د قوم هيڅوک نه دى خبر. اوس راته اووائې چې زۀ د اسلام څه خدمت اوکړم؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چې ته به ځانله دلته څه کار اونه کړې شې؟ خپل قوم ته واپس لاړ شه او په هغوئ کښې څه کار اوکړه. نعيم بن مسعود ﷺ ډير ذهين وو، يوه منصوبه ئې په زړه کښې جوړه کړه او ددې اجازت ئې نبي کريم ﷺ نه واخستو چې زۀ هلته ورشم نو د خير او مصلحت څه خبره کولې شم؟ نبي کريم ﷺ ورته اجازت ورکړو.

نعيم بن مسعود ﷺ دغه ځائې نه بنى قريظه ته ورغلو او د جاهليت په زمانه کښې ئې ورسره زاړه تعلقات وو. ورته يې اوئيل چې ائې بنى قريظه زه ستاسو پخوانې دوست يم هغوئ اومنله چې ستاسو په دوستئ کولو کښې زمونږ هيڅ شک نشته دې. بيا نعيم بن مسعود ﷺ دخيرخواهئ په انداز کښې د بنى قريظه د سردارانو نه سوال اوکړو چې دمکې د قريشو يا دبنى غطفان قبيلې د خلقو ياد نورو قبيلو يهودو وغيره وطن دلته نه دې، دوئ که د دوئ نه په ماتې دې ځائې نه اوتښتى نو څه نقصان ئې نشته خو ستاسو معامله د دوئ نه بل شان ده، مدينه ستاسو وطن دې. ستاسوزنانه او مالونه مو ټول دلته دى که تاسو په جنګ کښې ددې خلقو ملګرى شوئ او دوئ په ماتې خوړلو اوتښتيدل نو دې نه به څه جوړيږى؟ آيا تاسو به

[1] تفسير المظهرى: ج ۷، ص ۳۰۰
[2] صحيح البخارى، كتاب المغازى، باب غزوة الخندق: ج ۲، ص ۵۹۰
[3] تفسير المظهرى: ج ۷، ص ۳۰۲

ځانله د مسلمانانو مقابله اوکړئ ؟ ځکه درته د خیر خواهئ په توګه وایم چې تر هغه وخته پورې تاسو دغې خلقو سره په جنګ کښې مه ملګری کیږی ترڅو چې دغه خلق تاسو سره یو څو سرداران ګانړه نه کړی ، هسې نه چې تاسو مسلمانانو ته پریږدی او پخپله اوتښتی.
په بنو قریظه دا مشوره ډیره ښه اولګیده اود مشورې تعریف ئې اوکړو . بیا نعیم بن مسعود ﷛ قریشی سردارانو ته ورغلو او ورته ئې اووئیل چې زه ستاسو دوست یم او د محمد ﷺ نه ویزاره یم . یوه خبره مې آور یدلې ده چې دخیرخواهئ په توګه ئې درته وایم . په دې شرط چې تاسو به ځما نوم نه ښکاره کوئ خبره داده چې د بنی قریظه یهود تاسوسره په خپله فیصله کولو باندې پښیمانه شوی دی او دا خبر ئې محمد ﷺ ته لیږلې دې چې که مونږ تاسو سره د قریشو او د بنی غطفان یو څو سرداران د هغوئ د ګردن وهلو دپاره حواله کړو نو په دې به تاسو زمونږ نه خوشحاله شئ چې بیا به مونږ تاسو سره په جنګ کولو کښې ملګری شو؟ محمد ﷺ ! د هغوئ دغه خبره منظوره کړې ده اوس به درته د بنی قریظه خلق راځی څه سرداران به تاسو په ګانړه کښې غواړی اوس ستاسو خوښه ده .
دې نه پس نعیم بن مسعود ﷛ خپلې قبیلې ته ورغلو او دغسې خبرې ئې هغوئ ته هم اوکړې.
دې سره سمدستی ابو سفیان د قریشو د طرفنه عکرمه بن ابی جهل او د غطفان د طرفنه ورقه بن غطفان بنی قریظه ته دې دپاره اولیږل چې هغوئ ته داسې اووائی چې اوس مونږ سره د جنګ سامان ختمیږی او زمونږ خلق هم د دې رو ان جنګ نه تنګ شوی دی . مونږ د لوظ نامې مطابق ستاسو د مدد او شریکیدو منتظر یو .
بنی قریظه ورته په جواب کښې اووئیل چې مونږ به درسره په جنګ کښې هغه پورې نه شریکیږو چې ستاسو د دواړو قبیلو سرداران مونږ سره بطور رهن یعنی یرغمال نه کینی.
عکرمه او ورقه چې دغه جواب ابی سفیان ته اورسولو نو قریشی او غطفانی سردارانو یقین اوکړو چې د نعیم بن مسعود ﷛ خبره رښتیا وه . ځکه ئې بنی قریظه ته جواب اولیږلو چې مونږ به درسره یو کس هم نه کینوؤ. که زړه مو غواړی نو په جنګ کښې راسره شریک شئ ګنی خپل کار کوئ . بنو قریظه چې دا واوریدل نو یقین ئې راغلو چې نعیم بن مسعود ﷛ راته صحیح وئیلی وو.
پدې طریقې سره الله تعالی د یو کس په وجه هغوئ کښې اختلاف راپیدا کړو او پښې ئې اوخوئیدې . دې سره سره الله ﷻ په هغوئ باندې یو آسمانی آفت دا راوستو چې یوه سخته برفانی هوا پرې راغله چې دې سره دهغوئ خیمې د بیخه راؤښکلې شوې . کټوئ ئې د نغرو نه والوزولې . دا خود هغوئ د پښو خویولو دپاره الله ﷻ ظاهری اسباب جوړ کړل . باطنی اسباب ئې دا اوکړل چې الله ﷻ دې دپاره دغلته فرښتې راؤلیږلې چې د هغوئ په زړونو کښې رعب راولی ، ددې دواړو خبرو ذکر د مذکوره آیتونو په شروع کښې هم فرمائیلې شوې دې:
﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا﴾ یعنی مونږ په هغوئ باندې سخته سیلئ راوستله او د فرښتو لښکر ] . ددې نتیجه دا وه چې اوس د دغې خلقو دپار د تښتید و نه سوا بله لار نه وه .
**ددښمن لښکرته د حذیفه ﷛ تلل او د هغوئ خبر راوړل ::** بل طرفته رسول الله ﷺ د نعیم بن مسعود ﷛ د کار ګزارئ او د احزاب په مینځ کښې د اختلاف راتللو معلومات اوشو نو اراده ئې اوکړه چې د خپل یو کس په ذریعه د دښمن د لښکر اود هغې د ارادو خبر راوړی . دغه

سخته برفاني سيلۍ په ټوله مدينه منوره هم خوره شوې وه چې مسلمانانو باندې ئې هم سخت اثر کړې وو. د شپې په وخت کله چې صحابه کرامو ﷺ د ورځې د محنت او مشقت نه ستړي ستومانه وو ددغې سختې يخنۍ نه هم سخت په تکليف کښې وو. نبی کريم ﷺ پدغه حالت کښې پورته شو او پوره جماعت ته مخاطب شو او وې فرمائيل چې څوک به داسې وی چې لاړ شی او د دښمن د لښکرو خبر راوړی چې الله تعالى ورته جنت نصيب کړی. صحابه کرام ﷺ خو فدايان وو خو ددغې مجبوريانو په وجه په کښې د پورته کيدو همت نه وو. رسول الله ﷺ مونځ کول شروع کړل او څه وخت پس ئې بيا د غې ډلې ته هم هغه شان اوفرمائيل خو بيا هم چا د پورته کيدو همت اونه کړې شو. نبی کريم ﷺ بيا په مونځ کولو کښې مصروف شو ، هرکله چې فارغ شو او په دريم ځل ئې دغه شان بيا اوفرمائيل خو بيا هم څوک پورته نشو. ولې چې يوخو ستړی ستومانه وو ، بل اوږی وو ، او بل طرفته پرې سخته برفانی هوا لګيدله.

دحديث پاک راوی حذيفه بن يمان ﷺ اوفرمائيل چې دغه وخت رسول الله ﷺ زما نوم واخستو او وې فرمائيل چې حذيفه ﷺ ! هم ته لاړ شه. زه هم اګر چې د نورو پشان په سخت مصيبت کښې اوم ، مګر زما نوم اخستو سره د حکم ورکولو باندې داطاعت نه بغير زما بله څۀ لاره نه وه. زۀ پورته شوم او ديخنۍ نه ټول رپيدم ، نبی کريم ﷺ خپل لاس مبارک زما په سر او مخ باندې راښکل او وې فرمائيل چې ما ته د دښمن خبر راوړه. او ماته د واپس راتلو نه وړاندې بل هيڅ کار مه کوه. بيا نبی کريم ﷺ زما دحفاظت دپاره دعا اوکړه ما خپل غشی او لينده راواخستل ځان پورې مې اوتړل او دښمن طرفته روان شوم.

چې روان شوم نو هغه يخنی کيدل مې ختم شو کومه چې په خيمه کښې مې کيده او زه داسې اوم لکه چې ګرم حمام کښې يم. تر دې چې دهغوئ لښکر ته اورسيدم او ما اوليدل چې سيلۍ د هغوئ خيمې شلولې وې. اودبيخه ئې راؤښکلې وې ، کټوئ ئې د هغوئ اړولې وې. ابوسفيان اور سره ناست وو ځان ئې ګرمولو. ما چې دا اوليدل نو غشئ مې لينده کښې ښه مضبوط کړل ، په ابی سفيان مې غشئ پريخودې وو چې د نبی کريم ﷺ فرمان راته ياد شو چې ماته دواپس کيدو پورې به بل څه کار نه کوې ، ابو سفيان بيخی صفا زما لاندې راغلې وو خو ددغې فرمان مبارک د وجې مې غشې د لينډې نه لرې کړو.

ابو سفيان د حالاتو نه پريشانه شوې وو، د واپس کيدو اعلان کول ئې غوښتل خو دا خبره ئې دقوم ذمه دارانو سره هغه وخت کوله چې څوک جاسوس موجود نه وی. هسې نه چې د هغه خبره واوری ، ولې چې د شپې په تياره کښې دا امکان زيات وو ، په دې وجه ابوسفيان ددې خبرې کولونه وړاندې ټولې خپلې جمعې ته اووئيل چې هر څوک دې خوا کښې سړې اوپيژنی. هسې نه چې څوک غير کس زما خبره واوری.

حذيفه ﷺ فرمائی چې زما خطره شوه که چا نزدې بنده رانه تپوس اوکړو چې ته څوک يئ نو زما راز به ښکاره شی. خو هغوئ ډيره هوښياری دا اوکړه چې د خپلې خوا سړی ته ئې اووئيل چې ته څوک يئ ؟ فرمائ چې هغه ورته اوئيل چې عجيبه ده ته ما نه پيژنی چې زه څوک يم ؟ زۀ خو فلانې د فلانی ځوئ يم. هغه د هوازن قبيلې کس وو. په دې طريقه الله ﷻ حذيفه ﷺ د نيولو نه بچ کړو.

کله چې د ابو سفیان تسلی اوشوه چې په دې ډله کښې څوک پردې نشته نو هغه دغه خراب حالات ، د بنی قریظه وعده خلافی او د جنګ سامان د ختمیدو واقعات واؤرول او وې وئیل چې زما رائې داده چې اوس تاسو ټول واپس لاړ شئ او زه پخپله هم واپس ځم. دغه وخت په لښکر کښې ګړبړ شروع شو او ټول واپس روان شو.

حذیفه ﷜ فرمائی چې کله زه د دغه ځائې نه روان شوم نو داسې راته محسوسه شوه چې ګویا که زما نه چاپیره یو ګرم حمام دې چې یخنئ نه مې ساتی. چې واپس ورغلم نو رسول الله ﷺ مې په مونځ کښې مصروف اولیدو. هرکله چې نبی کریم ﷺ سلام اوګرزولو نو ټول حال مې ورته اووئیلو ، رسول الله ﷺ د خوشحالئ په دې خبره باندې مسکې شو تر دې چې د شپې په تیاره کښې د نبی کریم ﷺ غاښونه مبارک ښکاره شو. دې نه پس راته نبی کریم ﷺ پخپلو قدمونو مبارکو کښې ځائې راکړو ، دخپل اغوستی څادر مبارک یو پلو ئې راباندې واچولو. اوهم په دغه ځائې زه اوده شوم ،چې صبا شو نو هم نبی کریم ﷺ زه رابیدار کړم او ماته ئې اوفرمائیل چې [ قم یانومان ] ائې ډیر اوده شویه پورته شه([1]).

**آئنده دپاره د کافرانو دهمت بائیلو زیری** :: دصحیح بخاری شریف په حواله کله چې احزاب واپس تلل نو د سلمان بن صرد ﷜ د روایت مطابق رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې [الان نغزوهم ولا یغزوننا نحن نسیر الیهم [بخاری]([2]) یعنی اوس به پرې مونږ حمله کوو ، دوئ یعنی دا کافران به راباندې حمله نشی کولې. هم مونږ به پرې حمله کوو [ مظهری ]([3]).

دې فرمائیلو سره رسول الله ﷺ او صحابه کرام ﷡ د مدینې ښار ته واپس راغلل او یو میاشت پس مسلمانانو خپلې وسلې پرانستې.

**خبرداری** :: د حذیفه ﷜ دا واقعه په صحیح مسلم کښې ده چې دا په مستقل ډول د عبرت سبق دې چې درسول الله ﷺ په ډیرو هدایتونو او معجزو باندې مشتمله ده ، غور کوونکی ئې پخپله معلومولې شی ، د تفصیل لیکلو ضرورت ئې نشته.

**دبنی قریظه غزا** :: رسول الله ﷺ او صحابه کرام ﷡ هیله مدینې منورې ته دخندق ځائې نه رارسیدلی وو چې ناڅاپه جبرائیل ﵇ دا حیة الکلبی صحابی ﷜ په صورت کښې تشریف راوړو او وې فرمائیل چې اګر چې تاسو خلقو وسلې پرانستې خو فرښتو لا نه دی پرانیستی. د الله ﷻ تاسو ته دا حکم دې چې تاسو په بنی قریظه حمله اوکړئ او زه تاسو نه وړاندې هلته ځم. رسول الله ﷺ په مدینه منوره کښې یو اعلان کوونکې اولیږلو چې دغه حکم ئې خلقو ته داسې اورسولو چې ::

[لایصلین احد ن العصر الا فی بنی قریظة ] هیڅوک به بنی قریظه ته د رسیدو نه وړاندې د مازیګر مونځ نه کوی.

صحابه کرام ﷡ ټول په ټوله ددې دویم جهاد دپاره سمدستی تیار شو او بنی قریظه ته روان شو په لاره کښې دمازیګر وخت شو نو ځینې حضراتو د نبی کریم ﷺ د ظاهری حکم په جوړ

[1]) صحیح مسلم، کتاب الجهاد، باب غزوة الأحزاب: ج ٢، ص ١١٢
[2]) صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب غزوة الخندق: ج ٢، ص ٥٩٠
[3]) تفسیر المظهری: ج ٧، ص ٣٠٥

په لاره کښې دمازیگر مونځ ادا نه کړو بلکه د بنی قریظه ځائې کښې ئې ادا کړو. او بعضو حضراتو دا خیال اوکړو چې د مازیګر په وخت بنی قریظه ته رسیدل دی ، هلته مونځ کول ضروری نه دی ځکه ئې د مازیګر مونځ هم دغلته په لاره کښې ادا کړو.

**د مجتهدینو په اختلاف کښې څه اړخ ګناه یا ناکاره نه وی چې ملامتیږ پرې اوکړې شی ::** رسول الله ﷺ ته د صحابه کرامو د عمل د اختلاف خبر چې ورکړې شو نو نبی کریم ﷺ په دواړو کښې یوې ډلې ته هم ملامته او نه وئیل . بلکه دواړو کارونو ته ئې صحیح اووئیل . دې نه د امت علماء کرامو دا اصول راخستی دی چې مجتهدین علماء کرام چې په حقیقت کښې مجتهدین وی او د اجتهاد جوګه وی نو د هغوئ په اختلافی قولونو کښې هیڅ یو ته هم ګناه او ناکاره نشی وئیلې کیدلې. دواړو فریقو دپاره پخپل خپل اجتهادباندې عمل کولو کښې ثواب لیکلې کیږی.

د بنی قریظه جهاد دپاره چې صحابه کرام ﷺ روانیدل نو رسول الله ﷺ بیرغ علی ﷺ ته ورکړو. کله چې بنو قریظه ددوئ په رارسیدو خبر شو نو په قلعه کښې ئې ځانونه بند کړل. اسلامی لښکر د قلعه نه چاپیره شو.

**د بنی قریظه د سردار د کعب تقریر ::** د بنی قریظه سردار کعب کوم چې رسو الله ﷺ سره لوظ نامه ماته کړې وه او احزاب سره ئې دهغې په خلاف لوظنامه کړې وه . هغه خپل قوم راجمع کړو او د حالاتو خرابوالی نه ئې خبر کړو. او د عمل درې صورتونه ئې ورته مخکښې کیخودل :- ① اول دا چې تاسو ټول اسلام قبول کړئ اود محمد ﷺ تابع شئ ولې چې زه په قسم درته وایم چې تاسو ټول پوهیږئ چې محمد ﷺ په حق دې او ستاسو په کتاب تورات کښې د نبی کریم ﷺ باره کښې پیشنګوئی شوې ده او هغه تاسو وائې که تاسو داسې اوکړل نو په دنیا کښې به هم ځان او مال او اولاد محفوظ کړئ او آخرت به مو هم بهتر شی.

② دویم دا چې تاسو خپل اولاد ښځې اول پخپل لاس اووژنئ او بیا مسلمانانو سره ښه په نره جنګ تر هغې کوئ چې تاسو هم ټول په ټوله مړۀ شئ.

③ دریم دا چې د خالی په ورځ تاسو په یو ځل په مسلمانانو باندې حمله اوکړئ ځکه چې مسلمانانو ته پته ده چې زمونږ په مذهب کښې د خالی په ورځ جنګ کول حرام دی. په دې وجه به هغوئ په دغه ورځ زمونږ د طرفنه بې فکره وی ، کیدیشی چې مونږ به په دغسې ناګاهانه حملې کولو سره کامیاب شو.

د کعب سردار په دې تقریر آوریدو سره قوم جواب ورکړو چې ړومبئ خبره خو مونږ هیچرې نه منو ځکه چې خپل کتاب تورات پریخودل او بل کتاب منل مونږ نه شو کولې . دویمه خبره ځکه نشو منلې چې ښځې او ماشومان په کوم قصور کښې اووژنو . دریمه خبره د مذهب او د تورات دحکم نه خلاف ده ځکه نشو منلې.

دې نه پس ټولو په جمع اووئیل چې د رسول الله ﷺ په مخکې توره او ډهال کیږدی او د نبی کریم ﷺ فیصلې ته ځان اوسپاری چې هغوئ څه فیصله اوکړه په هغه راضی شی. داوس

قبيلې انصار صحابه كرامو پخوا راسې د بنى قريظه خلقو سره د لوظنامې اړيكې لرلې. نو هغوئ رسول كريم ﷺ ته عرض اوكړو چې دغه بنى قريظه مونږ ته اوسپارئ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چې تاسو په دې راضى شئ چې زه د دغه خلقو معامله په خپله ستاسو دقبيلې يو سردار ته حواله كړم؟ هغوئ دا خبره اومنله نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چې هغه ستاسو سردار سعد بن معاذ ﷛ دې چې فيصله ته به هغوئ ﷛ حواله كړم. په دې ټول راضى شو.

دخندق په واقعه كښې سعد بن معاذ ﷛ په غشى باندې ډير سخت زخمى شوې وو. رسول الله ﷺ د هغوئ ﷛ د پرورش دپاره د مسجد په دائره كښې يوه خيمه لګولې وه اوهغوئ هم په دې كښې اوسيدل. هركله چې د بنى قريظه فيصله هغوئ ﷛ ته اوسپارلې شوه نو هغوئ دا فيصله اوكړه چې د دوئ د جنګ كولو جوګه ځوانان دې اووژلې شى ، زنانه او بوډاګان اوماشومان دې قيديان كړې شى.

ددې فيصلې كولو نه پس د سعد بن معاذ ﷛ دزخم نه وينه روانه شوه او ددې نه وفات شو. دې سره الله ﷻ ددوئ دواړه دعاګانې قبولې كړې. يوه دا چې په آئنده كښې به قريش په رسول الله ﷺ باندې حمله نشى كولې. بله دا چې بنى قريظه ته د ټګئ سزا د دوئ ﷛ په وړاندې وركړې شوه چې الله ﷻ د دوئ ﷛ په ذريعه وركړه. چې د كومو كسانو د قتلولو تجويز شوې وو په هغوئ كښې بعضې ځوانان مسلمانان شو او په دې وجه آزاد كړې شو. دوئ كښې يو عطيه قرظى ﷛ دې چې مشهور صحابى شو ،بل په بنى قريظه كښې زبير بن باطا وو چې ثابت بن قيس بن شماس صحابى ﷛ د نبى ﷺ نه په درخواست آزاد كړې شوې وو. وجه ئې دا وه چې دجاهليت په زمانه كښې زبير بن باطا په هغه ډير احسان كړې وو ، هغه دا چې په جنګ بعاث كښې ثابت بن قيس د يوبندى په حيثيت د زبير بن باطا په قبضه كښې راغلو ، زبير بن باطا د هغوئ ﷛ د سر ويښته پريكړل او آزاد ئې كړو قتل يې نه كړو.

**د احسان بدله او د قومى غيرت دوه عجيبه مثالونه** :: كله چې ثابت بن قيس ﷛ د زبير بن باطا د خلاصئ حكم حاصل كړو نو د هغه خواته ورغلو او ورته ئې اووئيل چې دا كار مې ځكه اوكړو چې ستا دهغې احسان بدله دركړم چې د جنګ بعاث په موقع دې ماسره كړې وو. زبير بن باطا اووئيل چې بيشكه يو شريف انسان بل شريف انسان سره هم دغسې كوى خو دا اوښائې چې دهغه څوک به په ژوندى پاتې كيدو څۀ خوشحاله شى چې بال بچ ئې ختم شوې وى؟ ثابت بن قيس ﷛ بيا د نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شو او دهغه د بال بچ د خلاصى درخواست ئې اوكړو. نبى كريم ﷺ ئې خواست قبول كړو. چې زبير بن باطا پدې خبر شو نو يو قدم نور هم راوړاندې شو اووې وئيل چې ائې ثابته ! چې هغه بال بچه دار انسان به ځنګه ژوند تيروى چې ورسره مال نه وى. ثابت دهغه د مال د خلاصئ دپاره بيا د نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شو. نبى كريم ﷺ ئې دغه خواست هم قبول كړو. دا د يو مؤمن د شرافت او احسان شناسئ يو مثال وو چې ثابت بن قيس پيش كړو.

اوس بد قسمتئ ته اوګورئ چې کله زبیر بن باطا آزاد کړې شو ، بال بچ ئې راخلاص شو او مال ئې هم ورکړې شو نو هغه بیا د ثابت بن قیس نه د یهودو قبیلې د سردارانو په باره کښې تپوس اوکړو چې ابن ابی الحقیق سره څه اوشو؟ ؛چې مخ ئې لکه د چینی آئینې پشان وو. ده اوفرمائیل چې هغه اووژلې شو. بیا ئې د بنی قریظه سردار کعب بن قریظه او عمرو بن قریظه باره کښې تپوس اوکړو چې دهغوئ څه حال دې ؟ وې فرمائیل چې هغوئ هم اووژلې شو. بیا ئې دنورو دوؤ ډلو باره کښې تپوس اوکړو نو ورته اووئیلې شو چې هغوئ هم اووژلې شو.

ددې جواب آوریدو سره زبیر بن باطا ثابت بن قیس رضی الله عنه ته اووئیل چې تاسو خپل د احسان بدل پوره کړو او دخپلې ذمه دارئ حق مو ادا کړو خو زه به د دغې خلقو نه پس خپله زمکه ، جائیداد آباد نه کړم . ما هم ددغه خلقو په شان اوژنئ . ثابت بن قیس رضی الله عنه ددهٔ د قتل کولو نه انکار اوکړو . هرکله چې دهٔ ډیر اسرار اوکړو نو یو بل مسلمان دې قتل کړو[1].

دا دیو کافر قومی غیرت وو چې خپل هر څه په لاس ورغلل او بیا ئې هم د خپلو ملګرو نه بغیر ژوندی پاتې کیدل منظور نه کړل . د یومؤمن او د یو کافر دواړو عمل یو تاریخی یادګار دې . د بنی قریظه دا فتح د هجرت په پنځم کال د ذی القعدی په آخر او د ذی الحجې په اول کښې د هجرت په پنځم کال اوشوه . [ قرطبی][2] .

**خبردارې** :: د غزوهٔ احزاب او بنی قریظهٔ څه قدرې تفصیل دلته بیانولو یوه وجه دا هم ده چې پخپله قرآن پاک دا په دوؤ رکوع کښې بیان کړې ده ، بله وجه ئې دا ده چې په دې واقعاتو کښې د ژوند دمختلفو اړخونو باره کښې ګڼړ هدایتونه او درسول الله ﷺ ښکاره معجزې او ډیر عبرتونه دی چې هغه لره عنوانات ورکولو سره واضح کړل شوش دی . ددې پوره واقعې د معلومولو څخه وروستو ددې مذکوره آیتونو مبارکو د تفسیر دپاره مذکوره خلاصه تفسیر کتل کافی دی. د څه نور وضاحت ضرورت نشته دې . صرف یو څو خبرې قابل غور دی.

اول دا چې دې غزا کښې په مسلمانانو باندې قسم قسم سختئ او تکلیفونه بیانولو سره د مسلمانانو د پریشانئ حال خودلې شوې دې چې ﴿وَتَظُنُّونَ بِاللّٰهِ الظُّنُونَا﴾ یعنی تاسو په الله ﷻ باندې مختلف قسم ګمانونه کول . مراد دګمانونو نه غیر اختیاری وسوسې دی چې د سختې پریشانئ په وخت د انسان په زړه کښې راځی . چې دا دې اوس راباندې مرګ راغلو . د خلاصی هیڅ صورت مې پاتې نشو. وغیره وغیره . داسې غیر اختیاری وسوسې کامل ایمان او کامل ولایت سره بې سمونه نه دی البته دې نه د مصیبت اوسختې پریشانئ پته لګی چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم په زړونو کښې هم وسوسې راغلې حالانکه هغوئ د استقامت او مضبوطئ غرونه دی .

---

[1]) تفسیر القرطبي: ج ١٤، ص ١٧٧
[2]) تفسیر القرطبي: ج ١٤، ص ١٤١

دویمه دا چې دمنافقانو دا حال بیان شوېدې چې هغوئ د الله ﷻ او رسول الله ﷺ وعدو ته په ښکاره ټګي ونیل شروع کړل : ﴿وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا﴾ چې پدې سره خپل باطنی کفر ئې ښکاره کړو ، وروسته د هغې منافقانو د دوؤ ډلوبیان چې په ښکاره مسلمانانو سره په جهاد کښې ملګری وو ، چې په هغې کښې خو یوه ډله بې تپوسه اوتښتیده او دائې اووئیل چې ﴿يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا﴾.

او بلې ډلې په بهانو او چلونو باندې رسول الله ﷺ نه د واپس تلو خواست اوکړو لکه فرمائی چې ﴿وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ﴾ قرآن کریم دغې بهانو او چلونو ته دروغ اوفرمائیل او ددې حقیقت ئې دا اوخودلو چې دوئ د میدان نه تښتیدل غواړی لکه چې فرمائی چې ﴿إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا﴾ وروستو په څو آیتونو کښې د دوئ د شرارت او مسلمانانو سره ددوئ دښمنی او بیا ددوئ خراب انجام بیان شوې دې.

وروستو د مخلصانو مؤمنانو بیان دې چې په کښې د دوئ د سختوالی او مضبوطوالی صفت بیان شوې دې. هم ددې په ترڅ کښې د رسول الله ﷺ د تابعدارئ اواقتداء تاکید د یوې ضابطې په شکل کښې بیان کړې شوې دې لکه فرمائی چې ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ﴾ دې نه داثابته شوه چې درسول الله ﷺ په اقوالو ، افعالو ټولو کښې د اقتداء حکم دې خود تفسیر د محققینو امامانو په نزد ددې عملی صورت دادې چې دکوم کار کول یا پرېښودل د رسول الله ﷺ نه د وجوب په درجه کښې ثابت وی د هغې تابعداری واجبه او لازمه ده او دکوم کار کول چې د مستحبو په درجه کښې ترې ثابت وی دهغې کول یا پرېخودل به په مونږ باندې مستحب پاتې کیږی چې دهغې خلاف ورزی کول به ګناه نه حسابیږی[1].

په دغې آیتونو کښې درې آیتونه آخری داسې دی چې په کښې د بنی قریظه بیان دې لکه قرآن پاک فرمائی چې : ﴿وَأَنزَلَ الَّذِينَ ظَاهَرُوهُم مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِن صَيَاصِيهِمْ﴾ یعنی کومو اهل کتابو چې د اهل احزاب مدد کړې وو الله ﷻ د هغوئ په زړونو کښې درسول الله ﷺ او مسلمانانو رعب واچولو او د هغوئ مضبوطو قلعه ګانو نه ئې راکوز کړل او مسلمانان ئې د هغوئ د مالونو او کورونو وارثان جوړ کړل.

آخری آیت مبارک کښې مسلمانانو ته د راتلونکو فتوحاتو زیرې ورکړې شوېدې چې اوس به تاسو باندې کافران حمله نشی کولې. د مسلمانانو د فتوحاتو دور شروع شو. او داسې داسې زمکې به ددوئ په قبضه کښې راځی چې تر اوسه ورته ددوئ قدمونه رسیدلی هم نه دی. نو د صحابه کرامو ﷺ په زمانه کښې ټولو خلقو په سترګو اولیدل چې د کسری او قیصر د ټولونه لوئې سلطنتونه د دوئ په قبضه کښې راغلل. والله یفعل مایشاء

---

[1] ) أحكام القرآن للجصاص تحت هذه الآية: ج ٨، ص ٢٨٩

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ

| اے نبي | اووايه | ښځو خپلو ته | که يئ تاسو | چي غواړي |

| ائي نبي ﷺ ا خپلو بيبيانو ته اووايه | چي که تاسو د دنيا د

الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا فَتَعَالَيْنَ اُمَتِّعْكُنَّ وَاُسَرِّحْكُنَّ

ژوند | ددنيا | او ښائيست دهغې | نو راشئ | چي څه سامان درکړم تاسو له | او پريږدم تاسو

ژوند خوندونه اوددې ډول سنګار غواړئ | نو راځئ چي زه درله څه لږ ډير سامان درکړم | او ښه

سَرَاحًا جَمِيْلًا ﴿۲۸﴾ وَاِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ

په پريښودلو | ښائسته سره | او که يئ تاسو | چي غواړئ الله | او رسول دهغه | او کور

په مناسبه طريقه مو رخصت کړم | اوکه تاسو الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ او آخرت غواړئ | نو

الْاٰخِرَةَ فَاِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ مِنْكُنَّ اَجْرًا

دآخرت | نو بيشکه چي الله | تيار کړي دي | دپاره دنيك عمله ښځو | ستاسو نه اجر

الله ﷻ په تاسو کښې نيکو بيبيانو دپاره ډير لوئي اجر تيار کړي دي

عَظِيْمًا ﴿۲۹﴾ يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنْ يَّاْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ

لوئ | اے ښځو دنبي | هغه څوك چي راشي | ستاسو نه | کار دبې حيايئ | ښکاره ته |

.........ائي دپيغمبر بيبيانو په تاسو کښې چي څوک ښکاره ګناه اوکړی | نو هغې ته بهٔ

يُّضٰعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ ؕ وَكَانَ ذٰلِكَ

دوچند به ورکړې کيږی | هغې ته | عذاب | په دوچند والي سره | او دي | دا کار

دوه چنده سزا ورکولې شی | ......................... اودا کار الله ﷻ ته

عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۳۰﴾

په الله باندې | آسان

ډير آسان دي

## آسان ترجمه قرآن

اے نبي ! خپلو بيبيانو ته اووايه چه: که تاسو دنيوی ژوند او دهغې خائست غواړئ، نو راشئ، زه به تاسو ته څه تحفې درکړم، او په خائسته طريقې به مو رخصت کړم. او که تاسو د الله تعالى او دهغه د رسول او د عالم آخرت طلبګار يئ، نو يقين اوکړئ، الله تعالى په تاسو کښې د نيکانو زنانو دپاره ډير لوئي انعام تيار کړي دي اے د نبي عليه السلام بيبيانو ! په تاسو کښې چه څوک ښکاره بې حيايئ ته راتلل اوکړی نو دهغې عذاب به دوچند ورکولې شی، او د الله تعالى دپاره داسې کول آسان دی.

## خلاصه تفسير

﴿يَاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ﴾ [اے نبی] ﷺ [ته خپلو بيبيانو ته وفرمايه] تاسوته پريكړې صفا خبره كولې شی چې قصه دهميشه دپاره يو طرف ته شی هغه خبره داده چې ﴿اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا﴾ [تاسوكه ددنيا ژوند] عيش ﴿وَزِيْنَتَهَا﴾ [او ددې بهار [ښائست] غواړی ﴿فَتَعَالَيْنَ اُمَتِّعْكُنَّ﴾ نو راشئ] يعنی اخستو ته متوجه شئ [زه تاسوته څه] مال او [متاع] ددنيا [دركړم] بيا ددې نه مراد هغه جوړه ده كومه چې مطلقې مدخولې له په وخت د طلاق كښې وركول مستحب دی يا ترې نه مراد نان نفقه دعدت ده يا دواړو لره شامل ده [او] چې متاع دركړم ﴿وَاُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا﴾ [تاسولره په ښه طريقه سره رخصت كړم] يعنی موافق دسنتوتاسو لره رخصت كړم چې كوم ځائ غواړی لاړې شئ دنياحاصله كړئ ﴿وَاِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ [اوكه تاسو الله تعالی لره غواړئ او] مطلب دلته دالله تعالی دغوښتلونه دا دې چې [ دهغه رسول لره] غواړئ يعنی دفقر او مفلسئ د موجوده حالت سره درسول الله ﷺ په نكاح كښې پاتې كيدل غواړئ ﴿وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ﴾ [ او داخرت] اوچتودرجو [لره] غواړی كومې چې په زوجيت درسول الله ﷺ باندې مرتب كيدونكی دی [نو] داستاسو نيك كرداری ده او ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ مِنْكُنَّ اَجْرًا عَظِيْمًا﴾ [په تاسو كښې دنيك كردارئ دپاره الله تعالی] په اخرت كښې [لوئ اجرتياكړې دې ] يعنی هغه ثواب كوم چې مخصوص دې دنبی كريم ﷺ دزوجاتو دپاره او د نورونيك بيبيانو د اجرنه هغه عظيم دې او دكوم نه چې دنبی كريم ﷺ دزوجيت دنه اختيارولو په صورت كښې محرومی وی اگر چې عامو دليلونو سره دمطلق ايمان اونيكو عملوثمرات به په دې صورت كښې هم حاصل وی تردې پورې خو مضمون داختيار دې چې په دې كښې دنبی كريم ﷺ دطرف نه بيبيانوﷺ ته اختيار وركړې شو چې په موجوده حالت قناعت كوئ د دوی ﷺ په زوجيت كښې پاتې كيدل خوښوئ يابيا ددوی ﷺ نه طلاق حاصلوئ وړاند الله تعالی دوی ته په خپله خطاب كوی او هغه احكام فرمائی كوم چې په صورت داختيار دزوجيت كښې واجب الاهتمام وی ارشاد دې چې ﴿يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنْ يَّاْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ [اے د نبی ﷺ بيبيانو كومه چې په تاسوكښې ښكاره بې هودګی وكړی] مراد ددې نه هغه معامله ده په كومه چې نبی كريم ﷺ تنګ او پريشانه وی نو ﴿يُّضٰعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ﴾ [هغې ته به] په دې باند [دوچند سزا وركولې شی] يعنی بل سړی ته چې په دغه عمل څومره سزا ملاويږی دغې نه به دوچند وی ﴿وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا﴾ [ او داخبره الله تعالی ته] بالكل [اسانه ده] داسې نه ده چې ددنيوی حاكمانو په شان كله په سزا زياتولو سره دچاعظمت ده لره مانع شی او ددې سزا د زياتيدو وجه اوس د دوچندې داجر په تقرير كښې راخی د دويشتمې پارې په شروع كښې

## معارف او مسائل

﴿يَاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ﴾ ددې سورت د مقصدونو څښې يو مهم مقصد دادې چې د هر هغه څيز نه ښه په جوخته او كلكه ځان ساتی په كوم سره چې رسول الله ﷺ ته تكليف رسی . دغسې د نبی

کریم ﷺ د تابعدارئ او رضا لټولو دپاره تاکیدی احکام په دې کښې راغلی دی. د غزوهٔ احزاب په تیره شوې واقعه کښې د کافرانو او منافقانو د طرفنه چې رسول الله ﷺ ته کوم نقصانونه اورسیدل دهغې بیان راغلې دې. اوپه هره موقعه باندې نبی کریم ﷺ ته فتح نصیب شوې ده. اودې سره د مخلصانو مؤمنانو تعریف او د آخرت د درجو بیان شوې دې کومو چې د نبی کریم ﷺ په اشاره باندې ټول هر څه قربان کړل.

اوس په دې آیتونو کښې خاص ازواجو مطهراتو ته تعلیم دې چې هغوئ دې خصوصا ددې ډیر خیال ساتی چې نبی کریم ﷺ ته دې دوئ په څه قول یا فعل سره نقصان نه رسوی اودا هله کیدیشی چې دوئ د الله ﷻ او دهغه درسول ﷺ په مکملې تابعدارئ کښې اخته شی. نو په دې سلسله کښې ازواجو مطهراتو ته په خطاب کولو سره څو احکام خودلې شوی دی.

دآیتونو په شروع کښې ازواجو مطهراتو ته د طلاق اخستو اختیار ورکول بیان شوی دی. ددې یو یا څو واقعات دی چې ازواجو مطهراتو د طرفنه راپیښې شوې وې چې هغه درسول الله ﷺ د منشا خلاف وې او په هغې سره بې اختیاره رسول الله ﷺ ته تکلیف اورسیدو.

د هغې څینې یوه واقعه داسې ده چې په صحیح مسلم وغیره کښې د جابر ؓ په روایت سره په تفصیل سره داسې راغلې دې چې یو ځل ازواجو مطهراتو په یو ځائې د رسول الله ﷺ نه دا مطالبه اوکړه چې دوئ ته دې خرچ اخراجات زیات ورکولې شی([1]). په تفسیر بحر محیط کښې ابو حیان ددې تشریح دا بیان کړې ده چې د غزوهٔ احزاب نه پس د بنی نضیر اوبیا د بنی قریظو فتوحات اودمال غنیمت ویش په عامو مسلمانانو باندې یو قسم خوشحالی اوفراختیا وه ځکه ازواجو مطهراتو ته دا خیال راغلو چې ګنی رسول الله ﷺ به ددې نه خپله حصه اخستې وی. ځکه ئې په جمع عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ! د قیصر او کسری بیبیانې قسماقسم کالی اچوی، قیمتی جامې اغوندی، دهغوئ دخدمت دپاه وینځې دی، او زمونږ عاجزی، غریبی اولوږې تندې تاسو ﷺ وینئ کورئی نو تاسو ﷺ هم زمونږ باره کښې د فراخ لاس نه کارواخلئ.

دغې مطالبې سره رسول الله ﷺ ځکه خفه شو چې هغوئ دبادشاهانو اوغټانو خلقو دکورونو پشان مزې غوښتې چې د نبوت کورنئ سره سمون نه خوری. اګر چې ازواجو مطهراتو ته دنبوت د کورنئ د بې قدرئی خیال نه وو او نه د رسول الله ﷺ خفه کول اوتنګول ئې مطلب وو خو کله چې د مسلمانانو آسوده حالی ئې اولیدو نو زړه ته ئې دا خیال راغلو چې دپیغمبر کورنئ دې هم آسوده حال وی، ابو حیان رحمه الله فرمائیلی دی چې د احزاب واقعې نه پس ددې بیانولونه هم ددې خبرې تائید کیږی چې د ازواجو هم دا مطالبه سبب د تخسیر طلاق جوړ شوې وو([2])، دحدیث پاک په څینې روایتونو کښې راغلی دی چې دزینب ؓ په کور کښې د

[1]) صحیح مسلم، کتاب الطلاق، باب بیان أن تخییر امرأته-الخ: ج ۱، ص ۴۸۰

[2]) تفسیر البحر المحیط: ج ۹، ص ۱۴۶، تحت هذه الآیة۔

شاتو څکلو واقعه چې سورة تحريم کښې به تفصيل راځي او د ازواجو مطهراتو خپلو کښې غيرت ورکولو له کبله چې کوم صورت مخې ته راغلي وو هغه دطلاق د اختيارو ورکولو سبب جوړ شو . که دا دواړه څيزونه په قريب قريب زمانه کښې راپيښ شوي وي . نو دا دواړه سببونه ئې کيديشي ليکن د اختيار ورکولو د آيت الفاظو نه زيات تائيد ددې کيږي چې ددې سبب د ازواج مطهراتو له طرفه مالي مطالبه جوړه شوې وه ، ولې چې په دې آيت کښې فرمائي چې ﴿إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَوٰةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا﴾ دې آيت ټولو ازواجو مطهراتو ته اختيار ورکړو چې هغوئ د رسول الله ﷺ معاشي سختئ او تنګئ سره د نبي کريم ﷺ په نکاح کښې پاتې کيدل غواړي يا په طلاق اخستو سره آزاديدل غواړي . په ړومبي صورت کښې به دعامو ښځو په نسبت دوئ ته ډير زيات لوئې اجر او د آخرت خاص لوړې درجې ورکولې شي او په دويم صورت کښې به هم ددنيا د نورو خلقو پشان څه قسم تريخوالې اوتکليف به نه وي . بلکه دسنت مطابق د جامې جوړې وغيره ورکولو سره به په عزت سره رخصتولې شي .

ترمذي د ام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت کړې دې چې کله د اختيار ورکولو دا آيت مبارک نازل شو نو رسول الله ﷺ ددې د ښکاره کولو شروع مانه اوفرمائيله اودآيت آؤرولو نه مخکښې ئې اوفرمائيل چې زه درته يوه خبره کوم خو په جواب راکولو کښې به تيزي نه کوې بلکه والدينو سره مشوره اوکړه هله جواب راکړه . عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چې دا د نبي کريم ﷺ په ما باندې خاص مهرباني وه چې والدينو سره د مشورې کولو نه بغير ئې زه دجواب ورکولو نه منع کړم . ولې چې د نبي کريم ﷺ يقين وو چې والدين به مې رسول الله ﷺ نه دطلاق حاصلولو هيڅ کله رائې نه راکوي ، کله چې مې دا آيت مبارک واؤريدو نو زر مې عرض اوکړو چې آيا زه به دې معامله کښې د والدين نه د مشورې اخستو دپاره ورځم . زه خو الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ او دار آخرت غوره کوم ، بيا ئې زمانه پس ټولو ازواجو مطهراتو ته دا د قرآن پاک حکم واؤرولو ، ټولو هم هغسې اووئيل چې څنګه اول ما وئيلي وو [ يوې هم ددنيا فراخي درسول کريم ﷺ د زوجيت په مقابله کښې اختيار نه کړه ] قال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.[1]

**فائده** :: د طلاق د اختيار دوه صورتونه کيديشي ، يو دا چې د طلاق ورکولو سره ځان آزادولې شي ، دويم داچې طلاق هم خاوند پخپل اختيار کښې اوساتي که ښځه ئې اوغواړي نو دې به طلاق ورکړي .

دې آيت مبارک کښې ځينې مفسرينو ړومبې او ځينو دويم صورت اختيار کړې دې . سيدي حکيم الامة په بيان القران کښې فرمائيلي دي چې صحيح خبره داده چې د آيت په الفاظو کښې دواړه احتمالونه شته تر څو چې په يو ښکاره نص يو صورت اونه ټاکلې شي نو خپل

[1] ) جامع الترمذي، أبواب التفسير، باب ومن سورة الأحزاب: ج ٢، ص ١٥٥

طرفنه د يو صورت تاكل ضروري نه دي[1].

**مسئله**: دې آيت مبارك نه معلومه شوه چې كله د ښځې خاوند په طبيعتونو كښې سره جوړښت نه راځي نو مستحب دادي چې ښځې ته اختيار وركړي چې د خاوند په موجوده حالت كه گزاره كولې شي نواوسيږي دې كنى نود سنت په مطابق دې طلاق وركړي. د جامو جوړې دې وركړي او عزت سره دې ئې رخصت كړي.

دې آيت مبارك نه ددې معاملې صرف مستحبوالې ثابتولې شي، ددې په واجبوالى هيڅ دليل نشته، ځينې فقهاء كرامو امامانو دې آيت نه ددې په واجبوالى باندې دليل نيولې دې او په دغې بنا ئې د يو نيستمن ښځې ته د عدالت په ذريعه دطلاق اخستو حق وركړې دې كوم چې ښځې ته په خرڅ اخراجات وركولو باندې قدرت نه لري. ددې مسئلې پوره تفصيل په احكام القرآن حزب خامس كښې هم ددې آيت مبارك لاندې په عربۍ ژبه بيان شوې دې.

**د ازواج مطهراتو يو خصوصيت او هم ددې په وجه په هغوئ باندې سخته پابندي**: ﴿يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنۡ يَّاۡتِ مِنۡكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُّضٰعَفۡ لَهَا الۡعَذَابُ ضِعۡفَيۡنِ ؕ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيۡرًا﴾ دې دواړو [يعنى دا آيت او د دويشتمې پارې والا آيت] په دې آيتونو كښې د ازواج مطهراتو دا خصوصيت بيان فرمائى چې كه هغوئ د څه گناه كار اوكړى نو ددوئ ته به د نورو ښځو په مقابله كښې دوچنده عذاب وركولې كيږي. يعنى ددوئ يوه گناه به د دوؤ برابره وي. داشان كه هغوئ يو نيك عمل اوكړي نو دوئ ته به دوچند ثواب ملاويږي. يعنى ددوئ يو عمل به د دوؤ برابر وي.

داآيت مبارك په يو حيثيت سره د ازواجو مطهراتو دپاره دوئ د هغې عمل جزا ده چې دوئ د اختيار وركولو ددې آيت مبارك په نازليدو سره د رسول الله ﷺ په نكاح كښې پاتې كيدل خوښ كړل او ددنيا فراخى غوښتل ئې پرې قربان كړل، نو ددې په بدل كښې الله تعالى ورته د يو عمل غبرگه [دوچنده] درجه وركړه او دگناه په صورت كښې دوچنده عذاب هم ددوئ د خصوصى فضيلت او امتيازى شرافت په وجه اوشو.

په ازواجو مطهراتو باندې د الله تعالى لوئې انعامات دى چې دوئ ئې خپل رسول بيبيانې جوړې كړې ددوئ په كورونو كښې به وحى نازليده. ځكه به د دوئ ډير لږه او معمولى كوتاهى هم لويه وي، د نورو په زيان رسولو سره چې څومره تكليف به رسول كريم ﷺ ته وو ددوئ په زيان رسولو به ورته دهغې څخه زيات تكليف وو. نود قرآن عظيم الشان په دې الفاظ: ﴿وَاذۡكُرۡنَ مَا يُتۡلٰى فِىۡ بُيُوۡتِكُنَّ﴾ كښې هم دې سبب ته اشاره ده.

**فائده**: ازواجو مطهراتو ته دا خصوصيت وركړې شو چې دوئ ته به د يو عمل دوچنده ثواب ملاويږي. ددې دا مطلب نه دې چې گنى دامت كس يا جماعت ته به د نيك عمل دوچند ثواب نه ملاويږي. ولې چې كوم اهل كتاب مسلمانان شوى وو دهغوئ باره كښې د

[1]) بيان القرآن: ج ۹، ص ٤٧

قرآن کريم ارشاد دې چې : ﴿أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ﴾ يعني دوی ته به دوچنده ثواب ملاويږي او رسول کريم ﷺ چې قيصر روم ته کوم خط ليکلو وو په هغې کښې د قرآن کريم د ارشاد په وجه دا اوليکل چې: ﴿يؤتك الله اجرك مرتين﴾ يعني تاته به الله تعالى ستا اجر دوچنده درکړي اهل کتاب چې ايمان قبول کړي دهغوئ متعلق پخپله د قرآن کريم د دوچنده اجر صراحت موجود دې او يوبل حديث هم دې چې په هغې کښې درې قسمه خلقو د پاره داشان د دوچنده اجر ورکولو بيان راغلې دې چې تفصيل ئې په سورة قصص کښې د آيت ﴿أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ﴾ لاندې ليکلې شوې دې.

**دعالم د نيک عمل ثواب هم د نورو څخه زيات دې او دګناه سزا ئې هم دنورو څخه زياته ده :** امام ابو بکر جصاص رحمه الله په احکام القرآن کښې فرمائيلی دی چې په کومه وجه الله تعالى د ازواجو مطهراتو د نيک عمل ثواب او د ګناه عذاب ئې دوچند ګرځولې دې چې د هغوئ رضي الله عنهن په کورونو کښې به د الله ﷻ وحی نازليده هم دغه چې په عالمانو ددين کښې هم موجوده ده ، ځکه به هغه عالم ته د عمل ثواب د نورو څخه زيات ورکولې شی چې پخپل علم باندې عمل کوی او دګناه عذاب به هم د نورو څخه زيات وی.

﴿بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ د فاحشة لفظ په عربئ کښې د زنا او بدکارئ دپاره هم استعماليږي . او دمطلق ګناه او نافرمانئ دپاره هم د الفظ قرآن پاک کښې ډير ځل استعمال شوې دې . دلته د فاحشة نه زنا او بدکاری مراد نه ده ولې چې الله ﷻ د خپلو ټولو پيغمبرانو عليهم السلام ازواج ددې سخت عيب نه ساتلې دی . داسې کار هغوئ هيڅکله نه دې کړې . د نوح عليه السلام او لوط عليه السلام بيبيانې دهغوئ د دين څخه منحرفې شوې وې . او سرکشی ئې اختيار کړې وه . اوهغوئ ته ددې سزا ملاؤ شوه.ليکن په هغوئ باندې د بدکارئ الزام هيچرته نه وو. په ازواج مطهرات کښې په هيڅ باندې هم د بې حيايئ او بدکارئ د الزام هډو احتمال نه وو. په دې وجه په دې آيت مبارک کښې د فاحشه څخه مراد عامه ګناه يا رسول کريم ﷺ ته تکليف رسول دی . او په دې خائې کښې د فاحشة سره د مبينة چې کوم لفظ راغلې دې دا په دې باندې ګواه دې ځکه بې حيائی او بدکارئی هيڅکله هم مبينه نه وی . هغه خو په پردو کښې په پټه کولې شی. دفاحشه مبينه څخه مراد عام ګناهونه دی . يا رسول کريم ﷺ ته تکليف ورکول ؟ د تفسير په امامانو کښې مقاتل بن سليمان په دې آيت مبارک کښې د فاحشه مفهوم د نبی کريم ﷺ نافرمانی يا د نبی کريم ﷺ څخه يو داسې مطالبه کول ګرځولې دی چې دهغې پوره کول نبی کريم ﷺ د پاره مشکل وی . [رواه البيهقی فی السنن] [1].

[ الحمدلله پاره نمبر ۲۱ ختمه شوه ]

---

[1] ) سنن الکبرئ للبيهقی (باختصار) رقم الحديث: ١٣٢٠٦